قال الله تبارک وتعالی

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿فَسْئَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم

إِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَالُ (الحديث)

# احسن الفتاوی

## اول جلد

(له ابتداء څخه تر آخر د فصل فی الاستنجاء پورې)

تالیف - فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

ناشرین

مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته

مکتبه فریدیه محله جنگی قصه خوانی پیښور

د کتاب نوم : احسن الفتاوی (اول جلد) (له ابتداء څخه تر آخر د فصل فی الاستنجاء پورې).
د مؤلف نوم : فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی
پښتو ترجمه او کمپوز : مولوی محمد همایون صاحب.
ډیزاین، اصلاح او نظر ثانی : حافظ محمد ولی (بغلانی)
د چاپ کال : ۲۰۱۲
د چاپ شمیر : ۱۰۰۰ ټوکه
ناشرین : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))
د ملاویدو پته : مکتبه فریدیه محله جنګی قصه خوانی پیښور
د مکتبې مسؤل : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) صاحب.

بسم الله الرحمن الرحیم

# تذکرة المؤلف

## خاندان

د فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی **رشید احمد** صاحب دامت برکاتهم وطنِ مالوف لدهیانه دې چه مشرقی پنجاب کښې واقع دې او نن سبا بهارت کښې شامل دې . لدهیانه د علم او فضل په اعتبارسره یو تاریخی حیثیت لری ، د لویو لویو علماؤ اود اولیاءِ کرامو مرکز پاتې شوې دې .

حضرت محترم د علماءِ لدهیانه په مشهور خاندان کښې دې ، چه دخپل علم ، ذهانت ، تقوی ، احوالِ باطنه ، کشف اوکرامات ، شجاعت ، د حق وینا کولو ، د جسمانی قوت او انګریز سره په جهاد کښې دښکاره کارنامو د وجهې نه غیرمعمولی شهرت لری ، د دوی والد محترم حضرت مولانا محمد سلیم صاحب مدظلهم چه د حضرت تهانوی رحمة الله علیه د صحبتونو نه مستفید شوې دې ، او «**بزمِ اشرف**» کښې د صاحب الرؤیا په لقب سره معروف دې د زمینداری په سلسله کښې د لدهیانه نه دفیصل آباد ولسوالی ته ، او بیا دهغه ځائ نه د ملتان ولسوالی اوخانیوال علاقه داری «تحصیل» ته تشریف راورو ، او هغلته ئې په یو نو آباد کلی چک نمبر ۱۰۱ ، ۱۵ ایل کښې سکونت اختیارکړو اود اشرف الاولیاء په نوم باندې دهغه کلی نوم «کوټ اشرف» کیخودلو

## ولادت او مقامِ ولادت

هم په هغه مبارک کلی کښې د « راس المتقین رشید ثانی » ولادت د چهارشنبې په ورځ د ۲ صفر ۱۳۴۱ هجری، مطابق ۲۲ستمبر ۱۹۲۲ء کښې اوشو . دحضرت گنگوهی رحمة الله علیه په نوم باندې د دوی نوم کیخودلې شو . د دوی تاریخی نوم **سعودِ اختر** دې . دا نوم دوی پخپله د پنځلسو کالو په عمرکښې تجویز کړې وو ، د دوی د تولو نه رومبنۍ تصنیف «تسهیل المیراث» کښې ددې نوم ذکردې .

## طفولیت او ابتدائی تعلیم

په ابتدائی عمر کښې دوالدینو د دوی سره غیرمعمولی مینه وه ، او دوی باندې ئې انتهائی

شفقت کولو . هم هغه شفقتونو دوی لره « رشید ثانی » جوړکړو . والدمحترم تقریباً د پنځوکالو په عمرکښې د قرآن مجید او د مونځ تعلیم ورکول شروع کړه . ۱۳۴۸هجری نه ۵۲ هجرئ پورې یې په حکومتی ابتدائی مکتب کښې څلورم صنف پورې تعلیم حاصل کړو . د ذهانت د وجه نه همیشه پخپل جماعت کښې ممتاز راتللو .

## د فارسی ابتدائی تعلیم

د حضرت مشر ورور مولانا محمد نعیم صاحب . مولانا محمدخلیل صاحب او مولانا محمد جمیل صاحب د رومیئ نه ملتان ته نژدې ګهوټه شریف کښې دینی علوم وئیل . ۱۳۵۳هجرئ کښې والد صاحب دوی لره هم د دینی علم حاصلولو دپاره هم هغه ځائ ته واستولو . والدمحترم دوی لره او مولانا محمد جمیل صاحب لره د میاچنو ریلوے استیشن نه ریل باندې سواره کولو سره . ورسره ناست یو خوان ته ئې اووئیل چه دا ماشومان په احتیاط سره ملتان کښې کوز کړه .

حضرت محترم اوفرمائیل چه په لاره کښې هغه ځوان زمونږ نه پوښتنه اوکړه چه چرته ځئ ؟ مونږ اووئیل چه دینی علم وئیلو دپاره ځو . نو هغه اووئیل « ملاکیدلو سره به بیکاره شئ » او د دینی علم نه وئیلو دپاره ئې کافی اوږد تقریراوکړو . راقم الحروف د حضرت والا نه پوښتنه اوکړه . بیا مو هغه ته څۀ جواب ورکړو ؟ وې فرمائیل « ماشومان خو وو څه جواب مو ورکړې وې » لیکن په هغه حالت کښې هم زمونږ دهغه نه نفرت کیدلو . او الحمدلله دهغه په وینا سره د دین نه متنفره نه شواو دا هم د الله کرم دې او که نه نو مونږ څوک یو او زمونږ حیثیت به څه وی ؟

ددې نه پس حضرت محترم اوفرمائیل : «که چرته دې جنټلمین صاحب نن ژوندے وې نومعلومه شوې به وې چه څوک بې کاره دی ؟ الحمدلله . الله تعالی په دنیا کښې د آرام او راحت ټول سامان عطا کړې دې اود نوابانو په شان ژوند تیروم . عزت او منصب ئې راکړې دې اود ټولو نه لویه خبره دا چه د سکونِ قلب دولت نصیب دې چه یو جنټلمین ته په خوب کښې هم نه ملاویږی . الله تعالی دې دهغه مغفرت اوکړی . آمین»

بیا ئې اوفرمائیل : « دا خو مسافرخانه ده نه دلته د راحت اعتبارشته نه د تنګسیا اعتبار. اعتبار خو د آخرت دې . وروره ددې فیصله نه هغه کولې شی اونه زه کولې شم . ددې فیصله به سبا وی چه کله د احکم الحاکمین په بارګاه کښې پیشی کیږی هغه ورځ به معلومه شی چه مونږ څه یو . الله تعالی دې مونږ ته خپلو مرضیاتو باندې د روانیدلو توفیق راکړی او مونږ دې د آخرت دپاره فائده مند جوړکړی آمین »

ګهوټه شریف ته رسیدلو سره دوی دخپلو نورو ورونو سره قیام اوکړو او دخپل مشرورور مولوی محمد خلیل صاحب نه ئې د فارسی ابتدائی کتابونه اولوستل

## بشارت

ګهوټه شریف کښې د تعلیم په دوران دعلم دین په خاطر په ماشوم توب کښې د والدینو نه دسختې جدائۍ په عوض کښې حضرت محترم ته یوښه په خوب کښې د حضورصلی الله علیه وسلم زیارت نصیب شو او حضورصلی الله علیه وسلم ئې اوکتلو چه ژبه مبارکه کښې ئې د لکنت اثردې هم هغه وخت د دوی خیال اوشو چه لکنت خو د حضرت موسیٰ علیه السلام په ژبه مبارک کښې هم وو ، حضورصلی الله علیه وسلم باندې دهغه اثرڅنګه شوې دې؟ چه کله د خوب نه بیدار شو نو دوی خپل مشر ورور ته د خوب تذکره اوکړه مګر هغوی دکوم بزرګ نه دهغې د تعبیر پوښتنه اونه کړه.

## تعبیر

نن نه تقریباً درې کاله وړاندې ۹۳ هجری کښې دوی ته ناګهانه هغه زوړ خوب په یاد راغې . نو بنده ته ذکرکولوسره یې اوفرمائیل . ددې تعبیر په فکر کښې دا راغې چه علم نبوت به راته حاصلیږي . د ژبې لکنت ثقل وحی طرف ته اشاره ده «**انا سنلقی علیک قولا ثقیلاً**» علاوه ددې نه په دې کښې دنسبتِ موسویه حصول طرف ته هم اشاره ده

د نسبتِ موسویه مظهر د حضرت محترم د ژوند ډیر واقعات د راقم په علم کښې دی چه دهغې تفصیل د حضرت محترم مفصل سوانح عمری په «انوارالرشید» کښې لیکلې شوی دی

دا خوب په دې لحاظ سره نورهم زیات د اهمیت حامل دې چه دا د هغه وخت واقعه ده چه دوی تازه تازه علم دین حاصلول شروع کړی وو . په داسې وخت کښې دا بشارت د الله تعالی د طرف نه یولوئ نعمت دې

## د عربی ابتدائی تعلیم

شوال ۱۳۵۳ هجری کښې ځلور واره ورونه د تعلیم په غرض جهانګیرآباد تحصیل خانیوال ،چه د وتو والا په نوم سره مشهور دې ، دمولانا سلطان [۱] محمود صاحب په خدمت کښې حاضرشول . مولوی محمد جمیل د فارسئ تکمیل کولوسره عربی شروع کړه . حضرت محترم هم دده سره شریک شو . د فارسئ تعلیم یې هم ورسرورسره کولو

د درس نظامی دویم کال ۵۴. ۵۵ هجری دوی ککتهرضلع ګوجرانواله او دریم او ځلورم کال ۵۵. ۵۷ هجری ، جنهګ کښې تیرکړو . ددې دریو کالو کتابونه دوی دخور خاوند حضرت مولانا

---

[۱] د حج د سفر په موقع باندې د دوی سره یو خوندوره واقعه پیښ راغله چه دهغې تفصیل په «انوارالرشید» کښې کتلې شي . ۱۲ آسیا آبادی

محمود احمد صاحب نه اووئیل ۔ ۱۳۵۷ هجری کښې د دوی پلار د زمینداري په سلسله کښې خیرپور «سندهـ» ته تشریف راوړو چه دهغې د وجه نه د څامنو دتعلیم سلسله یې هم دسندهـ په علاقو کښې شروع شوه حضرت او د دوی وروړ مولانا محمد جمیل صاحب دخپل استاذ مولانا محمود احمد صاحب سره جامعه دارالهدی تهیتړی ته راغلل ۔ دلته دوی د مولانا محمود احمد صاحب نه علاوه دمولانا محمد صاحب نه هم یو څو کتابونه اووئیل ، مولانا محمد صاحب دعلم او عمر د دواړو په لحاظ سره اکابرو علماؤ کښې وو ، ډیرقابل او متقی بزرګ وو ، دوی د ریاضئ یو کتاب پخپله تصنیف کړې وو .

علم هندسه ، مثلث او کرویاتو کښې زمونږ د حضرت مهارت د دنیا په شمیر یوڅو د ریاضئ ماهران اندازه کولې شی ، ددې یوڅو مثالونه د دوی مفصل سوانح عمری «انوارالرشید » جلد اول کښې کتلې شئ ،

په همدغه کال یعنې ۵۷، ۵۸ هجری کښې دوی دمولانا محمود احمد صاحب نه هدایه اولین ، مختصرالمعانی او مطول اووئیلو اود مولانا محمد صاحب نه ئې حاشیه عبدالغفور ، میرقطبی او د ریاضئ کتاب اووئیلو .

۱۳۵۸ هجری کښې د دوی وروړ مولانا محمد جمیل صاحب د ډابهیل نه فارغیدلو سره تشریف راوړو نو هغه او مولانا محمود احمد صاحب دواړه په پیرجهنډو جدید «درګاه شریف » کښې مدرس شو ، حضرت هم دهغوی سره وو .

په دې کال کښې دوی دخپل خورخاوند مولانا محمودأحمدصاحب اود وروړ مولانا محمدجمیل صاحب نه سلّم العلوم ، ملاحسن ،میبذی ، شرح عقائد نسفی ، خیالی ، سبع معلقه او تفسیربیضاوی اووئیلو علاوه ددې نه مطالعه مذاهب باطله ، تمرین مناظره اود انشاء عربی مشق یې هم اوکړو .

## د فنونو تکمیل

په راروان تعلیمی کال شوال ۵۹ هجری کښې دوی دمعقولاتو مشهورې درسګاه انّهی «ضلع ګجرات پنجاب » ته تشریف یوړو چه هغلته مولانا ولی الله صاحب د فنونو غټ کتابونه درس کول . په هغه یو کال کښې دوی چه څومره کتابونه اووئیل . هغه دنن سبا طالب علم تقریبًا په دریو کالو کښې نه شی پوره کولې ، په دې کال ئې مندرجه ذیل کتابونه اووئیل :

ملاجلال مع حاشیه میرزاهد ، رساله قطبیه مع حاشیه میرزاهد وغلام یحیی قاضی مبارک ، حمدالله ، شرح مواقف مع حاشیه میرزاهد ، شرح عقائد عضدی شرح اشارات ، صدرا ، شمس بازغه ، الدوحة المیادة ، تصریح ، شرح چغمینی بست باب ، السبع الشداد ، ربع مجیب ، ربع

مفتطر ، اکرثاؤ ، ذوسیوس ، اکرمناظر ، کره متحرکه ، توضیح تلویح ، مسلم الثبوت ، ددې نه علاوه مشکوة بیضاوی هدایه آخرین ، السبع المعلقات ، اود مقامات د طلبو سره ئې تکرار اوکړو ، ﴿مجموعه ۳۰ کتب﴾

## دارالعلوم دیوبند کښې داخله

## او د دوره تکمیل حدیث

د نورو علومو اوفنونو د تکمیل نه پس دوی دوره حدیث وئیلو دپاره مشهوره عالم دینی درسگاه دارالعلوم دیوبند تشریف یوړو ،

حضرت شوال ۱۳۷۰هجری کښې دارالعلوم دیوبند کښې داخل شو او شعبان ۱۳۷۱هجری کښې فارغ شو هغه کال ئې مندرجه ذیل کتابونه د لاندینو استاذانو نه اووئیل :

﴿۱﴾ صحیح بخاری ﴿۲﴾ سنن ترمذی

دا دواړه کتابونه ئې د حضرت مولانا مدنی صاحب نه اووئیل ، د کال په آخر کښې حکومت برطانیه حضرت مدنی لره گرفتارولوسره مراد آباد جیل ته واستولونو دا دواړه کتابونه حضرت مولانا اعزازعلی صاحب ختم کړه ،

﴿۳﴾ صحیح مسلم : حضرت مولانا محمد ابراهیم صاحب بلیاوی

﴿۴﴾ سنن ابی داؤد ﴿۵﴾ شمائل ترمذی :

حضرت مولانامحمداعزازعلی صاحب امروهوی

﴿۶﴾ سنن نسائی . حضرت مولانا عبدالحق صاحب نافع

﴿۷﴾ سنن ابن ماجه : حضرت مولانا مفتی ریاض الدین صاحب

﴿۸﴾ طحاوی حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب

﴿۹﴾ موطا امام مالک حضرت مولانا ادریس صاحب کاندهلوی

﴿۱۰﴾ موطاامام محمد . حضرت مولانا ظهوراحمد صاحب

په دې کال حضرت د دوره حدیث سره سره د تجوید په کتابونو کښې فوائد مکیه او جزری د قاری عزیز احمد صاحب او خلاصة البیان د قاری حفظ الرحمن صاحب صدرالقراء نه اووئیل .

## په فطرت کښې د جهاد جوش

الله تعالی د جهاد جوش د حضرت په فطرت کښې اچولې وو ، دا دولت دوی ته په خاندانی وراثت کښې ملاؤ شوی دې ، د دوی د خاندان اکابرعلماء او مشائخ د انگریز په خلاف په جهاد کښې ډیر مشهور دی ، دوی په کم عمر کښې د علوم اسلامیه دتحصیل سره د جهاد د مشق سلسله

هم جاري ساتله ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو رضی الله عنهم غزوات په مجالسو کښې اورولو سره د سامعینو په زړونو کښې به ئې د جوش جهاد اور راپسیره کولو ، بیا دارالعلوم دیوبند کښې د داخلې نه پس د حضرت مدنی رحمة الله علیه صحبت مبارکه او د حدیثو په کتابونو کښې مغازی او د جهاد موضوع ګانو په بدن باندې د پیټرولو کار اوکړو ، چونکه دارالعلوم دیوبند کښې د تعلیم نه علاوه تربیت جهاد هم بنیادی مقاصدو کښې دې ، ددې وجه نه طالبانو ت د جهاد او د فنونِ حرب د تربیت ورکولو دپاره ددې فن ماهرین استاذان د دارالعلوم د طرف نه وو ، حضرت د ټولو نه د پورتې درجې استاذ عبد الرحمن او استاذ عبد الرشید نه فنونِ حرب کښې مهارت حاصل کړو ،

## د باطن تربیت

بشارت قبل از ولادت : د حضرت نیکه مولانا محمد عظیم صاحب لوئ صاحبِ مقام بزرګ او کشف او کرامت کښې مشهور وو ، دوی د خپل شیخ نه دیو خوب د تعبیر پوښتنه اوکړه ، شیخ اوفرمائیل ، « د صالح فرزند بشارت دې چه شاید د محمد سلیم (د حضرت د پلار) دکور چراغ وی ، د حضرت پلار خوب ډیر خلې ذکر کولو سره د حضرت په باره کښې فرمائیل چه تاسو ددې بشارت مصداق ئې ،

**حضرت تهانوی قدس سره** : په بچپن کښې د پلار د زبان نه د حضرت تهانوی رحمة الله علیه مواعظ او ملفوظات په غوږونو کښې پریوتل چه کله پخپله د وئیلو قابل شو نو دحضرت حکیم الامت دمواعظ او ملفوظاتو د مطالعې معمول ئې جوړ کړو ، شوال ۱۳۲۰ هجری کښې د تکمیلِ حدیث دپاره دارالعلوم دیوبند ته تشریف اوړلو په وخت روښې ئې تهانه بهون ته حاضری ورکړه ، ددې نه پس د دیوبند نه تهانه بهون ته ډیر خلې د حاضرئ شرف ملاؤ شو هغه زمانه کښې حضرت تهانوی صاحب د ضعف د وجه نه پخپله بیعت نه فرمائیلو ،

## شیخ الادب حضرت مولانا محمد اعزازعلی صاحب رحمه الله تعالی

دارالعلوم دیوبند کښې حضرت شیخ الادب کښې شانِ اصلاح ښکاره لیدلو سره د دوی نه روزانه د یو څو منټو دپاره صرف د حاضرئ اجازت اوغوختلو ، حضرت دخپلې خصوصی مطالعې او تصنیف په وخت کښې اجازت راکړو ، دا خصوصی عنایت صرف حضرت باندې وو ، یو خلې د مصافحې په وخت دحضرت لاس ئې مضبوط نیولو سره داسې توجه اوکړه چه دهغې اثر په پوره بدن باندې د بجلئ د کرنټ په شان محسوس شو

## حضرت مدني صاحب

د حضرت شيخ الادب نه استشاره او استخارې نه پس د حضرت مدني صاحب سره بيعت اوشو . حضرت شيخ الادب اوفرمائيل چه د حضرت مدني په خدمت کښې د بيعت په غرض کښې خان سره به دې بوخم مگر اتفاق داسې اوشو چه حضرت د حضرت مدني د زيارت د پاره خانقاه باندې حاضر شو نو حضرت مدني د راتللو د مقصد پوښتنه اوکړه ، حضرت بلاتکلفه عرض اوکړو چه هغې باندې حضرت مدني ازراه شفقت فوراً بيعت اوفرمائيلو .

## حضرت مفتي محمد حسن صاحب

د حضرت مدني د انتقال نه پس د حضرت مفتي صاحب سره مې تعلق اوساتلو د حضرت مفتي صاحب په حضرت باندې خاص نظر وو . يو ځل دارالعلوم کراچئ کښې د حضرت مفتي صاحب اچانک تشريف راوړلو د وجه نه حضرت ته حاضرخدمت کيدلو کښې څه قدرې تاخيراوشو ، پس دې لږې غوندې وقفه کښې حضرت مفتي صاحب د حضرت مفتي محمد شفيع صاحب نه خو خلې د حضرت په باره کښې پوښتنه اوکړه ، وروستو حضرت مفتي محمد شفيع صاحب حضرت ته دا ماجرا بيان فرمائيلو سره ډيرپه خوشحالئ سره ئې ورته اوويل چه د اکابرو داسې توجه ډيرلوئ سعادت دې

## سلطان العارفين حضرت پهولپوري قدس سره

حضرت ته په آخره کښې حضرت پهولپوري نه شرفِ بيعت وخلافت حاصل شو ، د بيعت نه وړاندې خوب کښې اوليدلو چه دوی دارالعلوم ديوبند کښې پاسني منزل باندې مهمان خانه کښې مقيم دې . حضرت شيخ الادب ډير په تلوارې سره تشريف راوړو او وې فرمائيل ستاسو آلارم راغلې دې تلوار اوکړئ بيا ئې اوفرمائيل چه زمونږ په اصطلاح کښې اهم ټيلفون ته الارم وائي . بيا تاسو د خپلې المارئ نه يو کتاب راوايستلو او حضرت لره ئې ځان سره کولوسره يو باغ ته لاړه . ددې خوب نه څه موده پس د حضرت پهولپوري سره بيعت اوشو نو د دوی په خدمت کښې دا خوب پيش کړودوی اوفرمائيل ددې تعبيراوشو . يعنې باغ ته تلل د پهولپوري دربار ته راتلل دی .

يو ځل دوی حسب معمول شبِ جمعه کښې د حضرت پهولپوري سره مقيم وو خوب کښې حضرت اوفرمائيل زر راځه يو بزرگ سره دې ملاووم . بهرراووتلم نو په سړک باندې مغرب طرف ته يو يو بزرگ تشريف اوړی چه هغه باندې د جلال غلبه ده دهغه سره ملاوولو د پاره حضرت پهولپوري وړاندې شو او حضرت وروستو په منډه دې ،نژدې اورسيدلو نو هغه بزرگ پخپله شانه تاويدلو سره حضرت ئې د سينې سره جوخت کړو سحرته ئې د حضرت پهولپوري په خدمت کښې خوب پيش کړو نو وې فرمائيل چه هغه بزرگ زمونږ مرشد پاک وو يعنې حضرت تهانوي رحمه الله تعالى

## د بیعت اجازت

یو مجلس کښې حضرت پهولپوری صاحب اچانک اجازت بیعت عطا کړو حضرت زیات پریشانه شو . نه مې د امانت د بوجه تحمل کولې شو اونه مې انکار . په دې پریشانئ کښې یو دوه ورځې تیرې شوې وې چه په مجلس کښې یو صاحب اووئیل . مولوی .... صاحب ډیرپااثرسړې دې تاسو دوی ته خلافت ورکړئ نوخلقو ته به ډیره فائده اوشی » دې اوریدلو سره حضرت پهولپوری فوراً سیده کیدلو سره کیناستلو او په ډیرجوش سره ئې اوفرمائیل «آیا دا خما د کور څیز دې چه چاته غوارم ورکړم . که چرته داسې کیدلې نو ما به د ټولو نه ورانډې خپلو بچو ته ورکړې وې دا د میا دین دې دچا دپاره چه وی هغه ته ورکولې کیږی دا قصه کتلو سره د حضرت پریشانی ختمه شوه او پوهه شو چه شعر

لطف عام او نے جوید سند　　　آفتابش بر حد شماے زند

دهغه وخت نه ددې دعا معمول جاری دې : اللهم اجزوعدومن اکرمه علیه انزل الله علیه ملکا یسدده.

## د ژوند دویمه مرحله

### تدریس ، افتاء ، ارشاد

دحضرت او د دوی د پلار ددې زیات احساس وو چه دعلم دین په تدریس او نشرواشاعت باندې د دوی ژوند وقف وی ، چنانچه د حضرت د تدریس سلسله ۱۳۲۲هجری کښې مدینة العلوم بهیند وضلع حیدرآباد سنده نه شروع شوه ، بحیثیت مدرس درجه علیا د دوی تقررشو . ۱۳۲۴ هجری کښې دوی لره صدر مدرس جوړ کړئ شو او هم دهغه کال نه د بخاری شریف اود نورو کتب حدیث تدریس هم شروع کړو ،

د افتاء کار هسې خو د ۱۳۲۲هجری نه شروع شوې وو لیکن د ۱۳۲۲هجری نه د دارالافتاء مکمله ذمه داری د دوی په اوږو باندې واچولې شوه ، د ۱۳۲۲هجری نه تر۱۳۲۹هجری پورې دوی بیک وقت شیخ الحدیث ، صدر مدرس او صدر مفتی پاتې شو .

### دارالهدی تهیرهی

۱۳۷۰هجری کښې حضرت بحیثیت شیخ الحدیث وصدرمفتی جامعه دارالهدی تهیرهی تشریف یوړو ، دصحیح بخاری او د نورو علومو اوفنونو تقریباً د اتو اسباقو وئیلو معمول وو ، دې سره سره به ئې د دارالافتاء مکمله ذمه داری هم پوره کوله ،

## دارالعلوم کراچی

شوال ۷۲۰ هجری کښې د حضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب دامت برکاتهم په فرمائش باندې دوی بحیثیت شیخ الحدیث دارالعلوم تشریف راوړو او شعبان ۸۳۰ هجری پورې دارالعلوم کښې وو .

د ۱۳۷۲ هجری نه تر ۱۳۸۳ هجری پورې هر کال دوی صحیح بخاری درس کړه . په دې حساب سره دوی شل کرتې درس بخاری ورکړو . شروع کښې د دارالعلوم د نظامت تعلیم ذمه داری هم دوی ته په حواله شوه مگر څه موده پس دوی هغه علمی خدماتو کښې مخل گڼلو سره ترک کړه .

## د فتوی لیکل

هسې خو د ۱۳۲۲ هجری نه حضرت ته د فتاوی نویسی مواقع ملاؤ شول . لیکن د ۱۳۲۲ هجری نه د دارالافتاء مکمل ذمه داریانې د حضرت په حواله شوې مگر ۱۳۷۹ هجری پورې چه کومې فتوې صادرې شوې دې دهغې د جمع کولو او ضبط کولو هیڅ انتظام او نه کړې شو . سوا دیو څو په شمېر فتوو نه چه دهغې نقل محفوظ کړې شو . په دې لړه موده کښې د دوی شان تحقیق او تعمق نظر په دومره شهرت حاصل شو چه د سرون ملک علماء هم مشکلو مسائلو کښې دوی طرف ته رجوع کول شروع کړه . دهر قسمه فتوو د دوی مرجع خواص وعوام جوړ شو . علماؤ کښې پیچیده مسائل د فیصلو دپاره دلته راتلل شروع شو دوی به دې منصب باندې فائز کیدلو سره هغه محنت او قربانی ورکړه چه فتوی نویسی سره تعلق ساتونکی دوی باندې فخر دې .

د ۱۳۷۱ هجری نه تر ۱۳۷۲ هجری پورې دوی د خپل تحریر کړې شوو اهمو مسائلو نقلونه محفوظ او ساتل اگرچه کثرت مشاغل د وجه نه اکثر مسائل نقل نه شو . ددې پنځوکالو په موده کښې ټولې دوه زره پنځه وښت فتاوې تحریر کړې چه په هغې کښې صرف څلور سوه یو پنځوس فتاوې نقل کړې شوې چه د «احسن الفتاوی» په نوم سره شائع کیدلو سره عوامو او خواصو کښې دومره مقبول شو چه (عیاں را چه بیاں) چه ښکاره خبرې لره د ښکاره کولو ضرورت نشته مقوله ده .

ددې نه پس دارالعلوم کراچۍ کښې اگرچه د دارالافتاء مستقل ذمه داری دوی باندې نه وه . خو بیا هم د زیاتو اهمو او پیچیده مسائلو تحریر به هم د دوی په حواله کیدلو . فقیه او مفتیان خو ډیر وی . لیکن فقیه النفس ډیر کم وی . حضرت مولانا گنگوهی رحمه الله تعالی لره الله تعالی فقیه النفس جوړ کړو . او زمونږ حضرت لره «رشید ثانی» .... الله تعالی علم او فقه لره د حضرت په رگونو کښې داسې ننباسلی وو چه مسائل فقهیه د حضرت پاسیدل کیناستل جوړ شو

دارالعلوم کښې د ۱۳۸۱ هجری نه د دوی زیرتربیت د تخصص فی الفقه شعبه شروع کړې شوه . دوه کاله پس حضرت دارالعلوم پریښودلو سره د «دارالافتاء والارشاد» بنیاد کیښودلو تر په

د رانعنوم کښې دا سلسله څه وخته پورې بنده وه ، دهغې نه پس بیا جاري کړې شوه .

## د دارالافتاء والارشاد بنیاد

د خپل شیخ حضرت مولانا عبد الغنی پهولپوری په خواهش او غیبی اشارې باندې حضرت اقدس دامت برکاتهم رمضان ۱۳۸۳هجری کښې د اعلی استعداد لرلو والا فارغ التحصیل علماؤ د تمرین افتاء دپاره د « دارالافتاء والارشاد بنیاد کیخودلو او اوس تر ۱۳۹۴هجری پورې دلته هم دا خدمت جاری دې . الله تعالی دې هغه خدماتو لره قبول اوفرمائی او د دوی سورې دې په مسلمانانو باندې قائم اوساتی . آمین

د مدارس عربیه نه فارغ التحصیل علماؤ د دوی په خدمت کښې حاضرېږی اود تحریرافتاء د تمرین سره فیض باطن . تقوی ، استغناء اود تعلق مع الله دولت هم د ځان سره اوړی .

## د رشد اوهدایت مجلسونه

حضرت اقدس هسې خو د هرراتللو والا په غوږ کښې څه ناڅه د دین خبره رسولو سره پریږدی . د دوی د نشست وبرخاست هرآن بو مستقل سبق دې بلکه د دوی ژوند ټول په ټوله د شریعت مقدسه یوعملی تصویر دې لیکن د جمعې او اتوار شپه دوی د تلقین او هدایت دپاره وخت فارغوی چه په هغې کښې د اطرافو نه په کثیرتعداد کښې سړی او ښځې حاضرېدلو سره فیضیابه کیږی . بالخصوص د نوجوان طبقې دپاره دا مجالس عجیب التاثیردی په یو څو ورځو کښې دهغوی د زړونو حالت بدلیږی او داسې ناآشنا انقلاب راځی چه د ژوند طورطریقې ورسره بدلیږی

د دوی بعضې خدامو د ۱۳۹۱هجری نه هغه مجالسو کښې د جمعې بیاناتو لره په التزام سره او اکثروبیشتر د اتوار بیاناتو لره لیکلی دی ، چه محفوظه دی دهغې د طباعت انتظام روان دې .

## خصوصیات

په دې تحریرکښې ټول مضامین مختصر لیکلې شوی دی ، چه د یو صاحب ذوق قاری دپاره یقیناً ناکافی دی . دهغوی رعایت کولو سره دحضرت مفصل سوانح عمری بنام «انوارالرشید» زیرترتیب دې ، دلته د نورو عنواناتو سره دهغه عنوان هم صرف اشاره لیکلو باندې اکتفاکوی . د تفصیل دپاره « انوارالرشید اوګورئ . د دوی بعضې خصوصیات دادی

(۱) **دمعاملاتو صفائی** دا د حضرت حکیم الامت امتیازی شان دې . حضرت هم د صفائی معاملاتو دومره اهتمام کوی چه هرڅومره اهم کاروی مګر صفائی معاملات د دهغې تعلق حقوق العباد سره هغه مقدم ساتی ، په دې باندې د حضرت څه ډیر عجیبه واقعات دی .

(۲) **تقوی او تصلب فی الدین** سره د طبعی غلبهٔ مروت یو موقع باندې هم د تقوی او تصلب

في الدين لمنه د لاسه نه اوښکله ، په دې باندې ډېر سبق آموز واقعات دي .

(۳) **استغناء** : د استغناء د اعالم دې چه حکومت او لوئ لوئ مالدار کروړپتي خلق د دوی په دروازه باندې پوزه راکاږي ، د دوی د استغناء خلاصه داده شعر

نہ لالچ دے سکیں ہرگز تجھے سکوں کی جھنکاریں

ترے دستِ توکل میں ہیں استغناء کی تلواریں

(۴) **د شهرت د مواقع نه اجتناب** : (۵) د مشایخو او علماؤ مخصوص وضع داری او تکلفاتو نه آزاد ساده او بې تکلفه ژوند :

ددې عنواناتو تفصیل اود همت او استقلال نا آشنا واقعات به ((انوار الرشید)) کښې وګورئ په دوی کښې دا خصوصیات دومره ښکاره دي چه د سخت نه سخت مخالف هم دهغې نه اعتراف باندې مجبور دې .

## تصانیف [۱]

- الاجتثاث لموحد الطلقات الثلاث .
- احتماعي .. (مجالس ذکر) .
- احسن الفتاوی ۱۰ جلدونه .
- احسن القضاء في الذبح باعانة الکهرباء
- احکام زکواة . صدقة الفطر . قرباني .
- احکام الکلام في احکام الخروج علی الامام
- د معذور احکام .
- اخساء العادية لفضل معاوية (رضی الله عنه) .
- اداء القرض من الحرام .
- الارشاد الی مخرج الضاد .
- ارشاد الانام بجواب ازالة الاوهام .
- ارشاد اولی الابصار الی شرائط حق القرار .
- ارشاد السبيل الی انوار التنزيل (مقدمه دتفسير بيضاوي) .
- ارشاد العابد الی تخريج الاوقات وتوجيه المساجد .
- ارشاد القاري الی صحيح البخاري .

---

[۱] په دې فهرست کښې بیشتر رسائل د احسن الفتاوي په دې جديد تبويب کښې شامل کړی شوی دي

- ارغام العنید فی میراث الحفید .
- ازالة الریب عن مسالة علم الغیب
- ازالة الاوهام عن الرق فی الاسلام .
- استیناس الابد بشرح فضل العالم علی العابد .
- د اسلام عادلانه نظام معیشت .
- اعدل الانظار فی الشفع بعد الایتار .
- الافصاح عن خیار نسخ النکاح .
- الاکتحال للرجال .
- امام الکلام فی تبلیغ صوت الامام .
- انصراف الامام الی جهة الانام .
- الاوامر والنواهی .
- ایقاع الطلقات بالقاء الجمرات .
- د ایمان او کفر معیار .
- د باغونو مسائل .
- بسط الباع لتحقیق الصاع .
- بشارة اللظی لآکل الربا .
- دمری بعضې ضروری احکام .
- بلاسود بنکاری .
- د ګډې په صورت کښې شرمخ ( دیند ارانجمن ) .
- پراوید نټ فند
- تبلیغی جماعت اود یو کم پنځوس کروړو ثواب .
- تحریر الثقات لمحاذاة المیقات .
- التحریر الفرید فی ترکیب کلمة التوحید ( غیر مطبوع ) .
- تحریر المقال فی التعزیر بالمال
- تحقیق شب براء ت .
- تحقیق شب معراج
- تسهیل المیراث .
- تعدد الازدواج
- التفریق بین التقیید والتعلیق .

- د تقسیم وراثت اهمیت.
- تکفیرِ شیعه باندې د اشکالاتو جوابات.
- تنبیه المغفلین فی بیان التفاضل بین المرسلین.
- تنمیة الخیر فی التضحیة عن الغیر.
- توقیع الاعیان علی حرمة ترقیع الانسان.
- د ټی وی حرمت.
- جبری خلع.
- جبری نکاح.
- الجوهر الفردة فی حکم الذبح فوق القعدة.
- د جهینګے (یوقسم وړوکې کب دې) حرمت.
- د حج ضروری مسائل.
- حرمة المقعاص برمیة الرصاص.
- حریم قناة.
- الحط من المؤجل بشرط ادائه المعجل.
- حفظ الحیاء بتحریم متعة النساء.
- حقیقت شیعه.
- حکمة الازدواج باربع ازواج.
- الحکمة الغراء فی عدم توریث الانبیاء.
- الحکم الربانی لرجم الزانی.
- دحلال اوحرام نه مخلوط مال.
- حلیة دخول مکه بلا احرام.
- د ډاکټری تعلیم دپاره انسانی ډهانچې (اسکلیت).
- ذب الجهول عن سبط الرسول (صلی الله علیه وسلم).
- الرجوم الشهابیه علی الفرقة الذکریة والاباضیة.
- رد البدعات.
- رفع الحجاب عن حکم الغراب.
- رفع النقاب عن وجه الانتخاب.
- رؤیتِ هلال کښې د ریډیو خبر.
- زبدة الکلمات فی حکم الدعاء بعد الصلوات

- زيادة البدل لاجل الاجل
- د نبي صلى الله عليه وسلم د قبرزيارت
- السبک الفريد لسلک التقليد
- السراج الاحكام العشر والخراج
- سنان القنا على محل الربا .
- ساست اسلاميه
- شرح الصدر فى الفرق بين صلاتى الفجر والعصر .
- صبح صادق
- صيانة العلماء عن الذل عند الاغنياء .
- ضعيف حديث باندې عمل كولو كښې مفاسد .
- ضميمه مفيد الوارثين
- طريق السداد لسحل الخضاب بالسواد .
- و الطوالع لتنوير المطالع .
- طويل النهار مقاماتو كښې مونځ او ورژه .
- عمدة التفسير لاية التطهير .
- عمدة الكلام فى عرف الطلاق بالحرام .
- د ښځې ديت
- عيون الرجال لروية الهلال .
- غلبهٔ اسلام
- القتل المشتد لقتل المرتد .
- فتنهٔ انكارِ حديث
- الفصل الحقانى لقتل الزانى .
- فيصله. د اوو ۷ مسائلو وضاحت .
- قاديانى مذهب (بقيه فهرست په صفحه ۵۲۹ باندې)
- قراءة مسنونه
- د قرآن خلاف كمپيوټرى سازش
- د قربانى وجوب
- القول الاظهر فى تحقيق مسافة السفر
- القول السديد عن حكم المسبوق خلف المسافر

- القول الصدوق فی بیع الحقوق
- القول الصواب لهدایة المرتاب (نایابه)
- القول الفاصل بین النکاح الفاسد والباطل
- القول المبرهن فی کراهة بیع الرادیو والتلوزن
- القول المتین فی شرح اطلبوا العلم ولو بالصین
- القید المراد بالعرف لا یزاد
- د کارخانې په منافعو کښې د مزدور شرکت
- کاغذی نوټ اود کرنسۍ حکم
- کشف الغبار عن مسالة سوء الاختیار
- کشف الغطاء عن حقیقة اختلاف العلماء
- الکلام البدیع فی احکام التوزیع
- د غوا په قربانۍ کښې دیو سړی دوه حصې
- لمعات المصابیح فی رکعات التراویح
- مجال التحریر لخیال الزمهریر
- مروجه احادیثِ موضوعه وضعیفه
- دمسحې او تیمم مشهوره طریقه ثابت نه ده
- المشرقی علی المشرقی
- المشکوة لمسالة المحاذاة
- المصابیح الغراء للوقایة عن عذاب الغناء
- المضامین الجاهلیة فی صورة القوانین العائلیة
- معجم العلوم والکتب والمصنفین (نامکمل)
- المقالة البیضاء فی العمامة السوداء
- المقالة المستقیمة للسائل عن حکم البیمة
- منکرات اهل مدارس واهلِ ثروت
- منکرات د تبلیغ اوخانقاه اوسیاست
- منکرات د رمضان اوتراویح اوعیدین
- د واده اود غم منکرات
- منکرات دمجالس دینیه اومبلغینو ا وواعظینو
- منکرات د محرم

- منکرات د مساجدو او اوقافو
- منکراتِ دمعاشرې
- مودودی صاحب او تخریبِ اسلام
- النخبة فی مسالة الجمعة والخطبة
- النذیرالعریان عن عذاب صورة الحیوان
- په مونځ کښې اغلاط العوام والخواص
- د نوافلو جماعت
- د نوټونو مبادله او چیک
- نیل السعادة بالاقتداء فی الصلوة المعادة
- نیل الفضیلة بسوال الوسیلة
- نیل المارب بحلق الشوارب
- نیل المرام بالتزام السکوت عند قراءة الامام
- الوصیة الاخوانیة فی حکم الجماعة الثانیة
- وطن الارتحال یبقی ببقاء الاثقال
- الهدایات المفیدة لتنزیه المدارس من العلوم الجدیده
- هدایة امرتاب فی فرضیة الحجاب

## تجدیدی کارنامې

مسائلِ حاضره باندې د دوی سمجهـ داره نګاه اوهغې سره متعلق د دوی جامع او مدلل تحریرونه ، قوتِ استنباط ، مختصرالفاظو سره د مضبوطو دلائلو هغه مبالغه (ډیروالې) چه دهغې د یو څو صفحاتو د شرحې دپاره ډیر دفاترپکاردی ، په اسلام کښې د پیدا کیدلو والا فتنو ختمول او د براهینِ قاطعه په مجانیق سره دهغې استیصال ، د هرې نوې راپورته کیدلو والا فتنې په وخت محاسبه ، دلائلِ نقلیه وعقلیه ، فنونِ قدیمه وجدیده اود تجارب اود مشاهداتو په رڼا کښې داسې دتحقیقات چه دهغې نظیر نه ملاویږی ، مثلاً اختلافِ مطالع ، د صدقة الفطر مقدار ، حرمین شریفین کښې د زنانو مونځ ، او تحقیق صبح صادق او نورتحقیقات ، د امت د اصلاح درد . کومه ګناه چه د معاشرې جزء جوړه شوې ده او بغیرد ویرې اعلانیه کولې کیږی اودهغې په سیلاب کښې دینداره کورنئ او علماؤ اوصلحاء هم بهیږی ، دهغې د تباهئ نه امت لره د بچ کولو فکر او بذریعه وعظ وارشاد بالخصوص نوجوانانو لره دهغه هولناک دلدل نه د ویستلو کوشش او په هغې کښې ښکاره کامیابی . د دوی په مجالسِ وعظ او ارشاد کښې د شریک کیدلو والا نوجوانانو په ژوند

کښې ناآشنا انقلاب . د وخت د حفاظت اود صفائ معاملاتو بې مثاله اهتمام . او د غلبهٔ مروت باوجود دين کښې د تصلب ديو لوئ نه لوئ تعلق هم په هغې کښې د ويختـه قـدري لچک پيدا کولې نه شو . اود حکومت اود مالدارو نه داسې استغناء چه دهغې نظير تلاش کولو باندې هم نه ملاويږی . د دوی پير حضرت تهانوی رحمه الله په شان کښې اوونيلې شو شعر :

نہ لالچ دے سکیں ہرگز تجھے سکوں کی جھنکاریں

ترے دستِ توکل میں ہیں استغناء کی تلواریں

بعينه په دوی باندې صادق راځی . دهغه د کمالاتو باجود د مناصب نه انکار اود شهرت د مجالسو او مواقعو نه احتراز .

د مذکوره مواهبِ لدنيه او انعاماتِ ربانيه په بناء باندې اکابرعلماء او صلحاء د دين عظيم او اهم ترين خدماتِ علميه او عمليه او اصلاح امت کښې د دوی د امتيازی شان قائل دی .

## اولاد

(۱) صاحبزادی صفوه . تعليم . تجويدالقرآن . اردو دينيات . تمرين قواعدصرف ونحو عربی . ترجمة القرآن . (۲) حافظ قاری مولوی محمد (۳) حافظ قاری مولوی احمد (۴) حافظ قاری مولوی حامد (۵) صاحبزادی اسماء .تعليم . حفظِ قرآن مع تجويد . اردو دينيات . عربی صرف ونحو کښې غيرمعمولی مهارت . رياض الصالحين . ترجمة القرآن .

## وصيت نامه

حضرت په مختلفو اوقاتو کښې درې وصيت نامې تحرير کړې وې په رومبنو دوو کښې اگرچه خاص اولاد ته خطاب دې مگر دهغې فائده عام ده د دريو وارو وصيت نامو مجموعه ديو مستقل رسالې په صورت کښې شائع شوې ده چه د هغې په رومبنۍ پانړه باندې دا آيتونه ليکل شوی دی .

﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾

﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾

﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا﴾

اوس درې واړه وصيت نامې په ترتيب سره ليکل کيږی :

(۱) د عزيزې اسماء سلمها الله تعالی دتکميل حفظِ قرآن په موقع باندې دا وصيتونه وليکل شو

اعوذ بالله من الشیطان الرجیم

بسم الله الرحمن الرحیم

﴿وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِيْ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ﴾

رومبنی آیت کښې دده بیان دی چه حضرت ابراهیم علیه السلام اوحضرت یعقوب علیه السلام خپل اولاد ته مره کیدلو پورې اسلام باندې د قائم پاتې کیدلو وصیت کړې وو .

او دویم آیت کښې دده ذکردې چه حضرت یعقوب علیه السلام بوقتِ رحلت دخپل اولاد دا عهد او اقرار اخستلې وو چه څما نه پس به صرف د الله عبادت کوئ او صرف هغه ته به سجده کوئ دا بنه په ذهن کښې کینوئ چه اسلام یا د الله تعالی عبادت صرف دکلمې وئیلو یا د مونځ ورژه وغیره یوڅو عباداتو ادا کولو نوم نه دې بلکه دده مطلب دادې چه پوره ژوند د شریعت مطابق وی او بنده خپل ټولو خواهشاتو لره د الله تعالی په رضا کښې فنا کړی ،

پس زه هم تاسو ته دده وصیت کوم چه د دین د حفاظت دپاره د امورذیل ډیر اهتمام کوئ ،

(۱) خپل اولاد لره د اسکول اود کالج د تعلیم نه داسې بچ کوئ څنګه چه د شیر یا د شرمخ نه بچ کولې کیږی ، په دې ماحول کښې بچو لره است ل هغوی لره پخپلو لاسونوسره جهنم کښې ورغورځول دی ، هغلته تللوسره په لاکهونو کښې دیو دین محفوظه پاتې شی نو دا به بطورِ خرق عادت وی چه محض دالله تعالی فضل اوکرم دې ، څنګه چه چالره د یو خونخوارشیرد خلې نه یا د بل شوی اور نه که چرته الله محض پخپل فضل سره بچا کړو نو دده دا مطلب نه دې چه عمداً د شیر په خله کښې د تللو یا په اورکښې د غورځیدلو یو جواز دې ، دنیوی تعلیم مضر نه دې ،بدماحول مهلک دې ،

(۲) خپل ژوند د خدمتِ دین دپاره وقف کړئ ، د دین یو کارهم که الله تعالی واخلی نو هغه لوئ انعام ګنړئ اګرچه دخلقو په نظر کښې هغه کار د ذلت او حقارت ولې نه وی ، عزت او ذلت صرف هغه معتبردې چه دمالک په نظر کښې وی ، شعر:

اگر اک تو نہیں میرا تو کوئی شے نہیں میری جو تو میرا تو سب میرا فلک میرا زمین میری

د خدمتِ دین صلاحیت لرلوسره دهغې نه کار نه اخستل دنعمتِ الهیه بې قدری اوناشکری ده ، فرض دا چه د دنیوی کار مشغله مه جوړوئ ، دهغې د وجه نه به تاسو د خدمتِ دین نه محرومه کیدلو نه علاوه په ډیرو ګناهونو کښې به هم مبتلاشئ ، خدمتِ دین کښې مشغول پاتې کیدل د

گناهونو د حفاظت دپاره ډیره مضبوطه قلعه ده .

(۳) روزانه بلاناغه د تلاوت پابندئ کوئ .

(۴) د مندرجه ذیل گناهونو نه د بچ کیدلو اهتمام ساتلو بتاکید وصیت کوم .

(الف) یو داسې مجلس کښې کیناستل چه هغلته دیوجاندار تصویروی یا تصویراخستلې کیږی.

(ب) دچا یو حق خوړل

(ج) چاته تکلیف رسول

(د) بلااجازته د چا څیز استعمالول

(ه) چا باندې بهتان لگول

(و) دچا غیبت کول

(ز) غیبت اوریدل

(ح) د شرعی پردې اهتمام نه کول

(۵) دا هم وصیت کوم چه تاسو خپل اولاد ته هم دمرگ په وخت کښې ددې ټولو امورو وصیت اوکړئ ، زه په جمات کښې کیناستلوسره الله تعالی لره گواه جوړولوسره تاسو ته د پاسنو امورو وصیت کوم اود الله تعالی په حفاظت کښې مو ورکوم : اللهم بلغت، اللهم بلغت ،اللهم بلغت، اللهم واقية كواقية الوليد.....فاطر السموات والارض انت ولى فى الدنيا والاخرة توفنى مسلماً والحقنى بالصالحين. واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين. والصلوة والسلام على سيد المرسلين وعلى اله وصحبه اجمعين. امين برحمتك يا ارحم الراحمين.

رشيداحمد دارالافتاء والارشاد ناظم اباد کراچی

۲جمادی الاخری ۱۳۸۷هجری عشية الجمعه

(۲) بسم الله الرحمن الرحيم

## یو اهم وصیت اولاد اود هغوی د بیبیانو په نوم

خما عزیزانو! دیوڅو ورځو نه ستاسو د مستقبل په باره کښې یو اهم فکر خما په دماغو باندې مسلط دې نن بتاریخ ۱۳ رمضان المبارک ۱۳۹۳هجری د پنجشنبې په ورځ د سحر مونځ نه پس چه هرکله زه مخ په قبله پخپلو معمولاتو کښې مشغوله شوم نو الله تعالی په زړه کښې په ډیر قوت سره دا القاء اوفرمائیله چه دې باره کښې یو وصیت اولیکه ، رمضان المبارک کښې د اشراق نه فارغیدلوسره د دوو گنهټو د خوب معمول دې خیال وو چه ددې معمول نه فارغه شم نو وصیت به اولیکم مگر الله تعالی هغه خیال لره دومره حده پورې مسلط کړې وو چه ما په مشکله نیمه گنهټه

خوب پوره كړو دهغې نه پس مې د اوده كيدلو ډير كوشش اوكړو خو خوب نه راتللو نو پاسيدم او په هغه تحرير كښې مشغول شوم .

خما خامنو او لونړو ! په ماشوم توب كښې ستاسو په خپل مينځ كښې تعلق او مينه خما په نظر كښې ډيره حده پورې قابلِ اطمينان اوموجب د خوشحالئ وو اود نورو په نظر كښې خو باعث د پسنديدلو او لائق د تعريف وو ، اوس ماشاء الله تاسو ټول ځوانان شوې ئې ، د بعضو واده شوې دې اود بعضو كيدلو والا دې . اوس ستاسو په مينه باندې د امتحاناتو وخت راروان دې . د ښځو بچو اود مال اومنصب په غلط محبت كښې اينختلو سره لوئ لوئ عقلاء او بهادران هم پريوځي او ستونه لاندې ايږدي . علاوه ددې نه يوځائ قيام وطعام او هغې سره متعلق كارهم كله ناكله د اختلاف سبب جوړيږي .

ددې وجه نه تاسو بتاكيد وصيت كوم چه پخپل مينځ كښې د مينې نازكې رشتې لره يووخت كښې هم ماتولو ته پرېږ نه دئ ، ددې نازك ترينې رشتې د حفاظت دپاره كه څرته ټول خواهشات او مال ومنصب هم قربانول پيش شي نود هغې نه هم دريغ اونه كړئ . پخپل مينځ كښې اتفاق او محبت سره د الله تعالى د رضا او د آخرت د نعمتونو نه علاوه دنياكښې هم راحت . سكون ، خوشحالئ ، بركت او عزت مال كښې ترق كيږي ، ددې په عكس اختلاف د خالق د ناراضګئ اود آخرت د بربادئ نه علاوه دنيا كښې هم د پريشانئ د ذلت او غريبئ باعث جوړيږي ، اوس زه مختصراً اسبابِ اختلاف او اسبابِ محبت بيانوم دپاره ددې چه د اول نه اجْتناب او دويم سره د اقتراب اهتمام اوكړئ شي .

## د اختلاف اسباب

(۱) د ګناهونو نه ځان نه بچ كول او ګناه اوشي نو فوراً توبه نه كول ، په دې سره الله تعالى ناراضه كيږي او داسې خلقو باندې د اختلاف عذاب مسلط كوي (۲) حبِ مال (۳) حبِ جاه . ددې دواړو د وجه نه پخپل مينځ كښې اختلاف . فتنه وفساد . وژل جهګړې . د تباهئ او بربادئ مونږ شپه او ورځ مشاهده كوُو . (۴) غيبت ،عيب لټول او مسخرې كول . (۵) بداخلاقي . بدمزاجي او بيهوده خبرې (۶) د مشتركه كار نه ځان خلاصول (۷) خوراك څكاك . اغوستلو او آرام راحت كښې خپل نفس ته ترجيح وركول .

## د محبت اسباب

(۱) تقوى . يعنې د ګناه نه د بچ كيدلو اهتمام كول اوكه يو ګناه اوشي نو فوراً توبه ويستل . په دې سره د الله تعالى رضا حاصليږي اودهغه رحمت پخپل مينځ كښې د محبت اود پرآمن ژوند په

صورت کښې ښکاره کیږي . (۲) د حب مال علاج (۳) د حب جاه علاج . ددې دوارو خطرناکو اود آخرت دنیا دوارو دپاره د تباه کن امراضو علاج د اهل الله صحبت اوکه چرته دا میسر نه وی نودهغوی په ملفوظاتو اود مرگ په مراقبې سره اوکړئ شی (۴) دیو بل د خبرو او کار اود خیزونو تحسین او غائبانه تعریف دې اوکړی شی (۵) پخپل مینځ کښې د بې تکلفه محبت اظهار دې اوکړئ شی او ورته دې اووئیلې شی چه خما ستا سره محبت دې . دا د محبت زیاتولو ډیره ښه نسخه ده . (۲) خوراک . څکاک . اغوستلو او آرام اوراحت کښې دې د ایثار نه کار واخستلې شی . یعنې نورو ته دې پخپل ځان باندې ترجیح ورکړئ شی . (۸) که چرته د چا نه شکایت وی نو هغه دې په زړه کښې نه ساتی هغه ته دې په نرمئ او محبت سره اووائی . (۹) دیو بل دپاره دې دعا اوکړئ شی (۱۰) الله تعالی نه پخپل مینځ کښې د محبت دعا اود اختلاف د عذاب نه دې پناه غواړی . فقط والله المستعان وعلیه التکلان

**رشید احمد** مقیم دارالافتاء والارشاد ناظم آباد کراچی

۱۳ رمضان المبارک ۱۳۹۳ هجری

## (۲) بسم الله الرحمن الرحیم

**عن ابن عمر رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال ماحق امرامسلم له شیء یرید ان یوصی فیه یبیت لیلتین الا ووصیته مکتوبة عنده (متفق علیه)**

«کوم مسلمان ته دا حق نشته چه دیو څیز وصیت په هغه باندې ضروری وی بیا هغه دوه شپې هم داسې تیرې کړی چه دهغه وصیت دهغه سره لیکلې شوې نه وی .»

**عن جابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من مات علی وصیة مات علی سبیل وسنة ومات علی تقی وشهادة ومات مغفورا له (ابن ماجه)**

« کوم سړې چه وصیت کولو سره مړشو هغه په صراط مستقیم او طریق سنت باندې مړشو او تقوی وشهادت باندې مړ شو اود مغفرت په حالت کښې مړشو»

په دې احادیثو سره ثابته شوه چه که چرته د چا په ذمه باندې څه حقه واجبه دې نو هغه باندې دهغې وصیت لیکل واجب دې اوکه چرته یو حق دهغه په ذمه نشته دې نو بیا هم وصیت کول د مغفرت اودلوئ ثواب باعث دې . لهذا زه د امور ذیل وصیت کوم .

(۱) اوصی نفسی وایاکم بتقوی الله . « زه خپل نفس ته او تاسو ته هم د الله نه د ویریدلو وصیت کوم » دا دولت دیو الله والا د صحبت نه سوا نه حاصلیږی . لهذا دیو داسې شخصیت صحبت لره لازم اونیسئ چه هغه سره په کیناستلو سره د دنیا نه بې رغبتی اود آخرت فکر پیدا کیږی . که چرته داسې مجلس میسر نه شی نود اهل الله د کتابونو مطالعه روزانه بلاناغه معمول جوړ کړئ .

(۲) د الله تعالی د نعمتونو استحضار کولو سره د شکر ادا کولو معمول جوړ کړئ دې عاجز سره

چه څه حاصل شو د شکرِ نعمت په وجه اوشو .

(۳) د الله تعالی په دې عاجز بنده باندې دا لوئ کرم دې چه د چا هم څه مالی حق ددې بنده په ذمه پاندې نشته . د آئنده دپاره هم د رب کریم نه د حفاظت امید دې البته بدنی حقوقو کښې د ابتلاء مواقع پيښيږی راپيښيږی . خپل اولاد او طلباؤ ته د اصلاح په غرض او بعضې غیرمتعلق خلقو ته هم د حمیتِ دینی په باعث زجروتوبیخ او بعضې کرت د بدنی سزا هم نوبت راغلو . چونکه په دې مواقعو کښې د ضرورت نه زیات د شدت یا د نفس د ملاوټ احتمال دې ددې وجه نه هغه ټولو حضراتو نه نهایتِ عاجزئ سره درخواست کوم چه الله دپاره مې د زړه نه معاف کړی . الله تعالی به دهغوی گناهونه معاف کړی . دا معاف کول انشاء الله دهغوی دپاره به هم مفید اود لوئ ثواب باعث وی . د معاف کولو ډیر زیات فضائل راغلی دی او معذرت کولو والا لره نه معاف کولو باندې سخت وعیدنو راغلی دی . د محسنِ اعظم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې «کوم سړی ته چه د هغه ورور معذرت اوکړی او هغه هغې لره قبول نه کړی هغه به ماته حوضِ کوثرباندې اونه مونده لې شی» (ترغیب وترهیب) په یو حدیث کښې دی «یو سړې چه خپل مسلمان ورور ته معذرت اوکړی او هغه هغې لره قبول نه کړی هغه باندې به داسې گناه وی څنګه چه ظلماً محصول وصولولو والا باندې وی» (ابن ماجه) اود ظلماً محصول اخستلو والا په باره کښې دا وعید دې . «الله تعالی به (په ورځ د قیامت) خپل مخلوق ته (بلحاظ رحمت ومغفرت) نزدې شی پس د بدکارې زنانه او (ظلماً) محصول اخستلو والا نه سوا دچاچه غواړی مغفرت په کوی .» (طبرانی)

په یو بل روایت کښې دی (ظلماً) محصول وصولولو والا به جنت ته نه داخليږی .» (ابوداود، ابن خزیمه ، حاکم) څما د ډیر وخت نه دا معمول دې چه دهر هغه سړی دپاره چه هغه ته څما نه څه قسمه تکلیف رسیدلې وی . روزانه بلاناغه دعا د مغفرت کوم او دخپلو ټولو نیکو اعمالو د ثواب بخشش کوم او علاوه ددې نه درې څلې سورهٔ اخلاص وئیلو سره هم ایصالِ ثواب کوم . ماباندې د ظلم کولو والا په باره کښې هم څما دا معمول دې .

(۴) د وصیت په باب کښې څما په نزد د دارالافتاء والارشاد معامله ډيره اهم ده . ما تراوسه پورې دا فیصله اونه کړئ شوه چه د دارالافتاء والارشاد د نظم متعلق خپل وصی څنګه مقررکړم . که چرته آئنده که یو قابلِ اطمینان صورت ښکاره شو نودهغې مطابق به وصیت اوکړم ورنه د الله تعالی په حواله کوم وهوحسبی ونعم الوکیل .

(۵) زه خپل تمام متعلقینوته او بالخصوص اولاد ته ددې وصیت کوم چه کله هم د قرض لین دین اونه کړئ . نه دخپل ذات دپاره اونه د یو دینی کار دپاره . خپلو ټولو حاجاتونو لره صرف خپل مالک ته پیش کوئ . حضورصلی الله علیه وسلم د قرض نه پناه غوختلې ده او استعاذه (پناه غوختلو) کښې مغرم او ماثم (قرض اوګناه) یو ځائ ذکرفرمائیلې ده . قرض اخستلو کښې دعزت

او دين دواړو نقصان دی ، قرض ورکول اگرچه لوئ ثواب دې مگر په دې زمانه کښې د خلقو د بدو معاملو د وجه نه پخپل مينځ کښې د عداوت اومنافرت باعث جوړيږی ددې وجه نه دهغې نه هم احتراز لازم دې بحمدالله ما ترننه پورې کله هم د چا نه دخپل ذات دپاره يا د يو دينی کار دپاره قرض نه دې اخستلې ، شما د رب کريم په رحمت باندې يقين دې چه هغه به آئنده هم حفاظت کوی ، سفر کښې څوک راسره وی نود مصارفِ سفر اندازه کولو سره دهغې نه هم څه کافی زيات رقم دهغه په حواله کوم ،سفر ختميدلو باندې هغه حساب کولو سره بقيه رقم واپس کوی ، زه حساب نه کوم ، البته ډيرو کسانو ته مې قرض ورکړو په هغوی کښې چا هم په خوشحالئ سره واپس نه کړو ډيرو ته مې خو معاف کړو او هميشه پخپل مينځ کښې د خفگان سبب جوړ شو ،

(۲) که د څه امانت ايخودلو معامله کوئ نود څيزونو پوره تفصيل اود رقم مقدار ليکلو سره هغې باندې دې مالک دستخط اوکړی محض حافظې باندې اعتماد کول کله نا کله د غلط فهمئ اود بدگمانئ سبب جوړيږی ،

(۷) يو رقم که ديو خاص مد وی نو څومره چه زر کيدلې شی هغې باندې يادداشت اوليکئ ، هم دغه شان يو صاحب تاسو ته يو څيز يا څه رقم بطور امانت درکړی اگرچه د لږ وخت دپاره وی هغې باندې هم چه څومره زر ممکن وی د مالک نوم اود رقم مقدار اوليکئ معلومه نه ده کوم وخت مرگ راځی هروخت د ټولو معاملاتو نه فارغيدل لازم دی ،

(۸) ما وراندې ددې نه يو وصيت نامه ۳ جمادی الاخره ۱۳۸۷هجری کښې د اسماء د حفظ قرآن دتکميل په مواقع باندې داعمالو د اهتمام په باره کښې ليکلې وه بيا په ۱۳ رمضان المبارک ۱۳۹۳هجری کښې پخپل مينځ کښې د محبت او اسبابِ اختلاف او اسبابِ محبت باندې مشتمل دويمه وصيت نامه اوليکله دهغه دواړو وصيت نامو مطابق عمل کولو اوس بيا وصيت کوم ۔

(۹) ما په يو حال کښې هم هسپتال کښې داخل مه کړئ او دومره مشوره خو ټولو ته ورکوم چه کله د مريض حالت مايوس کن وی نو هغه هسپتال ته مه بوځئ ،

(۱۰) په کوم کلی يا ښار کښې چه څما انتقال اوشی نو ما هم د هغه ځائ په يو عام قبرستان کښې دفن کړئ کوم يو بل مقام طرف ته مې مه منتقل کوئ اونه څما دپاره د عام قبرستان نه جدا يو بل ځائ منتخب کړئ ،

(۱۱) مړی ته چه د غسل ورکولو په وخت کومه کپړا د ناف نه گوډو پورې اچولې کيږی هغه د ترلوندولو) کيدلو نه پس د بدن سره اينخلی چه په هغې سره د بدن رنگ اوحجم په نظر راځی ددې وجه نه ماته د غسل راکولو په وخت ناف نه گودو پورې څه کټ وغيره ايخودلو سره دهغې دپاسه دې څادر واچولې شی يا د کټ په ځائ دې څادر د دواړو طرفونو نه دوه کسان نيولو سره د بدن نه لږ اوچت اونيسی

(۱۲) خما په جنازه کښې د شرکت دپاره نژدې نه نژدې رشته دار یا د یو لوئ نه لوئ بزرگ یا د زیاتو خلقو د اجتماع انتظار اونه کړې شی لکه وخت باندې چه څومره کسان هم موجود وی هغوی د جنازې مونځ کولو سره زر تر زره قبرستان ته د رسولو کوشش اوکړئ . د سنت مطابق دیو څو کسانو جنازې مونځ کولو باندې د الله تعالی چه کوم رحمت متوجه کیږی هغه خلافِ سنت په زرګونو مجمع باندې هم نه متوجه کیږی .

(۱۳) دمخ ښودلو رسم ډیر بد دې په هغې کښې شرعاً هم ډیر قباحتونه دی ددې وجه نه دهغه رسم نه د احتراز تاکید کوم .

(۱۴) ما په قبر کښې د سنت مطابق دې تیک ښی طرف باندې قبله رخ سملولې شی ، مړی لره نیغ سملولو سره صرف مخ قبلې طرف ته کولو والا رسم غلط دې .

(۱۵) خما د ایصالِ ثواب دپاره دې اجتماع اونه کړئ شی . هرسړې دې پخپل پخپل ځائ باندې دې حسبِ توفیق ایصالِ ثواب کوی دمالی عبادت ثواب که رارسول غواړی نوحسبِ توفیق رقم دې یو کارِ خیر کښې ورکړی یاد یو مسکین مدد دې اوکړی د الله تعالی په نزد د سنت مطابق لږ عمل هم دخلاف سنت د لوئ عمل نه بدرجها بهتردې .

(۱۶) خما دپاره د اوس نه د مغفرت او د رضائې الهی دعا اوه ایصالِ ثواب معمول جوړ کړئ . کم ازکم دریِ ځلې قل هوالله وئیلو سره ایصالِ ثواب کړئ . انشاء الله دا عمل به خود د وئیلو والا دپاره هم نافع وی .

الله تعالی دې زمونږ ژوند . مرګ . تجهیزوتکفین . دجنازې مونځ . دفن تعزیت او ایصالِ ثواب وغیره ټول معاملات دخپلې مرضئ مطابق او دخپل حبیب صلی الله علیه وسلم د سنت مطابق مقدر کړی . آمین

انی وجهت وجهی للذی فطر السموات والارض حنیفاً وما انا من المشرکین، ان صلوتی ونسکی ومحیای ومماتی لله رب العالمین، لا شریک له وبذلک امرت وانا من المسلمین، ((رشید احمد))

مقیم [۱] دارالافتاء والارشاد ناظم اباد کراچی ، ۱۹ رمضان ۱۳۹۵ هجری

**نوټ** - څنګه چه وړاندې عرض کړئ شوی دی . کیدلې شی چه اهلِ ذوق ته ډیر خیزونه په دې مختصر مضمون کښې په نظر رانه شی چه په هغې سره دهغوی تنده ماته نه شی نو هغه دې د ((انوار الرشید )) دچاپ کیدلو انتظاروکړی ، فقط والله المستعان علیه توکلت والیه انیب .

احتشام الحق آسیا آبادی ۲۳ ، ۷ ، ۹۲ هجری

---

۱ - د (( مقیم دارالافتاء والارشاد )) لیکلو معمول ددې وجه نه دې چه په دنیا کښې هرځائ او سیږې نو بهرحال قسام عارض دې وطن خو آخرت دې الله تعالی دې مونږ ټولو لره دهغې استحضار اود وطن شوق عطاء کړی . آمین

# تمهید

(طبع جدید)

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله الذی جعل العلم نورا یهتدی به فی ظلمات الجهل واختلاف الاراء واوضح سبیله الصراط المستقیم لمن اتقی وان اضطربت فیه الاهواء وجعل فی کل زمان رجالا علی الحق ادلاء تیسیرا للمهتداء وجعل منهم ائمة ومجددین خاشعین لله علماء والصلوة والسلام علی افضل المرسلین وخاتم الانبیاء وعلی اله وصحبه الاتقیاء من خلا خلوهم من العلماء والاولیاء صلوة وسلاما دائمین ما طلع القمران والنجوم فی الغبراء

اما بعد:

الله تعالی هغه کائناتو ته وجود ورکړو نو په هغې کښې اشرف المخلوقات حضرت انسان لره اوسولوسره هغه ته مزید شرف عطا کړو لیکن انسان خوږ پخپل ذات کښې اشرف او اعلی نه دّي جوړکړي بلکه د یو خارجي څيز ایمان او اسلام سره ئې منورکړو او هم دا نعمت په نورو عام مخلوق باندې دهغه د شرف او مزیت موجب جوړشو ،

چنانچه وقتاً فوقتاً د الله تعالی د جانب نه انبیاءِ کرامو علیهم السلام تشریف راوړلو اود الله بندګانوته ئې د ایمان او اسلام حقیقت ښودلو . د هدایت دا سرچشمه د انبیاء اود رسولانو د وجود مبارک نه راخوتکیدلوسره د مسلمانانو د ایمان پټی لره ئې اوبه ولو .. بالآخر دا منبع هدایت سرکاردوعالم فخرموجودات خاتم الانبیاء حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم پورې رارسیدلوسره خپلې انتهاء ته اورسیدله . ځنګه چه د دوی ذات ګرامی لره د مینځ نه اخوا کولوسره د هدایت حصول ناممکن دې هم هغه شان د رشد او هدایت انتهاهم د دوی په راوړلې شوی کتاب اوسنت باندې وی . هم دا دفیضِ نبوت هغه سرچشمه ده چه دهغې په باره کښې ارشاد دې -

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ترکت فیکم شیئین لن تضلوا بعدهما کتاب الله وسنتی. (مستدرک حاکم)

((زه په تاسو کښې دوه څیزونه پریږدم دهغې نه پس به تاسو نه ګمراه کیږئ . کتاب الله او خپل سنت . (حاکم)

په نورو الفاظو سره ددې تعبیر داسې کیدلې شی چه محسنِ اعظم صل صلی الله علیه وسلم دهدایت طالبینوته چه کوم پیغامِ رحمت ورکړو هغه صراط مستقیم دې . دا هم هغه صراط مستقیم دې چه هغې لره پروردګارِ عالم صراط الذین انعمت علیهم یعني د منعم علیهم ښدګانو

طریقه فرمائیلې ده . معلومه شوه چه د کتاب الله اود سنت هم هغه تعبیروتشریح صراطِ مستقیم باندې بوتللو والا ده چه د منعم علیهم بندګانو ، صحابو ،تابعینو ،سلف صالحینو او ائمه مجتهدینو بیان کړئ شوی وی . د کتا ب او سنت هم دا تعبیراوتشریح چه هغې ته صراطِ مستقیم اووئیلې شو . دد ې دویم نوم «فقه» دې . هم فقه هغه علم دې چه د انسانانو دپاره منضبط طور باندې یومکمله ضابطهٔ حیات پیش کوی .

دهغه هدایت په سرچشمو کښې اګرچه دجزئیاتو نه هم کافی بحث کړئ شوې دې لیکن کلیات چه د یو جامع شریعت روح وی ،هغې ته کتاب ،سنت او فقه کښې زیات اهمیت ورکړئ شوې دې ، لیکن ظاهره هغه کلیاتو لره په جزئیاتو باندې منطبق کول دهرزید ، عمربکرکار نه دې ، خصوصاً ددې ترقئ په دور کښې چه هرکله انسان زهره او قمرته خیژی هره ورځ داسې ایجادات کیږی راکیږی چه دهغې متعلق د سلف په تحریرنوکښې یوصریح حکم پیدا کیږی نه د نن سبا هر انسان ته دهغه ایجاداتو خصوصاً د ډاکټری طریقو دعلاج وغیره سره خو روزانه مخامخ کیدل کیږی او دیو مسلمان دا خواهش وی چه د شریعتِ مطهره حکم معلومولوسره خپل روزانه معمولاتو لره دهغې په سانچه کښې واچولې شی لیکن دا معلومات د چرته نه حاصل کړئ شی ؟

ددې وجه نه د هردور د علوم دینیه ماهرینو دخپل خپل دور نوّو مسائلو طرف ته خپله توجو فرمائیلو سره امت ته دهغې حل پیش کړې دې ، لیکن دهغې باوجود نن سبا څه داسې عجیبه مسائل پیدا شوی دی ، چه هغې لره کتلو سره یو عام انسان حیران پاتې کیږی چه ددې مشکلاتو حل به چرته ملاوَ شی ؟ چه په هغې کښې څه د نوّو ایجاداتو او ډاکټری طریقِ علاج کښې د ترقئ د وجه نه پیدا شوی دی او څه د عوامو د جهالت اود نوې تعلیم یافته طبقې د خواهشاتو اود خودساخته پیغمبرانو د وجه نه پیدا شوی دی ،

علاوه ددې نه بعضې داسې اهم مسائل هم دی چه هغه د حکومتی سطحې نه د بنکونو او د نورو ذرائعو په واسطې سره راپورته کیږی ، غرض داچه تقریباً د دیارلسمې صدئ د مینځ نه واخله تر ننه پورې د څلورو طرفونو نه داسې مسائل پیدا کیږی چه دهغې سیلاب عوامولره هم پخپله طریقه بهولی دی ،بلاشبه علماء کرام او اهل فتوی حضرات داسې نوّو پیدا شده مسائلو باندې تفصیلی بحثونه کړی دی او په هغې باندې دیرتحقیقات کولو سره دهغې حل تلاش کړې دې، لیکن دهغه فتاوَو نه صرف هغه خلق مستفیض کیدلې شی چه هغوی دهغه مسائلو حل زبانی یا په لیکلوسره دریافت کړې دې ، مګر د نشرواشاعت ذرائع د محدود کیدلو د وجه نه دا تحقیقات د کاغذونو په صفحاتو اود لاتعداد رجسټرونود اوراقو زینت دې او دهغې نه هرکس ناکس استفاده کوی ، چه دهغوی عمرونه په دې میدانِ تحقیق کښې زاره شوی دی دهغوی دپاره هم بروقت دخپلې لیکلې شوې یومسئلې لره دومره په لویه ذخیره کښې لټول ناممکن نه دی نو مشکل ضرور

دي. حالانکه په هغې کښې يو نه يو مسئله ديو داسې اهميت حامله ده چه څومره کيدلې شی دهغې اشاعت کولوسره ضرورت مندو پورې دې اورسولې شی . بلکه حقيقت دادې چه دا د علم خزانې زبانِ حال سره خپل ضرورت منداؤ ته دعوت د عمل ورکوی فياأسفاعلی سد الذرائع .

په هغه علماء کرامو کښې چاچه خپل عمرونه دعلوم اسلاميه په خدمت د مسئلو په تحقيق کښې تيرکړی دی . څما مربی اومحسن فقيه العصر حضرت مولانا مفتی رشيد احمد صاحب لدهيانوی دې ، دوی څلوردیرشت کاله په فتوی نويسی کښې تيرکړی دی او فتوی نويسی کښې د اول په شان جاری دې

د ۱۳۲۲ هجری نه د دوی د فتوی نويسی آغاز اوشو ، د دوی د قوت استدلال د وجه نه د اکثرو علماؤ په مينځ کښې نزاعی مسائل د فيصلې دپاره دوی ته راتللې . ۱۳۷۹ هجری کښې د دوی د ابتدائی دور د فتاوې انتخاب بنام «احسن الفتاوی کامل مبوب» شائع شو . چه دهغې د مقبوليت دا عالم دې چه شايد ديو دينی اداري دارالمطالعه ددې نه خالی نه وی . اکابر علماء هم ددې نه استفاده بلکه استناد کوی .

د مذکوره بالا د منتخب مجموعې د اشاعت نه پس دوی چه څومره فتاوې جاری کړی دی . دهغه تولو شميرخو ډيرزيات دې ، ددې وجه نه دا فيصله اوکړئ شوه چه د حضرت والا مختلف رسائل اود زياتو اهمو فتاؤو انتخاب اوکړئ شی . د قرائنضو تخريجات غيراهم مسائل او مکرراتو لره پريخودلې شی

ددې نه وراندې احسن الفتاوی د مکمل په نوم چه کوم کتاب معروف دې هغه هم په دې مجموعه کښې شامل کړئ شوې دې ،تاريخ تحريرسره قديم او جديد فتاؤو کښې امتياز کولې کيدلې شی ، د رمضان ۱۳۸۳ هجری نه د جديد سلسلې آغاز شوې دې .

## ددې مجموعې خصوصيات

د حضرت مفتی صاحب مجموعه فتاوی او رسائل کښې ددې مجموعې په ترتيب کښې مندرجه ذيل خصوصياتو لره مخامخ ايخودلوسره دمسائلو او مضامينو انتخاب کړئ شوې دې

(۱) په دې مجموعه کښې صرف فقهی مسائل ومضامين او فتاوې شامل کړئ شوې دی ،

(۲) د فقهی رسائلو او فتاؤو په انتخاب کښې ددې خبرو خيال ساتلې شوې دې .

(الف) هغه فتاوې او رسائل اخستلې شوی دی چه د موجوده زمانې د ضرورتونو اومسائلو احتياج لره پوره کړی

(ب) داسې مسائل چه تحقيق طلب وې مگر عام طور باندې هغې طرف ته توجه اونه کړئ شوه .

(ج) هغه مسائل چه په عربی فتاؤو کښې خو موجودوې مگر اردو فتاؤو کښې دهغې ذکر نه وو.

کړئ شوې يا اختصارسره دهغې ذکر راغلې دې.

(د) داسې مسائل چه تراوسه پورې طبع شوی نه دی، يا طبع شوی خو دی مګر د جلدونو د کميدلو د وجه نه د ضائع کيدلو خطره ده.

(۳) مسائل اکثرتحقيقي او اصطلاحي زبان کښې ليکلې شوی دی دې دپاره چه علماء حضرات دهغې نه کماحقه استفاده اوکړئ شي.

(۴) بعضې رسائل او فتاوې آسان زبان کښې دی او په کومو کښې چه د عربي کتابونو عبارتونه زيات دی په هغې کښې دهغه مسئله خلاصه د بحث په شروع کښې يا آخر کښې درج کړئ شوی دی دې دپاره چه عوام هم د مسئلې د نوعيت نه خبر شي. البته د عربي عباراتو او دلائلو خو عوامو ته ضرورت نشته دې. ددې وجه نه دهغې د ترجمې ضرورت اونه ګڼلې شو، نيز دا د تطويل باعث هم دې چه دهغې نه بچ کيدل ضروري وو.

(۵) د احسن الفتاوی ترتيب د نورو فتاوؤ په شان فقهي ساتلې شوې دې.

(۶) په دې فتاوؤ کښې زياته حصه د دارالافتاء والارشاد شعبه کښې دکار کولو والا دمختلفو علماؤ تحريرکړده دی مګر چونکه هره مسئله حضرت پخپلې خاص نګرانئ کښې اود خصوصي هداياتو لاندې ليکلوسره په هغې باندې تصديق کړې دې ددې وجه نه هره مسئله کښې تحقيق د حضرت دې. اګرچه تحرير د مختلفو علماؤ دې.

(۷) په هغه تمام مسائلو او رسائلو باندې حضرت د چاپ کيدلو نه وړاندې نظرثانی کړې ده.

دعاده چه الله تعالى دې مجموعې لره د عوامو او خواصو دپاره د رهنمائئ ذريعه جوړه کړی. وما ذلک على الله بعزيز. واخردعونا ان الحمد لله رب العالمين.

احتشام الحق آسيا آبادي عفاالله عنه

دارالافتاء والارشاد کراچي

۵ربيع الاول ۱۳۹۲هجري مطابق ۷مارچ ۱۹۷۴ء

## تقدمه

### «اول اشاعت»

بسم الله الرحمن الرحیم

هسې خو د ۱۳۲۲هجری نه بنده ته د تحریرِ افتاء مواقع پیش راتللې . مګر د ۱۳۲۲هجری نه الله تعالی د دارالافتاء مکمل ذمه داری او مستقل طور باندې د خدمت افتاء د نعمت نه منور کړو لیکن افسوس چه ۱۳۷۰هجری پورې د محرره فتاوې د جمعې او ضبط هیڅ انتظام اونه کړې شو «الانادراً» د ۱۳۷۱هجری نه منعمِ حقیقی ددې توفیق هم عطاء کړو . دکثرتِ مشاغل د وجه نه دهرې فتوې بخپله د نقل کولو فرصت نه وو د بل چا په نقل باندې اعتماد نه وو . ددې وجه نه بطور یادداشت نمبرخو دهرې مسئلې درج کړې شو مګر د مضمون په نقل کښې مکرراتو «الانادراً لفائدة» اود فرائضو تخریجاتو «چه په هغې کښې د مناسخه د طویل تخریجاتو لویه حصه ده» لره ترک کړو . ۱۳۷۴هجری پورې دا سلسله جاری وه . دهغې نه پس دارالعلوم کراچۍ نه منتقل کیدلو باندې چونکه د دارالافتاء مکمله ذمه داری پاتې نه شوه او کثرتِ مشاغل کښې مزید اضافه اوشوه . ددې وجه نه په هغه وخت کښې چه دکومو مسائلو د تحریرنوبت راغلو په هغې کښې د ډیرو مسائلو د ضبط کولو همت اونه شو «الاماشاء الله»

پس د ۱۳۷۱هجری نه واخله تر ۱۳۷۴هجری پورې د پنځوکالو د فتوو کل تعداد خو ۲۰۲۵ وو . مګر په هغې کښې محفوظ صرف ۴۵۱ وې چه په هغې کښې بعضې د مدت مذکوره نه وړاندې یا د بعد هم دی . مګر ډیرې کمې بلکه کالعدم دی . نامساعد حالاتوکښې ددې مجموعې د تبویب اود طباعت او اشاعت قادرِ مطلق توفیق عطاء کړو . الله تعالی دې محنت لره شرف د قبول ورکړو او ددې عاجز د پاره ئې ذریعه د نجات جوړه کړه . او ظلمونو ، جهالت اود معاصی عیوبِ ظاهره او باطنه لره ئې چه څنګه په دنیاکښې بخپل محض کرم سره د دنیا والو د سترګو نه مستورکړی دی هم هغسې په آخرت کښې هم سواتررحمت سره مغفوراوفرمائی .

اللهم اجعل سريرتي خيرا من علانيتي واجعل علانيتي صالحة ... آمين برحمتك يا ارحم الراحمين وبحق سيد المرسلين صلى الله عليه وسلم وعلى آله واصحابه اجمعين . وانا العبد

**رشید احمد**

۲۳ جمادی الآخره ۱۳۷۹هجری . لیوم الخمس

بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب الایمان والعقائد

## د یو سړی دا ویل چه پیغمبر صلی الله علیه وسلم ماته فرضی مونځ معاف کړی دي

**سوال** : څه فرمائی علماء دین مبین وشرع متین د داسې سړی متعلق چه دهغه عقیده او بیانات حسبِ ذیل وی :

عرض دې چه ډاکټرعسکری صاحب چه خپل خان ته ډاکټر او سیّد هم وائی ، په دیرو ضلع لاړکانه کښې آباد شوې دې ، دده متعلق ایډیټراخبار رهبر سندهـ ډیر څه لیکلی دی ، بعده عسکری صاحب معافی غوختلوسره دهغه نه تیبنته حاصله کړه ، د ډاکټر عسکری صاحب عقیده اوبیانات حسب ذیل دی :

ډاکټرعسکری صاحبِ مذکور ددې کسانو ، صوفی عبدالستار صاحب ، محمدحسن جان صاحب ، احتشام الدین صاحب سابق استیشن ماسټر نودیرو ، تیغ علی خان ،سید رشیدالدین ، احمد صاحب پوسټ ماسټر نودیرو ضلع لاړکانه سندهـ په وړاندې او ډیرخلې حسب ذیل بیان اوکړو چه :

(۱) پیغمبراعظم حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ما دپاره فرمائیلی دی چه مونځ کولو نه آزاد دې .

(۲) حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ، حضرت خواجه غریب نواز صاحب او حضرت خواجه قطب الدین صاحب او حضرت خواجه فرید الدین شکرگنج صاحب او حضرت خواجه نظام الدین صاحب ما کور نودیرو ته تشریف راوړو او ما په عالم بیدارئ کښې ما سره خبرې اترې اوشوئ ، بزرگانِ موصوفینو دا هم اوفرمائیل چه مونږ ټول به تاسو سره دلته درې ورځې استوگنه کوؤ ، چنانچه دریو ورځو پورې پاسنو مذکوروخلقو کښې بغیر د صوفی عبدالستار صاحب نه بقیه مذکوره څلورو اشخاصو باندې مې دعوت اوخوړلو .

(۳) یو ورځ ئې بیان اوکړو چه نن سیدې فاطمې رضی الله عنها ما کور ته تشریف راوړو او زه راپاسیدلم ، مگر دملا نه لاندې مې ټول بدن مفلوج شوې وو ، پاسیدلې نه شوم ، زه بیداره وم اوکتل مې ، ابن ابن چغې مې وهلې .

(۴) یو ورځ ئې بیان اوکړو چه نن شپه حضرت سیده سکینه رضی الله عنها او فاطمې رضی الله عنها ما کورته تشریف راوړو او ما عالم بیدارئ کښې زیارت اوشو .

(۵) يو خلي ئې اوونيل چه نن شپه کښې حضرت خواجه غريب نواز تشريف راوړې وو او ماته ئې د مسلم چيلى پخولو فرمائش اوکړو اود پخولو ئې خاص ترکيب هم راښودلې دې . ديوې ورځې د چيلۍ بچې مې پخولو سره پرې اوخوړلو . دهغه خوراک خوړلو نه پس بعضو ته کانګې هم راغلې.

(۶) بيان ئې اوکړو چه زه يو ورځ په دهلى کښې پيدل تيز روان ووم . په لاره کښې د يو بزرګ صاحب مزار وو . چه هر کله زه د مزار لږ نه وړاندې شوم نو صاحبِ مزار آواز راکولو سره اوفرمائيل چه اوس نه راځې زه واپس شوم او مزار باندې حاضر شوم اومې کتل چه صاحبِ مزار خاندى . ماسره ئې خبرې اترې اوشوې او بيا زه لاړم . دا دعوىٰ ئې هم اوکړه چه ما د اهلِ قبورو سره خبرې کړى دى ، چه هر کله ئې د داسې قسم قصې روزانه بيانول شروع کړه نو په مذکوره اشخاصو کښې بعضو مذکورعسکرى صاحب ته اووئيل چه داسې قسم قصې بيانول بند کړه ، دا قوت الله تعالى انبياؤ ته ورکړې دې . ستاسو په بياناتو ته د بزرګانو توهين اود حضورصلى الله عليه وسلم په ذاتِ مقدس باندې حمله او بهتان دې . په دې سره زمونږه زړه آزاريږى . په جواب کښې ئې اووئيل چه څما خپل ګورګردن ماپيسې خرچ کولو سره دا حاصل کړى دى ماته د چا نه هيڅ نه دى پکار.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : دتيرشوى سوال عقيدو ساتلو والا سړې زنديق دې . دمونځ وغيره اود ظاهرى احکامو انکار کفر دې . د داسې سړى معتقد کيدل هيچرې جائز نه دى . هرسړى باندې دهغه تکذيب اوانکار واجب دې . کوم سړى چه دهغه تصديق اوکړو هغه هم زنديق دې ، علامه محمد برکلى رومى رحمة الله عليه په طريقه محمديه کښې فرمائى : ((مايدعيه بعض المتصوفة فى زماننا اذا انکر عليهم بعض امورهم المخالف للشرع ان حرمة ذلك فى العلم الظاهروانا من اصحاب العلم الباطن وانه حلال فيه وانکم تاخذون عن الکتاب وانانا خذ من صاحبه يعنى محمدا صلى الله عليه وسلم . کله الحاد واضلال اذفيه ازدراء بالشريعة المحمدية فالواجب على کل من سمع هذا المقال الانکار على قائله والجزم ببطلان قوله بلاشك ولا تردد ولا توقف والا فهو من جملتهم ويحکم بالزندقة عليهم الخ والله تعالىٰ اعلم)).

۲۲ شوال ۱۳۷۱ هجرى

## اولياء الله لره متصرف او عالم الغيب ګڼل

**سوال** : داولياء الله ارواحولره متصرف فى الامورا وعالم الغيب ګڼل څنګه دى؟ بينوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : ددې عقيدې کفرکيدل په قرآن . حديث او فقه کښې

مصرح دی . كقوله تعالى: ﴿قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ لَٱسْتَكْثَرْتُ مِنَ ٱلْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ ٱلسُّوٓءُ إِنْ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ﴾ (۷ . ۱۸۸)، ﴿قُلْ إِنِّي لَآ أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا﴾ (۷۳ . ۲۱)، من قال ان ارواح المشائخ حاضرة تعلم يكفر (بزازيه) ذكر الحنفية تصريحاً بالتكفير باعتقاد ان النبي صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالى ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ٱلْغَيْبَ إِلَّا ٱللَّهُ﴾ (شرح فقه اكبر) ومعها ان ظن ان الميت يتصرف فى الامور دون الله تعالى واعتقاده ذلك كفر (البحرالرائق ج) "قاضی خان وغيره كتب فقه كښې د داسې سړی تكفير كړې دي چه په نكاح كښې خدائ او رسول صلى الله عليه وسلم، لره گواه جوړ كړي ځكه چه هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم لره عالم الغيب اوګڼلو . په دې باب كښې آيتونه، حديثونه او فقهي عبارات په داسې كثرت سره دی چه هغې لره په تحرير كښې راوستل مشكل دی . فقط والله تعالى اعلم **۳۱ ذی الحجه ۷۱ هجری**

## د قبر ښکلول

**سوال**: آيا قبرلره ښكول شرعاً جائز دی اوكه حرام؟ بينوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: قبرلره ښكول په نيت د عبادت او تعظيم كفر دي او بغير له نيت د عبادت نه قبرښكول كبيره گناه ده ((وكذا ما يفعلونه من تقبيل الارض بين يدى العلماء والعظماء فحرام والفاعل والراضى به اثمان لانه يشبه عبادة الوثن وهل يكفران على وجه العبادة والتعظيم كفروان على وجه التحية كفرالخ) تلفيق للقولين، قال الزيلعي وذكر الصدر الشهيد انه لا يكفر بهذا السجود لانه يريد به التحية، وقال الشمس الائمة السرخسي ان كان لغيرالله تعالى على وجه التعظيم كفرا ه قال القهستاني وفى الظهيرية يكفر بالسجدة مطلقا . وفى الزاهدى الايماء فى السلام الى قريب الركوع كالسجود . وفى المحيط انه يكره الانحناء للسلطان وغيره اه وظاهر كلامهم اطلاق السجود على هذا التقبيل، (رد المحتار كتاب الحظر والاباحة)) مزيد دلائل . د محدثينو او فقهاؤ تصريحات په عزيزالفتوى جلد ۱ كښې اوگورئ . فقط والله تعالى اعلم . **۱۷ شوال ۷۱ هجری**

---

۱ - قبل باب الاعتكاف "منه"

## روژه خور کافر ندی

**سوال** - یو سری روژه نه نیسی ، مکر خپل خان لره بدبخت او گنهکار گنی ، دلته بعضی علماء هغه ته کافر وائی ، محترم په دلائلو سره په دی باندی نظر اوکری ، خکه چه په دی کښی اختلاف پیدا شوی دی . بینوابالدلیل توجروا بالاجرالجزیل ،

**الجواب ومنه الصدق والصواب** - تارکِ صوم بلااستحلال د تولو اهلِ سنتو په اتفاق سره مسلمان دی . لان الکفر هو انکار ما ثبت من الدین ضرورة، دگناه کبیری د وجه نه خروج عن الایمان د معتزلو او خوارجو مذهب دی ، ومن ادعی الارتداد فلیطلع لنا قرنه ولیعرض فی مضمار البیان مهره فان من قال انا، وقع فی العنا . د اهل سنتو په نزد بعضی اعمال مثل شدزنّار والقاء القرآن وغیره خکه موجب د کفر دی چه دا انکار اوتکذیب باندی دال دی . فقط والله تعالی اعلم ،

**۱۵ ذیقعده ۷۳ هج**

## په رمضان کښی د ښکاره خوراک خورلو والا حکم

**سوال** - شامیه کتاب الصوم کښی دی چه په رمضان کښی ښکاره خورلو والا کافر دی . پس یو سری په رمضان کښی ښکاره خوراک کوی . مکر ورسره خان ته قصوروار او گنهکار هم وائی . دمحترم دهغه متعلق څه خیال دی ؟ فی شرح التنویر ولو اکل عمدا بلا عذر یقتل وتمامه فی شرح الوهبانیة، وفی الشامیة (قوله وتمامه فی شرح الوهبانیة) قال فی الوهبانیة ولو اکل الانسان عمدا اوشهرة: ولا عذر فیه قیل بالقتل یؤمر قال الشرنبلالی صورتها تعمد من لا عذر له الاکل جهارا یقتل لانه مستهزئ بالدین اومنکر لما ثبت منه بالضرورة ولا خلاف فی حل قتله والامر به فتعبیر المؤلف بقیل لیس بلازم الضعف . اهـ ح (شامیه ج) بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** - د شامیه عبارتِ مذکوره فی السوال واقعی موجب دتکفیر دی . مگر اولاً دا امر قابل د لحاظ دی چه په شامیه کښی علت دتکفیر استهزاء بالدین ذکرکری ده . او ښکاره ده چه کوم سری خپل خان قصوروار او گنهکار گنی اودهغی اقرار هم کوی هغه مستهزی بالدین نه دی بلکه تکاسلاً روژه خوری . اوتکاسلاً تارکِ صوم متعلق خود شامیه کښی لیکلی دی چه هغه ته دی د قید او ضرب سخته سزا ورکری شی . اودی نه وژلی شی . او باتفاق حنفیه ، شافعیه ، مالکیه تارکِ صلوة کافر نه دی نو تارکِ صوم به بطریقِ اولی کافر نه وی . او ثانیاً حکم قتل موجب د تکفیرنه دی ، کحکم القتل حدا وقصاصا او ثالثاً قابل د توجه امر دادی چه د

مسلمان په تکفیر کښې د احتیاط کولو زیات ضرورت دې ، وقد ذکر ان المسئلة المتعلقة بالکفر اذا کان لها تسع وتسعون احتمالا للکفر واحتمال واحد فی نفیه فالاولی للمفتی والقاضی ان یعمل بالاحتمال النافی لان الخطأ فی ابقاء الف کافر اهون من الخطأ فی افناء مسلم واحد. (شرح فقه اکبر لملا علی القاری ص۱۹۹)

شامیه باب المرتد کښې (قوله قال فی البحر وقد الزمت نفسی الخ) لاندې نهایت اوږد او تفصیل سره د احتیاط فی التکفیر ته ډیر زیات تاکید کړې دې . او د ډیرو کتابونو عبارات ئې رانقل کړی دی . او ددې ځائې نه لږ وړاندې تللو سره پخپله درمختار کښې دهغې سخت تاکید کړئ شوې دې ، لهذا داسې سړی باندې د کفر فتویٰ لګول د احتیاط خلاف دی ، البته هغه ته د تجدید ایمان او د تجدیدِ نکاح حکم ورکول بهتردی ، کما فی شرح التنویر معزیا الی شرح الوهبانیة للشرنبلالی ما یکون کفرا اتفاقا یبطل العمل والنکاح واولاده اولاد زنا وما فیه خلاف یؤمر بالاستغفار والتوبة وتجدید النکاح، وفی الشامیة (قوله والتوبة) ای تجدید الاسلام (قوله وتجدید النکاح) ای احتیاطا (الی قوله) وظاهره انه لا یحکم القاضی بالفرقة بینهما وتقدم ان المراد بالاختلاف ولو روایة ضعیفة ولو فی غیر المذهب (شامیة ج۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم. ۱۷ محرم ۷۴ هجری

## د علم او د اهلِ علم اهانت کفر دې

**سوال** :- یو سړې اهلِ علمو او صلحاؤ اوعلماءِ حق ته کنځلې کوی ددې شرعاً څه حکم دې؟ بینوا توجروا ،

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د علمِ دین اهانت او علماءِ حق ته ځکه کنځلې کول چه هغوی حاملین د علم او دین دی کفر دې ، لهذا داسې سړی لره دوباره مسلمانولو سره تجدیدِ نکاح ضروری ده ، او هغه لره جلاوطن کول پکار دی که چرته دوباره مسلمان نه شی نو شرعاً د هغه د وژلو حکم دې ، قال فی البریقة المحمودیة شرح الطریقة المحمدیة قال فی الاشباه الاستهزاء بالعلم والعلماء کفر وعن منیة المفتی تحقیف العلم والعلماء کفر وعن الخزانة من اذل العلماء ینفی من البلد بعد تجدید الایمان وعن مجموع النوازل اهانة علماء الدین کفر وعن المحیط ان شتم عالما فقد کفر فتطلق امرأته الخ (بریقة محمودیة ج۲) فقط والله تعالیٰ اعلم.

۲۰ ذی الحجه ۷۳ هجری

## پردې لره بد ګڼل کفر دې

**سوال** :- یو سړی خپلې ښځې ته د پردې کولو حکم ورکړو ، ښځې په جواب کښې ا! ونیل چه زه په آخری عمر کښې دې لعنت لره نه قبلووم ، دې ښځې دپاره شرعاً څه حکم دې ؟ بینوا بالبرهان

توجروا عندالرحمٰن ،

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : په سوال کښې ذکر شوي لفظ، کلمه دکفر ده ، په دې کښې دنص صریح نه د ثابت شوی حکم حجاب انکاربلکه اهانت دې «قال فی شرح التنویر والکفر لغة الستر وشرعاً تکذیبه صلی الله علیه وسلم فی شیء مما جاء به من الدین ضرورة ،وقال فیه ایضاً من هزل بلفظ کفر ارتدوان لم یعتقده للاستخفاف الخ ،وفی الشامیة المراد بالتکذیب عدم التصدیق الذی مر ای عدم الاذعان والقبول لما علم مجیئه به صلی الله علیه وسلم ضرورة (الی قوله) ولیس المراد التصریح بانه کاذب فی کذا لان مجرد نسبة الکذب الیه صلی الله علیه وسلم کفر الخ)) (ردالمحتار ، کتاب (مرتد ج ۳) فقط والله تعالی اعلم

۲۱ ذی الحجه ۷۳ هجری

## گناهونو باندې فخر کول کفر دې

**سوال** :- څه فرمائی علماء دین ومفتیانِ شرعِ متین د داسې سړی په باره کښې چه علانیه گناهونوکښې مبتلاء دې او ورسره دا هم وائی چه ماته په خپلو گناهونو باندې فخر دې ، شریعت کښې ددې څه سزا ده ؟ بینوا توجروا ،

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د شریعت د احکامو مخالفت او د الله تعالی په نافرمانئ باندې فخر کول بلاشبه کفر دې ، لهذا داسې سړې د اسلام د دائرې نه خارج اومرتد دې ، په ده باندې تجدیدِ ایمان او تجدیدِ نکاح ضروری ده ، حاکم وخت باندې فرض دی چه هغه ته د توبې او د تجدید ایمان تلقین اوکړی ، که چرته خدانخواسته توبه نه کوی نودهغه د قتل حکم دې ورکړی ، قال فی شرح التنویر من هزل بلفظ کفر ارتدوان لم یعتقده للاستخفاف (ردالمحتار ج ۳) وفیه ایضا تعمد من لا عذر له الاکل (ای رمضان) جهارا یقتل لانه مستهزی بالدین اومنکر لما ثبت منه بالضرورة (ردالمحتار ج ۲) مزاحاً کلمه د کفر وئیلو والا او علانیه گناه کولو والا لره مرتد او واجب القتل گرځولې شوي دې . نو په گناهونو باندې د فخر کولو والا په کفر کښې څه شبهه ده . فقط والله اعلم

۲۳ ربیع الاخر ۹۶ هجری

## په رساله د «التلقین والهدایة لمن انکر الکرامة» باندې تبصره

ما د مولانا محمد خلیل الله صاحب د تحریر اود مولانا عبدالکریم صاحب اود مولانا دوست محمد د جواباتو بغور مطالعه اوکړه . څما په خیال کښې جواب لیکلو والا هر دوو حضراتو د مولانا خلیل الله صاحب مقصد باندې په پوره طریقې پوهه نه شو . چه دهغې د وجه نه د مولانا محمد خلیل الله صاحب د تحریر جواب مکمل نه دې . په جواب کښې دوه امر مذکور دی .

(۱) د كرامت وقوع په درجه د قدرِ مشترك نصوصِ قطعيو سره ثابته ده حالانكه محمد خليل الله صاحب هم ددې منكر نه دې ،

(۲) د هرې واقعې اود جزئي كرامت د ثبوت دپاره دنصِ قرآني يا د احاديثِ متواتره ضرورت نشته دې . حالانكه محمد مولانا خليل الله صاحب هم ددې قائل نه دې ،

څما په خيال د مولانا خليل الله صاحب مقصد دادې (والله تعالى اعلم بمراد عباده) چه مثلاً احراقِ نار دمشاهده كيدلو د وجه نه قطعي دې . اوس كه چرته د يو ولى متعلق دا خبره راشى چه هغه لره د كرامت په طوربانديې اور نه سوزوى نودهغه واقعې د تصديق دپاره دهغه علم قطعي ضروري دې ، يعنې مخامخ په مخامخ تللو سره بالمشافهه اوليدلې شي يا دهغې خبر حدِ متواتر پورې اورسى . غرض داچه قطعي نه مراد علم قطعي دې . په دې باندې ښكاره دليل دې چه د قطعي نه مراد قطعي الوجود بالمعاينة وغيرها دې . ثابت بنص القرآن يا بالحديث القطعي مراد نه دې . د مولانا خليل الله صاحب د تحرير مقصد د واضح كيدلو نه پس معلوم شو چه په رساله كښې ذكرشوى جوابات د مولانا د استدلال د ترديد دپاره كافي نه دى ، لهذا د مولانا د استدلال بالاختصار دوه جوابونه ليكلولې كيږى . يو الزامي او دويم تحقيقي .

(۱) **الزامي جواب** :- د انبياءِ كرامو عليهم السلام اكثرمعجزات په اخبارِ آحادُ سره ثابت دى ، د دوى د استدلال مطابق به ددې جمله معجزاتو انكار كول پيښيږى ، دا جواب د مولانا عبدالكريم صاحب په تحرير كښې هم موجود دې . مگر مندرج ذيل تحقيقي جواب طرف ته چاهم توجه نه ده كړې .

(۲) **تحقيقي جواب** :- د امورِ عاديه خلاف بعضې واقعات چه هر كله مسلّم او قطعي دى نو امورِ عاديه قطعي پاتې نه شو بلكه عام مخصوص منه البعض كيدلو د وجه نه ظنّي شو . لهذا دهغه په مقابله كښې خبرِواحدعادل كافي دې حالانكه موجب د ظن غالب دې . غرض داچه چرته يو كرامت د خبرواحدِ عادل نه منقول وى نو دهغې تصديق لازم دې . فقط والله اعلم ،

۲ ربيع الاول ۱۳۷۴ هجرى

## سپوږمۍ ته رسيدل د شريعت خلاف نه دى

مهرباني كولوسره ددې سوال تسلى بخش جواب تحرير كړئ . د قرآن شريف نه ﴿ تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا ﴾ نه دا معلوميږى چه دا ټول په آسمانونو كښې دى ، هم دغه شان په يو څو تفاسيروكښې هم تحريردى چه ټول په آسمان كښې اونن سبا خلق سپوږمۍ ته كوزيږى او هم دغه شان زهره ته كوزيږى او هغلته استيشن قائموى اودا خلق د آسمانونو قائل نه

دی او دلیل هم دا ورکوی چه که چرته آسمان وي نو مونږ ته به رکاوټ وي ،مهرو باني کولو سره جواب تحریر کړئ . والسلام

**الجواب باسم ملهم الصواب** :د سماء لغوی معنی ده اوچت (پورته) لهذا آيتِ مذکوره کښې که چرته دهغه لغوی معنی مراد واخستلې شی چه په کثرت سره راځي . کما قالوا فی قوله تعالی ﴿وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ نوهيڅ اشکال باقی نه پاتې کيږی چه په (( )) کښې د فلک لغوی معنی يعنې تدوير مراد اخستلوسره اعتراض رفع کيږی ، نيز دوارو ځايونوکښې دا هم وئيلې کيدلې شی چه حرف ((فی)) د ښکاره رؤيت په اعتبارسره راوړلې شوې دې ، يعنې په ظاهره دا سيارات په آسمان کښې دننه په نظر راځي اګرچه په حقيقت کښې لاندې دی ، چنانچه عام طور باندې وئيلې کيږی چه ما په آسمان باندې يا آسمان کښې فلانکې څيز اوليدلو يا په آسمان باندې وريځ ده حالانکه دا څيزونه د آسمان نه ډير لاندې دی ،

نيز آياتِ مذکوره دا نه ثابتيږی چه سيارات ثخنِ سماء کښې مرکوز دی ، ځکه چه د اشياءِ مجاوره دپاره هم ((فی)) استعماليږی کما فی قوله تعالی له ما فی السموات ومافی الارض ، پس قرب الی السماء يا بالطبع مائل الی المحيط کيدلو د وجه نه د ((فی السماء)) اطلاق صحيح دې ، بلکه د ((يسبحون)) نه هم دامراد دی ، فقط والله تعالی اعلم . **۳ ربيع الاول ۸۹ هجری**

## ږيرې لره بد ګڼل کفر دې

**سوال** :- د سنتِ نبويه (صلی الله عليه وسلم) خصوصاً ږيرې پورې خانده کول څنګه دی ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** ادنیٰ نه ادنیٰ سنتولره بد ګڼل يا هغې پورې خانده کول په حقيقت کښې اسلام او حضور صلی الله عليه وسلم پورې استهزاء ده چه دهغې په کفر کيدلو کښې هيڅ شبه نشته دې ، چه هر کله سنتو پورې استهزاء کفر دې نو ږيره خو واجبه ده اود اسلام شعار دې ، ديو متې نه کمول په اجماع سره حرام دی هغې پورې خانده کول بطريقِ اولیٰ کفر دې ، **قال فی العلائية واما الاخذ منها وهی دون ذلك كما يفعله بعض المغاربة ومخنثة الرجال فلم يبحه احد** (شاميه ج ۲ ص ۱۲۳) هغه دې دوباره مسلمانولو سره نکاح دې هم دوباره اوکړئ شی . که چرته دوباره اسلام قبول نه کړی نوحاکم باندې فرض دی چه د هغه د وژلو حکم دې ورکړی . فقط والله تعالی اعلم .

**يوم عيدالاضحی ۸۶ هجری**

# د ختمِ نبوت په مسئله باندې يو خوندوره مناظره

—— جمع اوترتيب ——

احتشام الحق آسيا آبادي

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى. امابعد:

خما روحاني مربّي حضرت مفتي صاحب دامت بركاتهم دابتدائي تدريس په زمانه كښې يو قادياني مناظر سره اتفاقاً ملاقات اوشو ، د قادياني سره دهغه يو شاگرد هم وو ، ملاويدلو سره قادياني مناظر په خپل تعريف او مهارت باندې تقريراوكړو او وې وئيل چه ما د بوعلي سينا كتابونه وئيلي دي ، عيسائيانو او آريانو سره مې ډيرې مناظرې كړې دي ، دخپل قابليت اومهارت ئې څه ډيرزيات صفتونه كول او حضرات په خاموشئ سره اوريدل ، ددې نه پس ئې په مسئله د جريانِ نبوت باندې خبره شروع كړه ، لاندې ددې مختصرې او خوندورې مناظرې كيفيات پيش كولې كيږي چه په هغې كښې خاص طور سره د علماء كرامو دپاره ډيرې د مفيد خبرې راغلي دي ،

د اختصار په خاطر حضرت والا لره به د مفتي صاحب او قادياني لره به د قادياني مناظر په عنوان سره ذكركولې كيږي. ((آسيا آبادي))

**حضرت مفتي صاحب** : ستاسو اصل دعوىٰ خو اثبات د مرزا د نبوت ده ، نو آيا مسئله دجريانِ نبوت ستاسو د نبوت په دعوې باندې د دليل دپاره صغرى ده او كه كبرى ده ؟

**قادياني مناظر** : دا زمونږ دليل نه دې بلكه دې مسئلې لره مونږ ځكه بيانوُو چه د مرزا صاحب په نبوت باندې بحث كولو سره اكثرعلماء دا بحث پخپله چيړي چه نبوت ختم شوې دې ، ددې وجه نه مونږ دا بحث كوُو .

**مفتي صاحب** : دا بحث تاسو هغه عالم سره اوكړئ چه هغه له دې مسئلې نه بحث كوي ، ما سره براهِ راست پخپلې دعوې د مرزا په نبوت باندې بحث اوكړه ، ځكه چه زه خو ددې قائل يم چه بالفرض والمحال كه چرته نبوت جاري وي نو بيا هم مرزا صاحب نبي نه شي كيدلې .

د حضرت ددې اصرار نه باوجود قادياني مناظر هم جريانِ نبوت باندې بحث كولو باندې ټينگ وو ، اصل وجه داده چه قادياني مناظر په دې مسئله كښې اصل مدعا طرف ته راتللو سره ويريږي ، ده ته دا معلومه ده چه د مرزا صاحب نبوت لره د ثابتولو وراندې د ازغو ډيرې دې ، ددې وجه نه حضرت د ارخاء عنان دپاره هم جريانِ نبوت باندې بحث كولو باندې رضامند شو چه چرته هغه دا اونه گڼي چه د كومې كمزورئ په بناء باندې ددې بحث نه ډډه كوي ، چنانچه اوس بحث شروع كيږي ،مولوي محمد جميل صاحب د فارسئ تكميل كولوسره ئې عربي شروع كوله ، حضرت والا لره ئې هم په عربئ كښې دده سره شريک كړئ شو ، د فارسئ تعليم هم ورسره ورسره كيدلو .

**حضرت مفتی صاحب**: دا بحث خو دې بالکل فضول مگر چه هر کله تاسو خپلې مدعا طرف ته راتلل نه غواړئ او هم په دې باندې ټینگ ئې چه جریانِ نبوت باندې بحث اوشی نو صحیح ده . په دې باندې بحث اوکړئ.

**قادیانی مناظر**:- د حضرت آدم علیه السلام نه واخله تر حضورصلی الله علیه وسلم پورې په اتفاق سره نبوت جاری وو ، د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس ستاسو دا دعویٰ ده چه نبوت ختم شو. کوم سړې چه د متفق علیه حقیقت خلاف قائل وی هغه ته مدعی وئیلې کیږی اود مدعی په ذمه باندې دلیل بیانول وی ، تاسو مدعی ئې ، لهذا ختم نبوت باندې دلیل بیان کړئ.

**حضرت مفتی صاحب**:- آیا تاسو ما له مدعی تسلیموئ؟

**قادیانی مناظر**:- «په ویره سره اووئیل» آو ! په دې حیثیت سره چه تاسو د متفق علیه حقیقت خلاف قائل ئې.

**حضرت مفتی صاحب**:- تاسو حیثیت وغیره پریږدئ او صفا ددې اقرار اوکړئ چه آیا تاسو ما له مدعی منئ؟

**قادیانی مناظر**:- «په ټیټ آواز سره ئې اووئیل» او تاسو مدعی ئې.

قادیانی مناظر ته د حضرت مفتی صاحب مدعی تسلیمولو کښې تردد ددې وجه نه کیدلو چه په مناظره کښې هریو کس د مدعی جوړیدلو نه د بچ کولو کوشش کوی ، مگر دلته پخپله حضرت مفتی صاحب دخپل مدعی کیدلو دهغه نه اقرار اخلی.

**حضرت مفتی صاحب**:دا اووائې چه ستاسو په نزد نبوت بشرطِ لاشیء جاری دې یا لابشرطِ شیء

**قادیانی مناظر**: تاسو علمی اصطلاحات مه استعمالوئ،په آسانه ژبه کښې خبره کول پکاردی

**حضرت مفتی صاحب**:- دلته د عوامو څه مجمع نشته ددې وجه نه په علمی اصطلاحاتو کښې څه حرج خو نشته دې ، خو سره ددې نه ستاسو د خواهش رعایت کوم ، څما مطلب دادې چه ستاسو په نزد مطلقِ نبوت جاری دې یا النبوة المطلقة؟

**قادیانی مناظر**:- په دواړو کښې څه فرق دې؟

**حضرت مفتی صاحب**:- ما خیال اوکړو چه تاسو د بوعلی سینا کتابونه کتلې دی پوهه به شئ مطلب دادې چه ستاسو په نزد د نبوت دوه قسمونه دی ، تشریعی او ظلّی . دا دواړه قسمونه جاری دی یا یو؟

**قادیانی مناظر** یو قسم جاری دې یعنې ظلّی ، تشریعی نبوت ختم شوې دې.

**حضرت مفتی صاحب** - د حضرت آدم علیه السلام نه واخله تر حضور صلی الله علیه وسلم پورې نبوتِ تشریعی جاری وو تاسو دهغې د ختمیدلو قائل ئې ، د متفق علیه د حقیقت خلاف وائې نوځکه تاسو مدعی اوگرځیدلئ . تاسو په دې باندې دلیل بیان کړئ

**قادیاني مناظر :-** زه مدعی نه یم .

**حضرت مفتي صاحب :-** په کومې طریقې سره چه زه دې مدعی جوړ کړې ووم بعینه هم په هغې طریقې سره تاسو مدعی جوړ شوئ اوس که چرته تاسو مدعی نه ئې نو زه هم مدعی نه یم ، قصه بالکل ختمه شوه

**قادیاني مناظر :-** « مجبوره کیدلو سره دخپل ځان مدعی کیدلو په زړه ماتی سره اقرار کولو سره دلیل پیش کوی » د نبوت تشریعیه دپاره څه شرائط دی « دهغه شرائطو تفصیل بیانولو نه د ځان بچ کولو دپاره ئې اوونیل چه » دا شرائط تاسو ته معلوم دی .

**حضرت مفتي صاحب :-** ماته د هغه شرائطو علم نشته دې تاسو ئې پخپله بیان کړئ . نیز دا هم اووائې چه د هغه شرائطو بالکل وجود ممکن نه دې یا ممکن خو دې واقع نه دې ؟

**قادیاني مناظر :-** ممکن نه دې مګر واقع دې .

**حضرت مفتي صاحب :-** په دې سره دا ثابته شوه چه حضورصلی الله علیه وسلم نه پس نبوتِ تشریعي خو ممکن دې مګر واقع نه دې !

**قادیاني مناظر :-** دحضور صلی الله علیه وسلم نه پس نبوتِ تشریعي بالکل ممکن نه دې ،

**حضرت مفتي صاحب :-** دا څنګه کیدلې شی چه شرط ممکن شو او مشروط ممتنع ؟

قادیاني مناظر کافی وخته پورې په دې مسئله کښې اینختې وو چه شرائط ممکن دی او نبوتِ تشریعي ممکن نه دې ، مګرآخرئې ددې اعتراف اوکړو چه د نبوتِ تشریعي شرائط هم ممکن نه دی .

**حضرت مفتي صاحب :-** اوس د دوو دعوو اثبات ستاسو په ذمه باندې شو ، یو خو دا چه یو څیز تاسو بیان کړئ دهغې شرطیت په دلیل سره ثابت کړئ ، دویم دا چه دهغه شرط ممتنع کیدل هم ثابت کړئ .

**قادیاني مناظر :-** « یو آیت [1] وئیلو سره » په هغې سره دا ثابته شوه چه تشریعي رسول هغه وخت راځي چه هرکله د هغه نه وړاندې په کتاب کښې تحریف شروع شی . چونکه کریم کښې څه تحریف نه شو کیدلې ددې وجه نه تشریعي رسول هم نه شو راتللې .

**حضرت مفتي صاحب** - په دې آیت سره خو سببیت ثابت شو نه چه شرطیت . تحریفِ ماقبل د نوی رسالت سبب دې . شرط نه دې . یعنې د نه ثابتیږی چه بغیر د تحریفِ ماقبل نه یو نوې رسول نه شی راتللې . چنانچه حضرت آدم علیه السلام تشریعي نبی وو . مګر د دوی نه وړاندې د کوم یو دین تحریف اونه شو . آیا د نوی رسول د راتللو دا وجه نه شی کیدلې چه په دینِ ماقبل کښې څه

---

[1] - یاد نه دی چه کوم یو آیت وو . شاید دا آیت وی ﴿ يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ ﴾ .

تحریف هم نه وی مکمل طور باندې صحیح طریقې باندې موجود وی . ددې نه باوجود دهغه احکام د طبیعتونو مناسب نه وی . ددې وجه نه الله تعالی د نوی رسول په ذریعې سره دهغه زمانې د طبیعتونو مطابق په احکامو کښې ترمیم اوفرمائیلو . بهرحال شرطیت نه ثابتیږی .

**قادیانی مناظر** :- « په شرمندګئ سره ئې اووئیل چه » شرطیت وی یا سببیت خبره یو ده .

دې وئیلو سره ئې خپل بحث لره پخپله ختم کړو اود حضرت مفتی صاحب د بار بار اصرار نه باوجود نه ئې اصل مدعا یعنې د مرزا د نبوت په اثبات باندې خبرو کولو ته تیار شو او نه ئې په مسئله جریانِ نبوت باندې مزید کلام اوکړو . بالکل خاموشه شو .حضرت مفتی صاحب اوفرمائیل چه « مونږ یو مناظر سره داسې خاموشه کیدلو سره نه دې لیدلې اونه مو اوریدلی دی . دا صاحب په خپلې خاموشئ کښې منفرد دې .

**۳ ربیع الاول ۹۶ هجری**

## قادیانیانو سره د تعلقاتو لرلو حکم

**سوال** :- یو سړې صحیح عقیدې والا دې . دروژې . مانځه او زکوة پابند دې . لیکن دهغه دنیوی تعلقات د قادیانی جماعت سره دې . آیا د داسې سړی نه د جمات دپاره چنده اخستل او د داسې سړی سره تعلقات لرل جائز دی . او داسې سړی ته د خنزیر نه بدتر وئیل او کنل څنګه دی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې سړې چه د روژې اود مانځه پابند وی لیکن دهغه تعلقات د قادیانی جماعت سره دې که چرته هغه په زړه سره هم هغوی لره ښه ګنی نو هغه مرتد دې او بلاشبه د خنزیر نه بدتر دې . دهغه سره تعلقات لرل ناجائز دی . که چرته هغه د جمات دپاره چنده ورکوی نودهغه نه وصولول جائز نه دی . اوکه چرته هغه د قادیانیانو د عقیدو سره متفق نه وی او نه هغوی لره ښه ګنی بلکه تجارت وغیره . د دنیوی معاملاتو حده پورې د هغوی سره تعلق ساتی نو دا سړې مرتد نه دې . البته ډیر سخت مجرم او فاسق دې . قادیانی زندیق دې . چه دهغې حکم د عام مرتد نه هم زیات سخت دې . مرتد اودهغه خوئ دخپل مال مالکان نه دی . لهذا دهغوی د بیعې او شراء . د اجارې او استجارې . د هبې لین دین وغیره یو تصرف هم صحیح نه دې .البته که نوسی مال خپله ګنلې وی هغه په کښې تصرف کولې شی . مګر د زندیق نوسئ هم دخپل ګتلی شوی مال مالک نه دې اود هغه د تصرف نافذ نه دې . ددې وجه نه قادیانی نه که په هرې ذریعې سره هم څه مال واخستلو نو هغه حلال نه دې

د تجارت وغیره معاملاتو نه علاوه قادیانیانو سره یو قسم تعلقات هم جائز نه دی .په دې کښې دا مفاسد دی

۱. په دې کښې قادیانیانو سره تعاون دې

(۲) داسې قسم معاملاتو کښې عوام قادیانیانو لره د مسلمانانو یو فرقه ګڼي

(۳) په داسې طریقې سره قادیانیانو ته دخپل جال خورولو مواقع ملاویږي.

ددې وجه نه قادیانیانو سره لین دین او نور هرقسمه معاملاتو کښې قطع تعلق ضروري دی دهغوی سره تعلقاتو ساتلو والا سړې اګرچه هغوی لره بد ګڼي قابل د ملامتیا دې ، د داسې سړی پوهول په نورو مسلمانانو باندې فرض دی . فقط والله تعالی اعلم

قادیانیانو سره متعلق مزید مسائل په جلد ۱۱۲ باب المرتدوالبغاوة کښې دی او زیات تفصیل په کتاب الخطروالاباحة کښې.

۲۱ محرم ۹۶ هجری

## د حضرت عیسی علیه السلام د شهادت عقیده لرل کفر دي

**سوال** :- مرزائیانو کتابونه چاپ کولو سره په کلوکښې ئې تقسیم کړه چه په هغې کښې هغوی د قرآن په آیتونو سره ثابت کړی دی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام لره یهودیانو شهید کړې دې ، ځنې مسلمانانو دې عقیدې طرف ته رجوع هم اوکړه نو آیا هغه مسلمانان مرتد اوخارج عن الاسلام او کافر وګڼلې شی اوکه ضعیف الایمان مسلمانان؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دحضرت عیسیٰ علیه السلام د شهادت عقیده لرلو والا خارج ازاسلام او بلا شبهه کافر دی ، ځکه چه نصِ قرآن سره ثابت دی چه هیڅچا حضرت عیسیٰ علیه السلام لره شهید نه کړئ شو بلکه الله تعالی هغه لره آسمان ته اوچت کړو ، قال الله تعالی: ﴿وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ﴿١٥٧﴾ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٥٨﴾﴾ ترڅو پورې چه دا خلق توبه او استغفارسره تجدید د ایمان اونه کړی دوی سره دې داسې معامله اوکړئ شی ځنګه چه قادیانیانو او نورو مرتدینو سره کولې کیږی ددې تفصیل دا دې چه دوی سره هرقسمه تعلق او کاروبار وغیره ناجائز دې ، علاوه ددې نه چه د مرتد په حالتِ ارتداد کښې ګټلې شوې مال دهغه وارثانو ته نه شی ملاویدلې بلکه د مسلمانانو حق دې ددې وجه نه به د بیت المال په مصارفو کښې خرچ کولې شی ، نیز د مرتد تصرفات نکاح ، شرکتِ مفاوضه ، ولایة علی الولد الصغیر ، هبه ، اجاره ، قبض دین وغیره نافذ کیږی نه اود احدالزوجین په ارتداد سره نکاح باطلیږی ، ((قال فی التنویر ویبطل منه النکاح والذبیحة والصید والشهادة والارث یتوقف منه المفاوضة والتصرف علی ولده الصغیر والمبایعة والعتق والتدبیر والکتابة والهبة والاجارة والوصیة ان اسلم نفذوان هلك اولحق بدار الحرب وحکم بطل))

(ردالمحتار ص ج) فقط والله اعلم

۱۴ محرم سنه ۹۶ هجری

## د صفر په میاشت کښې واده لره منحوس گڼل

خلق د صفر په میاشت کښې واده کولو لره بد گڼي ، یو مولوی صاحب اووئیل « چه د خلقو د نحوست گمان غلط دي لیکن ځما د ورور واده په دې میاشت کښې اوشو نونتیجه ښه نه وه» د مولوی صاحب دا وینا څنګه ده ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مولوی صاحب د قول « نتیجه ښه نه وه » نه د غلطې عقیدې تائید کیږی ددې وجه نه په هغه باندې توبه لازمه ده ، نیز د کومو خلقو په مخامخ ئې چه دا وئیلی دی دهغوی وړاندې دې دخپلې غلطئ اعتراف او توبه اوکړی . فقط والله اعلم

**۱۲ ربیع الاول ۹۵ هجری**

## « لی خمسة اطفی بها » شرک دې

**سوال** :- لی خمسة اطفی بها حرالوباء الحاطمه : المصطفیٰ والمرتضیٰ وابناهما والفاطمه تعویذ لګول جائز دی یا نه ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ناجائز او شرک دې ، فقط والله تعالی اعلم .

۲۴ ربیع الاول ۸۷ هجری

## تحقیق د ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾

یوه فتوی ستاسو په خدمت کښې پیش کولې شی دهغې جواب راکړئ .

**سوال** :- ایصالِ ثواب بروحِ بزرگان او هغوی طرف ته څاروی منسوب کول او بیا هغوی لره زیارت ته بوتللو سره ذبحه کول (بسم اللهِ اللهُ اکبر وئیلو سره ) او په غریبانانو کښې تقسیمول جائز دی یا نه ؟

**الجواب** :ایصالِ ثواب للغیرجائز دې ، زیلعی (شرح کنز) درمختار ، فتاویٰ عالمگیری او شامی کښې دا مذکور دی او یو څیز لره غیرالله طرف ته منسوب کول هرگز حرام نه دی بلکه په احادیثو سره ثابت دی ، مشکوٰة شریف باب فضل الصدقة کښې د حضرت سعد بن عبادة واقعه مذکوره ده چه کله دهغه مور وفات شوه نو هغوی پوښتنه اوکړه یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ځمامور وفات شوې ده دهغې دپاره کومه صدقه افضل ده ؟ حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل - اوبه . چنانچه هغوی دخپل مور په نوم باندې یو کوهی اوکنلو (مشکوٰة)

په دې سره معلومه شوه چه خیرات وغیره لره اولیاء امت طرف ته منسوب کول جائز دی . که چرته څوک انکار اوکړی نو هغه منکرِ حدیث دې ،او منکرینو په دې آیتِ کریمې سره استدلال کړې

دي . ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ حالانکه باجماعِ مسلمین دا دهغه خناورو په باره کښې دي چه هغوی باندې د ذبحه په وخت کښې د غیر الله نوم واخستلې شی . ولا خلاف بين المسلمين ان المراد به الذبيحة اذا اهل به لغير الله عند الذبح (احكام القران للجصاص ص ۳۰ ج ۱)

ومن ههنا علم ان البقرة المنذورة للاولياء كما هو الرسم في زماننا حلال طيب لانه لم يذكر اسم غير الله عليها وقت الذبح وان كانوا ينذرونها له (تفسيرات احمديه ص ۳۰) بينوا توجروا

الجواب باسم ملهم الصواب : ایصالِ ثواب بروحِ بزرگان واولیاءِ کرام ثابت او موجب د اجراو ثواب دي په دې کښې څه کلام نشته دي ، لیکن دې سره یو قسم تقییداو تخصیص احداث فی الدین او بدعت دې . د اولیاءِ کرامو په نوم باندې څاروئ متعین کول او بیا مزارونوته بوتللو سره ذبحه کول ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ کښې د داخلیدلو د وجه نه شرک دې او دهغې خوړل حرام دی اگر چه په هغې باندې په زرگونو بسم الله الله اکبر ونیلې شوی وی . مجیب چه په جواز باندې کوم دلائل پیش کړی دی . په هغې کښې یو دلیل هم مفید د مدعا نه دې . اوګورئ (قوله) علماءِ کرام متفق دی چه هرکارِ خیر الخ (اقول) په دې تقریرسره دومره ثابت شو چه ایصالِ ثواب الی الغیر مطلقاً جائز دې . او په دې کښې مونږ ته هم څه کلام نشته دې البته دې دپاره څه وخت متعین کول او قیود لګول بدعت دې چه دهغې هیڅ ثبوت نشته دې .

(قوله) منکرینو په ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ استدلال کړې دې الخ (اقول) مجیب په هغه ټول تقریرسره د نذرلغیرالله د اثبات کوشش کړې دې اود احکام القران للجصاص حواله ئې ورکړې ده ، ((ان المراد به الذبيحة اذا اهل بها لغير الله عند الذبح)) .لیکن دهغې نه وړاندې ئې نظر وانه چولو چرته چه مصرح دی ((وظاهر قوله تعالى وما اهل به لغير الله يوجب تحريمها اذا سمي عليها باسم غير الله لان الاهلال به لغير الله هو اظهار غير اسم الله ولم يفرق الاية بين تسمية المسيح وتسمية غيره بعد ان يكون الاهلال به لغير الله اه (احكام القران ص ۳۰ ج ۱))

بالفرض د مااهل به لغیرالله تخصیص ذبح باسم غیرالله سره تسلیم هم کړلې شی نو د منذورلغیرالله حرمت په « وما ذبح على النصب » کښې مصرح دی .

دویم حواله د تفسیراتِ احمدیه ورکړې ده « ان البقرة المنذورة للاولياء اه ددې مطلب دادې چه نذر خو د الله دپاره اومنلې شی او ثواب د اولیاؤ دپاره وی ، دا وضاحت پخپله مصنف په منهیه کښې فرمائیلې دې . (بیان القرآن) ددې په جواز کښې هیڅ کلام نشته دې ، که چرته اولیاء الله لره متصرف فی الامور او د نفعې او نقصان مالک ګڼلو سره دهغوی د رضا دپاره څاروئ ذبحه

کوی نو دا بلا شبهه په ما اهل به لغیرالله کښې داخل دې او نن سبا د عوامو عقیده هم دا وی ((قال العلماء لو ان مسلما ذبح ذبیحة وقصد بذبحها التقرب الی غیر الله تعالی صار مرتدا وذبیحة مرتد)) (تفسیر نیشاپوری) امام رازی رحمة الله علیه په خپل تفسیر کښې صراحةً ددې حرمت بیان کړې دې او ټول فقهاء کرام هم ددې په حرمت باندې متفق دی ، درمختار کښې دی : ((ذبح لقدوم الامیر ونحوه لانه سنة الخلیل علیه السلام واکرام الضیف اکرام الله تعالی والفارق بینهما ان قدمها لیاکل منها کان الذبح لله تعالی والمنفعة للضیف او للولیمة وان لم یقدمها لیاکل منها بل یدفعها لغیره کان لتعظیم غیر الله فتحرم وهل یکفر قولان انتهی الاشباه والنظائر)) فقط والله تعالی اعلم ۲۴ محرم سنه ۱۳۹۵ هـ

## د سائبې تحقیق

**سوال** :- حضرت تهانوی رحمة الله علیه په بیان القرآن کښې د سائبې حرمت ثابت کړې دې او حضرت مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه په معارف القرآن کښې حلال لیکلې دې او وجه ئې دا بیان کړې ده چه سائبې ته حرام وئیلو سره د مشرکانو د عقیدې تائید کیږی ، ستاسو تحقیق څه دې ؟ سائبه په مااهل به لغیرالله کښې ده یا نه ؟ نیز د څاروو نه علاوه متهائی وغیره چه د غیر الله د نذر په طور باندې تقسیمولې کیږی هغه حلال دی یا حرام ؟ او ما اهل به لغیرالله هغې ته شامل دې یا نه ؟ بینوا بیانا شافیا ، توجروا اجرا وافیاً ،

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حضرت مفتی محمد شفیع صاحب په امداد المفتین ص ۷۴۳ ج ۲ کښې د سائبې د حلت طرف ته د حضرت تهانوی رحمة الله علیه رجوع نقل کړې ده ، د حضرت مفتی صاحب د طرف نه سوال او د حضرت تهانوی رحمة الله علیه جواب د امداد المفتین نه نقل کولې کیږی ،

**سوال** :- یو فتوی د ریاست قرولی د دربارهٔ (حلت ) سائبه وبحیره وغیره دلته راغلې ده چه په هغې کښې د حضرت هم تصدیق دې ، غالباً د تصدیق په نقل کښې خو غلطی نشته دې ځکه چه د بیان القرآن جدید په حاشیه کښې هم حضرت ، هم دې صورت ته ترجیح ورکړې ده ، او څه یاد دی ، زبانی هم حضرت نه یو څو جملې احقر اوریدلی دی مګر په هغې کښې یو مشکل د هغه وخت نه راروان دې هغه دادې چه صورتِ ثالثه چه په هغې کښې اراقهٔ دم لغیرالله مقصود نه دې مګر د نذر لغیرالله په حد کښې خو داخل دې اود منذور لغیرالله په حرمت باندې صاحبِ بحر عبارت ذیل کښې اجماعِ مسلمین نقل کړې ده ، په هغې سره معلومیږی چه د داسې څاروی د حلت د پاره صرف اذنِ مالک کافی نه دې بلکه د مالک د خپل نذر نه رجوع کول هم ضروری دی ، او که چرته سائبه

وغيره څارږو او منذورلغيرالله کښې څه فرق وی نو بې شک دا شبهه رفع کيدلې شی مگر ماته په دې دوارو کښې څه فارق معلومه نه شو چه اصل علت تقرب الی غيرالله دې هغه په دوارو کښې يوشان دي ، صرف بحيره سائبه کښې صيغه د نذر نشته دې که چرته کيدلې شی نو هغې باندې نظر اچولو سره دهغې حل اوفرمائې دپاره چه اشکال رفع شی اودهغې جواب هم اوليږلې شی.

**جواب** : ددې مسئلې متعلق څما رايه باندې درې دوره تيرشوی دی ، يو د زيد د موافقت (حرمت) او په ما په تفسيرکښې هم دې لره اختيارکړې دې ، دويم د تردد ، د تفسيرد جلدثالث په منهيه کښې دې تردد لره ښکاره کړې دې ، دريم د بکر په موافقت کښې (حلت) اود امداد الفتاوی په فتویٰ منقوله سوال کښې دهغې حکم کړې دې چه په تفسير کښې زماناً متاخر دې . پس اخيررايه هم دا ده او رومبنۍ دواړه رائې مرجوع عنه دی چه دهغې خلاصه دا ده چه سوائب په ماهل به لغيرالله کښې داخل نه دی څکه د ناذر مقصد دهغې ذبح نه ده پس د هغې حرمت به د کوم بل عارض (عدم اذن المالک ) نه وی چه دهغې په ارتفاع سره به حرمتِ اکل بعدالذبح مرتفع کيږی ، چنانچه په کثرت سره مفسرينو د آيت « **يا ايها الناس کلوا مما فی الارض حلالاً طيبا** » سببِ نزول هم دې تحريمِ سوائب لره ليکلې دې او د آيت نه ئې د حلت اثبات اود حرمت نفی کړې ده او بعضو چه کوم يو بل سببِ نزول ليکلې دې هغوی هم دهغه حلت نفی اود حرمت اثبات اونه کړو نو مسئله متفق عليه شوه البته څما په تحقيق کښې « **ما اهل به لغيرالله** » کښې يو دويم عموم دې يعني ((**منذوربه لغيرالله غيرحيوان**)) لره هم د حرمت حکم شامل دې مگر په دې تفصيل سره چه د حيوان حرمت مدلولِ نص بلاواسطه دې ((**لان الايات وردت قطعا فی الحيوانات**)) اود غيرِ حيوان حرمت مدلول بواسطه قياس دې . ((**لاشتراك العلة وهی نية التقرب الی المخلوق**)). د بحر فتوی هم په دې قياس باندې مبنی ده ، باقي چه تاسو کوم خلجان ليکلې دې دهغې جواب په قواعدو سره دادې چه ((**منذوربه لغيرالله**)) کښې هغه تصرف چه په هغې کښې تقرير دې د ناذر غرض د باطل حرام دې ((**لان اعانة الحرام حرام**)) او چه په کوم تصرف کښې ابطال دې د غرض ناذر هغه جائز دې پس د « **ما اهل به لغيرالله** » په ذبح او تناول کښې خو تقريردې ددې غرض اراقه دم ددې وجه نه حرام دې اود سوائبو په ذبح او تناول کښې ابطال دې دهغې غرض ددې وجه نه حرام نه دې ،او د بحر په جزئياتو کښې د مجاورينو انتفاع يا ايقادِ قناديل وغيره دا ټول تقرير دې د ناذر غرض څکه حرام دې . په دې سره فرق رااوتلو د سوائبو په تناول کښې او د منذور للقبور په تناول کښې ، والله اعلم

**کتبه اشرف علی ۳ربيع الثانی سنه ۵۴ هجری**

سوائب او منذورللقبور کښې يو بل فرق هم معلوميږی هغه دادې چه د منذورللقبور حرمت د تقرب الی غيرالله د وجه نه دې او تقرب د قربت په واسطې سره دې ، او تصدق واراقهٔ دم شرعاً

قربت دي مګر محض تسبيب لره شريعت قربت نه دي ګرځولي اګرچه مسبب هغه قربت ګڼي لهذا سوائبو کښې تقرب الی غير الله اونه موندلې شو چه علتِ تحريم دي .

غرض داچه سائبه في نفسه حلاله ده مګر عدمِ اذن د مالک د وجه نه حرامه ده . که چرته د مالک د طرف نه صراحةً يا د اباحتِ عامه د لاندې اذن اوموندلې شي نو سائبه حلاله ده د «**ما اهل به لغيرالله**» په عموم کښې متهائي وغيره هم داخله ده ، او د « **ما ذبح علی النصب** » بالاستقلال سره ذکر په دې باندې قرينه ده چه « **ما اهل به لغيرالله** » حيوان وغيرحيوان دواړو لره شامل دې او که چرته دې لره حيوان سره خاص اوساتلې شي نو د غيرِ حيوان حرمت به ثابت بالقياس وی بعلة التقرب الی غيرالله . فقط والله تعالی اعلم

**۲۳ جمادی الاولیٰ ۹۶ هجری**

## نجومي ته لاس ښودل

**سوال** :- څه فرمائی علماءِ کرام په دې مسئله کښې چه يو مولوی صاحب دا وائی چه نجومی ته لاس ښودلوسره حالات معلومول جائز دی . علمِ غيب خو صرف الله تعالی ته دې . نجومي اسبابو باندې نظر کولوسره د نتيجې پيشګوئی کوی څنګه چه د موسمياتو محکمه او نورې مختلفې محکمې او ماهرينِ فن د اسبابو لاندې پيشګوئيانې کوی راکوی . نيز بعضې خلق دا وائی چه دا علم الله تعالی حضرت ادريس عليه السلام ته ورکړې وو او نجومی چه د حوادثو د واقع کيدلو خبر ورکوی هغه امرِ تقديری د نجوم په قواعدو سره ښودلې کيږی دا په علمِ غيب کښې شمير نه دې . آيا د مسلمانانو دپاره دا عقيدې ساتل شرعاً جائز دی ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اسبابو سره متعلق عامه قاعده هم داده چه که چرته هغې لره مؤثراونه ګڼلې شی بلکه د سببيت په درجه کښې ساتلوسره مسبب باندې استدلال اوکړی شی نو دا جائز دی مګر شريعت په دې قاعدې سره علم نجوم لره مستثنیٰ ګرځولې دې يعنې نجوم سره د سبب په درجه کښې هم واقعاتو باندې استدلال سره په سختئ سره منع فرمائيلې ده . ددې استثناء د حکمت په پوهه کښې راوستل ضروری نه دی . سره ددې نه په ظاهره دا حکمت معلوميږی چه په دې کښې دومره غلوشوې ده چه دې طرف ته متوجه کيدلو والا بالعموم د نجوم د تاثير قائليږی . محض سببيت باندې توقف نه شی کولې . نيز په دې علم کښې هيڅ فائده نشته دې بلکه بعضې وختونوکښې د ډيرو پريشانيانو سبب جوړيږی . علاوه ددې نه دا هم وئيلې کيدلې شی چه شريعت د نجوم د سببيت انکارکوی يعنې نجومی چه د کومو امورو نسبت نجوم طرف ته کوی شريعت دهغې تغليظ کړې دې هسې خو مطلقاً سببيت بالخصوص شمس اوقمرکښې مشاهده ده . دا هم وئيلې کيدلې شی چه علم نجوم او علم فراست په اصل کښې صحيح دی مګر قواعد ئې په کې

دليل سره ثابت نه دی ددې وجه نه په دې کښې عموماً غلطی واقع کيږی چه په بعضې وختونوکښې د بدګمانئ باعث جوړيږی او بدګمانئ سره فتنه ، منافرت او نور ډير مفاسد پيدا کيږی ، چنانچه د غل د شناخت عمل هم ددې وجه نه ممنوع دې .

افلاطون سره به چه چا ملاقات کول غوختل نو روميږ به ئې د هغه تصوير راغوختلوسره د فراست په ذريعې سره به ئې د هغه اخلاق معلومول که د ملاقات قابل به وو نو هغه ته به ئې اجازت ورکولو . د يو کس تصويرکتلوسره ئې د ملاقات نه انکار اوکړو نو هغه اوونيل چه د افلاطون فراست صحيح دې واقعی په ما کښې رذائل وو مگر اوس ما د هغې اصلاح کړې ده چه هرکله د افلاطون په شان مشهورصاحبِ تصرف اشراقی نه غلطی کيدلې شی او هغه بدګمانی پيدا کولې شی نو بل څوک څنګه محفوظ پاتې کيدلې شی ، غرض دا چه شريعت ددې نه منع فرمائيلې ده او په دې باندې سخت وعيد ونه راغلی دی .

(۱)من اتى عرافا فسئاله عن شىء لم تقبل له صلاة اربعين ليلة (صحيح مسلم ،مسند احمد بن حنبل)

(۲)من اتى عرافا او كاهنا فصدقه بما يقول فقد كفر بما انزل على محمد (مسند احمد ،مستدرك حاكم)

(۳) من اتى كاهنا فصدقه بما يقول اواتى امراة حائضا اواتى امراة فى دبرها فقد برء مما انزل على محمد (سنن اربعه ،مسند احمد)

(۴)من اتى كاهنا فسئاله عن شىء حجبت عنه التوبه اربعين ليلة فان صدقه بما قال كفر (طبرانى)

قال فى رد المحتار تحت (قوله التنجيم ) وافاد ان تعلم الزائد على هذا المقدار ( اى مقدار مايعرف به مواقيت الصلوة والقبلة ) فيه بأس بل صرح فى الفصول بحرمته وهو مامشى عليه الشارح والظاهر ان المراد به القسم الثانى دون الاول ولذا قال فى الاحياء ان علم النجوم فى نفسه غير مذموم لذاته اذهو قسمان الخ (ثم قال )ولكن مذموم فى الشرع وقال عمر تعلموا من النجوم ما تهتدوا به فى البر والبحر ثم امسكوا وانما زجر عنه من ثلاثة اوجه احدها انه مضر باكثر الخلق فانه اذا القى اليهم ان هذه الاثار تحدث عقيب سير الكواكب وقع فى نفوسهم انها المؤثرة وثانيها ان احكام النجوم تخمين محض ولقد كان معجزة لادريس عليه السلام فيما يحكى وقد اندرس وثالثها انه لافائدة فيه فان ما قدر كائن والاحتراز عنه غير ممكن اهملخصا (ردالمحتار ص۰ج۱)

دا وئيلې شوی دی چه علم نجوم حضرت ادريس عليه السلام ته د وحی په ذريعې سره ښودلې شوې وو، اولاً خو دا خبره ثبوت ته نه رسی ، ثانياً د نجوم قواعد په سند سره ثابت نه دی چه هغې باندې اعتماد اوکړې شی . او دا اووئيلې شی چه دا هم هغه علم دې چه حضرت ادريس عليه السلام ته ورکړې شوې وو . ثالثاً ټخپله منجمين اود هغوی نه بوښتنې والا عام طور باندی

کواکبو لره متصرف اوفاعل ګنی چه شرکِ جلی دي . فقط والله تعالى اعلم

**۶ جمادى الاولى ۱۳۹۶ هج**

## د ترور د خوئ نه پردې کولو لره بدګنل کفر دي

**سوال** - د ترور . ماما . د چاچا (تره) د ځامنو نه پردې لره بدګنلو والا دپاره شرعاً څه حکم دي ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ترور د خوئ وغیره نه پرده فرض ده او د شریعت کوم حکم لره بدګنل کفر دي . فقط والله تعالى اعلم

**۳ ذى قعده سنه ۸۷ هجرى**

## جى ایم سید په کفر کښې جید

**سوال** :- کتاب « جئین ذنومو» تصنیف جی ایم سید طابع وناشر نورمحمدپلیجی . پیش خدمت دي . تحریراوفرمائې چه ددې د مصنف او طابع اوناشر په باره کښې د شریعت حکم څه دې ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ما دې کتاب لره په ډیرو ځایونوکښې کتلې دي نو معلومه شوه چه دا د صریح او د ناقابلِ تاویل کفریاتو مجموعه ده په دې کښې مذهب او خداپرستئ لره د وهم پرستئ ثابتولو باربار کوشش کړې شوې دې . د الله تعالى صفاتو سمع . بصر . رزق . رضا . غضب وغیرها اود اسلام بنیادی عقائدو خلقِ انسان . حیات بعدالموت . برزخ . قیامت . پل صراط. میزان. جنت او دوزخ . حج . طواف . رمی . سعی . قربانی . صدقات . سنتی د ځاروُو حلت او حرمت . عبادات . اوراد . وظائف او روژه وغیرها احکام لره قدیم او وهم پرستی ګرځولی دی (ص ۱۰۴) دا د نمونې په طور باندې ذکرکړې شو ګنې دهغه دوو سوو صفحو په کتاب کښې شاید یو صفحه هم د الحاد او کفر نه خالی وی . انتهائی د حیرت او تعجب مقام دې چه د مسلمانانو په حکومت او ملت کښې داسې صریح ذ اسلام سره دښمنی اود عقائدو اود اسلام د اصولو پورې خانده اود صریح کفراو الحاد د نشرواشاعت جرات څنګه اوشو ؟ بیا مسلمانانو او مسلم حکومت هغه برداشت څنګه کړو ؟ حکومت باندې فرض دی چه د هغه کتاب د ضبط کولو فوری حکم ورکړی او داسې مردود د ښمنانِ اسلام ته د ټولو په وړاندې یو عبرتناکه سزا ورکړی او عامة المسلمین . خصوصاً په علماء کرامو باندې فرض دی چه ددې ښکاره توهینِ اسلام اود کفرو الحاد د نشرواشاعت خلاف احتجاج اوکړی اود هغې د بندولو دپاره دې د حکومت نه مطالبه اوکړی . مسلمانانو دپاره دهغه کتاب د مصنف اود طابع او ناشرسره هیڅ قسمه تعلق ساتل جائز

نه دی . دهغه مرتدینو نکاح هم باقی پاتې نه شوه ، دهغوی په ښځو باندې فرض دی چه فوراً دې د هغوی نه جدا شی هغوی سره د ښځې په شان تعلق ساتل به په زنا کښې شمیروی اود هغوی نه پیدا کیدلو والا اولاد به ولدالزنا وی ، والله یقول الحق وهو یهدی السبیل
**۱۳ جمادی الاولی ۸ ۸ هجری**

## نور او بشریت

**سوال** :- رسول الله صلی الله علیه وسلم لره نور ګڼل څنګه دی ؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب** : د نور معنی ده رڼا . چنانچه الله تعالی سپوږمۍ ته نور فرمائیلې دې « **هو الذی جعل الشمس ضیاءً والقمر نورا** » رڼا چونکه پخپله ښکاره کیږی او نورو څیزونو لره هم روښانه او ښکاره کوی ددې وجه نه د نور التزامی معنی ده ((الظاهرالمظهر)) هم په دې مناسبت سره انبیاءِ کرامو علیهم الصلوة والسلام ته هم نور وئیلې کیږی څکه چه هغوی پخپله هم په هدایت باندې دی او نورو دپاره هم وصول الی الله لارو لره ښکاره کولو والا او د صراطِ مستقیم هدایت کولو والا . بلکه په دې معنې سره هرمقتدا نور دې . حدیث کښې د ((اللهم اجعلنی نوراً)) دعانه هم دا مراد دی . د نورالدین . نورالاسلام . نورالله وغیره نوم ایخودلو عام دستور دې . په دې سره هم دا مقصد دې . یعنې د دین او اسلام هدایت کولو والا ، نور او بشریت کښې هیڅ منافات نشته دې ګنې د بشرنوم نورالدین وغیره ایخودل به جائز نه وې . هم دغه شان به د بشردپاره ((اللهم اجعلنی نوراً)) دعا جائز نه وې .څکه چه ددې معنی به دا وې چه « یا الله هغه لره د بشریت او انسانیت نه اوباسه » قرآن کریم کښې هم دینی هدایت ته نور او ګمراهۍ ته ظلمت وئیلې شوی دی . ﴿ أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَٰهُ وَجَعَلْنَا لَهُۥ نُورًا يَمْشِى بِهِۦ فِى ٱلنَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُۥ فِى ٱلظُّلُمَٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ﴾ هم دا نورِ هدایت به د محشرپه ورځ پره کیږی ، ﴿يَسْعَىٰ نُورُهُم بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَٰنِهِم ﴾ الله تعالی پخپله دخپل ذات په باره کښې فرمائی ﴿ ٱللَّهُ نُورُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ﴾ مفسرینو حضراتو دلته هم نور په معنی د هدایت فرمائیلې دې یعنې الله تعالی د زمکې او اسمانونو تولو مخلوقاتو ته هدایت ورکولو والا دې .د بنده په خیال کښې ددې زیات واضح او زیات جامع مطلب دادې چه څنګه د رڼا کښې استفاده کولې کیږی هم دغه شان زمکه او آسمان او په دې دواړو کښې چه څه دی دهغه تولو وجود او صفات محض د ربِ کریم فیض دې .

حقیقت دادې چه نور په معنی د هدایت سره اصلِ کمال دې او دا د ظاهری رڼا نه بدرجها زیاته افضله ده . چنانچه نمر . سپوږمۍ او ستوری د ظاهری نور کیدلو باوجود د بشر خادمان دی .

﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ﴾ چونکه بشر اشرف المخلوقات دي . ددې وجه نه الله تعالی د نورِ هدايت دپاره هم بشر لره منتخب اوفرمائيلو . ارشاد دي ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ﴾ منکرينِ بشريت حضور صلی الله عليه وسلم لره د اشرف المخلوقات د جنس اود بشريت د اعلی ترين مقام نه غورځولو سره په کوم مخلوق کښې داخلول غواړي ؟ که چرته د هغوی مطلب دادې چه د ملائکو په شان دوی هم په مجرداتو کښې دې نو دا د مدعيانِ محبت او د کم عقل دوست په شان د محسنِ اعظم صلی الله عليه وسلم توهين کوی . الله تعالی په ملائکو باندې حضرت آدم عليه السلام ته سجده اوکړه . حضورصلی الله عليه وسلم خو د حضرت آدم عليه السلام نه هم افضل دې .بشريت او رسالت کښې د تضادِ کفارعقيده وه . هغوی وئيل چه رسول الله صلی الله عليه وسلم صرف فرښته کيدلې شی . الله تعالی دهغوی په هغه غلطه عقيده باندې قرآن کريم کښې ځائ په ځائ رد فرمائيلې دې .

الغرض حضوراکرم صلی الله عليه وسلم نور هم دې او بشر هم . د دوی د بشريت انکار د قرآن د نصوصو خلاف او د دوی صلی الله عليه وسلم توهين لره مستلزم کيدلو د وجه نه کفر دې . فقط والله تعالی اعلم . ۲۵ شوال سنه ۹۱ هجری

## مسلمان ته کافر ويل کفر دې

**سوال** - څه فرمائی علماءِ کرام په دې مسئله کښې چه اميرِ بادشاه ديو دينی جماعت د يو حلقې ناظم وو . او کمال الدين صاحب دهغه جماعت مرکزی ناظم . اميرِ بادشاه په جماعت کښې دا مسئله پورته کړه چه امام مسلم لره مشرک اوګرځوئ . دا مسئله د هغه جماعت د شورئ زيرِ غور وه اميرِ بادشاه دومره سختوالې اختيارکړو چه کوم کتابونه چاپ شوی دی او هغې باندې رحمه الله ليکلې شوی دی هغه کټ کړئ شورئ فيصله ورکړه چه ترڅو پورې د مسئلې آخری فيصله شورئ ورنه کړی ترهغې پورې رحمه الله نه شی کټ کيدلې . په دې باندې اميرِ بادشاه اووئيل زه د دا سې جماعت يو کار هم نه کوم او د جماعت په کار کښې به هيڅ حصه نه اخلم يعنې د جماعت نه به جدا شم . او عملی طور باندې جدا شو . د مرکزی ناظم کمال الدين صاحب په ميټنګ کښې تول زور په دې خبرې باندې وو چه امام مسلم رحمه الله هيچرې مشرک نه وو . بلکه کلک مؤمن وو . اتفاقاً په يو بله مسئله باندې د مرکزی ناظم کمال الدين صاحب اود جماعت اميراود شورئ په ټولو ارکانو کښې اختلاف شو . اميرِ جماعت او ټوله شورئ يو طرف . او کمال الدين صاحب مرکزی ناظم خان له بل طرف ته وو نو اميرِ بادشاه پخپله مسئله باندې ټينګيدلو سره پخپل پوره طاقت سره کمال الدين صاحب سره شو . برائې کرم د قرآن او حديثو په رڼا کښې مونږ ته تحرير کړئ چه

مونږ دهغوی سره څه رویه اختیارکړو . اوس مو اوریدلی دی چه صحیح هم دی چه کمال الدین صاحب دهغه جماعت امیرجوړ شوې دې او امیرِ بادشاه مرکزی ناظم جوړ شوې دې . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د حضرت امام مسلم رحمه الله مقام خو ډیر اوچت دې . یو ادنیٰ مسلمان ته هم کافریا مشرک وئیلو والا پخپله کافرکیږی . لهذا امیربادشاه چه ترڅوپورې د توبې او د تجدیدِ ایمان اعلان اونه کړی ترهغه وخته پورې دهغه سره هیڅ قسمه تعلق ساتل جائز نه دی . که چرته امیرِ بادشاه واده کړې وی نو دهغه نکاح دې هم دوباره اوکړې شی . د تجدیدِ ایمان نه پس تجدیدِ نکاح هم لازمه ده . کمال الدین صاحب اگرچه د تکفیرِ مؤمن په شان د کفر مرتکب نه شو مگر امیربادشاه سره د تعاون د وجه نه فاسق دې ترڅوپورې ئې چه د هغه سره د تعلق کټکولو اعلان نه وی کړې ترهغه وخته پورې دهغه سره هم هیڅ قسمه تعلق ساتل جائز نه دی حکومت باندې فرض دی چه هغه دواړو ته عبرتناکه سزا ورکړی ، ((عن ابن عمر رضی الله عنه تعالى عنهما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ايما رجل قال لاخيه كافر فقد باء بها احدهما (متفق عليه) وعن ابى ذر رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا يرمى رجل رجلاً بالفسوق ولا يرميه بالكفر الا ارتدت عليه ان لم يكن صاحب كذلك (رواه البخارى) فقط والله تعالى اعلم)).

۱۰ جمادی الاخره ۹۵ هجری




# رسائل



بسم الله الرحمن الرحيم

لا يؤمن احدكم حتى يكون هواه تبعاً لما جئت به (شرح السنه)

## د ایمان او کفر معیار

(۱) گاندهی لره مسلمان گنړل کفر دې

(۲) د مسلمان تعریف

**سوال** . گاندهی په جلسه عام کښې تقریرکولوسره دا الفاظ اووئیل (( خما به فکر کښې نه راځی چه زه کلمه ولې نه وایم ؟ زه ولې د الله تعالیٰ تعریف ونه کړم ؟ ولې زه محمد

لره خپل پیغمبرونه گڼم ، ماته د ټولو مذاهبو او د دهرمیانو په مهاتماؤ او پیغمبرانو کښې شک دې» آیا په مذکوره الفاظو وئیلو سره گاندهي ته مسلمان وئیلې کیدلې شي اوکه نه ؟ جواب زر راکړئ ځکه چه ماته د یو تبلیغي رسالې دپاره ضروري دې . بینوابالبرهان اجرکم الرحمٰن .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ایمان تعریف دادې :((هو التصديق بما علم مجيء الرسول صلى الله عليه وسلم به اجمالا فيما علم اجمالا وتفصيلاً فيما علم تفصيلاً)) په دې تعریف کښې د تصدیق نه مراد تصدیقِ منطقي یعنې معرفت او ادراکِ نسبت نه دې اونه تصدیقِ لغوی ((أي نسبة الصدق الى القائل)) مراد دې بلکه مقصود تصدیقِ شرعي دې چه د امورِ ثلاثه مجموعه دې (۱) معرفت (۲) تصدیقِ لغوی (۳) انقیادواستسلام . یا داسې اووئیلې شي د ایمان حقیقت صرف تصدیقِ لغوی دې . مگر د ایمان د تحقق دپاره معرفت او انقیاد شرط دې . عندالجهمیه ایمان صرف معرفت دې ((وهو مردود لانها غير اختيارية والايمان اختياري لكونه مكلفاً به والتكليف على الافعال الاختيارية. وايضاً قوله تعالى فاعلم انه لا اله الا الله اى اكتسبه يدل على كون الايمان كسبياً والمعرفة ليست بكسبية وايضاً المعرفة كيف والتصديق فعل وبينهما تضاد.))

د قرآن کریم نصوص هم د جهمیه تردید کوی ﴿وَجَحَدُوا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَا أَنفُسُهُمْ ظُلْمًا وَعُلُوًّا. الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْرِفُونَهُ كَمَا يَعْرِفُونَ أَبْنَاءَهُمْ. فَلَمَّا جَاءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ﴾ وقال الله تعالى حكايةً عن موسى عليه السلام مخاطباً لفرعون ﴿قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنزَلَ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ بَصَائِرَ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُورًا﴾

غرض دا چه د ایمان دپاره صرف معرفت کافي نه دې بلکه تصدیق او انقیاد هم لازمي دې .

((قال امام الحرمين في الارشاد التصديق على التحقيق كلام النفس ولكن لا يثبت الامع العلم الخ قال ابن الهمام وظاهر عبارة الاشعري في هذا السياق ان التصديق كلام للنفس مشروط بالمعرفة يلزم من عدمها عدمه ويحتمل ان الايمان هو المجموع من المعرفة والكلام النفسي فيكون كل منهما ركنا من الايمان فلا بد في تحقيق الايمان على كلا الاحتمالين من المعرفة اعني ادراك مطابقة دعوى النبي صلى الله عليه وسلم للواقع ومن امر آخر هو الاستسلام الباطن والانقياد بقبول الاوامر والنواهي المستلزم للاجلال وعدم الاستخفاف (مع التبري من الكفر الذي كان فيه) وهذا الاستسلام الباطن هو المراد بكلام النفس وبه عبر المصنف (اي

الغزالی) فی کلامه علی الایمان والاسلام وانما قلنا انه لا بد مع المعرفة من الامر الاخر وهو الاستسلام الباطن لما تقدم من ثبوت مجرد تلك المعرفة مع قیام الکفر الخ قال العلامة الزبیدی فی شرح الاحیاء الاظهر ان التصدیق قول للنفس غیر المعرفة لان المفهوم من التصدیق لغة هو نسبة الصدق الی القائل وهو فعل والمعرفة لیست فعلاً انما هی من قبیل الکیف المقابل لمقولة الفعل فلزم خروج کل من الانقیاد الذی هو الاستسلام ومن المعرفة عن مفهوم التصدیق لغةً مع ثبوت اعتبارهما شرعاً فی الایمان وثبوت اعتبارهما بهذا الوجه علی انهما جزءان لمفهومه شرعا او شرطان لاعتباره لاجراء احکامه شرعاً والثانی هو الاوجه اذ فی الاول یلزم نقل الایمان من المعنی اللغوی الی معنی اخر شرعی وهو بلا دلیل یقتضی وقوعه منتف لانه بخلاف الاصل فلا یصار الیه الابدلیل بل قد کثر فی الکتاب والسنة طلبه من العرب واجاب من جاب الیه دون استفسار عن معناه وان وقع استفسار منهم فانما هو عن متعلق الایمان وعدم تحقق الایمان بدون المعرفة والاستسلام لایستلزم جزئیتهما لمفهومه شرعا لجواز ان یکونا شرطین للایمان شرعا وحقیقة التصدیق بالامور الخاصة بالمعنی اللغوی واذا تقرر ذلك ظهر ثبوت التصدیق لغة بدونهما مع الکفر الذی هو ضد الایمان اهـ وناقش فی بعضه العلامة الالوسی فقال بعد الکلام وحاصل ذلك منع حصول التصدیق للمعاند فانه ضد الانکار وانما الحاصل له المعرفة التی هی ضد النکارة والجهالة وقد اتفقوا علی ان تلك المعرفة خارجة عن التصدیق اللغوی وهو المعتبر فی الایمان)). (فتح الملهم ج:)

غرض داچه تصدیقِ لغوی د معرفت او انقیاد نه جدا شی یا نه شی بهرکیف د ایمان د تحقق دپاره انقیاد ضروری دي د انقیاد نه سوا زبانی اقرار هم معتبرنه دي . اظهارِ حق کنبې د هرقل الفاظ ځومره اهمیت لری مګر بیا هم د فقدانِ انقیاد د وجه نه هغه ته مؤمن نه شی وئیلې کیدلې . د انبیاءِ کرامو علیهم السلام د محاسنو بیانولو نه پس هرقل وائی ((فان کان ما تقول حق فسیملك موضع قدمی هاتین وقد کنت اعلم انه خارج ولم اکن اظن انه منکم فلو انی اعلم ان اخلص الیه لتجشمت لقاءه ولو کنت عنده لغسلت عن قدمیه. قال هرقل هذا ملك هذه الامة قد ظهر . اتاه کتاب من صاحبه یوافق رای هرقل علی خروج النبی صلی الله علیه وسلم وانه نبی)) فقال یا معشر الروم هل لکم فی الفلاح والرشد وان یثبت ملککم فتبایعوا هذا النبی)) (بخاری)

وفی الفتح عن الطبرانی ((فقال قیصر اعرف انه کذلك وفی مرسل ابن اسحاق ان هرقل قال ویحك والله انی اعلم انه نبی مرسل) وفی مسند احمد انه کتب من تبوك الی النبی صلی الله علیه وسلم ان مسلم فقال النبی صلی

الله عليه وسلم كذب بل هو على نصرانيته وفى كتاب الاموال لابى عبيد بسند صحيح من مرسل بكر بن عبدالله المزنى نحوه ولفظه فقال كذب عدوالله ليس بمسلم فعلى هذا اطلاق صاحب الاستيعاب انه امن اى اظهر التصديق لكنه لم يستمر عليه ولم يعمل بمقتضاه بل شح بملكه واثر الفانية على الباقية فالله الموفق (فتح البارى جلد [1])

قال النووى لا عذر فيما قال لوانى اعلم لتجشمت لانه قد عرف صدق النبى صلى الله عليه وسلم وانه شح بالملك ورغب فى الرياسة فاثرهما على الاسلام وقد جاء ذلك مصرحا به فى صحيح البخارى (عمدة القارى ج)

هرقل زبان سره هم اقراراوکړو او ليکل ئې هم واستول چه زه مسلمان يم . سره ددې نه حضورصلى الله عليه وسلم دهغه تکذيب اوفرمائيلو . ځکه چه انقياد نه وو . حضرت ورقه بن نوفل باندې هم صرف دهغه د اقرار او الفاظو د وجه نه د مسلمان کيدلو حکم نه شي لګيدلې . بلکه د حضورصلى الله عليه وسلم د روئې نه د دوى ايمان ثابت نه شو . ابوطالب د حضورصلى الله عليه وسلم ځومره عقيدتمند وو د اسلام په اشاعت کښې ځومره تکاليف برداشت کړه په قول اوعمل دواړو سره ئې د حضورصلى الله عليه وسلم مدد کولو . حضورصلى الله عليه وسلم ته خطاب کولوسره فرمائى :

| | |
|---|---|
| فدعوتنى و علمت انک صادق | ولقد صدقت وكنت قبل امينا |
| والله لن يصلوا اليک بجمعهم | حتى اوسد فى التراب دفينا |
| فاصدع بامرک لاتصبک غضاضة | وابشر بذاک وقر منک عيونا |
| و لقد علمت بان دين محمد | من خير اديان البرية دينا |
| لولا الملامة او حذارى سبة | لوجدتنى سمحاً بذاک مبينا |

ددې نه باوجود د انقياد نه کيدلو د وجه نه ابوطالب ته مؤمن نه شي وئيلې کيدلې

((نقل فى فتح الملهم قول الحافظ ابن تيمية بل ابوطالب ونحوه كانوا مع محبتهم للنبى صلى الله عليه وسلم ومحبتهم لعلو كلمته من عدم حسدهم له وعلمهم بصدقه واقرارهم به حملهم الفهم لدين قومهم و كراهتهم لفراقه وذم قريش لهم على عدم اتباعه على دينه ( ) القويم وهديه المستقيم فلم يتركوا الايمان لعدم العلم بل لهوى الانفس فكيف يقال معهذا ان كل كافر انما كفر لعدم علمه بالله اهو على هذا فالكفر انواع كفر انكار و كفر جحود و كفر عناد و كفر نفاق يعنى ان كان التكذيب اى عدم التسليم بالقلب وباللسان جميعاً فهو الاول

---

[1] - الظاهر والله اعلم انه وقع ههنا فى عبارة فتح الملهم سقط وهو ((ان لا يقبلوا)) او نحوه محمد

وان کان باللسان فقط مع حصول المعرفة والاستیقان بالقلب فهو الثانی وان کان مع حصول المعرفة والاقرار باللسان لمحض العناد فهو الثالث))

«هرقل . ابوطالب او ګاندهی په دې قسم کښې داخل دی» ((وان کان بالقلب فقط مع التسلیم والانقیاد باللسان فهو الرابع)) (فتح الملهم ج)

پورته بیان سره معلومه شوه چه د ایمان د تحقق دپاره انقیاد لازم دې . بیا وجود او تحقق انقیاد دپاره اصل دادې چه هغه هرسرې داسې اوګنې چه ده څپل اصل دین پریخودلو سره اسلام کښې داخل شوې دې . ددې قانون تفصیل په شرح التنویرکښې په دې الفاظو سره مسطور دی :

((الکفار اصناف خمسة من ینکر الصانع کالدهریة ومن ینکر الوحدانیة کالثنویة ومن یقر لهما لکن ینکر بعثة الرسل کالفلاسفة ومن ینکر الکل کالوثنیة ومن یقر بالکل ینکر ~~عموم~~ رسالة المصطفی صلی الله علیه وسلم کالعیسویة فیکتفی فی الاولین بقول لا اله الا الله وفی الثالث بقول محمد رسول الله وفی الرابع باحدهما وفی الخامس بهما مع التبری عن کل دین یخالف دین الاسلام (الی قوله) والذی افتی به صحته بالشهادتین بلا تبر لان التلفظ بها صار علامة علی الاسلام فیقتل ان رجع مالم یعد، وفی الشامیة تحت (قوله فیکتفی فی الاولین الخ) لان هؤلاء یمتنعون عن الشهادة اصلا فاذا اقروا بها فذلك دلیل ایمانهم . وتحت قوله (وفی الثالث الخ) فلو قال لا اله الا الله لا یحکم باسلامه لانه منکر الرسالة ولا یمتنع عن هذه المقالة ولو قال اشهد ان محمدا رسول الله یحکم باسلامه لانه یمتنع عن الشهادة فکان الاقرار بها دلیل الایمان وتحت قوله فی الرابع الخ) علله فی الدر لانه منکر الامرین جمیعا فبایهما شهد دخل فی الاسلام (الی قوله) وزاد انه لو قال انا مسلم فهو مسلم لان عبدة الاوثان لا یدعون هذا الوصف لانفسهم بل یبرءون علی قصد المغایظة للمسلمین وکذا لو قال انا علی دین محمد او علی الحنفیة او علی دین الاسلام وتحت (قوله وفی الخامس الخ) والظاهر انه لو اتی بالشهادتین وصرح بتعمیم الرسالة الی بنی اسرائیل وغیرهم او قال اشهد ان محمدا رسول الله الی کافة الخلق الانس والجن یکفی عن التبری ایضا کما صرح به الشافعیة وتحت عنوان (تنبیه) قلت وانما اکتفی علیه الصلوة والسلام بالشهادتین لان هل زمانه کانوا منکرین الرسالته اصلا کما یاتی ثم اعلم انه یؤخذ من مسئلة العیسوی ان من کان کفره بانکار امر ضروری کحرمة الخمر مثلا انه لابد من تبرئه مما کان یعتقده لانه کان یقر بالشهادتین معه فلابد من تبرئه منه کما صرح به الشافعیة وهو ظاهر وتحت (قوله بل عم فی الدر الخ) اما الیهود والنصاری فکان اسلامهم فی زمنه صلی الله علیه وسلم بالشهادتین لانهم کانوا ینکرون رسالته صلی

الله علیه وسلم واما الیوم ببلاد العراق فلا یحکم باسلامه بهما مالم یقل تبرأت عن دینی ودخلت فی دین الاسلام لانهم یقولون انه رسول الی العرب والعجم لا الی بنی اسرائیل کذا صرح به محمد وفی شرح السیر للسرخسی واما الیهود والنصاری الیوم بین ظهرانی المسلمین اذا اتی واحد منهم بالشهادتین لا یکون مسلما لانهم جمیعا یقولون هذا لیس من نصرانی ولا یهودی عند لسانه الا قال هذه الکلمة فاذا استفسر ته قال رسول الله الیکم لا الی بنی اسرائیل، ثم قال ولو قال انا مسلم لم یکن مسلما بهذا لان کل فریق یدعی ذلك لنفسه فالمسلم هو المستسلم للحق وکل ذی دین یدعی انه منقاد للحق وکان شیخنا الامام یقول لا المجوس فی دیارنا فان من یقول منهم انا مسلم یصیر مسلما لانهم یأبون هذه الصفة ویسبون به اولادهم ویقولون یا مسلمان اهـ (الی قوله) فعلی هذا یقال کذلك فی الیهود والنصاری فی بلادنا فانهم یمتنعون عن قول مسلم حتی ان احدهم اذا اراد منع نفسه عن امر یقول ان فعلته اکون مسلما فاذا قال انا مسلم طائعا فهو دلیل اسلامه وان لم یسمع منه النطق بالشهادتین کما صرح به فی شرح السیر فیمن صلی بجماعة فانه یحکم باسلامه وبانه یحکم بالاسلام بمجرد سیما المسلمین فی حق الصلوة علیه اذا مات وکذا یمتنعون من النطق بالشهادتین اشد الامتناع فاذا اتی بهما طائعا یجب الحکم باسلامه لانه فوق السیما اذ لا شك ان محمداً انما اشترط التبری بناء علی ماکان فی زمنه من اقرارهم بالرسالة علی خلاف ما کان زمن النبی صلی الله علیه وسلم من انکارها فاذا انکروها فی زماننا وامتنعوا من النطق بالشهادتین یجب ان یرجع الامر الی ماکان فی زمنه صلی الله علیه وسلم اذ لم یبق وجه للعدول عنه علی ان محمداً انما حکم علی ماکان فی بلاد العراق لا مطلقا کما یوهمهما فی الدر وعن هذا فکر العلامة قاسم انه سئل عن سامری (الی قوله) فانهم ذکروا ان بعض الیهود یخصص رسالة نبینا صلی الله علیه وسلم بالعرب وهذا یکفیه مجرد الشهادتین بخلاف من ینکر الرسالة اصلا وبعض من اعمی الله قلبه جعلهم فرقة واحدة فی جمیع البلاد حتی حکم فی نصرانی منکر للرسالة تلفظ بالشهادتین ببقائه علی النصرانیة لانه لم یتبرا، والحاصل ان الذی یجب التعویل علیه انه ان جهل حاله یستفسر عنه وان علم کما فی زماننا فالامر ظاهر وقال تحت (قوله لان التلفظ بها صار علامة علی الاسلام الخ) افاد بقوله صار الی ان ما کان فی زمن الامام محمد تغیر لانهم فی زمنه ماکانوا یمتنعون عن النطق بها فلم تکن علامة الاسلام فلذا شرط معها التبری اما فی زمن قاری الهدایة فقد صارت علامة الاسلام لانه لا یأتی بها الا المسلم کما فی زماننا هذا

[1] - هرقل هم ددي وجه نه «انا مسلم» لیکلي وو. ۱۲ منه

(الى قوله) وهذا يجب المصير اليه في ديار المصر بالقاهرة لانه لا يسمع من اهل الكتاب فيها الشهادتان ولنا البته
محمد بالعراق (الى قوله) احمد بن كمال باشا (الى قوله) وهو المعمول به فليحفظ وقال محمد عدوان (ها ثمه اعلم
ان الاسلام يكون بالفعل ايضا كالصلوة بجماعة اوالاقرار بها اوالاذان في بعض المسلم اوالحج وشهود
المناسك لا الصلوة وحده ومجرد الاحرام بحر وقدم الشارح ذلك نظماً في اول كتاب الصلوة وقدمنا الكلام
عليه مستوفى وذكرنا هناك انه لا فرق في الاسلام بالفعل بين العيسوي وغيره والمراد انه دليل الاسلام
فيحكم على فاعل ذلك به الخ)) (ردالمحتار كتاب الجهاد باب المرتد ج۳)

د درمختار او ردالمحتار په مفصل عبارت سره ښکاره شوه چه د تحقق انقیاد مدار په عرف
باندې دې . موجوده عرف کښې د ګاندهي په شان الفاظو ویلو والا ته مسلمان متصور کیږي نه .
او نه د غیر مذاهب خلق داسې الفاظو نه احتراز او امتناع کوي . د ګاندهي نه هم زیات د اسلام
او د رسول الله صلی الله علیه وسلم تعریف د مختلفو مذاهبو نه په نثراونظم کښې ثابت دی . د
داسې الفاظو ویلو نه پس هم عوام هندو ومسلم او خود متکلم هم خپل ځان هندوګڼي . چاته د
هغه د مسلمانیدلو وهم هم نه راځي . هم ددې وجه نه د ګاندهي د مرګ نه پس دمسلمانانو په
علماؤ کښې چه د ګاندهي د سوانحو نه ښه واقفه وو بلکه په سیات کښې دهغه ملګري وو هغوی
په ګاندهي باندې د جنازې د مونځ اود تجهیزاو تکفین مطالبه اونه کړه . او نه هندو قوم هغه لره
مسلمان ګڼلو سره دهغه د تجهیز نه بیزاري ښکاره کړه . غرض داچه د ګاندهي ددې الفاظو د وجه
نه نه مسلمانانو هغه لره مسلمان اوګڼلو او نه هندوانو . او نه خود ګاندهي ته دا علم اوخیال اوشو
چه په دې الفاظو سره هغه مسلمان شوې دې . ځکه چه آئنده د مسلمانانو طریقې اختیارکړې .
یاکم ازکم د مرګ په وخت کښې د جنازې د مونځ وصیت اوکړي داسې الفاظ بلکه ددې نه هم زیات
همیشه په نورو مذهبونو کښې پوهه کسان وائي راوائي مګر یو سړې هم هغه لره مسلمان نه ګڼي .
موجوده عرف کښې مسلمانان هله پوهیږي چه صفا اووائي چه زه مسلمان یم یا بلا استهزاء
شهادتین اووائي او آئنده د مسلمانانو طریقې اختیارکړي د ګاندهي دا جمله «ماته د ټولو مذاهبو
او د هندوانو په مهاتماؤ او پیغمبرانو کښې وسواس دې» دا عقیده د اسلام خلاف ده . ددې ظاهره
ده چه ګاندهي موجوده جمله مذاهب اسلام . عیسائیت . یهودیت او هندوسکهـ وغیره لره حق ګڼل
ددې آخري جملې نه د ګاندهي عقیده اودهغه په اسلام کښې نه داخلیدل صفا ښکاره دی

حقیقت دادې چه ګاندهي داسې قسم اعلان صرف مسلمانانو ته د دهوکې ورکولو دپاره کولو
ځکه چه ښکاري د ښکار ګیرولو دپاره دهغه آواز کوي که چرته ګاندي واقعةً اسلام لره حق ګڼلو
نو دهغه دپاره قبول اسلام نه مانع څه وو ؟ دده په شان مکار او قطعي کافر لره مسلمان ګڼل کفر

دي . فقط والله یهدی من یشاء الی صراط مستقیم
**۲۲ ربیع الاخر سنه ۷۴ هجری**

# د مسلمان تعریف

**سوال** - یو رساله « د مسلمان تعریف » ارسالِ خدمت ده . ددې د تلبیساتو څه قدري تفصیل سره د امتِ مسلمه رهنمائی اوکړئ .

**الجواب باسم ملهم الصواب** - د مضمون نګار دا وئیل چه عمربهردرس او تدریس او فتوی ورکولو والا علماء دهغه سوال نه ډیر پریشانه شو او ډیر په تکلیف سره جواب ورکړئ شو او متضاد جوابات ورکولو سره پخپله ئې د یو بل تکذیب اوکړو . د خلافِ حقیقت کیدلو نه علاوه د اسلام او مسلمانانو دپاره سخت او خطرناک حده پورې ضرری هم دې . حقیقت کښې دا بې دینه حکومت اود رسوائي زمانه د منیرکمیشن تلبیس او غلطه پروپیګنډه ده

مضمونِ نګار ته دا خیال رانغلو چه هرکله د قرآن . حدیث او د فقهې په خدمت کښې عمرونه صرف کولو والا او د اسلام د قوانینو ماهرینو هم ترنه پورې د اسلام او د مسلمانانو صحیح مفهوم بیان نه کړئ شو نو اسلام ته په دنیا کښې د باقی پاتې کیدلو څه حق دې ؟ دا تحریر د اسلام په قصرکښې د درز اچولو . دهغې بنیادونو لره د متزلزل کولو د اسلام د دښمنانو ته د منجنیق مهیا کولو مترادف دې . مضمون نګار هغه سره د پوهې یا بغیر د پوهې نه هغه انداز سره لیکلې دې چه د هغې نه د قرآن . حدیث او د فقهې ټول په ټوله ماهرینو باندې د مضمونِ نګار د فوقیت دعوی مترشح کیږی ده د هغه تحریر د مضرت طرف ته توجه اونه کړه او دائې سوچ اونه کړو چه په دې سره هغوی څه اموندل ؟

اے چشم اشکبار ذرا دیکھ تو سہی ... یہ گھر جو بہ رہا ہے کہیں تیرا گھر نہ ہو

د مسلمانانو په تعریف کښې د علماءِ دین د عباراتو اختلاف لره تضاد سره تعبیر کول د جهالت یا د تلبیس نه سوا هیڅ نه دې . که چرته اختلاف عبارت اختلاف حقیقت لره مستلزم دې نو خود مضمون نګار د مسلمان په تعبیر کښې داسې آیتونه او حدیثونو ولې پیش کړی دی چه دهغې عبارتونه مختلف دی . په هغې باندې دا شبهه ولې اونه شوه چه آیتونه او حدیثونه متضاد دی نو دا نتیجه ولې رااونه ښکلې شوه چه معاذبالله . الله اودهغه رسول صلی الله علیه وسلم هم د مسلمان صحیح تعریف بیان نه کړئ شو .

د مضمونِ نګار د مسلمان د تعریف هغه طریقې لره غلط ګرځول بالکل په ځائ دی چه کومې

فرقې لره د اسلام نه خارجول یا هغې لره کافر ګرځول وی هغې لره دې د ورانديې نه په ذهن کښې محفوظ کړی بیا دې د « مسلمان » یو داسې تعریف رااوباسی چه په هغې کښې صرف هم هغه فرقې داخلې شی چه هغې لره تعریف کولو والا داخلول غواړی صحیح طریقه هم داده چه بالکل خالی الذهن کیدلو سره کتاب او سنت سره د مسلمان تعریف اخذ کړئ شی او ددې دې مطلقاً پرواه اونه کړئ شی چه دهغې په رڼا کښې څوک مسلمان او څوک کافر ګرځولې کیږی ، کومه فرقه چه هم په دې تعریف کښې راشی هغه مسلمان او کومه چه ددې نه اوځی هغه به کافر وی ۰

بطریق مذکور قرآن او حدیث کښې غورکولو سره ثابتیږی چه د اسلام تعریف ډیر جامع ، مختصر او ډیر آسان دې یعنې د الله تعالی هرحکم لره صحیح منل اسلام دې علماؤ ددې تعبیر داسې کړې دې ((آمنت بالله کما هو باسمائه وصفاته وقبلت جمیع احکامه)) د قرآن او حدیث په نصوصو کښې چرته چه ایمان بالله سره نور څیزونه مذکور دی مثلاً ملائکې ، کتابونه ، رسولان ، یوم آخرت وغیره دا مستقلاً مراد نه دی او نه په دې کښې حصر مقصود دې بلکه دا ټول د ایمان بالله یو څو اهمې شعبې دی . ددې اهمیت ښکاره کولو په خاطر ئې هغوی لره مستقلاً ذکر کړئ شوی دی استیعاب مقصود نه دې دا امر د ظاهر او مسلم کیدلو نه علاوه ددې وجه نه هم د انکار ګنجائش نه لری چه که چرته ددې جمله امورو مستقل حیثیت تسلیم کړئ شی ، نو په قرآن او حدیثو کښې د اسلام په تعریف کښې هرمقام باندې د هغه ټولو امورو ذکر لازم وو حالانکه داسې نه دی بلکه مختلفو مقاماتو باندې دا امور ډیر لږ مذکور دی تردې پورې چه په ډیرو ځایونو کښې خو صرف ایمان بالله باندې اکتفاء کړئ شوې ده هم دغه شان ایمان بالرسول صلی الله علیه وسلم دپاره صرف د رسالت تصدیق کافی نه دې بلکه د دوی د هرحکم تصدیق لازم دې علی هذا القیاس د ملائکو او د یوم آخرت صرف وجود او وقوع لره منل کافی نه دی بلکه د دوی سره متعلق د الله تعالی د هر هدایت تصدیق ضروری دې ۰

اوس سوال پیدا کیږی چه دا علم څنګه وی چه فلانکې حکم د الله تعالی حکم دې دپاره چه د هغه منکر لره کافر اوګرځولې شی نو ددې دوه طریقې دی .

(۱) د الله تعالی د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه بلاواسطه یو حکم معلوم وی .

(۲) تواترسره او یقینی او بدیهی طورباندې دا ثابته شی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حکم ورکړې وو دې دواړو طریقو سره حاصلیدلو والا علم ته علم بدیهی ضرور وئیلې کیږی او داسې احکامو ته د «ضررویاتو د دین» نوم ورکولې کیږی چه په هغې کښې د یو نه انکار هم کفر دې مثلاً چا د حضور صلی الله علیه وسلم نه روبرو بلاواسطه دا حکم واوریدلو چه زه خاتم النبین یم څما نه پس به نبی نه وی » هغه اوریدلو والا ته که چرته د دې حکم په صدق کښې ذره قدرې تردد هم وی نو هغه به بلاشبهه کافروی بعینه هم داسې چه کله دا حکم مونږ پورې په طریقی د تواتر

د منکر په حکم کښې د حکم الهی کیدل ثابت شو نو ددې راورسیدلو او بداهةً او ضرورةً ددې به عجائبو کښې یو اعجوبه مضمون نگار دخپلې مجموعې کومې شبهې څه گنجائش نشته دې . د دین ضروریات څه عالم پیش نه کړې شو . ضروریاتو فهرست یو دا هم لیکلې ده چه د دین د زیات دی چه دهغې د احکام ضروریه دومره فهرست تیارکړې شي پنځه لس نه دی چه د هغې او د استیعاب استیعاب به اونه کړې شي حماقت اوکړی هم نو فهرست د لیکلو که چرته څوک هم مخې ته راشی احکام شرعیه نه چه کومې مسئلې ضرورت هم نشته دې دومره ضروری دی چه د ضروریاتو کښې داخل دی یا نه مونږ به دهغې په باره کښې بلاتردد دا اووئیلې شو چه دا د دین په . الحمدلله د دین علماؤ ته په دې فیصلې کښې کله هم څه اشکال پیښیدلې نه شي .

مضون نگار د مسلمانانو د تعریف دپاره د قرآن کریم شپږ آیتونه ذکر کړی دی

(۱) ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا﴾ (۸. ۴)

(۲) ﴿فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنزِلَ بِعِلْمِ اللَّهِ وَأَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ (۱۱. ۴)

(۳) ﴿وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي قَالُوا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ﴾ (۵. ۱۱۱)

(۴) ﴿قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ (۲۱. ۱۰۸)

(۵) ﴿فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ﴾ (۹. ۱۱)

(۲) ﴿فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ الَّذِي يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَكَلِمَاتِهِ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾ (۷. ۱۵۸)

په دې کښې د ایمان بالله په تفسیرکښې د « الله توحید » لیکلي دي حالانکه د ایمان بالله نه مراد دادې چه د الله تعالی په ټولو احکامو باندې ایمان راوړی توحید به هم صرف هغه معتبر وی چه د الله تعالی د حکم مطابق وی گنې یهود او نصاری حضرت عزیراو حضرت عیسی علیهما السلام لره د الله تعالی ځامن گرځولو او د عقیدې د تثلیث نه باوجود مدعی توحید وو . بلکه مشرکان هم د ډیرو معبودانو د عبادت کولو باوجود خپلو ځانونو لره ئې موحد گڼل او علانیه به ئې وئیل ((لاشريك لك الا شريكا هو لك تملكه وما ملك)) مگر دهغوی توحید ځکه معتبر نه دی چه د

حکمِ الهی مطابق نه دي . مونږ وړاندې تحریرکړی دی چه اسلام سره متعلق آیتونو او حدیثونو کښې مقصود صرف ایمان بالله دې او بقیه امور هم ددې ایمان بالله اهمې شعبې دی . پیشِ نظر شپږو آیتونو کښې خو بعضې داسې امور مثلاً مونځ کول ، زکوة ورکول وغیره هم مذکور دی چه غالباً مضمونِ نګار به هم ددې پریخودونکی ته کافر نه وائی .

ددې نه پس مضمونِ نګار د مسلمان د تعریف دپاره یو څو حدیثونه پیش کړی دی

(۱) حدیثِ جبریل علیه السلام

(۲) بنی الاسلام علی خمس - الخ

د دې دواړو حدیثونو مضمون هم هغه دې چه د قرآن په آیتونو کښې دې ، دهغې تشریح وړاندې نیره شوې ده .

(۳) کوم سړی چه زمونږه مونځ اوکړو او زمونږه قبله ئې اومنله او زمونږ ذبیحه ئې اوخوړله نو هغه مسلمان دې . (مشکوة) په دې حدیث کښې د مسلمان تعریف نه دې بلکه علامات ښودلې شوی دی . که چرته دې لره د مسلمان تعریف اوګرځولې شی نو د توحید او د رسالت منکر به هم کافر نه وی لهذا لازماً وئیل پیښیږی چه دا امور د مسلمان په علاماتو کښې دی او محض په علاماتو سره حقیقت نه ثابتیږی . مثلاً دروغو وئیلو ته حضورکریم صلی الله علیه وسلم د منافق علامات وئیلی دی مګر د پوره امت اتفاق دې چه یو مسلمان هم محض دروغو وئیلو سره منافق کیږی نه . نیز د زمانې په اختلاف سره علامات بدلیږی رابدلیږی . د حضورکریم صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې یو مسلمان هم د دین د ضروریاتو منکر نه وو ددې وجه نه پاسنی امور د مسلمان حتمی علامت به شمیریدلو . ددې دا مطلب نه دې چه چا کښې یو وجه ښکاره کیدلو نه پس هم محض د علاماتِ مذکوره په بناء باندې هغه به مسلمان ګڼلې کیږی . که چرته دا مسلمان تعریف دې نو آخر منافقانو خو هم دا کار کولو هغوی لره مسلمان ولې شمیرنه کړې شو ؟ حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه د صحابه کرامو رضی الله عنهم په اجماع سره د زکوة د مانعینو سره جهاد اوکړو حالانکه هغوی د مذکوره افعالو پابند وو مسیلمه کذاب هم مونځ کولو اذان به ئې ورکولو اود هغه په اذان کښې به د اشهدان محمدارسول الله اعلان هم وو (تاریخ طبری ص ۲۴۴ ج ۳) بیا هغوی ولې د مسلمانانو د فهرست نه اوویستلې شو ؟

(۴) بخاری کښې چه یو خلې یو صاحب ته یو مسلمان غلام آزادول وو هغه احمقه شان یو حبشیه د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راوستله او پوښتنه ئې اوکړه چه آیا دا مسلمان دې ؟ دوی صلی الله علیه وسلم د هغه نه پوښتنه اوکړه چه الله چرته دې ؟ هغه اسمان طرف ته ګوته اوچت کړه . دوی صلی الله علیه وسلم هغه صاحب ته اوفرمائیل بوځه دې مسلمان دې .

دا حدیث په بخاری کښې نشته دې ، البته صحیح مسلم ، ابوداود او نسائی کښې ددې قسم

روایت شته دي مگر د هغې په آخرکښې دا هم دی چه دوی صلی الله علیه وسلم پوښتنه اوکړه چه زه څوک یم ؟ هغه اووئیل چه تاسو رسول الله ئې . چه کله هغه وینځې د دوی د رسالت د اقرار په ضمن کښې د دوی د هر حکم تصدیق اوکړو نو دهغې په اسلام کښې څه شبهه پاتې کیدلې شی ؟

مضمونِ نګار چه دحدیث څومره حصه نقل کړې ده، دحدیث په یو کتاب کښې هم په هغې باندې اکتفاء اونه کړې شوه . که چرته هغه معیارِ اسلام اوګرځولې شی نو په مسلمان او کافر کښې به څه فرق او امتیاز باقي پاتې نه شی . منکرینِ توحید ، منکرینِ رسالت ، یهود ، نصاریٰ او مشرکان ټول په ټوله د مسلمان په تعریف کښې داخل شو . «ماشاء الله» دادې د نن سبا وسعتِ نظر .

ددې نه پس بلاحواله لیکی «التاویل نوع القبول» یعنی تاویل د قبول او تسلیم یو شکل دې مشهوره ده چه مؤول کافر نه دې ، مگر ښه پوهه شئ چه دا دومره عام نه دې څومره چه په ظاهره دهغې نه مفهومیږی بلکه دهغې نه داسې تاویل مراد دې چه انکارِ تواتر لره مستلزم نه وی ، چونکه د قرآن الفاظ ټول متواتر دی او مفهوم اکثر متواتر نه دی ددې وجه نه وئیلې کیږی چه که چرته څوک د قرآن د لفظ انکار اونه کړی صرف په مفهوم کښې تاویل اوکړی نو هغه کافر نه دې څکه چه د امرِ متواتر انکار موجود نه شو مگر د قرآن ډیر مفهومات هم متواتر دی ، لهذا په هغه مفهومِ متواتر کښې به تاویل کولو والا کافر کیږی چنانچه څنګه چه لفظ «خاتم النبیین» متواتر دې هم دغه شان ددې مفهوم هم تواتر سره ثابت دې ، لهذا دده په مفهوم کښې تاویل کول د انکارِ متواتر کیدلو د وجه نه بلاشبهه کفر دې ،

تاریخ الخلفاء کښې دی چه په خوارجو کښې یو سړې مامون الرشید ته راغلو ، مامون دهغه نه د عامة المسلمین نه د مخالفت د وجې پوښتنه اوکړه . هغه اووئیل چه کتاب الله کښې دی « **ومن لم یحکم بما انزل الله فاولئک هم الکافرون** » او حضرت علی او حضرت معاویه رضی الله عنهما یو انسان لره حکم تسلیم کړو ، مامون اووئیل چه تاسو سره دهغه د قرآن کیدلو څه دلیل دې ؟ هغه جواب ورکړو چه اجماعِ امت ، مامون اووئیل چه څنګه تاسو دهغه د قرآن کیدلو دپاره اجماع لره دلیل ګرځولې دې هم دغه شان دهغه د مفهوم په تعیین کښې هم هم دغه شان اجماع لره حجت تسلیم کړئ ، هغه اووئیل چه تاسو صحیح اووئیل . **تاریخ الخلفاء مجتبائی ص ۲۲۲،**

غرض داچه د اسلام اوکفر اصل معیار تواترسره ثابتیدلو والا د دین د ضروریاتو تصدیق یا تکذیب دې . لهذا د بدیهی اود متواتر مفهوم انکار او په هغې کښې تاویل کفر دې البته د غیرِ متواتر مفهوم مؤول کافر نه دې .

په آخرکښې ئې دامام غزالی رحمة الله علیه قول ذکرکړو . « کوم ځائ پورې چه کیدلې شی د اهلِ قبلې د تکفیرنه خپل ژبانونه بند کړئ . ترڅوپورې چه هغوی د لااله الا الله محمد رسول صلی الله علیه وسلم قبلنا وي او دهغه خلاف نه کوي ، او خلاف دادې چه

لره يو عذر سره يا بغيرد عذر نه كاذب اوگرځوي . »

بعينه هم دا مفهوم د دين د ضرورياتو د انكار دي . كه چرته يو سړي د داسې مسئلې انكار كوي چه دهغې حكم رسول الله صلى الله عليه وسلم كيدل دومره بديهي او يقيني وي چه گويا هغه بالمشافهه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلى دى او بيا دهغې نه انكار كوي نو آيا دې د رسول الله صلى الله عليه وسلم تكذيب نه كوي ؟

په دې كښې كلام دې چه د هر متواتر انكار كفر دې يا صرف د داسې متواتر انكار ته به كفر وئيلې كيږي چه دهغه په دين كښې كيدل دومره مشهور وي چه عوام هم هغه پيژني . په دې باره كښې قولِ فيصل دادې چه داسې امرِ متواتر چه هغه لره صرف خواص پيژني عوامو كښې دهغې شهرت نه وي شوې دهغه انكار د عوامو دپاره خو موجبِ كفر نه دې ځكه چه دا حكم دهغوي په حق كښې قطعي نه دې ، البته هغه خواص چه دهغه د تواتر او د قطعيت علم لري دهغوي د پاره دهغې انكار موجبِ تكفيردې .

((قال ابن الهمام رحمه الله تعالى واما ثبت قطعا ولم يبلغ حد الضرورة كاستحقاق بنت الابن السدس مع البنت الصلبيه باجماع المسلمين فظاهر كلام الحنفية الاكفار بجحده بانهم لم يشترطوا فى الاكفار سوى القطع فى الثبوت (الى قوله) ويجب حمله على ما اذا علم المنكر ثبوته قطعا)) (سامره ص ٣٠)

## د اهلِ قبله تكفير

د عقائدو په كتابونو كښې دى چه د « اهلِ قبلې تكفيرجائز نه دې » په دې سره ملحدين ددې فريب وركولو كوشش كوي چه ترڅو پورې يو سړې بيت الله لره خپله قبله تسليموى دهغې تكفيرجائز نه دې ، دا محض تلبيس ابليس دې . حقيقت دادې چه د متكلمينو په اصطلاح كښې اهلِ اسلام ته قبله وئيلې كيږي او دا دواړه لقبونه مترادف دى او ددې مطلب دادې چه ترڅوپورې يو مسلمان د دين په ضرورياتو كښې د يو نه هم انكار نه كوي ترهغه وخته پورې دهغه تكفيرجائز نه دې . چنانچه د شرح العقائد النسفيه په شرح نبراس كښې دى :

((اهل القبلة فى اصطلاح المتكلمين من يصدق بضروريات الدين (الى قوله) فمن انكر شيئا من الضروريات (الى قوله) لم يكن من اهل القبلة ولو كان مجاهدا بالطاعات وكذلك من باشر شيئا من امارات التكذيب كسجود الصنم والاهانة بامر شرعى والاستهزاء عليه فليس من اهل القبلة)) (نبراس ص ٥٧٢)

وقال الملا على القارى رحمه الله تعالى اعلم ان المراد باهل القبلة الذين اتفقوا على ما هو من ضروريات الدين كحدوث العالم وحشر الاجساد وعلم الله تعالى بالكليات والجزئيات وما اشبه ذلك من المسائل المهمات فمن واظب طول عمره على الطاعات والعبادات مع اعتقاد قدم العالم ونفى الحشر اونفى علمه سبحانه

وتعالی بالجزئیات لا یکون من اهل القبلة وان المراد بعدم تکفیر احد من اهل القبلة عند اهل السنة انه لا یکفر احد مالم یوجد شیء من امارات الکفر وعلاماته ولم یصدر منه شیء من موجباته (شرح الفقه الاکبر)

وفی شرح المقاصد فلا نزاع فی کفر اهل القبلة المواظب طول العمر علی الطاعات باعتقاد قدم العالم ونفی الحشر ونفی العلم بالجزئیات ونحو ذلک وکذلک بصدور شیء من موجبات الکفر عنه (شرح المقاصد المبحث السابع)

وقال العلاء رحمه الله تعالی کل من کان من قبلتنا (الی قوله) وان انکر بعض ما علم من الدین ضرورة کفر،

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی لا خلاف فی کفر المخالف فی ضروریات الاسلام من حدوث العالم وحشر الاجساد ونفی العلم بالجزئیات وان کان من اهل القبلة المواظب طول عمره علی الطاعات کما فی شرح التحریر (ردالمحتار ص ج)

د متکلمینو په نزد دا مسئله دامي پیدا شوه چه معتزله او خوارج د کبیرې مرتکب لره د دائرې د اسلام نه خارج کرځوی . دهغوی په تردید کښې متکلمین فرمائی چه اهلِ قبله یعنې د اهلِ اسلام تکفیر د ارتکابِ کبیرې د وجه نه جائز نه دي ترڅوپورې چه هغه د دین د ضروریاتو نه انکار او نه کړی نقل فی شرح التحریر عن ابی حنیفة رحمه الله تعالی لا نکفر اهل القبلة بذنب (شرح التحریر ص) وقال فی النبراس ومعنی عدم تکفیر اهل القبلة ان لا یکفر بارتکاب المعاصی ولا بانکار الاسلام الخفیة غیر المشهور فهذا ما حققه المحققون (نبراس ص)

وقال ابن تیمیه فی کتاب الایمان ونحن اذا قلنا اهل السنة متفقون علی ان لا یکفر بالذنب فانما نرید به المعاصی کالزنا والشرب اهـ واوضحه القونوی فی شرح العقیدة الطحاویة.

د متکلمینو د هغه قول ماخذ دا حدیث دي.

عن انس بن مالک رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ثلاثة من اصل الایمان الکف عمن قال لا اله الا الله ولا تکفره بذنب ولا تخرجه من الاسلام بعمل الحدیث (ابوداود ص ج)

چونکه د متکلمینو اود فقهاؤ رحمهم الله تعالی په نزد د اهل القبله بمعنی اهل الاسلام اصطلاح او عدم تکفیرد اهل القبله دا مطلب چه ,, ارتکاب کبیره موجب د کفر نه دي ،، ډیر مشهور او عام معروف دي . خکه چه بعضې کرت صرف دومره لیکی چه د ,, اهلِ قبله تکفیر جائز نه دي ،، او اعتماداً علی فهم المخاطب دهغې د تشریح ضرورت نه ګنی .

## د بحث خلاصه

خلاصه داده چه د الله تعالی د ټولو احکامو تصدیق کولو والا مسلمان دي او د یو حکم نه

انکار کولو والا کافر دې ددې معروف تعبیر دادې چه د ټولو ضروریات د دین د تصدیق نوم اسلام دې او په هغې کښې د یو نه انکار کول کفر دې . فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد

۱۲ جمادی الاولی ۱۳۹۳ هجری

مَنْ أَحَبَّهُمْ فَبِحُبِّي أَحَبَّهُمْ وَمَنْ أَبْغَضَهُمْ فَبِبُغْضِي أَبْغَضَهُمْ

# د شیعه ګانو حقیقت

- آیا شیعه ګان مسلمانان دی ؟
- د شیعه ګانو په کتابونو کښې د شیخینو اونورو صحابه کرامو تعریف
- شیعه ګانو ته یوه مهمه مشوره

## آیا شیعه ګان مسلمانان دې ؟

**سوال** :- آیا شیعه ګان علی مسلمان دی اوکه کافر ؟ که چرته کافر وی نو د اهلِ کتاب په حکم کښې به وی اوکه نه ؟ که چرته اهلِ کتاب وی نو دهغوی د زنانو سره نکاح او هغوی سره تعلقات ساتل جائز دی اوکه نه ؟ بینوا الحق المبین واوضحوا بالبرهان المتین . اجرکم علی الله یوم الدین

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : که چرته څوک حضرت علی رضي الله عنه لره باقی د ټولو صحابو رضی الله عنهم نه افضل ګڼی نو صرف په دومره اعتقاد سره هغه کافر کیږی نه . مګر د نن سبا شیعه ګانو صرف دا اعتقاد نه دې دهغوی د معتقداتو په کفر کښې څه شبهه نشته دې . چنانچه د تحریفِ قرآن مسئله دهغوی په نزد په مسلماتو او په متواتراتو کښې ده . دهغې تصریحات ستاسو په خدمت کښې پیش کولې شی :

## د تحریفِ قرآن عقیده

(۱) المستفاد من مجموع هذه الاخبار وغيره من الروايات من طريق اهل البيت عليهم السلام ان القرآن الذى بين اظهرنا ليس بتمامه كما انزل على محمد صلى الله عليه وسلم بل منه ما هو خلاف ما انزل الله ومنه ما هو مغير ومحرف وانه قد حذف منه اشياء كثيرة منها اسم على فى كثير من المواضع ومنها غير ذلك (ديباچه تفسير صافى)

ترجمه د اهلِ بیت په واسطې سره رسیدلی روایاتو سره دا خبره پایه ثبوت پورې رسیدلې چه کوم قرآن زمونږ سره دې هغه پوره په پوره داسې نه دې څنګه چه په محمد صلی الله علیه وسلم

باندې نازل شوې وو ، بلکه په هغې کښې څه حصه داسې ده چه د الله تعالی د نازل شوی قرآن خلاف ده ، او په څه حصه کښې تغیراو تحریف واقع شوې دې او په هغې کښې څه ډیر څیزونه ویستلې شوی دی .

په هغې کښې مثلاً د حضرت علی رضی الله عنه نوم دې چه په قرآن کښې د ډیرو مقاماتو نه ویستلې شوې دې ، دهغې نه علاوه هم څه ډیر داسې مقامات دی :

**(۲) لو شرحت لك كل ما اسقط وحرف وبدل مما يجرى هذا المجرى لطال وظهر ما تحظر التقية اظهاره**

**(احتجاج طبرسی ص۱۳۰ طبع ایران)**

ترجمه : قرآن نه چه څه ویستلې شوی دی یا په هغې کښې تحریف او ردوبدل وغیره کړئ شوې دې که چرته زه هغه ټول بیان کړم نوخبره به ډیره اوږده شی او هغه څیز ښکاره شی چه د هغې د اظهار تقیه اجازت نه ورکوی .

**(۳) قال السيد المحدث الجزائری ما معناه ان الاصحاب قد اطبقوا على صحة الاخبار المستفيضة المتواترة الدالة بصريحها على وقوع التحريف فى القران (فصل الخطاب علامه نوری ص۳۰)**

ترجمه : محدث جزائری وائی چه صراحةً تحریفِ قرآن باندې دلالت کولو والا د متواتر روایتونو په صحت باندې (زمونږه) د ټولو اصحابو اتفاق دې ، (فصل الخطاب از علامه نوری ص ۳۰)

**(۴) ان الاخبار الدالة على ذلك تزيد على الفى حديث وادعى استفاضتها جماعة كالمفيد والمحقق الداماد والعلامة المجلسى (فصل الخطاب علامه نوری ص۳۰)**

ترجمه : تحریفِ قرآن باندې دلالت کولو والا روایات د دوو زرو نه زیات دی ، یو جماعت دهغې د متواترکیدلو دعوی کړې ده لکه مفید ، محقق داماد ، او علامه مجلسی وغیره

**(۵) عن على بن سويد السائى قال كتب الى ابو الحسن الاول وهو فى السجن واما ماذ كرت يا على ممن تاخذ معالم دينك لا تاخذن معالم دينك عن غير شيعتنا فانك ان تعديتهم اخذت دينك عن الخائنين الذين خانوا الله ورسوله وخانوا اماناتهم انهم اوتمنوا على كتاب الله جل وعلى فحرفوه وبدلوه فعليهم لعنة الله ولعنة ملائكته ولعنة ابائى الكرام البررة ولعنتى ولعنة شيعتى الى يوم القيامة (رجال كشى طبع بمبئی ۱۳۱۷ هجرى تاليف ابو عمرو محمد بن عمر عبد العزيز الكشى ص۴ سطر۲)**

ترجمه: علی بن سوید وائی ابوالحسن اول ماته د جیل نه اولیکل «ای علی : دا چه تاسو لیکلی دی چه د دین بنیادی خبرې د چا نه زده کړم ؟ دخپل دین خبرې زمونږه د شیعه نه سوا د بل چا نه مه حاصلوه ځکه چه که چرته ، ته دهغوی نه سوا نورو ته لاړې نوګویا تا د داسې خیانت والو نه علم

حاصل کړو چه هغوی د الله اود الله رسول (صلی الله علیه وسلم) سره خیانت کړې دې او کوم امانتونه چه هغوی سره ایخودلې شوی وو په هغې کښې ئې خیانت اوکړو هغوی سره کتاب الله امانت وو هغوی په هغې کښې تحریف اوکړو او په هغې کښې تبدیلیانې اوکړې او په هغوی باندې دې د الله ملائکو ، ځما دنیکو آباء واجدادو ، ځما او ځما د ټولو شیعه ګانو قیامته پورې لعنت وی»

(۶) مراد بقرآن قرآن محفوظ نزد ائمه علیهم السلام ست که هفده هزارآیت ست (صافی شرح کافی ج ۲، کتاب فضل القرآن جزء ششم طبع نولکشور ص ۶۵)

د قرآن نه مراد هغه قرآن دې چه ائمو سره محفوظ دې چه دهغې اویازره آیتونه دی (صافی شرح کافی ج ۲ کتاب فضل القرآن جزء ششم ص ۶۵ طبع نولکشور)

موجوده قرآن کښې ۶۲۳۶ آیتونه دی . دهغې مطلب دا نه دې چه دوه حصې قرآن غائب دې او یو حصه موجود دې ، بلکه مطلب دادې چه د موجوده قرآن نه درې چنده زیات قرآن پوره په پوره غائب دې چه په هغې کښې د قرآن یوحرف هم نشته دې ، چنانچه آئنده روایت کښې د دې صراحت راروان دې ، په دې سره ثابته شوه چه د شیعه مذهب مطابق موجوده قرآن کښې یو حرف هم صحیح نه دې ، په دې روایت کښې که چرته حرف د لفظ په تاویل هم اوکړئ شی نو بیا هم ثابته شوه چه د شیعه په قرآن کښې ایمان ، کفر ، مونځ ، روژه ، حج ، زکوٰة ، حشر ونشر ، حساب وکتاب ، جنت ودزوخ حتیٰ چه الله ، رسول او ملائکه کښې یو لفظ هم نشته دې .

(۷) عن ابی عبدالله علیه السلام وان عندنا مصحف فاطمة ومایدریهم ما مصحف فاطمة قال مصحف فیه مثل قرانکم ثلاث مرات والله مافیه من قرانکم حرف واحد (اصول کافی ص ۱۴۶ طبع نولکشور ، صافی کتاب الحجة جزء ص ۱۴۰)

ترجمه : ابوعبدالله نه روایت دې چه مونږ سره د حضرت فاطمې رضی الله عنها مصحف دې . هغوی ته څه معلومه دی چه هغه څنګه مصحف دې ، مصحف فاطمه رضی الله عنها ستاسو د قرآن نه درې چنده زیات دې اود الله په قسم ستاسو د قرآن یو حرف هم په هغې کښې نشته دې .

(۸) عن ابی عبدالله علیه السلام قال ان القران جاء به جبریل علیه السلام الی محمد صلی الله علیه وسلم سبعة عشر الف آیة (اصول کافی ص ۶۷۱)

ترجمه : د ابوعبدالله نه روایت دې چه کوم قرآن جبریل علیه السلام محمد صلی الله علیه وسلم ته راوړې وو دهغې اویا زره آیتونه وو . (اصول کافی ص ۶۷۱)

(۹) قال یا ابا محمد وان عندنا الجامعة ومایدریهم ما الجامعة قال قلت جعلت فداك ما الجامعة قال صحیفة طولها سبعون ذراعا بذراع رسول الله صلی الله علیه وسلم (صافی جزء ۲ کتاب الحجة ص ۱۴۰، اصول کافی ص ۱۴۶)

ترجمه: اومحمد وائی چه څما استاذ ماته اووئیل . ای ابومحمد بې شک مونږ سره الجامعه ده . هغوی ته څه معلوم چه جامعه څه دې ؟ ما اووئیل زه په تا باندې قربان جامعه څه دې ؟ هغوی اووئیل هغه صحیفه ده چه دهغې اوږدوالې د حضور صلی الله علیه وسلم په گزسره اویا گزه دې .

(۱۰) قال ان عندنا الجفر وما يدريهم ما الجفر قال قلت وما الجفر قال وعاء من ادم فيه علم النبيين والوصيين وعلم العلماء الذين مضوا من بني اسرائيل (اصول كافي ص ۱۴۲)

ترجمه: راوی وائی چه څما استاذ اووئیل بې شک مونږ سره «جفر» دې . هغوی ته څه معلوم چه «جفر» څه دې ؟ ما اووئیل «جفر» څه دې ؟ نو وې فرمائیل هغه د یو څرمې تهیلۍ ده چه په هغې کښې د نبیانو . وصیانو اود بنی اسرائیلو د علماؤ علوم دی . (اصول کافی ص ۱۴۲)

(۱۱) عن ابي بصير عن ابي عبد الله عليه السلام قال قلت له قول الله عزوجل هذا كتابنا ينطق عليكم بالحق قال فقال ان الكتاب لم ينطق ولن ينطق ولكن رسول الله هو الناطق بالكتاب قال عزوجل ذكره هذا رسولنا ينطق عليكم بالحق. قال فقلت جعلت فداك انا لا نقرؤها هكذا فقال هكذا والله نزل جبريل على محمد ولكنه حرف من كتابه عزوجل (روضه كليني ص ۵۰)

ترجمه: ابوبصیر . د عبدالله نه روایت کوی چه ما هغه ته اووئیل چه د الله تعالی ارشاد دې «**هذا كتابنا عليكم بالحق**» دا زمونږه کتاب (اعمال نامه) به ستاسو خلاف تهیک تهیک وائی ابوعبدالله اووئیل چه کتاب نه کلام کړې دې اونه به اوکړی . البته رسول الله صلی الله علیه وسلم کتاب وائی . الله تعالی خو « **هذا رسولنا ينطق عليكم بالحق** » فرمائیلې دی . ما اووئیل زه په تاباندې قربان . مونږ داسې نه وایو . نو وې فرمائیل په الله قسم جبریل علیه السلام په محمد صلی الله علیه وسلم باندې هم داسې (هذا رسولنا) نازل کړې وو لیکن د الله تعالی په کتاب کښې تحریف کولو سره ئې دا بدل کړې شوې دې .

(۱۲) امر موسى كاظم لعلي بن سويد ولا تلتمس دين من ليس من شيعتك ولا تحبن دينهم فانهم الخائنون الذين خانوا الله ورسوله وخانوا اماناتهم وتدري ما خانوا اماناتهم ائتمنوا على كتاب الله فحرفوه وبدلوه (روضه كليني ص ۱۲۵)

ترجمه: موسیٰ کاظم علی بن سوید ته حکم ورکړو چه څوک ستاسو په شیعه گانو کښې نه دی دهغوی نه دین مه حاصلوه اود هغوی دین لره دوست ماساته څکه چه دوی هم هغه خیانت کولو والا دی چاچه د الله اود الله رسول (صلی الله علیه وسلم) سره خیانت کړې دې او پخپل امانتونو کښې ئې خیانت کړې دې . تاته معلومه دی هغه څه امانتونه دی ؟ هغه لره په کتاب الله باندې امین جوړ کړې شو . هغوی په هغه کښې تحریف اوکړو او هغه ئې بدل کړو .

(۳) عن ابی جعفر قال نزل القران اربعة ارباع ربع فینا وربع فی عدونا وربع سنن وامثال وربع فرائض واحکام شرع (اصول کافی ص ۶۲۹)

ترجمه: ابو جعفر وائی چه د قرآن څلور حصې نازلې شوې وې . یو ربع زمونږ په باره کښې او یو ربع زمونږ د دښمنانو په باره کښې او یو ربع کښې سنن او امثال دی او یو ربع کښې فرائض او احکام شرع دی . (اصول کافی ۶۲۹)

(۴) عن ابی بصیر عن ابی عبدالله علیه السلام فی قول الله عزوجل ومن یطع الله ورسوله فی ولایة علی والائمة من بعده فقد فاز فوزا عظیما هکذا انزلت (اصول کافی ص ۲۶۲)

ابو بصیر . د ابو عبدالله نه روایت کوی چه آیت ﴿وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا﴾ داسې نازل شوې وو ((ومن یطع الله ورسوله فی ولایة علی والائمة من بعده فقد فاز فوزا عظیماً ))

(۵) عن ابی عبدالله علیه السلام فی قوله ولقد عهدنا الی ادم من قبل کلمات فی محمد وعلی وفاطمة والحسن والحسین والائمة من ذریتهم فنسی هکذا والله نزلت علی محمد (اصول کافی ص ۲۶۳)

ترجمه: ابو عبدالله په قسم سره وائی چه آیت ((**ولقد عهدنا الی ادم من قبل فنسی** )) داسې نازل شوې وو ((ولقد عهدنا الی ادم من قبل کلمات فی محمد وعلی وفاطمة والحسن والحسین والائمة من ذریتهم فنسی ))

(۶) نزل جبرئیل بهذه الایة علی محمد صلی الله علیه وسلم واله بئس ما اشتروا به انفسهم ان یکفروا ما انزل الله فی علی بغیا (حواله بالا)

ترجمه: جبرئیل آیت (( **بئس ما اشتروا به انفسهم ان یکفروا بما انزل الله بغیا** )) محمد صلی الله علیه وسلم باندې داسې نازل کړې وو ((بئس ما اشتروا به انفسهم ان یکفروا بما انزل الله فی علی بغیا ))

(۷) نزل جبرئیل بهذه الایة محمد صلی الله علیه وسلم هکذا فبدل الذین ظلموا ال محمد حقهم قولا غیر الذی قیل لهم فانزلنا علی الذین ظلموا ال محمد حقهم رجزا من السماء بما کانوا یفسقون (اصول کافی ص ۲۶۴)

ترجمه: جبرئیل علیه السلام آیت (( **فبدل الذین ظلموا قولاً غیر الذی قیل لهم فانزلنا علی الذین ظلموا رجزاً من السماء بما کانوا یفسقون** )) لره په محمد صلی الله علیه وسلم باندې داسې نازل کړې وو ((فبدل الذین ظلموا ال محمد حقهم قولا غیر الذی قیل لهم فانزلنا علی الذین ظلموا ال محمد حقهم رجزا من السماء بما کانوا یفسقون))

([illegible]) هکذا انزلت هذه الاية: ((ولو انهم فعلوا ما يوعظون به في علي لكان خيرا لهم)) (اصول کافی ص [illegible])

ترجمه: آیت «**ولو انهم فعلوا ما يوعظون به لكان خيرا لهم**» داسې نازل شوې وو. ((ولو انهم فعلوا ما يوعظون به في علي لكان خيرا لهم))

([illegible]) نزل جبرئيل هذه الاية هكذا فابى اكثر الناس بولاية علي الا كفورا (اصول کافی ص [illegible])

ترجمه: حضرت جبرئیل علیه السلام آیت «**فابى اكثرالناس الا كفورا**» داسې نازل کړې وو ((فابى اكثر الناس بولاية علي الا كفورا))

([illegible]) ونزل جبرئيل بهذه الاية ((وقل الحق من ربكم في ولاية علي)) (الى قوله) ((انا اعتدنا للظالمين آل محمد نارا)) (اصول کافی ص [illegible])

ترجمه: جبرئیل علیه السلام آیت «**وقل الحق من ربكم (الى قوله) انا اعتدنا للظالمين نارا**» داسې نازل کړې وو ((وقل الحق من ربكم في ولاية علي (الى قوله) انا اعتدنا للظالمين ال محمد نارا))

([illegible]) نزل جبرئيل بهذه الاية هكذا: ((ان الذين ظلموا ال محمد حقهم لم يكن الله ليغفر لهم ولا ليهديهم طريقا)) (الى قوله) ((يا ايها الناس قد جاء كم الرسول بالحق من ربكم في ولاية علي فامنوا خيرا لكم وان تكفروا بولايته فان لله ما في السموات وما في الارض)) (اصول کافی ص [illegible])

جبرئیل علیه السلام آیت «**ان الذين ظلموا لم يكن الله ليغفرلهم ولا ليهديهم طريقا (الى قوله) يا ايهاالناس قد جاء كم الرسول بالحق من ربكم فامنوا خيرالكم وان تكفروا فان لله مافى السموات وما فى الارض**» لره داسې نازل کړې وو ((ان الذين ظلموا ال محمد حقهم لم يكن الله ليغفر لهم ولا ليهديهم طريقا (الى قوله) يا ايها الناس قد جاء كم الرسول بالحق من ربكم في ولاية علي فامنوا خيرا لكم وان تكفروا بولايته فان الله ما في السموات وما في الارض))

([illegible]) ((ستعلمون يا معشر المكذبين حيث انبأتكم رسالة ربي في ولاية علي عليه السلام والائمة من بعده من هو في ضلال مبين كذا انزلت)) (اصول کافی ص [illegible])

ترجمه: آیت ستعلمون من هو فى ضلال مبين» داسې نازل شوې وو ((ستعلمون يا معشر المكذبين حيث انبأتكم رسالة ربي في ولاية علي عليه السلام والائمة من بعده من هو في ضلال مبين كذا انزلت))

([illegible]) نزل جبرئيل بهذه الاية على محمد صلى الله عليه وسلم واله هكذا ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا في علي فاتوا بسورة من مثله. (اصول کافی ص [illegible])

جبرئيل عليه السلام آيت « **ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فاتوا بسورة من مثله** » داسې نازل كړې وو . ((ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا في علي فاتوا بسورة من مثله))

(۳) نزل جبرئيل على محمد صلى الله عليه وسلم بهذه الاية يا ايها الذين اوتوا الكتاب امنوا بما نزلنا في علي نورا مبينا (اصول كافي ص ۲۷)

جبرئيل عليه السلام آيت « **يا ايها الذين اوتو ا الكتاب امنوا بما نزلنا** » داسې نازل كړې وو ((يا ايها الذين اوتوا الكتاب امنوا بما نزلنا في علي نورا مبينا))

(۳) اخرج المصحف الذي كتبه علي عليه السلام الى الناس حين فرغ منه و كتب فقال لهم هذا كتاب الله عزوجل كما انزل الله على محمد صلى الله عليه وسلم قد جمعته من اللوحين فقالوا هوذا عندنا مصحف جامع فيه القران لاحاجة لنا فيه فقال اما والله ما ترونه بعد يومكم هذا ابدا انما كان علي ان اخبركم حين جمعته لتقرؤه (اصول كافي ص ۳۰)

حضرت على رضى الله عنه چه كله د قرآن ليكلو نه فارغ شو نو هغه ئې خلقو ته راوړو او هغوى ته اوفرمائيل . دا د الله كتاب دې څنګه ئې چه په محمد صلى الله عليه وسلم باندې نازل كړې وو ، ما هغه په دوو لوحو كښې جمع كړې دې ، خلقو اووئيل د الله كتاب خو زمونږ سره دې مونږ ته ستا د راوړلې شوى قرآن حاجت نشته دې ، په دې باندې حضرت على رضى الله عنه په غصه شو او وې ووئيل . اوس د الله په قسم د نن نه پس به تاسو دې لره كله هم اونه وينئ . ځما په ذمه باندې خو صرف دا وو چه كله ما هغه جمع كړو نو تاسو اووايم چه تاسو ئې واثې . »

(۲۲)، (۲۷)، اصول كافى ص ۱۳۹ كښې ئې دوه روايتونه راوړى دى چه د حضرت على رضى الله عنه نه سوا چاته هم ټول قرآن معلوم نه دې .

(۲۸)، اصول كافى ص ۲۷۰ باندې « **لم يكن الذين الخ** » سره متعلق د تحريف روايت دې .

(۲۹)، اصول كافى ص ۲۲۱ باندې هم د يو آيت د تحريف ذكر دې .

(۳۰)، قرآن مجيد كښې داسې خبرې هم دى چه الله نه دى وئيلې (احتجاج طبرسى ص ۲۵)

(۳۱)، موجوده قرآن مجيد لره د اولياء الدين دښمنانو جمع كړې دې (احتجاج طبرسى ص ۱۳۰)

(۳۲)، موجوده قرآن مجيد كښې خلافِ فصاحت او قابلِ نفرت الفاظ موجود دى . (احتجاج طبرسى ص ۳۰)

(۳۳)، قرآن مجيد كښې د سرور كائنات هم سپاكوئ شوې دې ، (حواله بالا)

(۳۴)، د موجوده قرآن ترتيب د الله تعالى د مرضئ خلاف دې . (فصل الخطاب ص ۳۰)

## تقیه

که چرته کوم ځائ یو شیعه مصنف د اعتقادِ تحریف نه انکار کړي دې یا نن سبا یو شیعه انکارکوی نو تقیه باندې مبنی دې ، لکه چه په ذکر شوو عباراتو کښې په ص : نمبر ۲ کښې د احتجاج طبرسی عبارت تیرشو چه د تحریف د عقیدې د اظهار نه تقیه مانع دې ، او تقیه مذهب شیعه کښې دومره مؤکد دې چه څوک تقیه نه کوی هغه بالکل مسلمان نه دې .

(۱) ((لا دين لمن لا تقية له)) (اصول كافى ص [illegible]) یعنی څوک چه تقیه نه کوی هغه بې دینه دې .

(۲) ((لا ایمان لمن لا تقیة له)) (اصول کافی ص [illegible]) یعنی څوک چه تقیه نه کوی هغه بې ایمانه دې .

## مسئله د بداء

د شیعه دا هم عقیده ده چه د الله تعالی په علم کښې غلطی واقع کیدلې شی بلکه کیږی راکیږی ، هغوی هغې ته بداء وائی او د بداء د عقیدې نه زیات دهغوی په مذهب کښې بل عبادت نشته دې

(۱) ((ما عبد الله بشیء مثل البداء)) (اصول کافی ص [illegible]) یعنی د بداء د عقیدې ساتلو برابر د الله تعالی یو عبارت هم نشته .

(۲) ((ما عظم الله بمثل البداء)) (اصول کافی ص [illegible]) یعنی د بداء د عقیدې برابر د الله تعالی هیڅ لویوالې نه دې بیان کړې شوې .

(۳) ((سمعت الرضا علیه السلام قال ما بعث الله نبیا قط الا بتحریم الخمر وان یقر لله بالبداء)) (اصول کافی ص [illegible]) یعنی امام رضا اوفرمائیل الله تعالی هر نبی ته د حرمتِ شراب او د بداء منلو حکم ورکولو سره لیږلې دې

(۴) سمعت ابا عبد الله علیه السلام یقول لو علم الناس ما فی القول بالبداء من الاجر ما فتروا عن الکلام فیه (اصول کافی ص [illegible])

(۵) عن ابی الهاشم الجعفری قال کنت عند ابی الحسن علیه السلام (الی قوله) فقال نعم یا اباهاشم بدا لله فی ابی محمد کما بدا فی موسی (اصول کافی ص [illegible])

ابو عبدالله وائی چه که چرته خلقو ته دا معلومه وې چه د بداء د الله طرف ته د غلطئ نسبت عقیده ساتلو کښې څومره ثواب دې ، نو هغوی به ددې عقیدې نه ، نه حیصاریدل . حضرت علی اوفرمائیل ، الله تعالی د ابو محمد په باره کښې غلطی اوشوه ، څنګه چه د موسیٰ علیه السلام په باره کښې شوې وه .

آیا د مذکوره عقیدو په کفر کیدلو کښې چاته د شبهې گنجائش شته ؟ بلکه د شیعه تکفیر په خپله دهغوی په کتابونوکښې دهغوی د بزرگانو نه منقول دي.

## د شیعه گانو تکفیر په خپله د هغوی د کتابونو نه

(۱) قال ابو عبدالله علیه السلام ما انزل الله اية في المنافقين الا وهي فيمن ينتحل التشيع (رجال کشی ص۲۴۳س۲)

ابوعبدالله وائی چه الله تعالی د منافقانو په باره کښې چه کوم یو آیت هم نازل کړې دي هغه شیعه گانو طرف ته منسوب خلقو په باره کښې دي.

(۲) سمعت علي بن الحسين يقول (الى قوله) ان قوما من شيعتنا سيحبونا حتى يقولوا فينا ما قالت اليهود عزير وما قالت النصارى في عيسى ابن مريم فلاهم منا ولانحن منهم (رجال کشی ص۷۹)

علی بن حسین وائی زمونږ په شیعه گانو کښې یو قوم عنقریب زمونږ سره به د ملگرتیا اظهار کوی تردې پورې چه زمونږ په باره کښې به هغه خبرې کوی چه یهودیانو د عزیر علیه السلام په باره کښې او نصاری د حضرت عیسیٰ علیه السلام په باره کښې اوونیلې. نه هغوی زمونږ نه نه دی او نه زمونږه دهغوی سره څه تعلق شته. (رجال کشی ص ۷۹)

(۳) عن ابن ابي يعفور قال كنت عند الصادق اذ دخل موسى فجلس فقال ابو عبدالله عليه السلام يا ابن ابي يعفور هذا خير ولدي وحبهم الى غيران الله عزوجل يضل به قوما من شيعتنا فانهم قوم لاخلاق لهم في الاخرة ولا يكلمهم الله يوم القيامة ولا يزكيهم ولهم عذاب اليم قلت جعلت فداك قد ارغب قلبي عن هؤلاء قال يضل به قوم من شيعتنا بعد موته جزعا عليه (رجال کشی ص۲۸۸س۸)

ابن ابی یعفور وائی چه زه د امام جعفر صادق سره ووم. موسی کاظم راغلو او کیناستلو نو ابوعبدالله (جعفرصادق) اوونیل ای ابن ابی یعفور! دا (موسی کاظم) زمونږ د ټولو نه بهتر او محبوب ځوئ دې لیکن الله تعالی دده د وجه نه زمونږ په شیعه گانو کښې یوقوم لره گمراه کوی دا شیعه داسې قوم دې چه په آخرت د دوی دپاره هیڅ حصه نشته دې. الله تعالی دهغوی سره د قیامت په ورځ به د رحم اوکرم هیڅ خبره نه کوی اونه به هغوی لره پاکوی. دهغه شیعه گانو دپاره دردناک عذاب دي. ابن ابی یعفور وائی چه ما عرض اوکړو چه خما زړه خو دهغه نه واوړیدلو. ابوعبدالله اوونیل هم دده د وجه نه به زمونږه په شیعه گانوکښې یو قوم دهغه د وفات نه پس په هغه باندې به جزع فزع کولوسره او په ژړیدلو سره به گمراه کیږی. (رجال کشی ص ۲۸۸)

(۴) ان عليا عليه السلام لما فرغ من قتال اهل البصرة اتاه سبعون رجلا من الزط فسلموا عليه وكلموه

بلسانهم فرد عليهم بلسانهم وقال الى لست كما قلتم انا عبد الله مخلوق وقال فابوا عليه وقالوا انه انت انت هو فقال لهم لئن لم ترجعوا عما قلتم فى وتتوبوا الى الله تعالى لاقتلنكم قال فابوا ان يرجعوا ويتوبوا فامر ان يحفر لهم آبار فحفرت ثم خرق بعضها الى بعض ثم قذفهم فيها ثم طم رؤسها ثم الهب النار فى بئر منها ليس فيها احد فدخل الدخان عليهم فماتوا (رجال كشی ص ۱۰۱ طبع كربلا)

حضرت علی رضی الله عنه چه کله د اهلِ بصره د قتال نه فارغه شو نو دوی ته د زط قبیلې نه اویا سرې راغلل . هغوی دوی ته سلام اوکړو او پخپله ژبه کښې ئې خبره اوکړه . دوی هم دهغوی په ژبه کښې جواب ورکړو او وې فرمائیل چه زه داسې نه یم څنګه چه تاسو ګڼړئ . زه د الله بنده او مخلوق یم هغوی ددې نه انکار اوکړو او وې وئیل چه تاسو هم هغه ئې (یعنې الله ئې) حضرت علی رضی الله عنه هغوی ته اوفرمائیل که چرته تاسو دهغې نه ، نه منع کیږئ څه چه ځما په باره کښې وائې او الله تعالی ته توبه نه اوباسئ نو زه به تاسو خلقو لره ضرور وژنم . هغه (شیعه ګانو) د رجوع او توبې نه انکاراوکړو . دوی حکم اوکړو چه دهغوی دپاره دې کوهیان اوکنلې شی . بیا په هغې کښې سورئ کولوسره هغوی ئې پخپل مینځ کښې ملاؤ کړه ، بیا هغوی په هغه کوهیانو کښې غورځولوسره دهغه کوهیانو سرونه بند کړه . بیا ئې په هغه کوهیانوکښې یو کوهی کښې اور بل کړو چه په هغې کښې یو سړې هم نه وو هم دغه شان ئې په بل کوهی کښې په هغوی باندې لوږئ داخل شو او هغوی ټول په ټوله مړه شو . (رجال کشی ص ۱۰۱ طبع کربلا)

(۵) قال ابو الحسن لو ميزت شيعتى ما وجدتهم الا واصفة ولو امتحنتهم لما وجدتهم الا مرتدين الخ (روضه کلینی (۱۰۰))

ابوالحسن (موسی کاظم فرمائی) ، چه زه که چرته خپلو شیعه ګانو لره چانړکولوسره اوګورم نو هغه ټولو لره به صرف خبرو جوړولو والا (منافق) اومومم ، که چرته دهغوی امتحان واخلم نو هغوی به ټول مرتدین راؤځی .

(۶) اگر عدد ایشان (شیعه) به سه صد و سیزده (۳۱۳) کس بسیت اجتماعی رسد امام ظاهر شود . (صافی باب ۵ جزء ۳ ص ۳۶)

که چرته دهغه (شیعه ګانو) مجموعی شمیر درسوه دیارلس پورې اورسی نو امام (مهدی) به ښکاره شی . (صافی باب ۵ جزء ۳ ص ۳۶)

معلومه شوه چه ترننه پورې کله هم درې سوه دیارلس شیعه په یو زمانه کښې جمع نه شو . دا ټول مدعیانِ تشیع منافق دی . اوهغوی امام مهدی لره په غار کښې بند کړې دې اود امام د نه کیدلو د وجه نه د امت د ګمراهئ او په دنیا کښې د فساد او فتنې ذمه داری هم په هغوی باندې ده . که چرته په هغوی کښې هم درې سوه دیارلس صحیح شیعه ګان جوړ شی او امام مهدی ښکاره

شي او تولي جهګړې ختمې شي.

## د اهلِ تشیع په خپل مینځ کښې لعن او طعن

لعن او طعن او کنځلو لره په حدیث کښې علاماتِ نفاق شمیرلې شوي دي او د شیعه خلقو په خپل مینځ کښې په یو بل باندې د لعنت سلسله عامه ده، چنانچه دهغوی په رواتو او بزرګانو باندې په خپله د هغوی بزرګانو نه د لعنت او بددعا نمونه پیش کولې شي.

عن ابی جعفر قال امیر المؤمنین اللهم العن ابنی فلان واعم ابصارهما کما عمیت قلوبهما (قال فی الحاشیه) هما عبدالله بن عباس وعبیدالله بن عباس (رجال کشی ص ۳۳)

**ترجمه** ابوجعفر وائي چه حضرت علي رضی الله عنه اوفرمائیل، اے الله! د فلانکي په دوو خامنو باندې لعنت اوکړې اود هغوی بنائي سلب کړې څنګه چه تا دهغوی زړونو لره ړانده کړي دي. حاشیه کښې لیکلې دي چه دا (دوه خامن) عبدالله بن عباس او عبیدالله بن عباس دي.

(۲) په لاندې مقاماتو کښې د زراره انتهائي درجه تعریف اود مدحې روایات دي. رجال کشی ص ۸۸ س ۷. ص ۹۱ س ۱۴ وس ۱۸. ص ۱۱۳. س ۸. ص ۱۲۲س ۱۱. او ددې په عکس هم رجال کشي کښې ص ۹۹ ص ۱۲ کښې زراره باندې د لعنت روایت دې،

(۳) او رجال کشي ص ۹۱ س ۱۸. ص ۱۲۲س ۱۱ کښې د بریده تعریف او ص ۹۹ص ۱۲ کښې په هغه باندې د لعنت روایت دې،

(۴) او رجال کشي ص ۹۱ س ۱۸، ص ۱۴۲س ۱۱ کښې د محمد بن مسلم د تعریف روایت او ص ۱۳س ۱۱ کښې په هغه باندې د لعنت زوایت دې،

(۵) او رجال کشي ص ۹۱ س ۱۸ کښې د ابوبصیر د تعریف روایت او ص ۱۱۲ س ۲ کښې دهغه د مذمت روایت دې.

(۶) روایتِ ذیل نه ثابتیږي چه محبِ علي خواه هرڅومره لویه ګناه کوي نوبیاهم دهغه مغفرت یقیني دې.

سید بن محمد الحمیری اشعار در تعریف علی ساخته بود پس آن شعر فضیل الرسان درخدمت امام جعفر خواند (الی قوله) قال سمعت نحیبا من وراء الستر وقال من قال هذا الشعر قلت السید بن محمد الحمیری فقال رحمه الله فقلت انی رایته یشرب نبیذا فقال رحمه الله فقلت انی رایته یشرب نبیذ الرساق قال تعنی الخمر قلت نعم قال رحمه الله وما ذلک علی الله ان لا یغفر لمحب علی (رجال کشی ص ۳۳)

**ترجمه** سید بن حمیري د حضرت علي رضی الله عنه په شان کښې څه مداحیه اشعار ونیلي ود فضیل الرسان هغه اشعار جعفرصادق ته اوونیل (الی قوله) ما د ژړا آواز واوریدلو چه د پردې نه

ئې اخوا وونیل دا شعر چا وئیلې دې ۔ ما اووئیل سید بن محمد حمیری ۔ نو هغه اوونیل «الله دې په هغه باندې رحم اوکړی» ما اووئیل چه ما هغه په نبیذو څکلو باندې لیدلې دې ۔ نو هغه بیا اووئیل «الله دې په هغه باندې رحم اوکړی» ما اووئیل چه نبیذالرستاق څکلو باندې مې هغه لیدلې دې نو هغه اووئیل چه هم شراب به ئې څکلی وی ۔ ما اووئیل «او» نو وې وئیل ۔ الله دې په هغه باندې رحم اوکړی دا څنګه کیدلې شی چه الله دې د یومحبِ علی مغفرت اونه کړی۔

او په لاندینی روایت کښې هم دې سید بن محمد ته د قدرتی سزا ملاویدلو ذکر دې حالانکه پورتنی روایت کښې تیرشو چه هغه د شرابو څکلو باوجود د علی د مینې د وجه نه مغفور دې۔

حدثنی ابوالحسین ابن ایوب المروزی قال روی ان السید بن محمد الشاعر اسود وجهه عند الموت فقال هکذا یفعل باولیائکم یا امیر المؤمنین. (رجال کشی ص ۲۰۰ ص ۳)

**توجمه**: ابو الحسین بن ایوب مروزی وائی چه د مرګ په وخت کښې د سید بن محمد مخ تور شوې وو نو هغه اووئیل ۔ اے امیرالمومنین! آیا ستاسو احبابو سره هم دا معامله کولې کیږی؟

په دې سره ثابته شوه چه د شیعه بزرګ دا عقیده ساتله چه دهغوی دِ محبینو مخ د مرګ په وخت کښې توریږی۔

(۲) عن رضا علیه السلام یونس بن عبدالرحمن فی زمانه کسلمان الفارسی فی زمانه (رجال کشی ص ۳۰۳ ص ۲۱)

**توجمه**: رضا وائی چه یونس بن عبدالرحمن پخپله زمانه کښې داسې وو څنګه چه سلمان فارسی رضی الله عنه په خپله زمانه کښې وو (رجال کشی ص ۳۰۳ س ۲۱)

او د سلمان فارسی رضی الله عنه په تعریف کښې رجال کشی ص ۹۱ ص ۱۷ او روضه کلینی ص ۱۱۵ کښې روایت دې ۔ د دواړو روایتونو مجموعی نه د یونس بن عبدالرحمن مدح ثابته شوه ۔ مګر رجال کشی ص ۳۰۹ ص ۲ کښې هم د رضا نه روایت دې چه یونس بن عبدالرحمن ابن زانیه او زندیق دې۔

## له اهل بیت سره دښمنی

دهغه خلقو په خپل مینځ کښې د یوبل سره حسنِ معامله خو پاسنو روایاتو سره معلومه شوه ۔ اوس لږ د مدعیانِ عشق اهلِ بیت حضرت حسین او حضرت فاطمه رضی الله عنهما سرّه متعلق حسن اعتقاد هم اوګوری۔

(۱) عن ابی عبدالله قال ان جبرئیل نزل علی محمد صلی الله علیه وسلم فقال له یا محمد ان الله یبشرک بمولود یولد من فاطمة تقتله امتک من بعدک فقال وعلی ربی السلام لا حاجة لی فی مولود یولد من فاطمة تقتله امتی من بعدی فعرج ثم هبط فقال له مثل ذلک فقال یا جبرئیل وعلی ربی السلام لا حاجة لی فی مولود تقتله امتی من

بعدي فعرج جبرئيل الى السماء ثم هبط فقال يا محمد ان ربك يقرئك السلام ويبشرك بانه جاعل في ذريته الامامة والولاية والوصية فقال قد رضيت ثم ارسل الى فاطمة ان الله يبشرني بمولود يولد لك تقتله امتي من بعدي فارسلت اليه ان لا حاجة لي في مولود تقتله امتك من بعدك فارسل اليها ان الله قد جعل في ذريته الامامة والولاية والوصية فارسلت اليه اني قد رضيت (الى قوله) ولم يرضع الحسين من فاطمة عليها السلام ولا من انثى كان يؤتى به النبي صلى الله عليه وسلم فيضع ابهامه في فيه فيرضع منها ما يكفيه اليومين او الثلاث. (اصول كافي ص۳۴)

**ترجمه:** جعفر صادق فرمائي جبرئيل عليه السلام په حضور صلى الله عليه وسلم باندې نازل شو نو وې فرمائيل . اے محمد (صلى الله عليه وسلم) الله تعالى تاته د يو خوئ بشارت دركوى چه د فاطمې رضى الله عنها نه به پيدا كيږى چه هغه لره به ستاسو نه پس ستا امت شهيد كوى ، حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل ، څما په رب باندې سلام ماته د داسې خوئ ضرورت نشته دې چه د فاطمې نه پيداوى او بيا هغه لره به څما نه پس څما امت شهيد كوى جبرئيل عليه السلام پورته تشريف يوړو او لږ وخت پس بيا نازل شو او بيا ئې هغه خبره اوكړه ، دوى هم هغه جواب بيا وركړو . جبرئيل عليه السلام بيا تشريف يوړو او بيا راغلو او وې فرمائيل چه رب تاته سلام وئيلې دې او هغه تاته بشارت دركوى چه هغه به دهغه په اولاد كښې امامت ، ولايت او وصيت كرخوي نو بيا دوى اوفرمائيل چه اوس زه راضى يم ، ددې نه پس حضور صلى الله عليه وسلم حضرت فاطمې رضى الله عنها ته پيغام واستولو چه الله تعالى ماته د اسې خوئ بشارت راكوى چه ستا نه به پيدا كيږى ، چه هغه لره به څما امت شهيد كوى ، حضرت فاطمې رضى الله عنها جواب وركړو چه ماته د داسې خوئ هيڅ ضرورت نشته دې چه هغه لره به ستا امت شهيد كوى ، دوى بيا پيغام واستولو چه الله تعالى دهغې په اولاد كښې امامت ، ولايت او وصيت كرځولې دې نو بيا حضرت فاطمه رضى الله عنها راضى شوه ( حضرت حسين رضى الله عنه دهغې بدله دخپلې مور بى بى نه واخستله چه ) د هغې نه پس ئې نه دخپلې مور بى بى شوده اوڅكل او نه د بلې ښځې ( يعنې دهغه د جنسِ ښځې نه نفرت پيدا شو چه دده په پيدا ئش باندې ناخوښې وې ) دوى به حضور صلى الله عليه وسلم ته راوستلې كيدل ، دوى صلى الله عليه وسلم به خپله گوته دهغه په خله كښې وركوله . حضرت حسين رضى الله عنه به دهغې نه شوده څكل چه دوه درې ورځې به دهغه دپاره كافى وو

عن ابي عبدالله عليه السلام قال لما حملت فاطمة بالحسين جاء جبرئيل الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال ان فاطمة ستلد غلاماً تقتله امتك من بعدك فلما حملت فاطمة بالحسين كرهت حمله وحين وضعته كرهت وضعه ثم قال ابو عبدالله عليه السلام لم ترفي الدنيا ام تلد غلاما تكرهه ولكنها كرهته لما علمت انه

يقتل قال وفيه نزلت هذه الاية حملته امه كرها ووضعته كرها (حواله بالا)

**ترجمه**: جعفرصادق فرمائی چه کله حضرت فاطمه رضی الله عنها حامله شوه نو حضورصلی الله علیه وسلم ته جبرئیل علیه السلام راغلو او وې وئیل چه د فاطمې رضی الله عنها به عنقریب یو بچې پیدا کیږی چه هغه لره به ستاسو نه پس ستا امت وژنی ، پس چه کله حضرت فاطمه رضی الله عنها حامله شوه نو هغې به هغه حمل لره بدګنلو ، او چه کله ماشوم پیدا شو نو هغه به ئې هم بدګنلو ، جعفر صادق اوفرمائیل چه په دنیا کښې یو مور داسې نشته چه خپل بچې لره بدګنی مګر حضرت فاطمې رضی الله عنها هغه بدګنلو ځکه چه هغه پوهیدله چه دا ماشوم به شهید کیږی (العیاذ بالله د شهادت د نحوست د وجه نه هغې ماشوم لره بدګنلو) جعفر صادق اووئیل چه آیت «**حملته امه کرها**» هم په دې سلسله کښې نازل شوې دې ، «د هغه مور هغه لره د حمل په حالت کښې هم بد اوګنلو او پیدا کیدلو نه پس هم» دا ترجمه د اهلِ تشیع ده ، حالانکه د آیت مفهوم دادې چه هرانسان لره د مور شکرګزار او مطیع کیدل پکار دی ، ځکه چه مور د حالتِ حمل اود پیدائش د وخت تکلیفونه زغملی دی .

یو شاعر هغې لره څه داسې منظوم کړی دی :

| | |
|---|---|
| ہائے رے شبیر مظلومی تری | رو ہوئی تیری بشارت تین بار |
| گرچہ راضی ہو چکی تھیں فاطمہ | پھر بھی تیری ولادت ناگوار |
| کرتی ہے اس رمز کو قرآن میں | امہ کرھا کی آیت آشکار |
| تمکو بھی غیرت کا ایسا جوش تھا | دودھ اس ماں کا نہ چوسا زینہار |

**د شعرونو ترجمه** : اوکتل تاسو چه شیعه مذهب کښې شهادت څومره بد څیز دې او حضرت حسین شهید کیدلو د وجه نه دهغوی په خیال کښې څومره مکروه او مبغوض دې او د حضرت حسین رضی الله عنه او دحضرت فاطمې رضی الله عنها په مینځ کښې څومره عداوت او بغض ثابت کړې شوې دې «اعاذنا الله تعالی منه».

امید دې چه د پاسنی مضمون کتلو نه پس به د شیعه په تکفیر کښې چاته هم شبه پاتې نه شی .

## آیا شیعه ګان اهلِ کتاب دی ؟

د معتزله په باره کښې د تحریرِ شامیه په بناء باندې شیعه ته اهل کتاب وئیل کیدل ، روستو معلومات اوشو چه دا خلق زندیقان دی ، ددې وجه نه هغوی په اهل کتابو کښې داخلول صحیح نه دی ، د زندیق دوه قسمونه دی :

(۱) د منافق په معنی: یعني د اسلام مدعی وی او کفریه عقائد پټوی. قال العلامة التفتازانی رحمه الله تعالی وان کان مع اعترافه بنبوة النبی صلی الله علیه وسلم واظهاره شعائر الاسلام یبطن عقائد هی کفر بالاتفاق خص باسم الزندیق (شرح المقاصد ص۲۰۰ ج۲) وقال الحافظ العینی رحمه الله تعالی واختلف فی تفسیره فقیل هو المبطن للکفر المظهر للاسلام کالمنافق (عمدة القاری ص۱۰ ج۳)

(۲) څوک چه د اسلام په عقائدو کښې تاویلاتِ باطله کوی. داسې سړی اگرچه خپلې عقیدې کفرئې لره د پټې ساتلو کوشش نه کوی بلکه دهغې اشاعت کوی ددې نه باوجود هغه ته زندیق وئیل کیږی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی (قوله المعروف) ای بالزندقة الداعی الذی یدعو الناس الی زندقته اهـ فان قلت کیف یکون معروفا داعیا الی الضلال وقد اعتبر فی مفهومه الشرعی ان یبطن الکفر قلت لا بعد فیه فان الزندیق یموه کفره ویروج عقیدته الفاسدة ویخرجها فی الصورة الصحیحة وهذا المعنی ابطال الکفر فلا ینافی اظهاره الدعوی الی الضلال وکونه معروفا بالضلال اهـ ابن کمال (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۳)

وقال الشاه ولی رحمه الله تعالی ان المخالف للدین الحق ان لم یعترف به ولم یذعن له لا ظاهرا ولا باطنا فهو کافر وان اعترف بلسانه وقلبه علی الکفر فهو المنافق، وان اعترف به ظاهرا لکنه یفسر بعض ما ثبت من الدین ضرورة بخلاف ما فسره الصحابة والتابعون واجتمعت علیه الامة فهو الزندیق (المسوی ص۱۳۰ ج۲)

## د زندیق احکام

(۱) زندیق واجب القتل دي.

(۲) د گرفتارولو نه پس به دهغه توبه قبوله نه وی. د گرفتارئ نه وړاندې قبوله ده. (۳) دهغه سره نکاح کول حرام دی (۴) دهغه ذبیحه حرامه ده.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی وکذا الکافر بسبب الزندقة لا توبة وجعله فی الفتح ظاهر المذهب لکن فی حظر الخانیة الفتوی علی انه اذا اخذ الساحر اوالزندیق المعروف الداعی قبل توبته ثم تاب لم تقبل توبته ویقتل ولو اخذ بعدها قبلت (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۳)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی (تنبیه) یعلم مما هنا حکم الدروز والتیامنة فانهم فی البلاد الشامیة یظهرون الاسلام والصوم والصلوة مع انهم یعتقدون تناسخ الارواح وحل الخمر والزنا وان الالوهیة فی شخص بعد شخص ویجحدون الحشر والصوم والصلوة والحج ویقولون المسمی به غیر المعنی المراد یتکلمون فی

جناب نبينا صلى الله عليه وسلم كلمات فظيعة، وللعلامة المحقق عبد الرحمن العمادي فيهم فتوى مطولة (الى قوله) ونقل عن علماء المذاهب الاربعة انه لا يحل اقرارهم في ديار الاسلام بجزية ولا غيرها ولا تحل مناكحتهم ولا ذبائحهم وفيهم فتوى في الخيرية ايضا فراجعها، والحاصل انهم يصدق عليهم اسم الزنديق والمنافق والملحد) وبعد الظفر بهم لا تقبل توبتهم اصلا (ردالمحتار ص ۳ ج ۳)

## د شيعه ګانو په كتابونوكښې د شيخينو
## او د نورو صحابه كرامو رضى الله عنهم تعريف

(۱) عن فضيل الرسان قال سمعت ابا داود وهو يقول حدثني بريدة الاسلمي قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ان الجنة تشتاق الى ثلاثة قال فجاء ابوبكر فقيل له يا ابابكر انت الصديق وانت الذين اذهما في الغار فلو سالت من هؤلاء الثلاثة (رجال كشى ص ۰)

**ترجمه**: فضيل الرسان وائى چه ما د ابوداؤد نه واوريدل او هغه ته بريده اسلمى اووئيل چه ما د حضور صلى الله عليه وسلم نه اوريدلى دى چه جنت د دريو كسانو دپاره مشتاق دې . ددې نه پس حضرت ابوبكررضى الله عنه تشريف راوړو نو هغه ته اووئيلې شو چه تاسو صديق ئې او په غارِ ثور كښې د حضورصلى الله عليه وسلم رفيق خاص وئ ، كه چرته تاسو دا پوښتنه اوكړئ چه دا درې واړه څوک دى (نو بهتره به وى)

ثم جاء عمر فقيل له يا اباحفص ان رسول الله قال ان الجنة تشتاق الى ثلاثة وانت الفاروق الذى ينطق الملك الخ (رجال كشى ص ۰)

**ترجمه**: ددې نه پس حضرت عمررضى الله عنه راغلو او هغه ته اووئيلې شو چه حضور صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دى چه جنت د دريو كسانو مشتاق دې ، او تاسو داسې فاروق ئې چه ستاپه ژبه باندې فرښتې وينا كوى . يعنې ستاسو د رائې مطابق وحى نازليږى .

(۲) قال بعض المخالفين بحضرة الصادق عليه السلام لرجل من الشيعة ما تقول في العشرة من الصحابة قال اقول فيهم الخير الجميل الذى يحط الله به سيأتى ويرفع به درجاتى قال السائل الحمد لله على ما انقذنى من بغضك كنت اظنك رافضيا يبغض الصحابة فقال الرجل من ابغض واحدا من الصحابة فعليه لعنة الله والملائكة فقال لعلك تتاول ما تقول فيمن ابغض العشر من الصحابة فقال من ابغض العشرة فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين (تفسير عسكرى مطبع جعفرى ۱۳۰۰ هجرى تاليف ابن بابويه ص ۳۰۰)

**ترجمه** بعضې مخالفينو د جعفر صادق په موجودګئ كښې يو شيعه ته اووئيل چه په صحابه

کرامو کښې د عشره مبشره په باره کښې ستا څه رایه ده ؟ نو هغه (شیعه) اووئیل چه زه د هغوی په باره کښې ښه رایه لرم . هم دهغه حسنِ ظن د وجه نه الله تعالی به څما ګناهونه معاف کوی او څما درجې به اوچتوی . پوښتنې والا صاحب اووئیل د الله شکر دې چه هغه مالره ستا د بغض نه نجات راکړو . زه خو تالره د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین سره د عداوت ساتلو د وجه نه رافضی ګنم هغه سړی (شیعه) اووئیل چه څوک د یوصحابی سره بغض لری هغه باندې د الله لعنت . هغه اووئیل چه شاید تاسو په دې قول کښې څه تاویل کوئ . د عشره مبشره په باره کښې اووائې چه ستاسو څه عقیده ده نو هغه اووئیل چه څوک د عشره مبشره سره بغض ساتی هغه باندې د الله ، ملائکو او دټولو خلقو لعنت ،

(۴) فروع کافی جلد ۲ نصف اول ص ۴ باندې هم د ابوبکرصدیق رضی الله عنه فضیلت مذکور دې .

(۵) نهج البلاغة کښې د حضرت علی رضی الله عنه خطبات منقول دی چه په هغې کښې په ډیرو ځایونوکښې د مشائخو مدح مذکور ده د مثال په طور باندې لاندې صفحې ستاسو په خدمت کښې دی : نهج البلاغة جلد ۱ ص ۳۵ ، ۸۵ ، ۱۸۲ ، ۲۴۹ او جلد ۲ ص ۲۴ ، ۳۵ ، ۸۴ ، ۹۸ ، ۱۲۱ ، او جلد ۳ ص ۸

(۶) د شیعه معتبرکتاب تفسیرعسکری کښې د آیت « **اولئک ماکان لهم ان یدخلوها الا خائفین** » لاندې د حضرت عمررضی الله عنه مشهورکرامت « **یاساریة الجبل** » مذکور دې .

**هذا عمر بن الخطاب اذا قیل لهم انه کان علی المنبر یخطب اذنادی فی خلال خطبة یا ساریة الجبل وعجبت الصحابة ماهذا من الکلام الذی فی هذه الخطبة فلما قضی الخطبة والصلوة قالوا قولك فی خطبتك یا ساریة الجبل فقال اعلموا انی وانا اخطب رمیت ببصری حتی رایتهم وقد اصطفوا بین یدی جبل هناك وقد جاء بعض الکفار ولیدور خلف سعد ابن ابی وقاص وسائر من معه من المسلمین فیحیطوا بهم فیقتلوهم فقلت یا ساریة الجبل لیلحق الیه فیمنعهم ذلك من ان یحیطوا به ثم یقاتلوا ومنح الله اخوانکم المؤمنین اکتاف الکافرین وفتح الله علیهم بلادهم فاحفظوا هذا الوقت فیرد علیکم الخبر بذلك وبین المدینة ونها وند اکثر من خمسین یوما .**

**(تفسیر عسکری مطبع جعفری ص ...)**

**ترجمه** : د حضرت عمررضی الله عنه د بزرګئ دا عالم چه په داسې حالت کښې چه دوی په منبرباندې خطبه ورکوله په اوچت اواز سره ئې اووئیل « یا ساریه الجبل » ای د ساریه غره پناه واخله . صحابه کرامو رضی الله عنهم په دې سره تعجب اوکړو ، حضرت عمررضی الله عنه چه کله د خطبې او مانځه نه فارغ شو نو پوښتنې کولو باندې ئې اوفرمائیل چه د خطبې په مینځ کښې ما

نظر واچولو نو اومې کتل چه د مسلمانانو لښکر د غره لاندې صف بسته دي او يو څو کافران د غره په شا راغلل دې دپاره چه حضرت سعد بن ابی وقاص او نورو مسلمانانو باندې حمله اوکړو ، نو هغه وخت ما يا سارية الجبل اووئيل ، دې دپاره چه غره طرف ته پناه اخستلو سره د کافرانو د حملې نه بچ شی او بيا هغوی سره مقابله اوکړی الله تعالی ستاسو ورونړو لره د کافرانو د احاطې نه نجات ورکړو او کافرانو باندې مسلمانانو ته فتح نصيب شوه ، بيا ئې اوفرمائيل دې وخت لره ياد ساتئ تاسو ته به ددې خبر راځی .

د مدينې منورې اود نهاوند ( چرته چه دا لښکر وو ) په مينځ کښې د پنځوسو روځو نه زيات مسافت دې .

**(۶) وعن عروة بن عبدالله قال سألت جعفر محمد بن علی عليهما السلام عن حلية سيوف فقال لا بأس به فقال قد حلی ابوبکر صديق رضی الله عنه سيفه قلت فتقول صديق فوثب وثبة واستقبل القبلة وقال نعم الصديق نعم الصديق، نعم الصديق فمن لم يقل له الصديق فلا صدق الله قولا فی الدنيا والاخرة. (کشف الغمه فی احوال الائمه طبع ايران ص ۳۳۰)**

عروة بن عبدالله وائی ما د امام باقر نه بوښتنه اوکړه چه آيا په تورو باندې سونا چاندی خيژول جائز دی ؟ نو وې وئيل چه جائز دی ځکه چه حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه پخپله توره باندې خيژولی وو ، روای وائی چه ما عرض اوکړو چه تاسو هم صديق وائې ؟ نو امام باقر د غيرت د وجه نه تاؤ راتاؤ شو او پاسيدلو او قبلې طرف ته ئې مخ کولوسره اوفرمائيل ، آو ! زه صديق وايم ، آو ! زه صديق وايم ! آو ! زه صديق وايم ! څوک چه دوی ته صديق نه وائی الله تعالی دې دنيا او آخرت کښې دهغه وينا هيڅ کله رښتيانه کړی .

**نکته** : افسوس چه شيعه ګانو دخپل پنځم امام ابوجعفر محمد بن علی باقر خبره اونه منله او د افضل البشر بعد الانبياء عليهم الصلوٰة والسلام حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه لره نه صرف د صديقيت بلکه د صحابيت د شرف نه هم د غورځولو کوشش کولو سره خپل عاقبت برباده کړو اود امام باقر د بد دعا «**فلاصدق الله له قولاً فی الدنيا والاخرة**» ( الله تعالی دې دهغوی يو خبرې لره هم په دنيا اوآخرت کښې رښتيا نه کړی ) مستحق شو ، د شيعه ګانو په حق کښې دهغه دا دعا قبوله شوه ، چنانچه شيعه خلقو تقيه يعنې دروغو او دهوکو لره خپل مذهب ګرځولې دې او وائی چه څوک دروغ نه وائی ، او دهوکې نه کوی هغه بې دينه دې ، دهغه ايمان معتبر نه دې ، دې سره ئې دا دعوی هم اوکړه چه ټولو انبياء کرامو عليهم السلام هم دروغ وئيل ، ددې نه هم تجاوز کولوسره په الله تعالی باندې ئې هم دروغ اوتړل چه (معاذالله ) د الله تعالی هم غلطی کيږی . تردې پورې راغلل چه الله تعالی طرف ته غلطی لره منسوب کولو نه زيات څه بل عبادت نشته دې دا

دعوى په قولي كذب بياني او افتراء باندې د ژبو خوزولو نقشه وه . بل جانب ته دهغوى د اخلاقي حالاتو دډې نه اندازه اوكړئ چه هغوى دا مذهب اختياركړو چه د ښځو بلانكاح د متعې په صيغې سره د چا كور ته تلل اود مذهب نه علاوه د اخلاقو او رواياتو بندش لره هم ماتولوسره د حيا اخستلو مرتكب كيدل هغه ئې د كارخير بلكه د گناهونو د بخښش ذريعه اوگرځوله .

د شيعه گانو دكتابونو نه د متعې فضائل نقل كولو نه وړاندې ديو اشكال جواب ليكلې كيږي د شيعه گانو په كتابونوكښې د صحابو حضراتو رضى الله عنهم تعريف كتلوباندې اشكال كيږي چه دا مردود خو د صحابو حضراتو رضى الله عنهم ښكاره دښمنان دى ، بيا تعريف ولې ؟ دډې دوه جوابه دى .

(۱) دا تعريف د تقيه په بناء باندې دې چه هغې باندې دهغوى د ايمان مدار دې ، ځنگه چه د تقيه په بيان كښې د هغوى مذهب ليكلې شوې دې چه څوك تقيه نه كوى دهغه ايمان نشته

(۲) الله تعالى په ((حق)) كښې داسې تاثير ايښودلې دې چه هغه په بعضې وختونوكښې د باطل او د دښمن په ژبه باندې هم وينا كوى ، په دنيا كښې دهغې بې شميره مثالونه دى .

حقيقت دادې چه د حضرات صحابه كرامورضى الله عنهم سره د بغض او عناد نه د شيعه گانو كتابونه ډک دى ، دهغه نفوسو مقدسو په حق كښې داسې بې كاره كنځلې كوى چه د يو مسلمان په زړه كښې د ايمان ذره قدرې هم اثر وى هغه د يو مردود نه داسې كنځلې اوريدلوسره هغه جهنم ته د رسولو نه بغير په كلاره نه شى كيناستلې .

## د متعې فضائل

(۱) قال ابوعبدالله عليه السلام ما من رجل تمتع ثم اغتسل الا خلق الله من كل قطرة تقطر منه سبعين ملكا يستغفرون له الى يوم القيامة. (برهان المتعه ص ۵۰ مؤلفه سيد ابوالقاسم والسيد على حارى)

**ترجمه** : جعفر صادق وائى چه د متعې نه پس د جنابت د غسل نه غورځيدلو والا د أبو د هرې قطرې نه الله تعالى اويا (۷۰) فرښتې پيدا كوى چه د هغه متعې كولو والا (منحوس) دپاره قيامته پورې مغفرت غواړى .

(۲) قال النبى صلى الله عليه وسلم من تمتع مرة امن سخط الله الجبار ومن تمتع مرتين حشر مع الابرار ومن تمتع ثلاث مرات صاحبنى فى الجنان (منهج الصادقين ص ۳۵۶)

**ترجمه** : نبى صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل څوک چه يو ځلې متعه اوكړى هغه به د الله د قهر نه نجات مومى ، او څوک چه دوه ځلې اوكړى دهغه حشر به د نيكو خلقو سره وى ، او څوک چه درې ځلې متعه اوكړى هغه به په جنت كښې ځما سره وى ((اعوذبالله من سخط الجبار ومن الكلب على سيدنا

الابرار صلی الله تعالیٰ علیه وعلی اله الاطهار)

(۲) قال النبی صلی الله علیه وسلم من تمتع مرة واحدة عتق ثلثه من النار ومن تمتع مرتین عتق ثلثاه من النار ومن تمتع ثلاث مرات عتق کله من النار.(منهج الصادقین ص۳۷۲)

**ترجمه** : نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل څوک چه یو ځلې متعه اوکړی دهغه دریمه حصه د اور نه نجات مومی . او څوک چه دوه ځلې اوکړی دهغه څلورمه حصه او څوک چه درې ځلې (مخ تورکړی) دهغه ټول بدن د اور او دوزخ نه آزادیږی ، (العیاذبالله من شرور انفسنا ) .

(۳) قال النبی صلی الله علیه وسلم من تمتع مرة درجته کدرجة الحسن ومن تمتع مرتین درجته کدرجة الحسین ومن تمتع ثلاث مرادرجته کدرجة علی ومن تمتع اربع مرات درجته کدرجتی (تفسیر منهج الصادقین ص۳۷۲)

**ترجمه** : رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ، کوم سړی چه یو ځل متعه اوکړی هغه ته د حضرت حسن رضی الله عنه درجه ملاویږی او څوک چه دوه ځلې اوکړی . هغه ته د حضرت حسین رضی الله عنه . او څوک چه درې ځلې اوکړی هغه ته د حضرت علی رضی الله عنه او څوک چه (العیاذ بالله) څلور ځلې اوکړی هغه ته زما درجه ملاویږی .

(۵) قال ابو جعفر علیه السلام ان النبی صلی الله علیه وسلم لما اسری به الی السماء قال لحقنی جبرئیل علیه السلام فقال یا محمد ان الله تبارک وتعالیٰ یقول انی قد غفرت للمتمتعین من امتک من النساء (من لا یحضره الفقیه جزء۳ ص۳۰۰)

**ترجمه** : ابو جعفر وائی د معراج په شپه چه کله حضور صلی الله علیه وسلم آسمانونو ته تشریف یوړو نو وې فرمائیل چه جبرئیل ماسره ملاؤ شو او وې فرمائیل چه ای محمد ! الله تعالیٰ فرمائی ما ستا په امت کښې د ښځو سره متعې کولو لره اوبښل.

الله تعالیٰ دې معافی اوکړی . د اهلِ تشیع په نزد حضور صلی الله علیه وسلم چه کله د معراج نه تشریف راوړو نو د مونږ د تحفې په ځائ دهغوی دپاره ئې د بې حیائې سامان راوړو . او العیاذ بالله هغوی ته دا بشارت ورکړئ شو چه په هغې کښې ستاسو د نجاتِ اخروی راز پټ دې .

(۶) روی بکر بن محمد عن ابی عبدالله علیه السلام قال سالته عن المتعة فقال انی لا کره للرجل المؤمن ان یخرج من الدنیا وقد بقیت علیه خلة من خلال رسول الله صلی الله علیه وسلم لم یقضها (من لا یحضره الفقیه جزء۳ ص۳۰۰)

**ترجمه** : د جعفر صادق نه د متعې په باره کښې پوښتنه اوکړئ شوه نو وې فرمائیل زه د یو

مومن دپاره دا مناسب نه گنم چه د دنیا نه په داسې حالت کښې لاړ شی چه دهغه په ذمه باندې د نبی صلی الله علیه وسلم په محبوبو سنتو کښې یو سنت باقی وی (یعنې متعې کولو سره ئې مخ تورکړې نه وی)

(۷) کوم سړې چه متعه اوکړی په عمر کښې یو ځل، هغه په جنت والو کښې دې (تحفة العوام ص ۲۷۱ ج ۲)

(۸) عذاب به نه ملاویږی هغه سړی او هغه ښځې ته چه متعه اوکړی (تحفة العوام ص ۲۷۱ ج ۲)

د بې غیرتئ د مظاهرې اود نفسِ اماره د تسکین دپاره د متعې په شان ((هم ثواب)) نسخه هم کافی نه شوه نو ددې نه هم آسان ترکیب ((تحلیل)) راویستلو سره بې غیرتی ئې هم اوشرموله. ابن بابویه کتابِ اعتقادات کښې لیکی، اسباب حل المرأة عددا اربعة النکاح وملك الیمین والمتعة والتحلیل.

دتحلیل د تفسیر د شیعه گانو په کتابونو کښې د لټولو موقع ملاؤ نه شوه، یو مجتهد پوښتنې کولو سره اوفرمائیل چه دهغې نه اعارهٔ فرج مراد دې. د دنیا بدترین نه بدترین ځناور هم دانسان ددې شرافت په وړاندې د شرم د وجه نه سرټیټوونکې دې.

شیعه خلقو ته سوچ پکار دې چه د یو صدیق د صداقت د انکار نه په هغوی باندې څه څه آفتونه راغلی دی، چه په هغې سره د مذهب د روایاتو د بندش نه خو آزادی ملاؤ شوې ده. اخلاق او انسانیت هم د شیعه د معاشرې نه رخصت شو، فقط والله العاصم.

**۱۹ ذی قعده ۱۳۸۱ هجری**

**بسم الله الرحمن الرحیم**

# شیعه گانو ته اهمه مشوره

## خالص شیعه جوړ شئ نو تولې جهگړې ختمې

**((اقتباس د حضرت الشیخ دامت برکاتهم له تقریر نه، ۶ محرم ۹۶ هجری ۱۲ اسیا ابادی))**

د شیعه گانو مذهب په اتفاق سره دادې چه دا قرآن زمونږ سره چه دې ددې یو حرف هم صحیح نه دې[1] دهغوئ د مذهب بنیاد هم په دې باندې قائم دې، اګرچه بعضې شیعه گان د قرآن کریم تلاوت کوی، دهغوی په کتابونو کښې مو کتلی دی چه دا مسئله د هغوی په نزد په متواترو کښې ده، متواتر هغې ته وائی چه د یو څیز خبر ورکولو والا په دومره مقدار وی چه د دنیا یو طاقت دهغوی

---

۱ - ددې حوالجاتو تفصیل د عنوان ((آیا شیعه گان مسلمانان دی)) لاندې اوګورئ

په خلاف نه شي اودريدلې . لکه د مکې وجود دهغه سړي دپاره هم يقيني دې چه هغه مکه نه وی کتلې ، هم دغه شان دهغوی په نزد دقرآن يو حرف صحيح نه کيدل دومره يقيني دی چه هغه څوک دروغژن کولې نه شي . حالانکه د اهلِ اسلام په دې باندې اتفاق دې چه د قرآن د يو لفظ نه انکار کولو والا هم کافر دې .

## يو اعتراض اودهغې حل

شايد تاسو دا اووائې چه شيعه ګان دا وائی چه مونږ قرآن کريم وايو قرآن زمونږ په کورونو کښې دې په مونږ باندې دا الزام غلط او بلاوجه دې ، مګر زه وايم چه هرکله دهغوی په کتابونو کښې ليکلې شوی دی او هغوی هغه کتابونو لره صحيح ګڼی هغه ښکلوی ، سينو سره ئې جوختوی په خپلو کورونو کښې ئې ايږدی نوآخر که دا کتابونه چرته دهغوی د عقيدې خلاف دی نودهغوی سره دا معامله ولې ده ؟ ما دهغوی کتابونه ډير ښه کتلی دی ، دهغې مې ښه مطالعه کړې ده ، څه چه وايم چاته جرات نشته دې چه دهغې يو حرف هم دروغژن کړی ، خواه که دهغوی په کتابونو کښې ئې درته ښايم ، دهغوی په کتابونو کښې دا واقعه ليکلې ده چه په يو مجلس کښې د يو مجتهدصاحب نه پوښتنه اوشوه چه قرآن څنګه دې ؟ نو جواب ئې ورکړو چه صحيح دې . روستو هم دهغه يو شاګرد اووئيل چه تاسو خو مونږ ته شپه ورځ دا وائې او ښائې چه دا قرآن غلط دې او نن تا دا نوې خبره اوکړه ، نو مجتهد صاحب اووئيل «قلته تقية» ما تقيه کړې وه .

### د تقيه حقيقت

تقيه د هغوی د دين جزء دې . د تقيه معنی ده دروغ وئيل . دنفاق نه کار اخستل . چاته دهوکه ورکول وغيره . دهغوی په مذهب کښې تقيه صرف جائز نه ده بلکه ډير لوئ ثواب دې کوم سړې چه د نفاق نه کار نه اخلی هغه بې دينه دې . د اصولِ کافی روايت دې ((لادين لمن لاتقيه له))[1] او په يو بل روايت کښې دی ((لاايمان لمن لاتقيه له))[2] يعنې کوم سړې چه خلقو ته دهوکه نه ورکوی هغه بې دينه او بې ايمانه دې ، دوه څيزونو لره ملاؤ کړئ ، يو دا چه دهغوی په ايمان کښې دا دی چه په قرآن کښې يو حرف هم صحيح نه دې او دويم دا چه دروغ وئيل او دهوکه ورکول فرض دی . بلکه عين ايمان دې . اوس تاسو پخپله اندازه اولګوئ چه هغوی په کورونو کښې قرآن ولې ايږدی . سوا د دهوکې ورکولو نه نور څه کيدلې شی چه دهغې نوم هغوی تقيه ايخودلې ده . شعر

خرد کا نام جنوں رکھ دیا جنوں کا خرد جو چاہے آپ کا حسنِ کرشمہ ساز کرے

---

۱ - اصول کافی ص ۴۷۲

۲ - اصول کافی ص ۴۸۴

## د اهلِ تشیع امتحان

دهغه منافقینو امتحان داسې واخلئ چه تاسو که چرته قرآن کریم ته صحیح وائې نو دا اووائې چه ستاسو کومو مصنفینو او مجتهدینو چه قرآن ته غلط وئیلی دی هغه مسلمانان دی که کافر ؟ که چرته تاسو پخپله دعوی کښې رښتینی ئې نو قرآن لره غلط وئیلو والا چه څومره تیرشوی دی ټولو ته کافر اووائې ، خپلو مجتهدینو ته چه دا ئې وئیلی دی کافر اووائې اودهغوی داسې کتابونه اوسوزوئ نومونږ به اومنو چه تاسو پخپله دعوی کښې رښتینی ئې ، لیکن که چرته دهغوی کتابونه چاپ کوئ ، دهغوی تعظیم کوئ ، دهغې مصنفینو لره خپل امام منلوسره دهغوی احترام کوئ نومعلومه شوه چه گرېږ او لانجه شته دې .

وړاندو ورځوکښې د قادیانانو هم څه داسې امتحان اوشو چه هر کله هغوی دا اووئیل چه مونږ حضور صلی الله علیه وسلم لره منو ، زمونږ په ختم نبوت باندې ایمان دې نوهغوی ته وئیلې کیدل چه تاسو غلام احمد ته کافراووائې دهغه کتابونه اوسوزوئ

د حیدرآباد دکن د صدیقِ دیندارچن بسویشور په شمیربو څو معتقدین دی هغوی وائی چه مونږ مجاهدینِ اسلام یو ، زمونږ په اسلام باندې یقین دې ، مونږ دیندار یو ، هغوی ته هم دا وئیلې کیږی چه صدیق دیندار چه وړاندې د غلام احمد مرید جوړ شو ، بیا ئې ترقی کولوسره پخپله نبی جوړ شو او روستو ئې د خدائې دعوی اوکړه ، هغه ته کافر اووائې ، دا عجبیه خبره ده چه غلام احمد قادیانی چه د صدیقِ چن بسویشور پیر دې هغه صرف نبی شو اودهغه مرید صدیق دیندار خدائ جوړ شو ، شعر: *ببیں عقل ودانش بباید گریست*

آخر د چا د عوې د صدق اوکذب یو معیار خو هم وی ددې نه بهترکه یو معیار وی نو اووائې . نن که چرته خدانخواسته مونږ ته څوک داسې کتاب راوړی چه په هغې کښې لیکلی وی چه د الله وجود نشته دې مونږ هغه ښکل کړو سینو سره ئې اولگوؤ او دا اووایو چه مونږ الله منو نو آیا یو داسې بې وقوفه شته دې چه زمونږه ددې دعوې منلو دپاره تیار وی هم دا حال دې دهغه شیعه گانو چه دهغوی په یو کتاب کښې هم چرته نه دی لیکلی چه قرآن صحیح دې .

## د شیعه گانو اهم کتابونه

د شیعه گانو اهم کتابونه کافی او صافی دی ، صافی دوه دی ، یو د اصول کافی شرح ده او دویم د تفسیر په فن کښې دې ، ددې کتابونو حوالې که چرته کتل غواړئ نو څما کتاب «احسن الفتاوی» کښې دې لره په تفصیل سره کتلې شئ .

بهرحال اصول کافی یو داسې کتاب دې چه دهغې یو شیعه هم انکار نه شی کولې ، د نورد

کتابونو په باره کښې هغوی دا وئیلي شي چه مونږ مجتهد یو او یو مجتهد باندې د بل مجتهد قول حجت نه وی ، ددې جواب دادې چه کومو مجتهدینو د قرآن نه انکار کړې دې هغوی ته کافر ولې نه وائې ؟ نیز دهغوی که یو خبره وئیل وی نو اصول کافی نیول پکار دی ددې . هغوی په هیڅ حالت کښې انکار نه شی کولې ، ددې وجه دا هم واورئ . وائی چه ابن یعقوب کلینی په هغه زمانه کښې داکتاب اولیکلو چه د امام مهدی د غیبتِ صغری زمانه وه د امام مهدی په غار کښې د غائب کیدلو په باره کښې دهغه خیال دادې چه یو زمانې پورې چه کوم غار کښې هغه پټ شوې دې دهغه خاص خلقو دهغې علم وو چه چرته دې دا غیبتِ صغری ده او روستو هغه داسې غائب شو چه چاته هم دهغه پته اونه لیږدله چه اوس هغه چرته دې دا غیبتِ کبری ده ، دا شیعه گان ډیر نافرمانه دی دهغوی امام د مسلمانانو د ویرې نه په غار کښې پټ شوې دې او دوی دلته ګرځی راګرځی خواه مخواه فساد کوی .

وائی چه امام مهدی د ښار «سرّ من رآه» په یو غار کښې پټ شوې دې . یعنې هغه ښار لره ګتلو والا خوشحالیږی . ابن یعقوب کلینی اصول کافی لیکلوسره غار ته تللو سره امام مهدی ته اوښودلو . امام مهدی کتلو سره اوفرمائیل «هذا کاف لشیعتنا» دا کتاب زمونږ د شیعه ګانو دپاره کافی دې ، هم دا ددې وجه تسمیه ده ، اوس دې سره دوه خبرې نورې ملاؤ کړئ ، یو داچه امام دهغوی په نزد معصوم وی دروغ نه وائی ،دویم دا چه امام عالم الغیب وی ددې وجه نه دهغه نه غلطی نه کیږی ، چه د کوم کتاب تصدیق امام کړې وی نه په هغې کښې غلطی کیدلې شی اونه په هغې کښې د دروغو احتمال وی ، دهغه کتاب په رومبنۍ پاڼه باندې دا عبارت لیکلې شوې دې (هذا ما قال فیه امام الاکبر حجة الله المنتظر هذا کاف لشیعتنا).واقعی دا د شیعه ګانو د وهلو دپاره کافی دې .

شیعه صرف هم د قرآن د تحریف قائل نه دې بلکه دهغه دا عقیده ده چه قرآن د موجوده کفر ستنو لره مضبوطوی : ((وتضمینه من تلقائهم ما یقیمون به دعائم کفرهم)) (تنبیه الحائرین)

خلفاء ثلاثه په قرآن کښې هغه خبرې درج کړی چه دهغې په ذریعې سره هغوی دخپل کفر ستنو لره قائمې کړې شی، شیعه ګانو ته د موجوده قرآن سره دښمنی ځکه ده چه په دې کښې د شیعه ګانو طرف داری نه ده کړئ شوې .((لولا انه زید فی القرآن ما نقص ما خفی حقنا علی ذی حجی)) (تنبیه الحائرین)

که چرته په قرآن کښې کمې بیشې نه وو کړئ شوې نو زمونږ په یو عقلمند باندې به پټه نه وه شیعه عقیده تحریف قرآن لره بطورِ تقیه د پټولو خواه څومره کوشش اوکړی مګر بیا هم کله د زړه خبره په ژبه باندې راځی ، چنانچه سید محمد دهلوی په خپل کتاب « ضربتِ حیدریه » کښې لیکی : این نظم قرآنی نظم عثمانی است برشیعان احتجاج بدان نشاید .

د قرآن موجوده ترتیب عثمانی دې ددې وجه نه قرآن په شیعه ګانو باندې حجت نه شی کیدلې

## د زړه د راز معلومولو عجیبه اصول (قاعده کلیه)

دا امر تجربې او مشاهدې سره ثابت دې چه د نشې ، جنون یا د خوب وغیره په بې هوشئ کښې د زړه خبرې په ژبه باندې راځی ، بعضې د نفسیاتو نه واقفه خلق دهغه اصولو په ذریعې سره د زړه راز معلوموی ، څوک داسې خبره اوکړی چه اوریدلو والا په جذبه کښې راتللو سره بې هوشه شی او مخبوط الحواس کیدلو سره د زړه خبره رااوباسی .

چه کله د مولانا عبدالشکور صاحب لکهنوی «النجم» رجوم للشیاطین جوړیدلو سره د قرآن په دښمنانو باندې ماتوونکې حملې اوکړې او هغوی باندې ئې د تقیه تلبیس لره خاورې کولو سره دهغوی اصل تصویرلره ښکاره کړو نوپورته شو اود «النجم» د دفاع دپاره ئې د مستقل تصانیفو نه علاوه تقریباً پنځوس رسالې جاری کړې ، مګر د «النجم» د راکټ په وړاندې هغه بیت العنکبوت نه زیاتې حصارې نه شوې او لږ لږ وخت نه پس یوبل پسې تولې ختمې شوې . په هغه رسائلو کښې یو هفته وار «درنجف» د سیالکوټ نه جاری کړئ شوې وو دهغې د اول اپریل ۳۲ء اشاعت کښې د شیعه ګانو د علماؤ خصوصی ترجمان د اعجاز حسن بدایونی مضمون شائع شوې وو ، مونږ دهغه مضمون رومبې هغه حصه پیش کوؤ چه په هغې سره به ناظرینو ته یقین اوشی چه اعجاز حسن صاحب هغه وخت د «النجم» سخت ضرب سره بې هوشه شوې وو دهغه بې هوشئ په عالم کښې هغوی پټ راز لره ښکاره کړو .

د نظره دې نشی چه «النجم» څنګه چمکیدلې ستورې دې لکه دلی والا فلک د جرمنی چمکیدلې ستاره ، بس دومره فرق دې چه دهغې پانړو سره ویختنان توریږی اودهغې د وینې په چمک سره دعوامو د زړونو بینائی را پیدا کیږی .

« النجم » د خرافاتو او مضراتو طومار دې او هغه یو بې ضرر څیز دې « النجم » پخپل تیز رفتار سره فساد خوروی او هغه پخپل چال سره کله کله دهوکه ورکوی . د «النجم» رنګ د ګرګټ په شان بدلیږی رابدلیږی او هغه د اول ورځې نه په نیله شیشه فلک کښې ضیاباردې . د «النجم» نحوست د یوم نحس مستمرنه څه ډیرزیات دې چه دا ورځ په کال کښې یوځل کتل راپیښیږی اود «النجم» د وینې شعاګانې په هره میاشت کښې رنګ راوړی او مریخی اثر ښکاره کوی .او د «النجم» په تندی باندې دا آیت « وبالنجم هم یهتدون » داسې دې لکه د پیر بې عمله په سرباندې

د شفاعت تاج یاد عالم با عمله په سر باندې د هدایت جبه یا د خلیفه پنچایت [1] په بدن باندې د خلافت قمیص یا د جاهل احمق په کوپړۍ باندې د فضیلت دستار.

اې شیعه ګانو! عجیبه لطیفه ده چه هغه پخپله ګمراه دي لیکن د هدایت جولۍ دهکوی، دهغوی مدیر سراسر فاسق او بې دینه دي لیکن مونږ باندې خپل عیب لګوی. پخپله مؤمن بالقرآن نه دی اوډهغه هم مشرب مګر خپله ګناه زمونږ طرف ته منسوب کوی.

وراندې تللو سره مدیر «النجم» ته لیکي:

«مګرتاته حیا نه درځی او په اوبو کښې ډوبیدلوسره نه مرې چه قصه پاکه شی.» «دخپل د دروغو بکواس نه توبه اوکړه»

اوس مونږه د هغه مخبوط الحواس تیرشوؤ زهرو نه یو څو اقتباسات ذکرکوو:

«د رسول الله صلی الله علیه وسلم د رحلت نه پس د قرآن مرتب کیدل دینی بدعت اوګرځیدلو، بدعت پرستانو! که چرته تاسو رښتینی ئې نو د قرآن موجوده صفحات د عهد رسول والا قرآن باندې منطبق کول ګنې د خپلې باطلې دعوې نه توبه ګار کیدل بیا کله هم دهغه قرآن د اصلی کیدلو دعوی نه کول»

«مستر النجم ته په کومې خلې سره موجوده قرآن لره پوره قرآن بولې سره ددې نه چه اصلی قرآن کښې سورۀ احزاب د دوو سوو آیتونو وو» ......«په دې سورت کښې د رجم آیت هم وو» ....«او واورئ. د سورۀ توبې صرف یو حصه پاتې شوې ده، باقی درې حصې غائبې شوې» .......«د ډیر افسوس خبره ده چه د قرآن د تواتر دعوی کولې کیږی مګرحال دادې چه د قرآن آیتونه ډیر په مشکله سره ملاویدل. معلومیږی چه په هغه زمانه کښې صحابوکښې یو هم د پوره قرآن حافظ نه وو» ، «الغرض پوره قرآن موجود نه دې اونه دهغې دعوی صحیح ده»

«د قرآن نه پوره سورۀ ـ نورین ـ غائب شو» .....«موجوده قرآن کښې دوه مکملې مسئلې یعنې «حفدوخلع» بلکل نشته دې ..... «دا قرآن چه ستاسو په زعم ناقص کښې مکمل دې» که چرته د «**انا له لحافظون**» په ذریعې سره د اصلی اوغیرمجموع قرآن د حفاظت وعده الله فرمائیلې وه نوهغه چرته محفوظه پاتې شوه» ......پس که چرته عهد رسول والا قرآن غیرمخلوق دې چه مجموع اومجلد نه وو نودهغه وجود د زمکې د مخ نه غائب دې، او که چرته دا قرآن مراد دې نو

[1] - د خلیفه نه مراد حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه دے، او پنچایت نه مراد د انصارو او مهاجرینو هغه تاریخی اجتماع ده چه هغې باندې دنیائې اسلام ناز کوی اوکوم کښې چه د حضرت ابوبکررضی الله عنه انتخاب په عمل کښې راغلو. دا اجتماع د اقوام عالم په جمهوری ژوند کښې د جمهوریت د اولې بنتې درجه لری.

ددې ترتیب کونکې جناب عثمان رضی الله تعالی عنه دې بیا څنګه قدیم کیدلې شی » ..... «د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه قرآن غلط ثابت شو چه دهغه هریو آیت د دوو عادلو ګواهانو سره لیکلې شوې وو . په هغې کښې فضول خبرې ثابتیدلوسره عدلِ صحابه او ایمانِ صحابه سره د حضرت ابوبکررضی الله عنه د ایمان هم رخصت اوشو چه دوی تولو په تولو غلط قرآن باندې ایمان لرلو » .. مګرتاسو «حضرت عثمان رضی الله عنه » ایجاد بنده اوفرمائیلو . اوس اووایه اصلی قرآن چرته محفوظه پاتې شو » ... د آیتونو بې ترتیبی اوګورئ.

« دویم آیت بلکل بې ربط مقام کښې لیکلې شوې دې چه هغې لره د آیتِ تطهیراود ازواجِ نبی په تذکره کښې ورداخل کړئ شوې دې . .....او واورئ د دولسمې سپارې په څوارلسمې رکوع کښې د طوفانِ نوح قصه په عجیب عنوان کښې لیکلې شوې ده چه دهغې نه د جامع قرآن د جهالت طوفان راسرګنده کیږی . ..... ولې میاعبد الشکور ربنتیاوئیل هم دا ترتیب مطابق د لوحِ محفوظ دې آیا هم دا بې ډهنګه ترتیب توقیفی دې؟ . آیا هم ددې روند ترتیب د حفاظت وعده الله فرمائیلې ده . آیا هم په دې ترتیب باندې ستاسو اودجامع القرآن ایمان دې .

آیا دې اقتباساتو لره د کتلو نه پس به هم سیده ساده مسلمان د شیعه په کور کښې یا د هغوی د وئیلو ښودلو سلسله کتلوسره په دې دهوکه کښې راتللې شی چه شیعه په قرآن باندې ایمان لری ؟

## د حضرت مفتی صاحب د یوشیعه مجتهد سره مناظره اود مجتهد صاحب تیښته

یو ځل شیعه مجتهد په تقریرکښې د عامې مناظرې چیلنج ورکړو چه څوک هم غواړی څما مقابلې ته دې راشی . د سندهـ یو مقام ته زه رااوغوختلې شوم چه یو شیعه عالم باربار وئیلوسره د مناظرې چیلنج ورکوی ما اووئیل چه ماته تجربه ده چه کله هم زه ځم هغه خلق مناظرې ته تیار نه وی . خواه مخواه څما وخت به ضائع کیږی . هغوی اووئیل چه په دې کښې د اهلِ سنتو سپکوالې دې . نو زه تیارشوم . کتابونه راخستلوسره د مناظرې ځائ ته اورسیدلم . د خلقو لویه مجمع وه . خبره هم هغه رااوتله چه ما په شروع کښې وئیلې وه هغه شیعه مناظرې ته تیار نه شو او عذر ئې دا بیان کړو چه په دې سره فتنه فساد خوریږی نو ما اووئیل چه تاسو چیلنج ولې ورکړو ؟ لیکن هرکله چه هغه په یو صورت کښې هم تیار نه شو نو ما اووئیل چه یقیناً ربنتیادې اووئیل چه په دې فتنه فساد خوریږی مګر دا چه صلح ده په دې باندې قائمیدل پکار دی داسې نه وی چه نن صلح وی او سبا میدان خالی کتلوسره بیا چیلنج شروع کړې، ددې وجه نه زه د پائیدارې صلح یو څو صورتونه پیش کوم تاسو چه په هغې کښې کوم صورت خوښوئ دهغې انتخاب اوکړه .

## د صلح رومنۍ طريقه

د صلح بنياد دې په دې باندې كيخودلې شي چه د چا په قبضه كښې مراكز دي هغه مذهب لره دې واخستلې شي خواه مخواه دخپلې يوې نيمې خختې جمات جدا جوړول صحيح نه دي مركزونو له فيصل «فيصله كوونكي» مقرروِل پكار دي.

## رومبنې مركز الله تعالى

د شيعه ګانو په نزد د ټولو نه لوئ عبادت دادې چه دا عقيده اولرئ چه د الله نه غلطي كيږي، زه يو لفظ هم دخپل طرف نه نه وايم، كتاب رااوبنكلوسره مې ورته اوبنودل، د اصول كافي روايت دې. ((ما عظم الله تعالى مثل البداء)) (اصول كافي ص [illegible]) دويم روايت ((ما عبد الله تعالى مثل البداء)) (اصول كافي ص [illegible]) دريم روايت ((سمعت الرضا عليه السلام قال ما بعث الله نبيا قط الا بتحريم الخمر ان يقر الله بالبداء)) (اصول كافي ص [illegible])

د بداء معني دهغوى په نزد داده چه الله تعالى يو كار اوكړي روستو بيا افسوس كوي چه غلطي اوشوه «نعوذبالله منه»، د مسلمانانو عقيده داده چه د الله تعالى د هرې غلطۍ نه پاک دې او ستاسو په نزد د الله نه غلطي كيدلې شي بلكه كيږي راكيږي نو بس داسې اوګنړئ چه معاذالله د شيعه ګانو په پيدا كولو كښې د الله تعالى نه غلطي اوشوه، بهرحال دا مركز د مسلمانانو سره دې.

## دويم مركز رسول الله صلى الله عليه وسلم

رسول معصوم وي هغه د چا د دباؤ يا د ويرې نه يو كار نه كوي دا زمونږه عقيده ده او د شيعه ګانو عقيده داده چه رسول هم تقيه كوي ((لا دين لمن لا تقية له)) (اصول كافي ص [illegible]). ((لا ايمان لمن لا تقية له)) (اصول كافي ص [illegible]) نبي او رسول هم چه ترڅو پورې د دروغو او دهوكې نه كار وانخلي هغه ايماندار نه شي كيدلې، نعوذبالله منه.

## دريم مركز د حضور صلى الله عليه وسلم اولاد

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په اولاد كښې حضرت حسين رضى الله عنه ته خصوصيت حاصل دې او حضرت حسين د شيعه په مذهب كښې العياذبالله ډير لوئ منحوس دې، نقلِ كفر كفر نباشد. اوكه نه نو ژبه دې ونيلو ته نه تياريږي. د شيعه ګانو په كتابونو كښې دي چه جبرئيل امين رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلو اود حضرت حسين بشارت ئې ورته وركړو او وې ونيل چه هغه به شهيد كيږي. نو دوى اوفرمائيل ماته داسې نوسې نه دې پكار چه شهيد وي بيا دويم ځل جبرئيل عليه السلام راغلو او هم دائې ورته اوونيل نو دوى اوفرمائيل چه ماته داسې نوسې نه دي

پكار . بيا دريم خلې جبرئيل راغلو او وې وئيل چه هغه اودهغه اولاد لره به الله تعالى امامان جوړوى نوهله دوى صلى الله عليه وسلم راضى شو بيا دوى صلى الله عليه وسلم حضرت فاطمې رضى الله عنها ته کسان استولوسره بشارت ورکړو . هغې اووئيل چه داسې ځوئ نه دې پکار چه شهيد وى . حضورصلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه امام به وى نوبيا هم حضرت فاطمه رضى الله عنه په مات زړه سره راضى شوه گويا چه د شهادت نحوست امامت سره هم لرې نه شو . ددې نه پس دا آيت نازل شو « **حملته امه كرها ووضعته كرها** » حالانكه د قرآن كريم د آيت مطلب دادې چه اولاد ته د مور شكريه ويستل پكار دى ځكه چه هغې په څومره تكليفونو سره هغه زيږولې دې او دا خلق هغه په فاطمه او حسين باندې چسپان كوى . بيا دا خلق وائى چه امام چونكه عالم الغيب وى ددې وجه نه حضرت حسين ته پته اولگيدله چه دهغه مور هغه لره نه غوختلو نو هغوى انتقام واخستلو اودهغې د شودو څكلونه ئې انكار اوكړو . حضورصلى الله عليه وسلم به تشريف راوړو او خپله كته گوته به ئې دهغه په خله كښې كيخودله اوهغه به روله او په هغې سره به مړيدلو . اوگورئ څنگه مور اوځوئ كښې عداوت ښكاره كوى . دې واقعې لره شيعه شاعر داسې نظم كړې ده

شعر

| | |
|---|---|
| ہائے رے شبیر مظلومی تری | رد ہوئی تیری بشارت تین بار |
| گرچہ راضی ہو چکی تھیں فاطمہ | پھر بھی تیری ولادت ناگوار |
| کرتی ہے اس رمز کو قرآن میں | امہ کرھا کی آیت آشکار |
| تمکو بھی غیرت کا ایسا جوش تھا | دودھ اس ماں کا نہ چوسا زینہار |

**څلورم مركز حرمين شريفين**: دا زمونږ په قبضه كښې دى.

**پنځم مركز قران مجيد**: دا هم مسلمانانو سره دې شيعه خو دده د صحت قائل نه دى [۱]

## د صحلې دويمه طريقه

دصلحې دويم صورت دادې چه د نمبر طريقه اختيار کړې شي يعنې د څه مودې دپاره ټول سنيان جوړ شى او څه موده ټول شيعه گان وى . دې دپاره چه اتفاق او اتحاد وى . وراندې به په دې كښې اختلاف راپيښيږى چه رومبئ شيعه گان جوړ شي يا سنيان . ددې فيصله داسې اوكړئ چه چا سره قانون فى الحال موجود دې نوهغه مذهب دې فى الحال واخستلې شى . زمونږه قانون قرآن او

۱ - ددې حوالې د عنوان «آيا شيعه گان مسلمانان دى» لاندې تيرې شوې دى . ۱۲منه

حدیث موجود دي او د شیعه قرآن امام مهدی سره په غارکښې دې چه د اوښ د زنګونونو برابر غټ او اویا ګزه اوږد دې هغه خو دلته موجود نه دې ، چه دکوم مذهب د سره قانون نشته دې هغې لره به اخستلو سره څنګه کارچلیږی نو ددې وجه نه فی الحال تول شیعه مسلمانان جوړشي چه کله هم امام مهدی ستاسو کتاب راوړی نوموني تول به هغه سره شو ، تاسو موني نه ددې په باره کښې معاهده واخلئ او وې لیکئ او بیا ئې رجسټری هم اوکړئ

## دریمه طریقه

که چرته د صلح دا طریقې منظوره نه وی نو آسانه خبره داده چه شیعه اصلی شیعه جوړ شي نو تولې جهګړې به پخپله ختمې شی ، څکه چه د شیعه ګانو په مذهب کښې دا احکام دی :

(۱) **توري جامې اغوستل حرام دی** ، عبارت یې لاندې پیش کولې شی :

(الف) قال امير المؤمنين عليه السلام فيما علم اصحابه لا تلبسوا السواد فانه لباس فرعون كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يكره لباس السواد الا فى ثلثة العمامة والخف والكساء (من لا يحضره الفقيه الجزء الاول ص ...)

**ترجمه** : حضرت علی رضی الله عنه خپلو صحابو ته تعلیم ورکولوسره اوفرمائیل چه توري کپړې مه اچوئ څکه چه دا د فرعون لباس دې ، حضورصلی الله علیه وسلم به د پګړی ، موزې او څادر نه سوا په نور لباس کښې توررنګ لره بد ګنلو .

(ب) سئل الصادق عليه السلام عن الصلوة فى القلنسوة السوداء فقال لا تصل فيها فانها لباس اهل النار (من لا يحضره الفقيه الجزء الاول ...)

**ترجمه** : جعفر صادق نه پوښتنه اوشوه چه په توره توپئ باندې مونځ کول څنګه دی ؟ وې فرمائیل په دې باندې دې مونځ اونه کړئ شی څکه چه دا د جهنمیانو لباس دې . ((ایضاً))

(ج) روى اسماعيل بن مسلم عن الصادق عليه السلام انه قال اوحى الله تعالى الى نبى من انبيائه قل للمؤمنين لا تلبسوا لباس اعدائى ولا يطعموا مطاعم اعدائى ولا يسلكوا مسالك اعدائى فيكونوا اعدائى فاما لبس السواد للتقية فلا اثم فيه. (من لا يحضره الفقيه ص ... ج)

**ترجمه** : جعفرصادق وائي چه الله تعالی په یو نبی باندې وحی نازله کړه چه مومنانو ته اووایه چه څما د دښمنانو لباس دې نه اچوی . دهغوی خوراک دې نه خوری او د هغوی په لاره دې نه ځی . که چرته هغوی داسې اوکړی نوځما دښمنان به جوړ شی . البته د تقیه په طورباندې توري جامې اچولو کښې څه حرج نشته دې . ((ایضاً))

(د) فقد روى عن حذيفة بن منصور انه قال كنت عند ابى عبدالله عليه السلام بالحيرة فاتاه رسول ابى

العباس الخليفة يدعوه فدعا بممطر احد وجهيه اسود والاخر ابيض فلبسه ثم قال عليه السلام اما انى البسه وانا اعلم انه لباس اهل النار. (من لا يحضره الفقيه ص ۔ ج)

ترجمه : حيره کښې د خليفة العباس قاصد امام جعفرصادق لره غوختلو دپاره راغلو دوي د باران نه د بچ کيدلو يو داسې کپړه راوغوختله چه دهغې يو طرف تور او بل طرف سپين وو امام جعفر هغه اغوستلو سره اوفرمائيل زه دا قصداً اغوندم چه دا د دوزخيانو لباس دې «ايضاً»

(۲) ماتم کول د کافرانو کار دې :

(الف) عن ابى عبدالله قال ان الصبر والبلاء يستبقان الى المومن فياتيه البلاء وهو صبور وان الجزع والبلاء يستبقان الى الكافر فياتيه البلاء وهو جزوع قال قلت له ما الجزع قال اشد الجزع الصراخ بالويل والعويل ولطم الوجه والصدر وجز الشعر من النواصى (فروع كافى ص ۔ ج)

**ترجمه** : جعفر صادق وائي چه صبر او مصيبت مؤمن ته راځي ، چنانچه مؤمن باندې آفت راځي نو هغه صبرکوي ، اوهم داسې جزع او مصيبت کافر ته راځي ، چنانچه کافر ته آفت راځي نوهغه جزع فزع کول شروع کړي د امام جعفر نه چه پوښتنه اوکړئ شوه چه جزع څه ده نو وې فرمائيل اشدترين جزع داده چه چغې سورې اووهلې شي ، مخ او سينه (د شيعه ګانو په شان) اووهلې شي او د تندى ويختان اوشوکولې شي ،

(ب) من اقام النوحة فقد ترك الصبر واخذ فى غير طريقه (فروع كافى ص ۔ ج)

ترجمه : چاچه د ماتم مجلس قائم کړو نوهغه صبر لره پريخودلو سره بله لاره اختيارکړه ، (فروع کافي ، ص ۲۲۸ج ۲ )

(۳) سني امام پسې په رومبنى صف کښې د مونځ کولو دومره ثواب دې څومره چه رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې مونځ کولوکښې .

من صلى معهم فى الصف الاول كمن صلى خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم (من لا يحضره الفقيه باب الجماعة)

ترجمه : چاچه اهلِ سنتو سره صفِ اول کښې مونځ اوکړو هغه داسې دې لکه چه رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې ئې مونځ اوکړو.

(۴) مناظره کول حرام دى ځکه چه دا د تقيې خلاف ده اود تقيې نه کولو والا ايمان باقى نه دې .
«ددې حوالې وړاندې ونيلې شوې دى».

(۵) زيره ساتل او بريتونه پريکول واجب دى .

دا ټول کارونه کول شروع کړئ نو آيا څه اختلاف باقى پاتې کيدلې شى ، د شيعه په مذهب

کښې تقیه فرض ده تاسو تقیه کولوسره سنیان جوړ شئ نو تولې جهګړې به ختمې شي ، د شیعه په کتابونوکښې د صحابو د مدحې [۱] روایتونه موجود دی ، او نهج البلاغة کښې د حضرت علي رضی الله عنه څه ډیرې خطبې منقول دی چه په هغې کښې هغوی د شیخینو رضی الله عنهما مدح کړې ده ددې وجه نه تاسو هم د صحابو د مدحې جلسې کوئ ، بیا چه کله تاسو خلق ټول شیعه جوړ شئ نو امام مهدی به د غار نه راښکاره شي ، څکه چه د شیعه ګانو په کتابونو کښې لیکلی دی چه هرکله درې سوه دیارلس شیعه ګان [۲] د زمکې په سر باندې موجود شي نو امام مهدی به د غار نه بهر راښکاره شي .

تاسو شیعه ګان نه جوړیږئ او امام مهدی راښکاره نه ، هغه لره په ناحقه تاسو پخپلو کړو سره په غارکښې دیکه کړې دې ، پخپل امام باندې څومره ظلم کوئ ، همدارنګه ستاسو خالص شیعه نه جوړیدلو سره څومره لوئ فساد روان دې ، دنیا ګمراهئ طرف ته روانه ده ، تاسو شیعه جوړ شئ نو امام مهدی به راښکاره شي او تولې جهګړې به ختمې شي .

## حاضرینو ته خطاب

نورڅه نه خو ستاسو دلته کم ازکم درې څلورسوه شیعه ګان موجود دی تاسو ټول دلته عزم کولوسره پاخه شیعه جوړ شئ نو فیصله به اوشي امام مهدی به راشي ، که چرته تاسو سره د دومره شمیر نه صرف درې سوه دیارلس شیعه ګان هم نه شئ راوستلې نومعلومه شوه چه د شیعیت مدعیان ټول منافقان دی چنانچه ستاسو په کتابونوکښې د حضرت علي رضی الله عنه او د نورو ائمودا فیصله [۳] موجود ده چه زمونږ ټول شیعه ګان منافقان او مرتد دی ، د شیعه ګانو علماؤ ددې اموړو هیڅ جواب رانه کړو او د مناظرې مجلس ختم شو . الله تعالی دې زمونږ د ټولو حفاظت اوکړی او صراط مستقیم باندې دې مونږ قائم او دائم اوساتی آمین

« ددې رسالې ضمیمه د «**احسن الفتاوی**» په تتمه کښې ده »

---

۱ - ددې حوالې په عنوان « د شیعه ګانو په کتابونوکښې د شیخینو او د نورو صحابو رضی الله عنهم تعریف » کښې تیرې شوی دی .

۲ - اګر عدد ایشان ( شیعه ) به سه صد وسیزده ( ۳۱۳ ) کسی بسیت اجتماع رسد امام ظاهر شود ( صافی باب ۵ ص ۳۳۹ ج ۲ )

۳ - دا حوالې د عنوان « آیا شیعه ګان مسلمانان دي » لاندې تیرې شوی دی . ۱۲ منه

وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ

# د انکارِ حدیث فتنه

## د حدیث په حجیت باندې یو مفصل بحث

**سوال** :- نن سبا د انکارِ حدیث فتنه ورځ په ورځ په ترقئ باندې روانه ده ، دهغې ختمول او عوامو لره د فتنو نه محفوظه ساتل د وخت د علماؤ فریضه ده ، لهذا استدعا ده چه حجیة الحدیث سره متعلق تفصیلی بحث فرمائیلو سره عندالله ماجور وعندالناس مشکور شئ. «**والله لا یضیع اجرالمحسنین**»

**الجواب ومنه الصدق والصواب** :

بسم الله الرحمن الرحیم

یارب صل وسلم دائما أبدا علی حبیبك خیر الخلق کلهم

بمصطفی برسان خویش راکه دین همه اوست اگر باو نرسید تمام بولهبی ست

عبدالله چکرالوی د ټولو نه رومبئ د انکارِ حدیث فتنه سرګنده کولوسره د مسلمانانِ عالم زړونولره ئې مجروح کړه مګر دا فتنه په یوځو ورځوکښې ختمه شوه ، حافظ اسلم جیراج پوری دوباره دې فتنې لره راسرګنده کړه او مړشوی اور لره ئې دوباره بلولوسره د عاشقانِ رسالت په زخمونو باندې مالګه اوډروله او اوس غلام احمد پرویز بټالوی نګرانِ رساله «طلوعِ اسلام» دهغه بل شوی اور تولیت قبلولوسره د رسول سره دښمنئ باندې ملااوتړله او ولې نه چه هرکله قادیا او بټاله هم په یو ضلع کښې واقع دی ، بلکه بټاله دتحصیل کیدلو په وجه قادیاںځاندے یوقسم مرکزی فوقیت لري ، په دې لحاظ سره که چرته غلام احمد بټالوي غلام احمد قادیانی نه د رسول په دښمنئ کښې یو دوه درجې پورته اوخیژي نو څه بعیده نه ده ، د احمد صلی الله علیه وسلم هغه نامې جامې والا غلامانو د مشهورې مقولې مطابق « **برعکس نهندنامِ زنګی کافور**» د سیدالکونین صلی الله علیه وسلم په خلاف په دنیا کښې د بغاوت جنډه «بیرغ» اوچته کړه ، د رسول سره دښمنی د پرویز (علیه ماعلیه ) په عادت کښې پرته ده او دا امتیازی شان دهغه د منحوس نوم اثردې هغه سیاه بخت کسریٰ چه هغه د سیدالکونین صلی الله علیه وسلم نوم مبارک د کاغذ په راغونډولو سره شلولې وه ، هغه ته هم پرویز وئیلې کیدلو پرویز (علیه ماعلیه ) ته معلومیدل پکار دی چه د کسری پرویز رسولِ دښمنئ په شان ناقابل معافی جرم کښې نه صرف تاج اوتخت بیلودلو بلکه ټول خاندان ئې تباه اوبرباد شو ، دا خو د دنیا معامله ده چه دارجزاء نه ده

«ولعذاب الاخرة اکبر» هغه ورځ لرې نه ده چه دهغې متعلق ارشاد دې : «وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا » ( ۲۵، ۲۷) يعنی په هغه ورځ به ظالمان (د حسرت د وجه نه) خپل لاسونه کټکولو سره خوری او وائی به چه ارمان نيولې مې وې رسول سره لار يعنې د رسول اطاعت مې کړې وې.

د خوارلسمې صدئ پرويز ته هم دخپلوبدو کړو د سزا نه ويره پکار ده . « فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ » (خسر الدنيا والاخرة)

پرويز امين الدين صاحب روزنامه تسنيم لاهور، ۲۰ مارچ ۵۷ء کښې تحريرفرمائی :- دا نوې فتنه د لاهور د ادارې ثقافتِ اسلاميه زيراهتمام د سرکاری امداد په متو باندې روانه ده دا هم هغه اداره ده چه دهغې ذکر وړاندو ورځو کښې قومی اسمبلئ کښې زمونږ د ملک وزيرتعليم کړې وه اودهغې نه پس د مغربی پاکستان په بوديجه کښې دهغې دپاره د پنځوس زرو روپو د امداد انتظام هم ذکر شوې دې.

## مفسد څوک دې ؟

موجوده فضا کښې چه هريو سړې يو داسې ضروری او اهم مضمون باندې قلم اوچتوی چه د نفسانيت د خواهشاتو خلاف وی يا په هغې کښې ديوناپاکې فتنې د داخلولو کوشش کړئ شوې وی او د يو دښمنِ اسلام د بدعنوانيانو عادی وی نو بلاامتيازحق اوباطل هغه ته مفسد او مفتن وائی . د غور اوفکر خبره داده چه که چرته يو سړې ديو څوارلسو کالو د مشهورِ ادارې رکنيت قبول کړی دهغه ادارې ارکانِ سابقه په علم ، عملی جدوجهد او اخلاص کښې يوشان وی چه دهغې د شپې او ورځې په کوششو نو سره دهغې ادارې نوم څلورسوه افاقِ عالم کښې روښانه شوې وی اوس دا جديد رکن اووائی چه د ادارې سابقه ارکان ټول په ټوله جاهل او د قوانينو نه ناواقفه وو يا په هغوی کښې اخلاص نه وو ، يا ټول په ټوله خائن وو يا په هغوی کښې عملی اقدام نۀ وو . هغه ټول قوانين چه هغې باندې څوارلسو کالو پورې عمل کيدلو سراسرغلط دی زه هغې لره د قبلولو دپاره تيار نه يم. اداره کښې قانون هغه جاری وی چه زه جوړکړم اودهغې فلاح هم په دې کښې ده چه زه اووايم . فکرصائب صرف هم هغه دې چه څما په دماغو کښې راشی او نظريه صرف هم هغه صحيح ده چه زه پيش کړم نو ايا داسې رکن د ادارې خيرخواه دې يا بدخواه ؟ او مصلح دې يا مفسد ؟ د ادارې په ارکانِ سابقه کښې که چرته يو رکن هغه جديد روښن خيال لره پوهه کړی اود هغه د خرافاتو جواب ورکړی نو ايا دهغه فعل لره به فتنې او فساد سره تعبيرکولې شی يا امن او اصلاح سره ؟ بعينه هم دامثال د غلام احمد پرويزی هم دې . د حضور صلی الله عليه وسلم د زمانې

نه ترنه پورې د دين مدار هم په دوو شيزونو وو ، كتاب الله او سنتِ رسول صلى الله عليه وسلم ، هم دې دوو ستنو باندې د دين عمارت ولاړ دې ، خلفائې راشدين او صحابه كرام ، تابعين ، تبع تابعين ، ائمه كرام ،محدثين ، فقهائې صوفيه او د تمام عالم اسلام علماء سنتِ نبويه لره دين كښې حجت منلوسره راروان دى ، مگر د غلام احمد پرويز خيال دې چه اوس امت مسلمه ته د قرآن هغه تفسير او تعبيرقبلول پكاردى چه هغې باندې څما د نوم ځاپ لگولې شوې وى ، څما د تفسير ،تعبير اوتشريح نه سوا چه څه دى هغه ملازم دې ،عجمى سازش دې ، جهل او نادانى ده ، اوسه پورې قرآن لره صحيح طور باندې پوهه چرته شوې ده ، لوئ لوئ علماء حديث اوفقه كښې اينختى دى بلكه د قرآن خلاف سازش كوى دا عجمى سازشى د قتاده ، حسن ، مجاهد او عكرمه په شان مفسرينو قرآن كښې سند قبلولو ، ما دهغه ټولو مفسرينو على الرغم عبدالله چكرالوى ، سر سيد احمدخان او اسلم جيراج نه فيض حاصل كړې دې ، لهذا د قرآن تفسير هغه معتبردې چه زه كوم ، قرآن لره دهغه عجمى سازشونو نه نجات وركولو اود مظلوميت نه خلاصولو والا راشئ ، په منډه راشئ او څما نه گيرچاپيره جمع شئ ، تفسيرابن كثير ، بيضاوى ، ابن جريراو اتقان پاڼړې پاڼړې كړئ ، معارف القرآن اووائې د الله د آيتونو صحيح مفهوم هم په هغې كښې ملاويدلې شى .

پرويز ليكى چه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سنت او احاديث په دين كښې حجت نه دې ، د رسول الله صلى الله عليه وسلم اقوالو لره رواج وركولوسره چه په دين كښې حجت گرځولې شوې دې دا په اصل كښې د قرآن خلاف يو عجمى سازش دې پرويزگستاخ چه كومو نفوسِ قدسيه طرف ته عجمى سازش لره منسوب كړې دې دا هغه پاك روحونه دى چه هغوى لره د لوئ نه لوئ دجابر او ظالم حاكمانو ظلم د حقِ وينا نه بند نه كړې شوچاچه كوړې اوخوړې او مصيبتونه ئې تيركړه ، د دار په تختوباندې زوړنده شو ، د حق اوچتولو دپاره ئې د تورو لاندې او د توپونو په گولو كښې خپل ځانونه قربان كړه ، هيڅ ويرې هغوى لره مرعوبه نه كړه اونه يو لوئ نه لوئې طمعې اود دنيا لالچ تابع كړه ، شعر:

ٹل نہ سکتے تھے جو میدان میں اڑجاتے تھے　　پاؤں شیروں کے بھی میدان سے اکھڑجاتے تھے
تجھ سے سرکش ہوا کوئی تو بگڑ جاتے تھے　　تیغ تو کیا چیز ہے ہم سب توپ سے لڑجاتے تھے
نقش توحید کا ہردل پہ بٹھایا ہم نے　　زیر خنجر بھی یہ پیغام سنایا ہم نے

دا داسې نفوسِ قدسيه وو چه دهغوى په عبادت باندې فرښتو ته فخروو چه دهغوى لمنې د ملائكو دپاره مصلے جوړيدلې شوې چه دهغوى د پاكدامنئ قسم خوړلې كيدلې شو چه دهغوى بدنونه ټوله شپه د بسترونه په جدا وو ، هغوى به د ماسخوتن په اودس سره د سحر مونځ كولو او خشيتِ الهيه دهغوئ نه د دنيا ټول خوندونه ختم كړى وو ، څوك سرې چه هغه پاكو روحونو ته د

قرآن خلاف عجمی سازشونو کولو والاوانی ، که چرته د هغوی د تحریرونو د وجه نه د عالم اسلام اود عاشقانِ رسول صلی الله علیه وسلم غیرت په جوش کېنې راشی نود فتنې او فساد او بدامنۍ ذمه داری به په چاباندې عائد کیږی ؟

## ناپاک عزائم

د رسول صلی الله علیه وسلم د دښمنانو مقصد صرف انکارِ حدیث پورې محدود نه دې بلکه دا خلق (علیهم ماعلیهم) د اسلام ټول نظام لره مشکوک کولو سره دهرامراونهی نه ازادیدل غواړی ، د مونځ د پنځو وختونو ، د رکعتونو شمیر و د فرائضو او واجباتو تفاصیل ، د د روژې او مونځ مفصل احکام ، د حج مناسک ، قربانی ، بیع اوشراء ، کورنی امور ، ازدواجی معاملات اود معاشرې قوانین ددې ټولو امورو تفصیل هم د حدیث نه ثابت دې ، قرآن کېنې د هرڅیز بیان اجمالاً دې چه دهغې تشریح او تفصیل په حدیثو کېنې دې ، پرویز (علیه ماعلیه) هغه ټولو تفصیلاتو او پوره نظام لره یوشان بدلول غواړی ، باقی پاتې شو قرآن نو په هغې کېنې هم خپل خانی تفسیرکولوسره حقیقی مطالب او مرادِ الهی لره ختمول غواړی ، دا خلق اهل قرآن بللې کیږی او په ظاهره د قرآن په تائید کېنې مضامین هم لیکی لیکن حقیقت کېنې هغوی د نستونړی مار جوړیدلوسره د قرآن مفهوم لره فنا کړې دې ، هم دا نه بلکه د قرآن حقانیت لره مشکوک کوی ، صحابه ، تابعین ، محدثین او فقهاء د پرویزگستاخ په قول د قرآن خلاف سازش کولو والا اود قرآن دښمنان وو نو هم دهغوی د اسلافو په لاسونو سره مونږ پورې د رارسیدلی قرآن په صداقت باندې څنگه اعتماد کولې کیږی ؟

## گندگی نه پټیږی

مشهوره ده چه گندگی نه پټیږی ، څکه چه هم دهغې بدبونی دهغې شیطانی کوی په همدې مناسبت د منکرینِ حدیث د تحریرونو یوڅو جملې لاندې ذکرکیږی :-

(۱) منکرینِ حدیث د جدیدِ اسلام بانیان دی (رساله طلوع اسلام ص ۱۲ اگست دسمبر ۱۹۵۲ء)

(۲) بالکل ښکاره ده چه الله او رسول نه مراد ((مرکزی حکومت)) دې (معارف القرآن ص ۲۵۴ ج ۴)

(۳) دین د قیامِ صلوٰة حکم ورکړې وو ، مذهب کېنې دا څیز د مونځ کولو مرادف جوړشو (پرویز، طلوع اسلام ص ۴۲ ، جون ۱۹۵۰ء)

(۴) مرکزی ملت ته به په هغې کېنې (د مونځ په جزئیاتو کېنې) د بدلولو حق وی (پرویز ، طلوع اسلام ص ۴۷، جون ۱۹۵۰ء)

(۵) خما دعوی خو صرف دومره ده چه فرض صرف دوه مونځونه دی چه دهغې وختونه هم دوه

دی . باقی تول نوافل دی، (عباد الله اختر. طلوع اسلام ص ۵۸ اگست ۱۹۵۰ء)
(۶) بیا تن سبا مسلمانان دوه مونځونه کولو سره ولې مسلمانان نه شې پاتې کیدلې (لاهوتی طلوع اسلام ص ۲۱ اگست ۱۹۵۰ء)
(۷) مذهب کښې مونځ ، روژه ، صدقه ، خیرات د داسې خوشامدانه مسلک (یعنې د منافقانه ژوند خوشامدانه مسلک) مظاهرجوړیږی (پرویز، طلوع اسلام جنوری، فروری ص ۱۰۸ - ۱۹۵۰ء)
(۸) حج یو بین الملی کانفرنس دې او د حج د قربانۍ مقصد بین الملی کانفرنس کښې شرکت کولو دپاره د خوراک څکاک سامان ورکول دی . مکه معظمه کښې د حج نه سوا د اختر د قربانۍ څه ثبوت نشته دې وغیره ، (رساله قربانی ازاداره طلوع اسلام)
(۹) د اختر په ورځ دولسو بجو پورې د لسو کروړو روپو قومی سرمایه ضائع کیږی او دا لس کروړه هرکال ضائع کیږی ، (رساله قربانی)
(۱۰) د اختر په ورځ دولسو بجو پورې د قوم بې شمیره روپۍ په ولو کښې بهیږی ، (اداره طلوع اسلام ص ۱ ستمبر ۱۹۵۰ء)
(۱۱) روایات (احادیث نبویه) محض تاریخ دې (پرویز طلوع اسلام جولائی ص ۴۹ ، جولائی ۱۹۵۰ء)
(۱۲) الغرض د حدیث صحیح مقام د دینی تاریخ وغیره دې . په دې سره تاریخی فائدې حاصلولې شی . لیکن د دینی حجت په طور باندې نه شی پیش کیدلې (اسلم جیراجپوری ، طلوع اسلام، ص ۷۳ نومبر ۱۹۵۰ء)
(۱۳) حدیثونه ظنی دی (مقدمه اول) د ظن پیروی د قرآن په رڼا سره منع ده (مقدمه دوم) د حدیث د نتیجې پیروی د قرآن په رُو سره منع ده[1] (اسلم جیراجپوری ، طلوع اسلام ص ۷۵ جولائی ۱۹۵۰ء)
(۱۴) په خلاف دهغه، نه حدیث باندې زمونږ ایمان دې نه په هغې باندې د ایمان راوړلو مونږ ته حکم کړې شوې دې (اسلم جیراجپوری ، طلوع اسلام ص ۱۷ دسمبر ۱۹۵۰ء)
(۱۵) د حدیثو پوره سلسله یو عجمی سازش وو اوکوم ته چه شریعت وئیلې کیږی هغه د بادشاهانو پیداکړه دې (پرویز ، طلوع اسلام ص ۷ اکتوبر ۱۹۵۲ء)
(۱۶) صرف مرداره ، بهیدونکې وینه ، خنزیر او د غیرالله نوم طرف ته منسوب څیزونه حرام دی . ددې نه علاوه نور څه حرام نه دی بلکه محمد صبیح ایدوکیټ لیکی چه د مذکوره څلورو څیزونو

---

۱ - د دې جواب به تاسو ته په آینده صفحو کښې ملاو شی .

نه علاوه باقي د هر څيز خوړل فرض دی د خوراک نه انکار کول ګناه او د الله د حکم معصيت دي .
(طلوع اسلام جون ۱۹۵۲ء)

يعنې د سپي ، خر ، ګيدړ ، پيشو ، مږې حتیٰ چه د متيازو او د غټ اودس ماتي وغيره خوراک فرض دي ، د دي نه ښکاريږي چه منکرين حديث د الله د حکم د معصيت نه د بچ کيدلو دپاره فرض او ثواب ګڼلو سره شپه او ورځ مذکوره څيزونه په مزې مزې سره خوري ، سود الله تعالی وجوههم .

## د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمني پريښودونکی خلک به ګوتې مروړي

د اکتوبر ۱۹۵۲ء رساله طلوع اسلام نه معلوميږي چه د پرويز (عليه ماعليه) پنشن زمانه نزدې ده او هغه ته دومره پنشن ملاويدلې شي چه هغه به د معاش د طرف نه بې فکره شي اوس خو هغه ته يو څو دوستان هم په لاس راغلی دی . لهذا پرويز (عليه ماعليه) اوس هغه مشن (انکارِ حديث) لره پوره تنظيم سره د چلولو اراده کړې ده .

لهذا مونږ پرويز (عليه ماعليه) ته خبرداري ورکوؤ چه که چرته ستاسو هم دا عزائم او ارادې دي نو بسم الله مونږ هغه چيلنج لره قبلوؤ ، د حضور صلی الله عليه وسلم په نوم باندې خان قربانولو او د سرورکائنات په سنتو او اسوهٔ حسنه باندې خان قربانولو والا د الله په فضل سره اوس هم ژوندی دی او قيامته پورې به ژوندی وی ، زمونږ د لاسونو نه به د رسول الله صلی الله عليه وسلم د لمني پريښودونکی خلك مغلوبه کولې کيږي ، د رسالت په لار کښې رکاوټ پيداکولو والا به د يو نوک سره چقولې کيږي ، د رسول د دښمنئ حوصلې ساتلو والا ذلې به ټکړې ټکړې کړلې شی او د رسول په لاره کښې ازغی خورولو والا د څوارلسمې صدئ ابولهب به دخپلو بدکاريانو نتيجه هم په دنيا کښې تيروی ، د پاکستان دستورساز اسمبلئ قرارداد مقاصدو کښې د کتاب الله سره چه د سنتو لفظ هم شريک کړې دې ، په هغې باندې پرويز (عليه ماعليه) ډيرخفه دې . متواتر چغې سورې وهي او فرياد کوی چه قراردادِ مقاصد نه دې سنتِ نبوی صلی الله عليه وسلم لره حذف کولو سره صرف کتاب الله لره دې باقي اوساتلې شي . دا درنده په پاکستان کښې د يو ډيرلوئې فتنې دروازه خلاصول غواړی او حکومت ته مشوره ورکوی چه د دين اصل الاصول او د مسلمانانو اجماعی عقيدې لره په يوځائ ختمه کړئ شي ، مونږ ته يقين دې چه د پاکستان اربابِ حل وعقد په وړاندې به داسې مفسدانه آوازونه بې فائدې ثابتيږي . که چرته بالفرض والمحال دستورساز اسمبلئ قراردادِ مقاصد نه سنتِ نبويه لره حذف کړو نو په کومه ورځ چه (الله دې نه کړی) دا اعلان کيږي ، هغه ورځ به د پاکستان په تاريخ کښې ډيره سخته ورځ وی ، دا خبرې په هغه مملکت کښې نه شی چليدلې چه د کتاب او سنت په نوم باندې وجود کښې راغلی وی .

مسلمانان هغه متاع بې بها لره په یو قیمت باندې هم نه شي پریخودلې . زمونږه د تحریرد اندازې نه به یوصاحب ته هم د سختۍ شکایت نه وي ځکه چه دا منکرینِ حدیث حقیقت کښې منکرینِ اسلام دی ، دا د کفر او ایمان سوال دې مونږ په هغوی باندې ذره قدرې نرمی کول هم روا نه ګڼو ، زمونږه او د هغوی جنګ دې اودهغې ابتدا مونږه نه ده کړې ، هغوی کړې ده ، هم هغوی د رومبئ فتنې اور بل کړې دې ، پس مونږ به هم هغه فتنې لره د ختمولو دپاره خپل ټول قوتونه صرف کوو ، دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم اسوهٔ حسنه زمونږ ځان او ایمان دې ، د حضورصلی الله علیه وسلم دنوم اود کار د حفاظت دپاره خپل ځان قربانول مونږ انتهائی سعادت ګڼو ، شعر:

فان ابی ووالدتی وعرضی لعرض محمد منکم وقاء

حق خو دادې چه داسې قسم ملحدانو لره په تورو وژلوسره هغوی ته دهغوی د کردار مزه ښودل پکار دی مګر د شریعتِ غراء د حفاظت اود امتِ مسلمه د امن په خاطر د قانونِ الٰهی مطابق د یو ملحد مر کولوسره دهغه ناپاک وجود لره د دنیا نه فناکول خو پریږده، دلته خو د داسې قسم ملحدینو متعلق خبره کول او احتجاج کول هم ممنوع ګرځولې شوې دې ، شعر:

یہ دستور زباں بندی عجب ہے تیری محفل میں

یہاں تو بات کرنے کو ترستی ہے زباں میری

## په دنیا کښې ډیر لوئ احمقان پراته دی

پرویز (علیه ماعلیه) دې خپلو عقیدتمندو باندې نه غاوره کیږی د عقیدتمندو جمع کیدل د حقانیت دلیل نه دې ، په دې دنیاکښې یو داسې یوه موضوع نشته دې چه هغې باندې اجتماع نه وی شوې ، هرآواز باندې څه نه څه خلق جمع کیږی ، مونږه پاګلانو پسې د عقیدتمندو ټولګو لره لاس ترلی کتلی دی ، هم زمونږ په کلی کښې یوسړې د یو هندو ددې وجه نه عقیدت مند دې چه هندو پاګل دې ، چه هرکله د قادیانی مجنون (چه د مراق خپله اقرار کوی) پسې په زرګونو احمقان جمع کیدلې شی نود بټالوی منکرِ اسلام د جهنډې لاندې که چرته یوڅو بې وقوفه یوځائ شی نو څه تعجب دې ؟ په دنیا کښې د بې وقوفو کمۍ نشته دې دلته لوئ نه لوئ احمقان پراته دی .

## د خوفناکې فتنې په مقابله کښې اودریږئ

مونږ پورته ښکاره کړی دی چه د څوارلسمې صدۍ ابولهب د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره د دښمنۍ منصوبې لره جماعتی تنظیم سره چلول غواړی ، لهذا اے د شمع رسالت پروانو ! د سیدالکونین صلی الله علیه وسلم نوم اخستلو والو! دمحبوبِ دوعالم د محبت او عشق دعویدارو!

د شفیع المذنبین د شفاعت طلب گارو ا پاسن د دښمنان رسول دمقابلې دپاره اودرېږئ . بې غیرته دې هغه سرې چه دحضورصلی الله علیه وسلم خلاف یوآواز واوری اودهغه حمیت بې چینه نه وی . بې ایمانه دې هغه کس چه د حضور صلی الله علیه وسلم د توهین کولو منصوبې پخپلو سترگو باندې گوری اودهغه په زړه کښې در اونه لگی . ملعون دې هغه مسلمان چه دهغه په مخامخ دحضورصلی الله علیه وسلم نوم او اسوهٔ حیات لره ختمولې کیږی . مگر دهغه په رگونوکښې وینه جوش نه وهی اود بدن ویختان یې اونه دریږی . هرمسلمان باندې فرض دی چه دهغه خبیثې ونې اوباسلو دپاره تیار اوکمربسته شی . هغه فتنې لره په نرمئ سره ختمیدلې نه شی . دهغې د ختمولو دپاره پوره قوت استعمالول پکار دی . هغه اهلِ ایمان چه دحضور صلی الله علیه وسلم اتباع لره عین ایمان گنی دهغوی فرض دی چه تقریرونو . تحریرونو . عام محفلونو او صحبتونو کښې هغه فتنې لرې ملامته کړی او ناواقفه مسلمانانو لره دې د هغه بې دینئ د سیلاب نه بچ کړی . دا اختلاف د مسلمانانو مختلفو مسلکونو په مینځ کښې د فروعی اختلاف په شان نه دې دا د ایمان اوکفر اختلاف دې . لهذا ټول جزئی اختلافاتو لره پریخودلوسره متحد محاذ قائمول اود مسلمانانو ټولو جماعتونو لره په مقصد باندې جمع کیدلوسره دهغه فتنې مقابله کول فرض دی .

ددې نه پس مونږ حجیتِ حدیث باندې مختصراً یوڅو دلائل پیش کوؤ . حضرت حسان بن ثابت رضی الله عنه د دښمنانِ رسول په مقابله کښې اودریدلو نو حضور صلی الله علیه وسلم به فرمائیل ((اللّٰهم ایده بروح القدس)) ددې وجه نه زه د دښمنانِ رسول په مقابله کښې مضمون لیکلو په وخت هرلمحه انتهائی سعادت اوخوش نصیبی گنم . د آقائې نامدارصلی الله علیه وسلم د ((فداه ابی وامی)) مذکوره ارشادِ گرامی چه کله مخې ته راشی نو په زړه کښې هم هغه سرور محکم کیدل شروع شی چه د حضرت حسان رضی الله عنه په زړه کښې کیدل . دهغه خوند په وراندې د دنیا ټول خوندونه بې فائدې او لوئ نه لوئ مصائب او رنج اوغم ختمیږی . هم دا صرف یو خدمت دې چه هغه زه اوثق الاعمال او ذریعه د نجات گنم او هم دا هدیه دخپل آقا صلی الله علیه وسلم په بارگاه کښې پیش کوم. شعر: گر قبول افتد زہے عز و شرف .

## آیاتِ بینات

(۱) ﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا﴾

وحی لره د ارسالِ رسول په مقابله کښې ذکر کول دال دی په دې خبره چه بغیر د ارسال نه هم وحی وی، او هم دا حدیث دې .

(۲) ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا﴾ په دې آیت سره معلومه شوه چه بیت المقدس طرف ته

استقبال حكم الهي وو ، حالانكه قرآن مجيد كښې دا حكم مذكور نه دې.

(۳) ﴿عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ سره معلومه شوه چه وړاندې د رمضان په شپه كښې هم جماع كول حرام وو ، دا حرمت هم حديث سره وو ، قرآن كښې ددې ذكر نشته.

(۴) ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ د احد په موقع باندې نازل شوې په هغې كښې مذكور دى چه په بدر كښې الله تعالى د ملائكو د نازليدلو وعده فرمائيلې وه ، حالانكه قرآن كښې د بدر په موقع باندې ددې قسم څه وعده مذكور نه ده ، معلومه شوه چه د ملائكو د نازليدلو وعده وحى غيرمتلوسره وه چه حديث دې.

(۵) قرآن كريم كښې د وړاندينو انبياء عليهم السلام حديثونه مذكور دى چه د حديث په حجيت باندې واضحه دليل دې ، چه هركله د وړاندينو انبياء عليهم السلام حديثونه دهغوى په امتونو باندې واجب الاتباع كيدل قرآن سره ثابت دى نو د نبى كريم صلى الله عليه وسلم حديث مونږ باندې ولې واجب العمل نه دى ؟

(۶) قرآن كريم كښې دحضرت ابراهيم عليه السلام د خوب واقعه مذكوره ده چه په هغې كښې صريح دليل دې چه د نبى خوب ليدل حجت او واجب العمل دې ، حالانكه خوب ليدل وحى متلو نه ده . حضرت ابراهيم عليه السلام ته د ډيرو اميدونو نه پس آخرعمركښې الله تعالى فرزند وركړو بيا هم حالتِ رضاع كښې د ډيرمدې نازبين خوئ لره په شاړه زمكه كښې پريخودلوسره د فراق صدمې برداشت كړې ، مګر د خليل عليه السلام د مقامِ تسليم او د رضا د امتحان يو سخت ترين مقام لا باقى وو ، حضرت ابراهيم عليه السلام خوب ليدلو لره حكم الهى يقين كولوسره بغير د څه تردد نه د تعميلِ حكم دپاره نه صرف آماده كيږى بلكه لختِ جګر لره د قربانولو عمل هم نهايتِ تيزئ سره شروع كوى ، دحضرت ابراهيم عليه السلام د نازبين خوئ د ذبح اقدام كول او د اسماعيل عليه السلام د «**افعل ما تؤمر**» په ځائ « **افعل ما ترى** » وئيل او د الله تعالى «**قد صدقت الرؤيا ، وفديته بذبح عظيم**» ارشاد فرمائيل او هغه امتحان لره « **بلاء مبين** » سره تعبير كول ، دا جمله امور ښكاره دليل دې په دې خبره چه حضرت ابراهيم عليه السلام ته په خوب كښې د ذبح ولد حكم شوې وو او هغه حكم واجب العمل هم وو .

(۷) قرآن كريم كښې ځاى په ځاى ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ ارشاد دې ، كه چرته د نبى قول اوفعل قابلِ اعتبار نه دې نو د « اطيعوا الله » سره « واطيعو الرسول » لفظ باربار ولې ذكركړې شوې دې قرآن كريم كښې ډيرو ځايونو كښې باربار د اطاعتِ رسول تاكيد كړئ شوې دې اود رسول الله صلى الله عليه وسلم په نافرمانئ باندې وعيد اوروليې شوې دې .

(۸) ﴿فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ (۴ ، ۵۹) . ترجمه : كه چرته تاسو يو څيز كښې جګړه

اوکړئ نو هغه الله او رسول ته حوالئ کوئ.

(۹) ﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ (۳، ۱۶۴)

ترجمه: «یقیناً احسان کړی الله تعالی په مؤمنانو باندې چه هر کله ئې هم په هغوی کښې د هغوی د جنس نه یو داسې پیغمبر اولیږلو چه هغه، هغه خلقو ته د الله آیتونه وربنائی او دهغه خلقو صفائی کوی او هغوی ته د کتاب او د فهم خبرې ښائی»

(۱۰) ﴿كَمَا أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِنْكُمْ يَتْلُوا عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ﴾ (۲، ۱۵۱)

ترجمه: څنګه چه مونږ ستاسو د جنس نه په تاسو کښې داسې رسول لره اولیږلو چه تاسو ته زمونږ آیتونه دراوښائی اوتاسو پاکوی او تاسو ته د کتاب اود فهم او د داسې علوم تعلیم درکوی چه دهغې نه تاسو ناواقفه وئ.

(۱۱) ﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ﴾ (۲، ۱۲۹)

ای زمونږه ربه! په هغوی کښې دهغوی د جنس نه یو داسې رسول لره واستوه چه هغوی ته ستا آیتونه واوروی او هغوی ته د کتاب اود حکمت تعلیم ورکړی او هغوی پاک کړی.

(۱۲) ﴿هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ (۶۲، ۲)

ترجمه: الله تعالی ناخوانده خلقو کښې دهغوی د جنس نه یو داسې رسول لره اولیږلو چه هغوی ته د الله آیتونه وربنائی او هغوی پاکوی او هغوی ته د آسمانی کتاب او د فهم تعلیم ورکوی.

دا آیتونه دمعنی او مفهوم لحاظ سره قطعی طور باندې محکم دی، چه دې کښې ښکاره دلالت دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کار د ډاکخانې د ډاکی په شان فقط رسول نه وی بلکه حضورصلی الله علیه وسلم د کتاب او حکمت معلم اود مسلمانانو دپاره مزکی هم وو، د تعلیم الکتاب فرض چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ذمه باندې اولګولې شو نو دوی صلی الله علیه وسلم به هغه فرض لره څنګه ادا کولو؟ آیا د قرآن طلبه (صحابه رضی الله عنهم) د دوی نه د یو آیت په باره کښې ارو څه پوښتنه نه کوله؟ او که چرته ئې پوښتنه کوله نو آیا دوی دهغوی په جواب کښې هم د قرآن یو آیت پیش کولو؟ آیا دا طریقه د تعلیم قرینِ قیاس کیدلې شی چه یو معلم د یو کتاب تعلیم ورکړی نو طلبه تلاوتِ متن اود سماع نه سوا هډو د یوې خبرې پوښتنه اونه کړی، اوکه چرته څه پوښتنه اوکړی نو استاد دهغې په جواب کښې هم د کتاب متن اوورائی. خپل طرف نه هیڅ تشریح اونه کړی. د معلم فرض دی چه د کتاب د مجملاتو تفسیر او تشریح اوکړی

اوډ طالبانو اعتراضاتو او شکوکو لره حل کړي ، د کتاب مفهوم او معنی باندې ښه پوهه کړي ، پرویز وائی چه د قرآن د پوهې دپاره د حدیثو ضرورت نشته دې ، هریو سړې خپلو دماغو سره قرآن باندې پوهیدلې شی ، مونږ پوښتنه کوؤ چه په قرآن کښې د صلوة ، صوم ، حج او زکواة وغیره د تفاصیلو ذکر چرته دې ، او که چرته د قرآن د تفسیر کولو چاته حق نه دې نو تاسو معارف القرآن لیکلوسره د حماقت ثبوت ولې ورکړو ؟ د حضورصلی الله علیه وسلم تفسیر خو قابلِ قبول نه دې اوډ هغه ګستاخ رسول تفسیر به قابلِ اعتباروی ، حضور صلی الله علیه وسلم یقیناً خپل قول او فعل سره د قرآن تشریح فرمائیله اوډ صحابو رضی الله عنهم د ژوند تزکیه به ئې کوله ، که چرته د حضورصلی الله علیه وسلم قول اوفعل قابل اعتبار نه دې نو معلم الکتاب او مزکی څنګه شو ؟ او بیا د «**والحکمة**» عطف د مغایرت مقتضی دې ددې وجه نه مفسرینو د حکمت تفسیر حدیث سره کړې دې ، نیز «**ویعلمکم مالم تکونوا تعلمون**» کښې تکریرعامل په دې باندې دال دې چه دا علوم د قرآن نه سوا دیوبل جنس دی ، هم دا حدیث دې ، حضورصلی الله علیه وسلم به چه د قرآن تشریح او تفصیل کولو هغه دخپل ذات طرف نه ، نه وو بلکه هغه به هم وحی او الهام کیدلو څنګه چه د آئنده آیت نه ښکاره دی .

(۱۳) ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴾ (۵۳، ۴) ، ترجمه : تاسو د خپل نفسانی خواهشاتو نه خبرې نه کوئ ستاسو ارشاد خالص وحی ده .

(۱۴) ﴿ فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ﴾ (۵۳، ۱۰) ، ترجمه : الله تعالی پخپلو بندګانو باندې څه وحی نازل اوفرمائیله ، دې دواړو آیتونو سره معلومه شوه چه حدیث وحی ده .

(۱۵) ﴿ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴾ (۴، ۲۵) ، ترجمه : قسم دې ستا په رب باندې چه دا خلق هغه وخته پورې هیچرې مؤمنان نه شی کیدلې ترڅوپورې چه پخپلو اختلافاتو کښې تالره فصیل جوړ نه کړي ، بیا ستافیصلې نه زړه تنګی نه وی او په خوشحالئ سره یې قبوله کړي .

(۱۶) ﴿ لَّقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ ﴾ (۳۳، ۲۱) ، ترجمه : ستاسو دپاره په رسول الله صلی الله علیه وسلم کښې بهترینه نمونه ده .

الله تعالی خپلو احکامو لره په لفظونو کښې رااولیږی ، هغه پخپله مونځ کولو سره ، زکوٰة ورکولوسره ، حج کولوسره او روژه نیولو سره اونه ښودل ، دې فریضې لره حضور صلی الله علیه وسلم عملی کړه ، ددې وجه نه ئې اوفرمائیل «صلوا کما رایتمونی أصلی » د الله تعالی ذات د ښځې ، بچو او شریک نه پاک دې ، نو حضورصلی الله علیه وسلم د ښځې سره حسن سلوک ، د ماشومانو تربیت ، د ملګرو او دښمنانو سره ښه سلوک کولو سره اوښودل ، د الله تعالی نازل کړه

احکامو لره عملی کولوسره یونمونه قائمه کړه ، غرض داچه د حضور صلی الله علیه وسلم ذات
گرامی قول اوفعل اوډیر اوعمل سره د قرآن مفسر او معلم وو ، گویا چه دوی وتیلي شوي قرآن وو

شعر : قاری نظر آتے تھے حقیقت میں تھے قرآن

(۱۷) ﴿قُلْ هَٰذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي﴾ (۱۳، ۱۰۸) ، ترجمه : اووایه چه دا
زما لار ده ، زه الله طرف ته رابلم په داسې حال کښي چه زه او زما متبعین په دلیل باندي قائم دی .

(۱۸) ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ﴾ (۳، ۳۱) ، ترجمه : اووایه چه که چرته تاسو د الله
تعالی سره محبت لرئ نو زما اتباع اوکړئ .

(۱۹) ﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ (۴، ۶۴)، ترجمه : مونږه هررسول ځکه
اولیږلو دي دپاره چه د الله په حکم سره دهغه اطاعت اوکړي شي .

(۲۰) ﴿فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ﴾ (۳، ۵۰) ، ترجمه : د الله نه ویریږئ او زما اطاعت کوئ .

(۲۱) ﴿مَّن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ﴾ (۴، ۸۰) ، ترجمه : چاچه د رسول اطاعت اوکړو هغه د الله
اطاعت اوکړو .

(۲۲) ﴿وَإِن تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا﴾ (۲۴، ۵۴) ، ترجمه : که چرته د رسول اطاعت اوکړئ نو هدایت به
اومومئ .

(۲۳) ﴿فَاتَّبِعُونِي وَأَطِيعُوا أَمْرِي﴾ (۲۰، ۹۰) ، ترجمه : زما اتباع اوکړئ او زما د حکم اطاعت اوکړئ
(۲۴) (۳۳، ۳۳) د الله اود رسول اطاعت اوکړئ

(۲۵) «واطعن الله ورسوله» (۵۰، ۱۴)، ترجمه : که چرته تاسو د الله او د رسول اطاعت اوکړئ
نو الله تعالی به ستاسو په عملونو کښي ذره قدرې کمی نه کوی .

(۲۶) ﴿وَإِن تُطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَا يَلِتْكُم مِّنْ أَعْمَالِكُمْ شَيْئًا﴾ (۸، ۲۴) ، ترجمه : د الله اود الله د رسول
صلی الله علیه وسلم اطاعت کوئ ،

(۲۷) ﴿اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ﴾ (۳، ۵۳) ، ترجمه : ای زمونږه ربه مونږه ستا په نازل کړی شوی
احکامو باندې ایمان راوړو او مونږه د رسول صلی الله علیه وسلم اتباع اوکړه .

(۲۸) ﴿رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ﴾ (۷، ۱۵۸) اووایه چه ای
خلقو ! زه ستاسو ټولو طرف ته د الله پیغمبر یم .

(۲۹) ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ (۲۱، ۱۰۷)، ترجمه : مونږه ته رحمة
للعالمین جوړولوسره اولیږلي

(۳۰) ﴿ وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (۳۴، ۲۸)
ترجمه: مونږ ته د ټولې دنیا دپاره بشیراو نذیر جوړولو سره اولیږلې.

(۳۱) ﴿ مَّا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ ﴾ (۳۳، ۴۰)، ترجمه: تاسو د الله رسول نې او خاتم النبیین نې.

په دې څلورو واړو آیتونو کښې واضحه دلیل دې چه ترقیامته پورې د حضورصلی الله علیه وسلم قول او فعل حجت دې. رحمت، بشیر او نذیر هله کیدلې شی چه دوی مزکی وی او د دوی قول اوفعل حجت وی.

(۳۲) ﴿ وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ الْعَالَمِينَ نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴾ (۲۶، ۱۹۵)
ترجمه: قرآن تا باندې څکه نازل کړې شو دې دپاره چه ته خلقو لره او ویره وې.

(۳۳) ﴿ رُّسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ ﴾ (۴، ۱۶۵)، ترجمه: رسولانو لره بشیر او نذیر جوړولو سره اولیږلې شو.

(۳۴) ﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ﴾ (۳۳، ۴۶)
ترجمه: مونږه ته شاهد، بشیراو نذیر. الله طرف ته رابللو والا اوروښانه چراغ جوړولو سره اولیږلې.

(۳۵) ﴿ يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُم بُرْهَانٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكُمْ نُورًا مُّبِينًا ﴾ (۴، ۱۷۴)، ترجمه: ای خلقو تاسو ته د الله د طرف نه دلیل او ښکاره نور راغلې دې.

(۳۶) ﴿ قَدْ جَاءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَابٌ مُّبِينٌ ﴾ (۵، ۱۵)، ترجمه: تاسو ته د الله د طرف نه نور او ښکاره کتاب راغلې دې.

(۳۷) ﴿ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا ﴾ (۳۳، ۳۶)، ترجمه: مؤمن سړی یا مؤمنه زنانه ته دا اختیار نشته دې چه د الله او د رسول فیصلې لره رد کړی چاچه د الله او د رسول نافرمانی اوکړه هغه ښکاره په ګمراهۍ کښې دې.

(۳۸) ﴿ وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴾ (۱۶، ۴۴)، ترجمه: مونږ په تاباندې قرآن څکه نازل کړو دې دپاره چه ته خلقو دهغه تشریح اوکړې.

په دې آیت سره معلومه شوه چه د حضورصلی الله علیه وسلم منصب تبیین اوتشریح ده، د ذکرنه مراد قرآن، بیان نه حدیث او تفکرنه مراد اجتهاد او استنباط دې

(۳۹) ﴿ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ﴾ (۱۴، ۴۴)

ترجمه د قیامت په ورځ کافران وائی چه ای ربه چه مونږ ته دې څه مهلت ملاؤ شی نو مونږ به ستااو ستا د رسول اطاعت اوکړو.

(۴۰) ﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ (۲۴، ۶۳)، ترجمه د رسولانو نافرمانانو ته د دنیاوی او اخروی عذاب نه ویریدل پکار دی.

(۴۱) ﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا﴾ (۲۵، ۲۷)، ترجمه: په هغه ورځ به ظالمان د حسرت د وجه نه خپل لاسونو کټکولوسره خوری او وائی به چه کاش مونږ د رسول اتباع کړې وې

(۴۲) ﴿يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ﴾ (۴، ۴۲)، ترجمه: د قیامت په ورځ به د رسول نافرمان تمناکوی چه کاش خاورې شو.

(۴۳) ﴿يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا﴾ (۳۳، ۶۶)، ترجمه دوزخیان به وائی چه کاش مونږ د الله او د رسول اتباع کړې وې.

مونږ پرویز ته بطور خیرخواهئ مشوره ورکوؤ چه دهغه عذاب او رسوائ نه وړاندې د رسول د دښمنئ نه توبه گار کیدلو سره داسلام په دائره کښې داخل شه.

(۴۴) ﴿قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ﴾ (۹، ۲۹)، د ترجمه: داسې خلقو سره جنگ اوکړئ چه الله او آخرت باندې ایمان نه لری او د الله او د رسول حرام کړه شیزونو لره حرام نه گنی.

ددې آیت د حکم مطابق حکومتِ اسلامیه باندې فرض دی چه دقتال په ذریعې سره د پرویز بیخ کنی اوکړی یعنی د مونده دې اوباسی.

(۴۵) ﴿وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ﴾ (۷، ۱۵۷)، ترجمه: رسول پاکیزه شیزونو لره حلال او خبیث شیزونو لره حرامه وی.

(۴۶) ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ﴾ (۹، ۵۹)، ترجمه: که چرته دا خلق د الله او د رسول په ورکړو شوؤ شیزونو باندې راضی شوې وې نو دوی دپاره به بهتره وې.

(۴۷) ﴿وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ اللَّهِ وَرُسُلِهِ﴾ (۴، ۱۵۰)، ترجمه کافران د الله او د رسول په اطاعت کښې فرق کول غواړی.

(۴۸) ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوا لَهُ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَن تَحْبَطَ أَعْمَالُكُمْ وَأَنتُمْ لَا تَشْعُرُونَ﴾ (۴۹، ۲)، ترجمه که چرته تاسو د رسول په آواز باندې خپلو آوازونه

اوچتوئ نو ستاسو اعمال به ضائع شی .

حافظ ابن قیم وائی چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم آواز باندې دخپلو آوازونو اوچتول چه هرکله د اعمالو د بربادیدلو باعث دې نود رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم په مقابله کښې خپلې رائې لره مقدم ساتل د اعمالو د تباهئ سبب ضرور وی .

(۴۹) ﴿النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ﴾ (۳۳ . ۶)، ترجمه : نبی د مؤمنانو سره پخپله دهغوی د نفس نه هم زیات تعلق لری .

(۵۰) ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ﴾ (۴ . ۱۰۵)، ترجمه : مونږه ستا طرف ته قرآن ددې وجه نه نازل کړو چه ته په خلقو کښې حکم الهی سره فیصله اوکړې .

(۵۱) ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا﴾ (۵۹ . ۷)، ترجمه : د رسول د حکم اطاعت کوئ اودکوم څیز نه چه رسول مو بندوی دهغې نه بند شئ .

اسلم جیراجپوری وائی . « **ما اتکم الرسول فخذوه الخ** » مالِ غنیمت سره خاص دې د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیث او هدایات په دې کښې شامل نه دی او په دلیل کښې یوه د خندا خبره ذکرکوی چه حدیثونه چونکه اقوال دی ددې وجه نه په هغې باندې د ایتاء لفظ اطلاق نه شی کیدلې . دا نتیجه ده د رسول د دښمنئ چه پخپله په قرآن کښې تحریف کول شروع کړی ، قرآن مجید کښې کتاب ، حکمت ، علم ، فضل ، رحمت ، عذاب وغیره باندې د ایتاء اطلاق کړئ شوې دې ، لکه : ﴿ءَاتَىٰنِيَ ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلَنِي نَبِيًّا ـ وَءَاتَىٰنِي رَحْمَةً مِّنْ عِندِهِۦ ـ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُ تَقْوَىٰهُمْ ـ فَـَٔاتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ ٱلنَّارِ ـ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحُكْمَ صَبِيًّا ـ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ ٱلْحِكْمَةَ ـ وَعَلَّمْنَٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾

د رسول سره د دښمنئ په جرم کښې عقل او فهم خو مسخ شوې وو . اوس یې حافظه هم دیوالی را اوتله ، بلکه سترګو ئې هم کار پریخودلو . قرآن کښې څه لس شل کرته نه بلکه باربار ډیرو ځایونو کښې د کتاب ، علم او حکمت متعلق د ایتاء لفظ راغلې دې ، مګر د مهارتِ قرآنی د مدعیانو بصیرت سره سره بصارت هم مسخ شوې دې ، او هغه ورځ هم څه لرې نه ده چه د دښمنانِ رسول په ژبه باندې به د « **رب لم حشرتنی اعمی وقد کنت بصیراً** » ( ای الله زه دې ړوند ولې پاسولم حالانکه زه خو ړوند نه ووم ) ورد وی، فرض محال که چرته د «**ما اتکم الرسول**» مالِ غنیمت سره مخصوص کیدل تسلیم هم کړې شی نو مونږ پوښتنه کوؤ چه هرکله د مالِ غنیمت په باره کښې د حضور صلی الله علیه قول او فعل تاسو هم حجت منئ نو په نورو امورو کښې د دوی صلی الله علیه وسلم اسوهٔ حسنه ولې قابل د اعتبار نه ده؟ مابه الفرق څه څیز دې .

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیث

د حدیث د حجیت اثبات په خپله دحدیث نه کیدلې نه شی ، لهذا لاندینی احادیث د مؤید اتو د باب نه دی . منکرینِ حدیث د تاریخ نه استدلال کوی او حدیث خو په وجه د تنقید او تنقیح د اسنادوغیره د تاریخ نه په خود رجو سره قوی دې . د حدیثو د حجیت د اثبات دپاره درې قسمه دلائلِ قطعی دی چه په هغې کښې قرآنی آیتونه پورته ذکرشو اود اجماع اوعقلِ سلیم بیان به د حدیثونو پس به راځی .

(۱) عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یؤمن احدكم حتی اكون احب الیه من ولده ووالده والناس اجمعین. (رواه الشیخان)

ترجمه : «حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : یوسړې هم هغه وخته پورې مؤمن نه شی کیدلې ترڅوپورې چه دهغه ځما سره دخپل اولاد ، اودخپل مورپلار او د ټولو خلقو نه زیات محبت نه وی» ، نو محبت مستلزم دې د محبوب اطاعت لره ، شعر:

تعصی الرسول وانت تظهر حبه      هذا لعمری فی الفعال بدیع

لوكان حبك صادقا لاطعته      ان المحب لمن یحب مطیع

(۲) عن ابی امامة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فی خطبة یوم حجة الوداع، ایها الناس انه لا نبی بعدی ولا امة بعدكم فاعبدوا ربكم وصلوا خمسكم وصوموا شهركم وادوا زكوة اموالكم طیبة بها انفسكم واطیعوا ولاة اموركم تدخلوا جنة ربكم (مسند امام احمد)

ترجمه : حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ای خلقو ځما نه پس بل نبی نشته او ستاسو نه پس بل امت نشته دې . تاسو دخپل رب عبادت کوئ او پنځه وخته مونځونه ، د رمضان روژې او په فراخه زړه سره زکوٰة ادا کوئ اود مسلمان حکام اطاعت کوئ نو ستاسو دپاره جنت دې .

(۳) عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم كل امتی یدخلون الجنة الا من ابی قالوا یارسول الله ومن یابی قال من اطاعنی دخل الجنة ومن عصانی فقد ابی. (رواه البخاری)

ترجمه : حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه ځما ټول امت به په جنت کښې داخلیږی مګر څوک چه انکار اوکړی . صحابو رضی الله عنهم عرض اوکړو چه انکار به څوک کوی . نو دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه چا ځما اطاعت اوکړو هغه به جنت ته داخلیږی او چا چه ځما نافرمانی اوکړه هغه انکار اوکړو .

(۴) عن انس رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم یابنی ان قدرت ان تصبح وتمسی

**وليس في قلبك غش لاحد فافعل ثم قال يا بني وذلك من سنتي ومن احب سنتي فقد احبني ومن احبني كان معي في الجنة (رواه الترمذی)**

ترجمه: حضور صلى الله عليه وسلم حضرت انس رضی الله عنه ته اوفرمائيل چه حتى الامكان د چا سره بغض مه ساته بيا ئې اوفرمائيل چه دا خما سنت دی چاچه خما سنتو لره محبوب کړه هغه زه محبوب کړم او چاچه خما سره محبت اولرلو هغه به جنت کښې خما سره وی.

**(۵) عن عبدالله بن عمر رضي الله تعالى عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا يؤمن احدكم حتى يكون هواه تبعاً لما جئت به (شرح السنة)**

ترجمه: حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل يو سړې هم هغه وخت پورې مؤمن نه شی كيدلې ترڅو پورې چه د هغه خواهشات خما د بنودلی شوی احکامو تابع نه شی.

**(۶) عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين (ابوداؤد)**

ترجمه: رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه تاسو خما او د خلفائې راشدينو طريقې لره لازم اونيسئ.

**(۷) ولو تركتم سنة نبيكم لضللتم (مسند احمد بن حنبل ودارمی)**

ترجمه: كه چرته د نبی لاره پريږدئ نو گمراه به شئ.

**(۸) وجوب اتباع النبي صلى الله عليه وسلم فيما لم يوح اليه من القرآن (مسند احمد بحواله مفتاح)**

ترجمه: كوم حكم چه په قرآن كښې مذكور نه وی په هغې كښې د رسول الله صلى الله عليه وسلم اتباع فرض ده.

**(۹) ملازمة الرجل للكتاب والسنة (موطا امام مالك بحواله مفتاح)**

ترجمه: قرآن او حديثو باندې عمل كول فرض دی.

**(۱۰) اثم الحائد عن السنة (دارمی بحواله مفتاح)**

ترجمه. د حديث نه اعراض كولو والا سخت گنهگار دي.

**(۱۱) كان جبريل ينزل على النبي صلى الله عليه وسلم بالسنة كما ينزل عليه بالقرآن (دارمی بحواله مفتاح)**

ترجمه: حضور صلى الله عليه وسلم باندې چه به څنگه جبرئيل قرآن نازلولو هم هغه شان حديث به ئې هم د الله د طرف نه نازلول.

**(۱۲) السنة قاضية على القرآن (دارمی بحواله مفتاح)**

ترجمه. حديث د قرآن تفسير او تشريح ده.

**(۲) ملعون التارك لسنة رسول الله صلى الله عليه وسلم (ترمذی بحواله مفتاح)**

ترجمه : حدیث لره پرېښودونکې ملعون دې .

**(۳) عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من تمسك بسنتي عند فساد امتي فله اجر مائة شهيد (بیهقی)**

ترجمه : رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل چه کوم سړی د فتنې په زمانه کښې څما سنتو لره مضبوط اونیول دهغه دپاره د سلو شهیدانو ثواب دې .

**(۴) عن ابي سعيد الخدري رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من اكل طيبا وعمل في سنة دخل الجنة الخ (ترمذی)**

ترجمه : رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائیل چه حلال خوړلو والا او حدیث باندې عمل کولو والا به جنت ته ځی .

**(۵) عن ابي رافع رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا الفين احدكم متكئاً على اريكته يأتيه الامر من امري مما امرت به ونهيت عنه فيقول لا ادري ما وجدنا في كتاب الله اتبعناه (ابوداؤد وترمذی)**

ترجمه : حضورصلى الله عليه وسلم اوفرمائیل چه بعضې خلق به داسې هم پیدا کیږی چه د مال او دولت په نشه کښې به مغروره کیږی هغوی وړاندې که چرته یو حدیث بیان کړې شی نو د حدیث انکار به کوی او وائی به چه مونږ خو صرف قرآن لره منلو والا یو .

**(۶) الا وان ما حرم رسول الله صلى الله عليه وسلم فهو مثل ما حرم الله (دارمی بحواله مفتاح كنوز السنة)**

ترجمه : کومو څیزونو لره چه په حدیثو کښې حرام کړې شوی دی هم هغسې حرام دی لکه چه هغه څیزونه چه دهغې حرمت په قرآن سره ثابت دې .

**(۷) عن المقدام بن معديكرب رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الا اني اوتيت القرآن ومثله معه الا يوشك رجل شبعان على اريكته يقول عليكم بهذا القرآن فما وجدتم فيه من حلال فأحلوه وما وجدتم فيه من حرام فحرموه وان ما حرم رسول الله صلى الله عليه وسلم كما حرم الله الا لا يحل لكم الحمار الاهلي ولا كل ذي ناب من السباع الخ (رواه ابوداؤد والدارمی وابن ماجة)**

ترجمه : حضورصلى الله عليه وسلم اوفرمائیل چه ما باندې د قرآن نه علاوه نورهم څه ډیر احکام نازل کړې شوی دی ، بعضې خلق به دمال اودولت د وجه نه په غرور کښې وی او وائی به چه مونږه د قرآن نه سوا حدیثو لره نه تسلیموو . حالانکه رسول الله صلى الله عليه وسلم چه د کومو

ښیزونو حرمت لره په حدیث کښې بیان فرمائیلې دې هم هغسې حرام دی څنګه چه هغه ښیزونه چه دهغې حرمت په قرآن کښې مذکور دې لکه خر او هر درنده حرام دې ، « حالانکه دهغې حرمت په قرآن کښې ذکر نه دې »

(۳) عن العرباض بن سارية رضي الله تعالى عنه قال قام رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال أيحسب أحدكم متكئا على أريكته يظن أن الله لم يحرم شيئا إلا ما في هذا القرآن ألا وإني والله قد أمرت ووعظت ونهيت عن أشياء إنها لمثل القرآن أو أكثر الخ (رواه ابوداؤد)

ترجمه : رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه بعضې خلق به د مال او دولت په غرور کښې وائی چه حرام صرف هم هغه ښیزونه دی دکومو حرمت چه په قرآن کښې بیان کړئ شوې دې دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل خبردار په الله قسم بلاشبه ما ډیر د داسې اوامر اونواهی تبلیغ کړې دې چه د قران په اندازه بلکه دهغې نه هم زیات دی .

دا آخری دوه حدیثونه چونکه د انکارِ حدیث د خبیثې ونی جرړه اوښکله ، ددې وجه نه دښمنانِ رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغې باندې اعتراض اوکړو چه دا حدیثونه موضوعی دی او دلیل ئې دا بیان کړې دې چه قرآن خو معجز دې اودهغه مثال راوړلو نه جن اوانس وغیره عاجز دی نو احادیث د قرآن مثل څنګه کیدلې شی . د قرآن خلاف د عجمی سازشونو لاندې احادیثو لره وضع کولو سره د قرآن مثل ګرځولې شوی دی .

**جواب:** (۱) حدیث کښې مثل نه فضل ، فصاحت ، بلاغت او اعجاز کښې مماثلت مراد نه دې بلکه واجب الاتباع کیدلو کښې مثل فرمائیلې شوې دې . یعنې د کتاب او سنت دواړو منل ضروری دی . او په هغې باندې عمل کول واجب دی

(۲) مثل نه مراد مثل فی الکمیت دې . چنانچه په بل حدیث کښې د «اواکثر» لفظ په دې باندې واضح دلیل دې . لغت کښې د شدت او ضعف لفظ د کیفیت دپاره او کثرت او قلت د کمیت دپاره راځی ، عرف او اصطلاح کښې هم داسې استعمال دی ، قرآن مجید کښې دی ﴿أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِ مِنَ الْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا﴾ (۲۸ ، ۷۸) قوت سره د اشد او جمعا سره د اکثرلفظ دې . غرض داچه لغت په عرف او د شریعت په اصطلاح کښې هرلحاظ سره د کثرت لفظ په کیفیت کښې نه بلکه په کمیت کښې استعمالیږی . مګر رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د دښمنئ د وجه نه عقل دومره کمزورې او ضعیف شوې دې چه د ښکاره حقیقت د پوهې نه قاصر دې .

هم دغه شان غلام جیلانی برق لیکی چه د حضورصلی الله علیه وسلم بیوې بی بی د حیض په

حالت کښې مونځ کولو او وینه به لاندې پریوتله ، برق دې حدیث بیانولوسره په دې باندې اعتراض کوی چه حائضه څنګه مونځ ادا کولې شی ، دا هم د برق په جهالت او نادانۍ باندې ښکاره دلیل دې ، دحضورصلی الله علیه وسلم دا بی بی چه هغې لره برق حائضه لیکلې ده دا حائضه نه وه بلکه له هغې نه د استحاضې وینه غورځیدله اود استحاضې په حالت کښې مونځ معاف نه دې ، دا خو بطور مثال مونږ بیان کړو ، او که نه نو د رسول الله د دښمنانو چه څومره اعتراضات په حدیثو باندې دی هغ ټول هُم دغه شان په جهالت باندې بنا دی .

## د اُمت اجماع

د حضورصلی الله علیه وسلم زمانې نه واخله ترننه پورې امتِ مسلمه هره معامله کښې حدیث لره حجت ګنی ، صحابه رضی الله عنهم ، خلفائې اربعه ، تابعین ، تبع تابعین ، فقهاء ، ائمه ، محدثین ، صوفیاء او علماء د حضورصلی الله علیه وسلم اسوۂ حسنه لره د هدایت لاره ګنلو سره راروان دی اود حضورصلی الله علیه وسلم قول اوفعل سره استدلال کولوسره راروان دی دهغې تفصیل به مونږ د «تدوینِ حدیث» په ضمن کښې لیکو .

## عقلِ سلیم

که چیرې دوئ وائی چه د حدیثونو راویان د قرآن خلاف عجمی سازش کولو والا دی نو ددې وجه نه حدیث قابلِ قبول نه دی نو مونږ وایو چه قرآن هم دهغوئ په واسطو سره مونږ پورې رارسیدلې دې ، پس قرآن څنګه قابلِ اعتبارکیدلې شی ؟ که چرته اووئیلې شی چه د قرآن په باره کښې د الله تعالی ارشاد دې ﴿ إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴾ (بې شک مونږ قرآن لره نازل کړو اوهم مونږ دهغه محافظ یو ) نو مونږ وایو چه په خپله ددې آیت په صداقت باندې څنګه اعتماد کولې کیږی ؟ ځکه چه دا خو هم د هغوخلکو په وساطت سره مونږ ته رارسیدلې دې چه په حدیث کښې وسائط دی .

(۲) صحابه رَضی الله عنهم او تابعین ومن بعدهم او ټول امتِ مسلمه چه حدیث لره حجت تسلیموی آیا په هغې کښې دهغوی نه اجتهادی غلطی شوې ده ، یا ئې سره د پوهې نه داسې کول ؟ که چرته اجتهادی غلطی شوی وی یعنې حقیقت کښې حدیث قابلِ اعتبار نه وو مګر د اسلافو نه غلطی اوشوه چه هغوی هغې لره قابل عمل ګنلو نود غور کولو مقام دې چه د ټول امت متقدمین او متاخرین علماء او صلحاء ټول په ټوله اسلاف هم په دې اجتهادی غلطۍ کښې تر ډیرو قرونو پورې مبتلاء وو ؟ یو تن هم هغه غلطۍ لره محسوس نه کړه ؟ او که چرته اسلافو حدیث لره ناقابلِ اعتبار ګنل ، ددې باوجود سره د پوهې حدیثونه بیانولوسره د قرآن خلاف یې سازشونه کول نو په دې امت

کښې مؤمن څوک پاتې شو ؟ صحابه رضی الله عنهم ، تابعین ، تبع تابعین ، ائمه ، محدثین او ټول سلف صالحین رحمهم الله خو نعوذبالله گستاخ او د قرآن مخالف وو ، آیا د مذهب اسلام څوارلس سوه کلن ژوند کښې رومبنۍ مؤمن صرف هم پرویز( علیه ماعلیه ) دې ؟ کوم دین چه څوارلسو کالو پورې صرف د مخالفینو په قبضه کښې وی او دومره مودې پورې دهغې څوک محافظ او قبلولو والا بالکل پیدا شوې نه وی نو داسې دین باندې څنګه اعتماد کیدلې شی ؟

(۳) دا امر د پوښتنې لائق دې چه الله تعالی قرآن مجید او سابقه آسمانی کتابونو لره د رسولانو په واسطې سره ولې نازل کړه ؟ که چرته الله تعالی هریو بشرته لیکلې شوې کتاب د رسول د واسطې نه بغیر رالیږلې وې نو د صریح معجزې کیدلو د وجه نه به زیات مؤثرووو ، کافران پخپله ددې طلب ګار وو چه لیکلې شوې کتاب د الله تعالی د طرف نه په هغوی باندې نازل شی ، نو که چرته دا طریقه اختیارکړې شوې وې نو د دوی د وینا موافق کیدلو په وجه به زیات د هدایت سبب وې . مګر بیا هم دا طریقه اختیار نه کړې شوه بلکه د رسولانو په معرفت ئې کتابونه نازل اوفرمائیل ، او رسول یې هم صرف په انسانانو کښې منتخب کړو . کافرانو به وئیل چه د پیغام رالیږلو دپاره الله تعالی فرښتې ولې را ونه لیږلې ، دې دپاره چه مونږ ته ددې احکامو منزل من الله کیدلو یقین اوشی ، الله تعالی ددې په جواب کښې فرمائی : ﴿وَلَوْ جَعَلْنَٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَٰهُ رَجُلًا﴾ (۶. ۹) که چرته مونږ فرښتو لره رسول جوړولوسره رالیږلې نو په انسانی صورت کښې به مو رالیږلې وو ﴿لَّوْ كَانَ فِى ٱلْأَرْضِ مَلَٰٓئِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُولًا﴾ (۱۷. ۹۵) یعنی که چرته په زمکه باندې فرښتې اوسیدلې شوئ نو مونږ به رسول هم فرښتې رالیږلې .

غرض داچه سوال دادې چه د کتابونو د نازلیدلو لپاره رسولانو لره واسط جوړولو او رسالت دپاره بالخصوص هم انسانانو لره منتخب کولو باندې دومره اصرار ولې اوکړئ شو ؟ ددې جواب په خپله کلام الله کښې موجود دې ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ ٱللَّهِ﴾ (۴. ۶۴) یعنې الله چه څومره رسولان رالیږلی دی دهغوی د بعثت مقصود صرف داوو چه هغوی د فرامین خداوندی مطابق حکم ورکړی او پخپله د قوانینِ الهیه مطابق ژوندتیرکړی او نازل شوی احکامو لره عملی کولوسره د امت دپاره یو نمونه قائمه کړی دې دپاره چه امت دهغوی اتباع اوکړی . که چرته بلاواسطه په رسول احکام نازلیدلې اود هغې تفصیل او تشریح کولو والا او عملی جامه اچولو والا څوک نه راتللې نو خلقو به د آیتونو په مفهوم او معنیٰ کښې اختلاف کولو او منشاء الهی پیژندلو کښې به ئې غلطی کوله ، هغوی لره پوهولو والا به څوک نه وو ، دې ضرورت لره خو څه حده پورې فرښتو هم پوره کولې شو ، مګر دهغوی متعلق به خلقو دا خیال کولو چه فرښتې خو د قوتِ شهوانیه غضبیه نه پاکې دی او انسانی حوائجو او ضروریاتو نه مستغنی دی . ددې وجه

نه به د طهارت په احکامو کښې انسان د فرښتو تقلید نه شو کولې ځکه چه انسان خیته لری د خوراک څکاک ، د ډک او تش او او سحرا ته د تلو محتاج دې . د شهوت او غضب قوت لری . د جذباتو ، داعیاتو ، امراضو او عوارضو شکارکیږی . د ښځې بچو په جنجال کښې راګیرېږی ، ددې وجه نه د فرښتو اتباع د انسان په وس کښې نشته دې . خلقو به وئیلې شو چه مونږه انسانی کمزوریانې لرلوسره د فرښتو د متقیانه ژوند تقلید څنګه اوکړو ؟ ددې وجه نه ضروری وه چه یو انسان هم دهغوی جذباتو او عوارضِ انسانیه سره زمکې ته راتلې . هغه ته هم هغه ټول معاملات مخې ته راتلې چه یو عام انسان ته مخې ته راځی دې دپاره چه هغه د قوانینِ الهیه مطابق ژوند تیرولوسره ښودلې چه په کومه طریقه انسان د الله تعالی نازل کړې شوی قوانینو باندې عمل اوکړی ، قدم په قدم باندې ئې خلقو ته خپل قول اوعمل سره هدایات ورکولې او هغوی ئې پوهولې چه انسان د ژوند مشکلو لارو نه څنګه بچ کیدلوسره په نیغه لاره باندې روانیدلې شی . غرض داچه لفظونو کښې نازل شوو احکامو ته عملی جامه اچولوسره یې د امت دپاره اسوۀ حیات قائمولې ، بس هم دا وجه ده چه پخپله الله تعالی زمونږ دپاره صرف کتاب لره کافی اونه ګڼلو ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اسوۀ حسنه پیروئ لره کتاب سره په مونږ باندې لازم کړه

ددې نه پس مونږ د دښمنانِ رسول الله صلی الله علیه وسلم د خرافاتو جواب طرف ته متوجه کیږو :

**ومبنئ اعتراض** :- دښمنانِ رسول وائی چه حدیث بالاتفاق ظنی دې او د ظن پیروی د قرآن په رو سره منع ده . ﴿ وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴾ (۱۰ . ۳۲)، ﴿ قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴾ (۲ ، ۱۴۸)، ﴿ وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴾ (۲ ، ۱۱۲)، ﴿ وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَٰئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا ﴾ (۱۷ ، ۳۲)

نتیجه دا را اوتله چه د حدیث پیروی د قرآن په روسره منع ده .

**جواب** :- د ظن لفظ په دریو معانیو کښې استعمالیږی .

(۱) اټکل یعنې بلادلیل محض ګمان اوتخمین (۲) شواهدو او قرائنو سره ظنِ غالب (۳) ظن په معنی د نظری او استدلالی علم یقینی چه په دلیل او برهانِ قطعی سره حاصل شوې وی

په لاندینیو قرآنی آیتونو کښې د ظن لفظ هم د علم یقینی په معنی دې . ﴿ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ﴾ (۲ ، ۴۲)، ﴿ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ ﴾ (۲ ، ۲۴۹)، ﴿ وَظَنَّ دَاوُودُ أَنَّمَا فَتَنَّاهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ﴾ (۳۸ ، ۲۴)، ﴿ كَلَّا إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴾ (۷۵ ، ۲۸) ﴿ أَلَا

بِظَنٍّ أُولَئِكَ أَنْتُمْ تَسْئَلُونَ ﴾ (۸۳، ۵)

قرآن ظن په معنی د محض اټکل اود تخمين د پيروئ نه منع کړي ده ، د احاديثو سلسله نعوذبالله محض اټکل او تخمين نه ده ، پس احاديثو ته د ظن معنی ثاني (ظن غالب) او معنی ثالث (علم يقيني استدلالي) په لحاظ سره ظني ونيلې کيږي ، ډير احاديث د علم يقيني استدلالي فائده هم ورکوي .

حافظ ابن حجر رحمه الله متوفی ۸۵۴ هجري، په شرح د نخبة الفکر کښې فرمائي :

وقد يقع فيها اي في اخبار الاحاد المنقسمة الى مشهور وعزيز وغريب ما يفيد العلم النظري بالقرائن على المختار (شرح نخبة الفكر)

علم يقيني استدلالي خو ظاهر دي چه واجب الاتباع دي ، باقي پاتې شو هغه حديثونه چه د ظنِ غالب فائده ورکوي ، نو شريعتِ مطهره ظنِ غالب لره د يقين حکم ورکولوسره واجب الاتباع ګرځولي دي ، د شرعي يقين دپاره د ثقه عادل شهادت (چرته ديو ، چرته د دوو ، او چرته د زياتو ) کافي دي اګرچه هغه په احاديثو کښې موجود دي ، په دې لحاظ سره احاديث ټول يقيني دي ، ظني ورته ددې وجه نه ونيلې کيږي چه مفيد د علم يقيني استدلالي دي يا ددې وجه نه چه په اکثرو احاديثو کښې عقلاً د خطا احتمال موجود دې شرعاً نه ، غرض داچه احاديثو ته شرعاً ظني ځکه ونيلې کيږي چه بعضې احاديث مفيد د علم يقيني عقلي استدلالي دی ، او اکثراحاديث مفيد د ظنِ غالب دی ،او دنيا کښې ظنِ غالب باندې د عمل کولو نه سوا څه چاره نشته دې ، مونږ شپه اوورځ په خپلو ټولو معاملاتوکښې هم ظنِ غالب باندې عمل کوو ، د دوا څکلوپه وخت کښې د شفا يقين نه وی بلکه زيات د ضرر احتمال موجود وی ، موټر ، ريل ، طياره او بحري جهازوغيره باندې د سوريدلو په وخت کښې مونږ ته دهغې دمشينرئ څه علم نه وی ، د مشينرئ د پرزو د صحيحوالي څه علم نه وی ، د لارې د حوادثاتو نه د محفوظ کيدلو څه يقين نه وی ، د طيارې د پريوتلو او د ريل د پټلئ نه کوزيدلو ، د بحري جهاز د غرق کيدلو احتمال موجود دې ، سره ددې نه مونږ شپه او ورځ په دې څيزونوکښې سفر کوو ، د بازار نه د غوښې اخستلو په وخت کښې دهغې د حلالوالي ، د غوړو ، شودو ، سبزو چينو وغيره د پاکوالي اود اوبو څکلو او غسل کولو په وخت کښې دهغې د طهارت هيچرې کامل يقين نه وی او نه کيدلې شی ، ټول عمر په معاملاتو کښې د ظنِ غالب په پيروئ باندې مجبوره يو ، د ظنِ غالب پيروئ لره که پريخودلې شی نو انسان په دنيا کښې ژوند پاتې کيدلې نه شی ، مار ته ورتللوسره مونږ ته دهغه د خوړلو يقين نه وی او د خوړلو نه پس د مړ کيدلو يقين نه وی هم دغه شان زهر څکلوسره مرګ يقيني نه وی ، سره ددې نه مونږ د زهرڅکلو نه ځان بچ کوو ، اود مار نه پرهيز کوؤ ، چه هرکله مونږ شپه او ورځ په هره معامله

کښې هم ظنِ غالب باندې عمل کوؤ نو څه وجه ده چه حدیث لره د ظنی کیدلو د وجه نه ترک کړئ شی ، قرآن یقینی دې او حدیث ظنی ، مگر ددې دا مطلب نه دې چه حدیث لره محض اټکل اوتخمین ګڼلوسره ناقابلِ عمل اوګرځولې شی ، د قرآن د یقینی اود حدیث ظنی کیدلو مطلب دې چه د قرآن هرهرلفظ تواترسره ثابتیدلو د وجه نه یقینی بدیهی عقلی دې ، حدیث کښې چونکه روایت بالمعنی جائز دې ددې وجه نه دهغه د هرلفظ متعلق قرآن په شان یقین نه شی کیدلې لهذا حدیث یقینی استدلالی یا یقینی شرعی دې ، لکه څنګه چه د مور علم یقینی دې اود پلار ظنی ، څکه چه د مور متعلق قطعی طور باندې وئیلې کیدلې شی چه د فلانکی سړی مور ده مگر د پلار په باره کښې هغه یقین سره حکم نه شې لګولې ، سره ددې نه د پلار علم یقینی شرعی دې .

**دویم اعتراض** :- حضورصلی الله علیه وسلم د احادیثو د لیکلو نه منع فرمائیلې وه . (لاتکتبوا عنی ومن کتب عنی غیرالقرآن فلیمحه)(مسلم) د احادیثو د لیکلو نه منع کول ددې امر دلیل دې چه حدیث حجت نه دې ، ددې نه پس د دریمې صدئ په آخرکښې محدثینو حدیثونه جمع کړل ، دهغه محدثینو اود حضورصلی الله علیه وسلم په مینځ کښې عموماً پنځه او کله ددې نه هم زیات وسائط دی ، دا محدثین روایت درروایت ، درروایت ، درروایت ، درروایت کوی چه کوم څیز په دومره وسائطو سره مونږ پورې رااورسی په هغې باندې څنګه اعتماد کیدلې شی ؟ ددې نه پس عامو خلقو کښې د پلار او نیکه نه حدیثونه بیانول او په هغې باندې د عمل کولو رسم پیدا شو ، چه دهغې تردید قرآن باربار په دې لفظونو سره کړې دې ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا﴾ (۳۱، ۲۱).

ترجمه : چه کله هغوی ته د قرآن د پیروئ متعلق وئیلې کیږی نووائی چه مونږ دخپل پلارنیکه پیروی کؤو .

**جواب** :- ددې اعتراض د جواب دپاره د تدوینِ حدیث د تاریخ د بیان ضرورت دې لهذا مونږ مختصراً په قدر د ضرورت سره هغه مضمون باندې رڼا اچول غواړو .

## د احادیثو تدوین

په ابتداء کښې حضورصلی الله علیه وسلم د کتابتِ حدیث نه څکه منع فرمائیلې وه چه قرآن سره التباس اونه شی څکه چه هغه وخت کښې د کتابتِ قرآن عام دستور وو او عوام د قرآنی اسالیبو اودهغه معجزانه انداز نه لا پوره مانوسه نه وو ، د کتابتِ حدیث نه د منع کولو دا مقصد هیچرې نه وو چه حدیث قابلِ اعتبار نه دې ، که چرته دا مقصد وې نودوی صلی الله علیه وسلم به

د حدیث بیانولو نه هم منع کوله . حالانکه د مسلم شریف په کوم روایت کښې چه د کتابت حدیث نه نهی ده هم دهغه روایت په آخر کښې دا جمله هم ده « **وحدثوا عني ولا حرج** » د منکرینِ حدیث د بددیانتئ دا عالم دې چه د کوم حدیث نه استدلال اخلی هم دهغې په آخرکښې هغه جمله چه د هغوی د هوائیاتو باطلو خلاف ده هغه بالکل حذف کوی . او بیا تعجب دادې چه دوئ د انکارِ حدیث دپاره پخپله د حدیث نه استدلال کوی چه هرکله حدیث قابلِ اعتماد نه دې نو «لا تکتبوا- الخ» باندې څنګه اعتماد اوکړې شو ؟ د حدیث د اشاعت دپاره حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : «**فليبلغ الشاهد منكم الغائب**» یعنی حاضر دې غائب ته اورسوی .

پخپله د حضورصلی الله علیه وسلم په زمانه کښې اودهغه نه پس د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې د حدیثونو بیانولو عام رواج وو ، حضورصلی الله علیه وسلم معاذبن جبل رضی الله عنه ته یو خدمت باندې استولو سره ارشاد اوفرمائیلو چه ته به څنګه فیصله کوې ؟ حضرت معاذبن جبل رضی الله عنه عرض اوکړو چه ړومبئ به قرآن باندې نظر کوم . بیا به ستا قول اوعمل سره استدلال کوم ، بیابه د اجتهاد نه کاراخلم ، حضورصلی الله علیه وسلم په هغه باندې د خوشحالئ اظهار فرمائیلو سره د حجتِ حدیث تصدیق ثې اوکړو د حضورصلی الله علیه وسلم دا هم ارشاد دې : (**تسمعون ويسمع منكم ويسمع ممن يسمع منكم**) (**ابوداؤد و كتاب العلم**) د منکرینِ حدیث دا وینا چه د دریمې صدئ په آخر کښې د حدیثو تدوین شوې دې سراسرغلطه ده ، د تدوین کار هم د حضورصلی الله علیه وسلم د زمانې نه شروع شوې وو اګرچه عوامو ته د اختلاط بالقرآن د ویرې نه د کتابتِ حدیث اجازت نه وو خو بیا هم خاص خاص خلقو ته د کتابت اجازت وو .

ابوهریرة رضی الله تعالی عنه فرمائی چه ماته د ټولو نه زیات حدیثونه یاد دی مګر عبدالله بن عمروبن العاص لیکل اوما نه لیکل ، (انه کان یکتب ولا اکتب) (بخاری)

مستدرک حاکم نه معلومیږی چه پخپله حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه سره هم د احادیثو لیکلې شوې ذخیره موجود وه چنانچه حسن بن عمرو فرمائی چه ما یو خلې حضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه ته یو حدیث واورولو نو دوی دهغې نه انکار اوکړو او وې فرمائیل چه که چرته تا دا حدیث څما نه اوریدلې وې نو څما په کتابونو کښې به موجود وی چنانچه دوی په خپلو کتابونو کښې اولټولو نو دا حدیث ملاؤ شو .

په دې مقام باندې منکرینِ حدیثو دوه اعتراضونه اوکړه . (۱) د بخاری په روایت سره معلومیږی چه دحضرت ابوهریرة رضی الله تعالی عنه نه د عبدالله بن عمروعلم زیات وو په حدیثو کښې ، حالانکه د روایتونو ذخیره د ابوهریرة رضی الله تعالی عنه نه زیاته منقوله ده ، ددې جواب دادې چه د بخاری په روایت کښې استثناء منقطع ده ددې وجه نه دهغې د وړاندې جملې سره هیڅ تعلق نشته دې ، همدارنګه کثرتِ علم کثرتِ روایت لره مستلزم نه دې . د حضورصلی الله علیه

وسلم د وصال نه پس عبدالله بن عمرو ډیره موده په شام کښې اوسیدلې دې او د ابوهریرة رضی الله تعالی عنه قیام هم په مدینه کښې وو ، چونکه دورِ اول کښې دعلم مرکز هم مدینه وه ، خلقو به تحقیقی مسائلو کښې هم د مدینې علماؤ ته رجوع کوله ، ددې وجه نه ابوهریرة رضی الله تعالی عنه ته د روایاتو بیانولو زیاته موقع ملاؤ شوه .

مستدرک حاکم کښې دی چه ابوهریرة رضی الله تعالی عنه سره هم لیکلې شوی حدیثونه موجود وو او بخاری کښې دی «لااکتب» دهغې جواب دادې چه ابوهریرة رضی الله تعالی عنه ته پخپله لیکل نه وو ازده هغه سره چه کومه ذخیره وه هغه ئې په بل چا لیکلې وه ، (فتح الباری ص ۱۸۴ج ۱)

طبقات ابن سعد کښې د عبدالله بن عمروبن العاصؓ واقعه لیکلې ده چه هغوی خدمتِ نبوی صلی الله علیه وسلم کښې عرض اوکړو چه کوم حدیثونه ما ستاسو نه بالمشافهه اوریدلی دی دهغې د لیکلو اجازت راکړئ . حضورصلی الله علیه وسلم اجازت ورکړو بیا عبدالله پوښتنه اوکړه چه صرف د حالتِ نشاط حدیثونه اولیکم یا د حالتِ غضب هم ، دوی صلی الله علیه وسلم خپلې خولې مبارکې طرف ته اشاره کولوسره اوفرمائیل چه ددې نه بغیر دحق نه بل هیڅ نه را اوځی . چنانچه هغوی احادیث جمع کړه اودهغې نوم ئې «الصادقه» کیخودلو ، هم دا واقعه د ابوداؤد په کتابُ العلم کښې هم ده .

چه هرکله خلق د قرآن د معجزانه اسلوبو نه ښه واقفه شو نو حضورصلی الله علیه وسلم نه صرف د کتابتِ حدیث اجازت ورکړو بلکه د لیکلو حکم ئې ورکړواو په ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنه ئې دینی مسائل او پیغمبرانه هدایات په خپله اولیکل.

کان رجل من الانصار یجلس الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فیسمع من النبی صلی الله علیه وسلم الحدیث فیعجبه ولا یحفظه فشکی ذلك الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال یا رسول الله انی لا سمع منك الحدیث فیعجبنی ولا احفظه فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم استعن بیمینك واوما بیده للخط (رواه الترمذی)

د مکې د فتح په موقع باندې دوی صلی الله علیه وسلم یو خطبه ارشاد اوفرمائیله او د ابوشاه یمنی په درخواست باندې یی هغه خطبه اولیکله او هغه ته ئې ورکړه . وې فرمایل : «اکتبوا لابی شاه» (مفتاح السنة مصری ص ۱۷ وبخاری)

عمروبن حزم لره یمن ته د استولو په وخت حضورصلی الله علیه وسلم یومفصل تحریری هدایت نامه اولیکله چه په هغې کښې د صدقاتو ، دیاتو ، فرائضو وغیره احکام و . (مفتاح السنة ص ۱۸) دمسلم بن الحارث پلار ته حضورصلی الله علیه وسلم په بل سړی باندې یو بشارت ولیکلو او هغه ته یی ورکړو (ابوداؤد)

د طائف یو سړی عبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنهما ته یو کتاب اورولي وو «ترمذی کتاب العلل» د خطیب د روایت مطابق حضرت انس رضی الله تعالی عنه سره هم د احادیثو مجموعه وه ، حضرت انس رضی الله عنه به خپل اولاد ته د کتابتِ حدیث حکم ورکولو «دارمی ص ۲۸»

ابن عبدالبر جامع کښې د عبدالرحمن بن مسعود نه نقل کړی دی چه هغه یو کتاب ښودلو سره قسم اوخوړلو او وې وئیل چه دا د عبدالله بن مسعود د لاس لیکلې شوې دې .

عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما بعضې احادیثو له لیکلو سره د صحیفې په صورت کښې دخپل ځان سره اوساتل «بخاری» بعضې کثیرالروایات صحابه مثلاً د ابوهریرة ، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمر ، جابربن عبدالله ، براء بن عازب او انس بن مالک وغیرهم رضی الله تعالی عنهم مرویاتو له به دهغوی شاگردانو دهغوی په وړاندې کیناستلو سره لیکل ، «دارمی ۲۸و ۲۹ ، تهذیب التهذیب جلد ۴ ص ۱۹۸ ، کتاب العلل الترمذی»

حضرت عمر رضی الله عنه د عمالِ حکومت دپاره د صدقة الماشیه احکام لیکلی وو ، «موطا مصری صفحه ۱۳۵ ، ۱۳۲ ، ۱۵ ، ۱۵۲ ، باندې داسې قسم مثالونه لیکلې شوی دی»

مگر هغه زمانه کښې حفظ صدور باندې زیات زور وو ، د عربو خلق په حافظه کښې مشهور وو ، طویلې او عریضې قصیدې د مختلفو مضامینو به هغوی ته یادیدلې اود اوښانو او د اسونو نسب نامې ئې حفظ وې ، دحضور صلی الله علیه وسلم احادیثو له هغه خلقو خصوصیت سره وحی الهی گنړلو سره حفظ کړو ، اود حضور صلی الله علیه وسلم قول او عمل له واجب الاتباع پیژندلو سره دهغې ئې حفاظت اوکړو ، د حضور صلی الله علیه وسلم د وفات نه پس کومو خلقو چه حضور صلی الله علیه وسلم نه وو لیدلې هغوی د لرې ځایونو نه سفر کولو سره د صحابو رضی الله عنهم نه د حضور صلی الله علیه وسلم د حالاتو پوښتنه کوله او هغه به ئې محفوظه کول . په خپله صحابه کرامو رضی الله عنهم نورو ممالکو ته رسیدلو سره دحدیثونو تبلیغ ئې اوکړو .

دارمی دمیمون بن مهران نه روایت کړې دې چه د ابوبکرصدیق رضی الله عنه په دورِ خلافت کښې چه کله به څه مقدمه مخې ته راتلله نو ابوبکررضی الله عنه به روميبځ په قرآن کښې لټوله که چرته قرآن کښې به فیصله نه ملاویدله نوپخپل معلوماتی احادیثو کښې به ئې غور کولو ، که چرته په هغې کښې هم قاصرشو نو صحابو کښې به ئې عام طور باندې اعلان کولو چه مونږ ته څه داسې قسم مسئله راغلې ده آیا تاسو صاحبانو کښې چاته ددې متعلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه فیصله معلومه ده ؟ بعضې وختونو کښې داسې هم شوی دی چه خلقو به دوی ته راتللو سره علم نبوی بیان کړو او هغې له اوریدلو سره به دوی شکر اوباسلو چه په مونږ کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرو له یاد ساتلو والا موجود دی ، او که چرته په هغې سره به هم فیصله اونه شوه نو صحابو نه مشوره اخستلو سره به ئې اتفاقِ رائې باندې فیصله کوله ، که چرته یو سړی به

داسې خبره اوکړه چه په صحابو کښې به مشهوره اومتعارفه نه وه نودهغه نه به دهغې متعلق شهادت طلب کیدلو خواه هغه به هرخومره معتبره وه ،

مغیرة بن شعبه د ابوبکررضی الله عنه په پوښتنې باندې چه کله اوویل چه جدّې (نیا) ته به حضورصلی الله علیه وسلم سدس (شپږمه حصه) ورکوله نو دوی پوښتنه اوکړه چه : «هل معک احد ؟» آیا ستا څوک گواه شته په دې باندې؟ محمد بن مسلمه هم دا گواهی ورکړه نو بیا صدیق اکبر رضی الله عنه جدې ته سدس ورکړو (بخاری ومسلم)

د حضرت صدیق رضی الله عنه نه پس دحضرت عمر فاروق رضی الله عنه دور راغلو او په هغې کښې تکبیرجنازه ، جزیهٔ مجوسی ، طاعون ، خبرالضحاک بن سفیان فی توریث المراة من دیة زوجها ، او خبر دسعد بن ابی وقاص فی المسح علی الخفین وغیره مسائلو فیصله هم احادیثو لره حجت جوړکړې شو ، حضرت عمرفاروق اعظم رضی الله عنه د ابوموسیٰ اشعری رضی الله عنه ددې حدیث په بیانولو باندې شهادت طلب کړو چه کله یو مسلمان ته ( د بهرنه) درې خلې سلام وئیلو باندې ( دننه نه ) جواب ملاؤ نه شی ( هغه ته د دننه راتللو اجازت ملاؤ نه شی ) نو واپس دې لاړ شی . د ابوسعید خدری رضی الله عنه په شهادت باندې د ابوموسی اشعری رضی الله عنه پریشانی ختمه شوه (مفتاح السنة ص ۱۹ ج ۲ حاکم ، بخاری ، مسلم)

په دې واقعاتو سره ثابته شوه چه محدثینو د حدیث د روایاتونو پوره تحقیق بیان کړې دې هم ددې وجه نه اسماء الرجال او اصولِ جرح اوتعدیل لره د مستقل فنونو په صورت کښې مدون اوفرمائیل . او صرف هم هغه احادیثو لره یې ( د محکم علمی شهادت په بناء باندې ) صحیح اوگرځول چه د اصولو د روایت او درایت په لوړ معیار باندې پوره شو او د تعارض په حالت کښې په هغې کښې یومعقول صورت د تطبیق پیدا شو او د قرآن خلاف یو حدیث لره یې هم قبول نه کړو.

حضرت شاه ولی الله رحمة الله علیه په ازالة الخفاء کښې فرمائی :

((فاروق اعظم رضی الله عنه بسیار ازامهات فن حدیث روایت کرده است ودردست مردم تاهنوز باقی است بعد ازان فاروق اعظم علماء صحابه رضی الله عنهم راباقلیم دارالاسلام روان ساخت وامر کرد باقامت شهرها وبه روایت احادیث درآنجا ))

حضرت ابوذرغفاری رضی الله تعالی عنه ته د روایتِ حدیث دومره شوق وو اود حدیثو تبلیغ او اشاعت یې دومره ضروری گڼلو چه فرمائی :- « که چرته تاسو څما د وژلو دپاره څما په سټ باندې توره کیږدئ او ماته دا امید وی چه د مرگ نه وړاندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم یوکلمه هم چه ما اوریدلې وی اورسوم نوزه به یې ضرور وایم » (بخاری)

ابوسعید خدری رضی الله تعالی عنه به چه کله احادیث بیانول نود اوریدلو والو به د شوق او

ذوق دا حالت وو چه د خلقو دیوال به د دوی په وړاندې اودریدلو ، بعضې صحابه رضی الله عنهم به د خلقو د ډیروالی د وجه نه د کوټو په چتونو باندې ختلو سره روایت بیانولو ، حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په زمانه نبوی کښې کم عمره وو. دوی په زیات عمرکښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم په دروازو باندې د سحر نه واخله ترغرمې پورې صرف ددې وجه نه کیناستلو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کومه خبره بیان کړی نوهغه اولیکم ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عهد مبارک کښې او د دوی نه پس د خلفائې راشدینو په زمانه کښې ډیر اکابر صحابه مثلاً معاذبن جبل ، عمروبن حزم ، عبدالله بن مسعود ، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمرو بن العاص ، زیدبن ثابت ، ابوالدرداء ، ابوذر ، ابوموسیٰ اشعری وغیرهم رضی الله عنهم مکه ، مدینه ، کوفه ، بصره ، شام ، مصر او یمن وغیره بلادمملکت اسلامیه کښې خواره شو او هرځائې هغوی د کتاب او سنتو تعلیم ورکړو .

د صحابو رضی الله عنهم نه پس د تابعینو رحمهم الله زمانه راغله . هغوی د دنیائې اسلام په ګوټونو ګوټونوکښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنتو لره کمالِ حفاظت سره اورسول صحابورضی الله عنهم کښې اګرچه ذاتی یاداشتونو لیکلې شوی وو . مګر د حدیثو یو مرتب کتاب نه وو . د اول قرن په آخرکښې عمربن عبدالعزیز متوفی ۱۰۱هجری د مدینې منورې والی ابوبکربن محمد بن عمروبن حزم ته اولیکل :

**انظر ما کان من حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم فاکتبه فانی خفت دروس العلم وذهاب العلماء**

**(مفتاح السنة ص۲۱)**

یعنی دحضورصلی الله علیه وسلم حدیثونه لیکه ماته د حدیثو د ختمیدلو ویره ده .

او هغه ته ئې دا هم اولیکل چه د عمره بنت عبدالرحمن انصاریه رضی الله عنها (متوفاة ۹۸ هجری) اود القاسم بن محمدبن ابی بکرالصدیق ((متوفی ۱۲۰هجری)) د احادیثو چه کومې مجموعې دی هغه لیکلوسره هغه ته ولیږه .

هم دغه شان نورو لویو ښارونو مکه ، کوفه ، بصره ، شام اویمن وغیره کښې خپلو عُمالو ته د تدوین حدیث دپاره اولیکل . امام محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن الشهاب الزهری المدنی (المتوفی ۱۲۴هجری) هم په هغه خلقو کښې وو چه هغوی ته د تدوینِ حدیث دپاره لیکلې شوی وو (مفتاح السنة)

دخلیفه عادل هغه هدایت د محدثینو حوصلې اوچتې کړې او هغوی خپلو کوششونو لره نور هم تیزکړو اوداحادیثو دتدوین کارپه لویه پیمانه باندې شروع شو . په هغه مقدسه ډله کښې د ټولو نه زیات ممتازشخصیت دمحمد بن مسلم الزهری دې . دده پیدائش په ۵۰ هجری کښې اوشو .د سنن

او آثارِ نبوی د قصر دا شپږ ستنې فنِ حدیث کښې لویه درجه لری امام زهری (مدینه کښې)، عمرو بن دینار (مکه کښې)، قتادة ویحیی بن کثیر (بصره کښې) ابو اسحاق وسلیمان اعمش (کوفه کښې)
امام زهری د تابعینو د طبقه اولیٰ په محدثینوکښې دې چه هغوی احادیثو لره قلمبند کړه روستو هم په دویمه صدئ کښې چه طبقه ثانیه ده په هغې کښې د تدوین کار خورشو. چنانچه ابن جریج (متوفی ۱۵۰ هجری)، د ټولو نه وړاندې مکه مکرمه کښې حدیثونو لره بصورتِ کتابت جمع کړو. (مدینه منوره کښې)، ابن اسحاق متوفی ۱۵۱ هجری او امام مالک متوفی ۱۷۹ هجری (بصره کښې)، ربیع بن صبیح متوفی ۱۲۰ هجری (کوفه کښې)، سفیان ثوری متوفی ۱۲۱ هجری (شام کښې)، اوزاعی متوفی ۱۵۲ هجری (یمن کښې)، معمر متوفی ۱۵۳ هجری او خراسان کښې ابن المبارک متوفی ۱۸۱ هجری وغیره حدیثونو لره لیکلو سره مدون کړه چه په هغې کښې اقوالِ صحابه اود تابعینو فتاوې هم شامل وې. هم په دې دور کښې سفیان بن عیینه مکه کښې، حمادبن سلمه وسعید بن ابی عروبه بصره کښې، هشیم بن بشیرواسط کښې، وکیع بن الجراح شام کښې. عبدالرزاق یمن کښې، جریربن عبدالله ری کښې وغیرهم داسې جلیل القدر محدثین تیرشوی دی چه دهغوی کارنامې حیاتِ ابدی موندلې دې. د دویمې صدئ یو څو مستند کتابونه دادي: (۱) مصنفالليث بن سعد (متوفی ۱۷۵ هجری)، (۲) موطاامام مالک بن انس (متوفی ۱۷۹ هـ (۳) مصنف سفیان بن عیینه (متوفی ۱۹۸ هجری)، (۴) مسند امام الشافعی (متوفی ۲۰۴ هـ)

ددې نه پس دریمه صدئ هجری دخدمتِ سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم جلیل القدر زمانه ده. په هغې کښې د صحاح سته وغیرها مستندکتابونو تدوین اوشو او ترننه پورې د علومِ نبوت دا نورانی منابع بکمالها موجود دی. صحاحِ سته دادي:

(۱) صحیح البخاری (متوفی ۲۵۲ هجری)، (۲) صحیح مسلم (متوفی ۲۲۱ هجری)، (۳) سنن ابی داؤد (متوفی ۲۷۵ هجری)، (۴) سنن الترمذی (متوفی ۲۷۹ هجری)، (۵) سنن النسائی (متوفی ۳۰۳ هجری)، (۲) سنن ابن ماجه (م ۲۷۳ هجری)، ددې نه علاوه لاندینی کتابونه هم په دې دریمې صدئ کښې مدون شو.

(۷) مسند احمد بن حنبل (متوفی ۲۴۱ هجری)، (۸) مسند اسحاق بن راهویه (متوفی ۲۳۷ هـ) (۹) مسندعبدبن حمید (متوفی ۲۴۹ هـ) (۱۰) مسندالدارمی (متوفی ۲۵۵ هـ) (۱۱) المسند الکبیرللقرطبی (متوفی ۲۷۲ هـ) (۱۲) مسندابی یعلی الموصلی (متوفی ۳۰۷ هـ) (۱۳) تهذیب الاثار للامام محمدبن جریرالطبری (متوفی ۳۱۰ هـ) وغیرها

د محدثینو نه علاوه د فقهې امامانو هم د حدیثونو روایت کړې دې او په اسوهٔ رسول صلی الله علیه وسلم باندې دهغوی د احکامو اود فتاوو بنیاد وو

امام ابوحنیفه. ولادت ۸۰ هـ. وفات ۱۵۰ هـ. امام مالک. ولادت ۹۳ هـ وفات ۱۷۹ هـ امام

شافعي ولادت ۱۵۰هـ وفات ۲۰۴هـ . امام احمد ولادت ۱۲۴ هـ وفات ۲۴۱هـ . امام ابویوسف ولادت ۱۱۳هـ وفات ۱۸۲هـ . امام محمدبن حسن ولادت ۱۳۵هـ وفات ۱۸۹هـ .

غرض داچه چه هرکله د حضورصلی الله علیه وسلم د اسوۀ حسنه د حضورصلی الله علیه وسلم نه واخله ترننه پورې تبلیغ او حفاظت په اکملې طریقې سره راروان دې او جمیع امت دهغې نه استدلال کړې دې نو نن هغه ناقابلِ اعتبار ګرځول صریح ضلالت او ګمراهي ده . د قرآن په آیتونوسره ثابته شوې ده چه د حضورصلی الله علیه وسلم اسوۀ حسنه په امت باندې واجب الاتباع ده او دا هم ښکاره دی چه دا حکم ترقیامته پورې د مسلمانانو دپاره دې . ځکه چه حضورصلی الله علیه وسلم خاتم الانبیاء دې . پس که چرته د حدیثونو مونږ پورې د رارسیدلو کومه یوه ذریعه مضبوطه نه ده نو نعوذبالله الله تعالی داسې بې فائدې او فضول حکم ولې ورکړو چه هغې باندې عمل کول زمونږ دپاره ممکن نه دی .

محدثینو د حدیثنو د حفاظت دپاره هره ممکنه طریقه اختیارکړې ده . دعلم حدیث حاصلولو دپاره ئې د لرې لرې ملکونو سفرونه اوکړه زیات تکلیفونه او مشقتونه ئې برداشت کړه . بیا ئې حاصلولو نه پس تبلیغ کښې ځه قصرپرېږ نه خودلو . چنانچه امام بخاری دعلم حدیث په خاطر مکې ، مدینې ، شام ، بخارا ، مرو ، هرات ، مصر ، بغداد ، کوفه ، بصره ، بلخ ، نیشاپور اود نورو ډیرو ملکونو داسې زمانه کښې سفر اوکړو چه په هغه زمانه کښې د ریل ، موټر وغیره ځه بندوبست نه وو ،چرته به چه ورته د حدیثونو معلومات کیدلو هغه ځایځ ته به ورتللو . یوزراتیاؤ شیوخو نه ئې علم حدیث حاصل کړې وو . او امام بخاری نه مخامخ په مخامخ بلاواسطه علم حدیث حاصلولو والا د شاګردانو شمیر نوی زره دې .

دا خو د تحصیلِ حدیث او تبلیغ حالت وو . بیا صحیح او ممنوع حدیث لره د چانړکولو دپاره محدثینو د اسماء الرجال فن اولیکلو . د اسناد ئې پوره تنقیح او تنقید اوکړو . د حدیث صحت او اسقم لره د چانړ کولودپاره ئې هره ممکنه ذریعه اختیارکړه ،چه په کومو حدیثونو کښې به چه لږ غوندې ضعف معلومه شو یا شک پیدا شو هغه حدیث لره ئې هڅو په کتاب کښې درج نه کړو ، که چرته کوم یو محدث به درج هم کړو نودهغې ضعف ئې ښکاره کړو . دهغه محدثینو د تقویٰ او پرهیزګارئ حالت که چرته بیان کړئ شي نودهغې دپاره دفاتر هم کافي کیدلې نه شي .

امام بخاری رحمة الله علیه به د هرحدیث د لیکلو نه وړاندې د دوو رکعتو نفلو التزام به ئې کولو ، بیاپه اسناد کښې دومره حده پورې احتیاط کړې دې چه راوی اومروی عنه که چرته هم په یو زمانه کښې تیرشوی وو ، دهغوی په خپل مینځ کښې لقاء هم ممکن وی مګر ترڅوپورې چه د هغه لقاء ثابته نه شي امام بخاری دهغې روایت نه قبلوی ، اګرچه هغه راوی هرڅومره عادل او ثقه وی .

د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دښمنانو اتباع حدیث لره «**بل نتبع ما الفینا علیه اباءنا**» «۲»

۱۷۰، کښې داخلول انتهائی تعصب دې ، اتباع آباء ضلالت او ګمراهئ کښې ممنوع ده نه په رشد اوهدایت کښې . قرآن مجید کښې د بنویعقوب علیه السلام قول منقول دې : ﴿قَالُوا نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ إِلَٰهًا وَاحِدًا وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ﴾ (۲، ۱۳۳) یعنی مونږ به ستا د معبود او ستا د پلارنیکه ابراهیم ،اسماعیل ، اسحاق د واحد معبود عبادت کوو.

دښمنانِ رسول صلی الله علیه وسلم پخپله د رسول په دښمنئ کښې د تاریخ نه استدلال کوی ، حالانکه د تاریخ د صحت دپاره څه سند نشته دې . تاریخ کښې د سکندر اود دارا وغیره مفصل قصې ذکردی مګر یو سړې که چرته د سکندر یا د دارا وغیره د وجود انکار اوکړی یا یو واقعې لره تسلیم نه کړی نودهغې د اثبات دپاره څه دلیل او سند کیدلې شی ؟ په خلاف د حدیث چه دهغې هرجزء په سند او دلیل سره ثابت دې . بیا د سند هم پوره تنقیح او تنقید او هرې ممکنې ذریعې سره چیړل شوې شوي دې او مضبوط علمي شهادت نه پس قبول کړئ شوې دې .

**دریم اعتراض** :- ډیر احادیث په اتفاق سره موضوع دی او ډیرو راویانو به پخپله حدیثونه جوړول لهذا څنګه به معلومه شی چه صحیح حدیث کوم یو دې او موضوع کوم یو دې؟

**جواب**:- په دې کښې هیڅ شک نشته دې چه د دین ډیرو دښمنانو دخان نه حدیثونه جوړولو سره اسلام ته نقصان رسول غوختل مګرچونکه الله تعالی ته دخپل حبیب صلی الله علیه وسلم اسوهٔ حسنه حفاظت ترقیامته پورې منظور وو ، څکه چه په هغې باندې بی د عمل کولو حکم ټول امت ته ورکړې دې . ددې وجه نه محدثینو د صحیح او موضوع حدیث جدا کولو دپاره داسې اصول او معیارقائم کړو اودهغه اصولو د وضاحت دپاره یی مستقل فنون مدون کړه چه په هغې کښې د کوټه او کره امتیاز قائم شی دیو حدیث متعلق د موضوع کیدلو علم دا پخپله حجیت حدیث باندې دلیل دې . څکه چه په هغې سره ثابتیږی چه محدثینو موضوع حدیثونولره چانړ کولو سره د حدیثو د ذخیرې نه بهر کړی دی .

**څلورم اعتراض** :- دښمنانِ رسول الله صلی الله علیه وسلم وائی چه قرآني اصول ترقیامته پورې مؤبّد دی او حضورصلی الله علیه وسلم چه څه ضروری مسائل بیان اوفرمائیل هغه قیامته پورې نه دی بلکه د هغه زمانې په لحاظ سره هم هغه وخته پورې خاص وو ، اود هرې زمانې مطابق په هغه جزئیاتو کښې تغیر اوتبدیل کولې کیږی . که چرته دا جزئیات هم مؤبّد وی نو الله تعالی د اصولو په شان هغې لره هم په قرآن کښې ولې بیان نه کړل ؟

**جواب** :- د حضورصلی الله علیه وسلم بیان کرده جزئیات هم ترقیامته پورې مؤبد دی . په هغې کښې تغیراوتبدیل نه شی کیدلې ، څکه چه الله تعالی ترقیامته پورې ټول امت ته د اتباع رسول صلی الله علیه وسلم حکم ورکړې دې څنګه چه مونږ د قرآن په آیتونو سره ثابته کړې ده . باقی پاتې

شو دا سوال چه بیا هغه جزئیاتو لره په قرآن کښې ولې بیان نه کړې شو؟ نو مونږ وايو چه جزئیاتو لره قرآن اګرچه تفصیلاً بیان نه کړه مګر د «اطیعوالرسول» د کلیي په ضمن کښې د ټولو جزئیاتو حکم قرآن سره ثابتیږي . همدارنګه ﴿ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴾ (۵۳. ۴) سره معلومه شوه چه د حضور صلی الله علیه وسلم بیان کړې شوی جزئیات هم وحی الهی دی . هم دا وجه ده چه حضرت عمر رضی الله عنه یوځلې ممبر باندې ختلو سره مسلمانانو لره خطاب وکړو

یایها الناس ان الرای انما کان من رسول الله صلی الله علیه وسلم مصیبا ان الله کان یریه وانما هو منا الظن والتکلف. د یعنی حضورصلی الله علیه وسلم رائې هم چونکه د الله تعالی د طرف نه راتللې ددې وجه نه یقیناً صحیح وې او زمونږ رائې ظنی وی .

## د منکرینِ حدیث تَذَبْذُبْ

**منکرینِ حدیث تراوسه پورې خپله دعویٰ متعین نه کړې شوه :**

(۱) کله وائی چه د حضورصلی الله علیه وسلم قول او فعل مطلقاً حجت نه دې . حضورصلی الله علیه وسلم چه کوم احکام بیان فرمائیلی دی هغه صرف د حضورصلی الله علیه وسلم زمانې پورې مخصوص وو . دهرې زمانې په لحاظ سره هغه احکاموکښې تغیراو تبدیل کیدلې شی . (پرویز معارف جلد ۴ ص ۲۹۲)

(۲) او کله وائی چه د حضور صلی الله علیه وسلم قول او فعل خو حجت دې . مګر چونکه مونږ پورې مضبوطو ذرائعو سره نه دې رارسیدلې ددې وجه نه د ظنی کیدلو د وجه نه قابلِ اعتماد پاتې نه شو . (پرویز . طلوع اسلام جولائی ۱۹۵۰ء . ص ۴۹) (اسلم جیراجپوری طلوع اسلام نومبر ۱۹۵۰ء ص ۷۳)

(۳) او کله دا وائی چه د روایاتِ حدیث سلسله د قرآن خلاف عجمی سازش دې چه د هغې لازمی نتیجه به دا وی چه حدیثو ته تاریخی درجه هم نه ده حاصله . (پرویز طلوع اسلام اکتوبر ۱۹۵۲ء ص ۷)

د منکرینِ حدیث ددې تذبذب نه صفابنکاره دی چه د هغوی د ټولو خبرو مقصد صرف دادې چه د حدیثونه د یوې نه یوې طریقې انکارکولوسره آزادانه ژوند تیرکړو ددې مقصد دپاره هغوی چرته چه هم څه موقع اوموسی هم هغسې خبره د خولې نه اوباسی . ددې امر هیڅ پروا نه کوی چه ددې نه وړاندې مو څه وئیلی دی . آخرکښې مونږ منکرینِ حدیث ته بطورِ نصیحت وايو چه شعر

ظالم ابھی ہے فرصت توبہ نہ دیر کر      وہ بھی گرا نہیں جو گرا پھر سنبھل گیا

وماعلینا الا البلاغ «رشید احمد» ۱۶ ذی الحجه ۱۳۷۳ء

# ضـمیمه

د یومستقل سوال په جواب کښې د « رساله فتنهٔ انکارِ حدیث » خلاصه لیکلې شوې ده چه دلته یې مونږ اوس ذکر کوو :

## د منکرینِ حدیث په متضادو نظریاتو باندې یو نظر

**سوال** :- آیا د حدیثو په کتابونو کښې دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد **((لاتکتبوا عنی غیرالقرآن))** او **((ومن کتب عنی غیرالقرآن فلیمحه))** موجود دې؟ که چرته دې نودهغې مطلب څه دې ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د داسې قسم سوالاتو منشا فتنهٔ انکارِ حدیث ده چه نن سبا ډیر په جوش سره روانه ده د حدیثو په باره کښې د منکرینِ حدیث د طرف نه دریې قسمه متضاد خیالات په اشاعت کښې راروان دی .

(۱) د قرآن د پوهې دپاره دحدیثو ضرورت نشته دې . هرسړې پخپلو دماغو سره په قرآن باندې پوهیدلې شي . (پرویز ، طلوع اسلام) ، د روایاتِ حدیث پوره سلسله د قرآن خلاف عجمی سازش دې . (پرویز . طلوع اسلام اکتوبر ۵۲ء ص ۷)

مقصد دادې چه د حضورصلی الله علیه وسلم د بیان شوې تشریح قطعاً حاجت نشته دې چه دهغې لازمی نتیجه داده چه درسول صلی الله علیه وسلم قول په صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې هم واجب الاتباع نه وو .

(۲) حضورصلی الله علیه وسلم چه کوم احکام بیان کړی دی هغه صرف د حضورصلی الله علیه وسلم زمانې پورې خاص وو ، د هرې زمانې په لحاظ سره په هغې کښې تغیراو تبدیل کیدلې شو . (پرویز ،معارف جلد ۴ ص ۲۹۲ ، او طلوع اسلام جون ۱۹۵۰ء ص ۴۷) یعنې د دوی صلی الله علیه وسلم فرمان د دوی په زمانه کښې حجت وو مونږ باندې حجت نه دې .

(۳) د حضورصلی الله علیه وسلم قول او فعل خو حجت دې مګر چونکه مونږ پورې کلکو ذرائعو سره نه دې رارسیدلې ددې وجه نه د ظنی کیدلو د وجه نه قابلِ اعتماد پاتې نه شو . پرویز طلوع اسلام جولائی ۱۹۵۰ء ص ۴۹ ، اسلم جیراجپوری ، طلوع اسلام نومبر ۱۹۵۰ء ص ۷۳)

که چرته د منکرینِ حدیث د مختلفو ډلو دا مختلف خیالات وې نو هیڅ تعجب به نه وو عجیبه خبره داده چه هم یو ډله بلکه هم یو کس د مختلفو نظریو اود متضادو خیالاتو اظهارکوی . چه هغې لره کتلوسره په دوو ارخو کښې دیو تسلیمول مشکلیږی . یعنې یا خو هغه لره مجنون ګڼلو سره معذوره وګڼلې شی او یا داسې اوونیلې شی چه دهغه یو نصب العین او نظریه متعینه نه ده

بلکه دهغه په تولو کوششونوسره مقصد صرف دا دي چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تعلیماتو انکارکولوسره یو آزادانه ژوند تیرکړی . ددي وجه نه چه کومه موقع مومی هم هغسې خبره د خولې نه اوباسی ،ددې پروا نه کوی چه ددې نه وړاندې مې څه وئیلی دی . موږ وړاندې ددې نه دهغوی دخرافات دښکاره کولو دپاره مختلف مضامین د اخباراتو په ذریعې او رسائل شائع کړی دی ، په دې وخت کښې موږ دهغه دریو قسمو مختلفو نظریاتو باندې بالاختصار بحث کول غواړو :

## د اولې نظریې باطلوالې

(۱) ﴿وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ اللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا﴾ (۴۲ ، ۵۱)

په دې آیت کښې وحی لره د ارسالِ رسول په مقابله کښې ذکرکول دال دی په دې خبره چه بغیرد ارسالِ رسول نه هم وحی وی . او همدا حدیث دې .

(۲) ﴿وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا﴾ (۲، ۱۴۳) سره معلومه شوه چه بیت المقدس طرف ته استقبال حکمِ الهی وو . حالانکه قرآن مجید کښې دا حکم مذکور نه دې .

(۳) ﴿عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ (۲ ، ۱۸۷) سره معلومه شوه چه په ابتداء کښې د رمضان شریف په شپه کښې هم جماع کول حرام وو ، دا حرمت هم په حدیث سره وو قرآن مجید کښې ددې ذکر نشته دې .

(۴) ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ﴾ (۳ ، ۱۲۳) دا آیت د احد په موقع باندې نازل شو چه په هغې کښې مذکور دی چه په بدرکښې الله تعالی د ملائکو د نزول وعده فرمائیلې وه . حالانکه قرآن کښې د بدرپه موقع باندې ددې وعدې هیڅ ذکرنشته دې ، معلومه شوه چه د ملائکو د نزول وعده وحی غیرمتلوسره وه چه حدیث دې .

(۵) قرآن کښې د انبیاء سابقینو علیهم السلام احادیث مذکوردی چه حجیتِ حدیث باندې واضحه دلیل دې او د انبیاء سابقینو علیهم السلام د احادیثو دهغوی په امتونو باندې واجب الاتباع کیدل قرآن سره ثابت دی نوزموږ د نبی صلی الله علیه وسلم احادیث به موږ باندې ولې واجب العمل نه وی ؟

(۶) قرآن کریم کښې ځای په ځای ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ ارشاد دې ، که چرته د نبی صلی الله علیه وسلم قول او فعل قابلِ اعتبار نه وی نو «اطیعوالله» سره د «اطیعوالرسول» لفظ باربار ولې ذکرکولې کیږی؟ قرآن کښې په ډیرو ځایونو کښې د اطاعتِ رسول تاکید کړې شوې دې او د رسول الله صلی الله علیه وسلم نافرمانۍ باندې سخت وعید اوروليې شوې دې .

(۷) ﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْ أَنْفُسِهِمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ﴾ (۳. ۱۶۴) دا آیت د معنیٰ او مفهوم په لحاظ سره قطعی طور باندې محکم دې . په دې کښې ښکاره دلالت دې چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کار د د هر سفیر په شان محض رسول نه وو بلکه حضورصلی الله علیه وسلم د کتاب او سنت معلم او د مسلمانانو دپاره مزکی هم وو . د تعلیم الکتاب چه کوم فرض د حضورصلی الله علیه وسلم په ذمه باندې لګولې شوی وو نو آیا دوی صلی الله علیه وسلم هغه فرضو لره په کومه طریقه ادا کول ؟ آیا د قرآن طالبانو (صحابه کرامو) د دوی صلی الله علیه وسلم نه د یو آیت په باره کښې څه پوښتنه نه کوله ؟ او که چرته ئې پوښتنه کوله نو آیا دوی صلی الله علیه وسلم دهغې په جواب کښې هم د قرآن یو آیت پیش کولو ؟ آیا دا طریقه د تعلیم قرینِ قیاس کیدلې شی چه یو معلم دیو کتاب تعلیم ورکړی نو طالبان د تلاوتِ متن او د سماع نه سوا بالکل څه پوښتنه ونه کړی او که چرته څه پوښتنه اوکړی خو استاذ دهغې په جواب کښې فقط د کتاب متن اووائی ، دخپل خان نه څه تشریح اونه کړی . په معلم باندې فرض دی چه د کتاب د مجملاتو تفسیر او تشریح اوکړی د طالبانو اعتراضات او شکونه حل کړی ، د کتاب په معنی او مفهوم باندې یې په واضحه طور باندې پوهه کړی ، که چرته د قرآن مجید دپاره د حدیثو بالکل ضرورت نه وی ، هرسړې په خپلو دماغو سره په قرآن باندې پوهیدلې شی نو پرویز (علیه ماعلیه) «معارف القرآن» لیکلو سره د حماقت ثبوت ولې ورکړو ؟ د حضورصلی الله علیه وسلم تفسیر خو قابلِ قبول نه وی او ددې ګستاخ تفسیر قابلِ قبول وی ، حضورصلی الله علیه وسلم یقیناً خپل قول او فعل سره دقرآن تشریح فرمائیله اود صحابه کرامو رضی الله عنهم تزکیه ئې کوله که چرتهِ د حضورصلی الله علیه وسلم قول اوفعل قابل اعتبار نه وې نو بیا معلم الکتاب او مزکی څنګه شو ؟

(۸) قرآن کریم کښې د حضرت ابراهیم علیه السلام د خوب واقعه ذکرده چه په هغې کښې صریح دلیل دې چه د نبی خوب هم حجت او واجب العمل دې . حالانکه خوب وحی متلو نه ده . حضرت ابراهیم علیه السلام ته د ډیرو تمناګانو نه پس آخرعمرکښې الله تعالی فرزندِ عزیز ورکړو . بیابی درضاع له حالت نه تر ډیرې مودې پورې خپل نیازبین خوئ لره وادی غیرذی زرع کښې پریخودلو او د فراق صدمې یې برداشت کړې مګر د خلیل علیه السلام د تسلیمیدلو مقام او د رضا د امتحان یوسخته مرحله تر دې وقته پورې باقی وه . حضرت ابراهیم علیه السلام خپل خوب لره وحی الهی یقین کولوسره بغیرد څه تردد نه د حکم د عملی کولو دپاره نه صرف آماده کیږی بلکه د زړه ټکرې لره د قربانولو عمل هم نهایت په تلوار سره شروع کوی . د حضرت ابراهیم علیه السلام د نیازبین خوئ د ذبح اقدام کول او د حضرت اسماعیل علیه السلام د «**فافعل ماتؤمر**» په ځائ

افعل ماتؤمر» وثیل اود الله تعالی «قدصدقت الرؤیا» او «وفدینه بذبح عظیم» ارشاد فرمائیل
هغه امتحان لره په «بلاء مبین» سره تعبیرکول ، دا ټول امور واضح دلیل دي چه حضرت
راهیم علیه السلام ته خوب کښې د ذبح ولد حکم شوي وو او هغه حکم واجب العمل هم وو .

(۹) ﴿كَذَٰلِكُمْ قَالَ اللَّهُ مِن قَبْلُ﴾ کښې تصریح فرمائیلې کیږی چه منافقینو ته غزوهٔ
یبرکښې د شریک کیدلو اجازت نه ورکولو فیصله الله تعالی د وراندې نه کړې وه حالانکه ددې
ت نه سوا ددې فیصلې ذکر په قرآن کښې چرته هم نشته دې ، معلومه شوه چه دا فیصله وحی
یرمتلو سره شوې وه .

(۱۰) ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ (۱۲، ۴۴) معلومه شوه چه د
ضورصلی الله علیه وسلم منصب بیان اوتشریح ده .

(۱۱) ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ (۷۵، ۱۹) سره الله تعالی د قرآن د بیان ذمه اخستلې ده اوس د
ورکولو خبره داده چه که چرته د قرآن بیان په خپله د قرآن په آیت سره کړې شوې وی نو ددې آیت
پاره به هم د بیان ضرورت وی ، ځکه چه د «بیانه» ضمیرمرجع ټول قرآن ده پس هرجزء د قرآن
محتاج دې بیان ته ، اوس که چرته دیو آیت بیان په بل آیت سره وی نو دهغه دویم آیتهٔ بیان به په یو
ریم سره وی ، بیا هغه دریم آیت به هم محتاج وی بیان ته نو دهغې دپاره د څلورم آیت ضرورت
یښ شو ، نو یا به تسلسل او یا به دور لازمیږی او دا دواړه خبرې باطلې دی او باطل لره مستلزم
ر په خپله باطل کیږی ، معلومه شوه چه د قرآن بیان په خپله قرآن سره باطل دې ، پس د قرآن بیان
ه غیرمتلو سره وی چه حدیث دې .

د منکرینِ حدیث ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ (القمر) سره استدلال باطل دې ، ځکه چه
قرآن مضامین په دوه قسمه دی یو احکام او بل د توحید اود رسالت دلائل اود انذار او تخویف
ضامین اود تذکیردپاره سابقه اُمتونو کښې د منکرینو قصې ، نو تیسیرِ قرآن د تذکیرپه اعتبار
سره دې نه په اعتبارد استنباط داحکامو سره ، په دې باندې یو څو دلائل دی :

(۱) «ولقدیسرنا» لره «للذکر» سره مقید کول (۲) د «فهل من مدکر» ترتب تیسیر باندې (۳) د
نذار د قصواو تخویف سره باربارد تیسیر د آیت اعاده (۴) که چرته تیسیر لره عام واخستلې شی
و دا آیت به معارض وی آیاتِ مذکورهٔ الصدر سره چه په هغې سره د معلم القرآن اودهغه د تبیین
و تشریح ضرورت ثابت شو ، پس وجه د توفیق به دا وی چه تیسیرِ قرآن محض بحسبِ تذکیردې
و استنباط احکام کښې قرآن د معلم د تبیین او تشریح محتاج دې ، ددې باوجود «ولعلهم
... ... د تفکر او تدبر حاجت ښکاره کړو .

(۱۲) ﴿وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ﴾ (الی قوله) ﴿قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ﴾ (۶۶. ۳) په دې آیت سره معلومه شوه چه د حضورصلی الله علیه وسلم د طرف نه د یو راز د اخفاء د تاکید نه باوجود یوې بی بی هغه افشاء کړو نو دهغې اطلاع الله تعالی حضورصلی الله علیه وسلم ته ورکړې وه چه وحی غیرمتلو سره وه ، ځکه چه په قرآن کښې د هغې هیڅ ذکرنشته دې .

(۱۳) ﴿لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ﴾ (۲، ۱۸۵) کښې اوفرمائیل چه د حج احکام باید د الله تعالی د قول مطابق او د طریقو مطابق ادا کړئ ، حالانکه قرآن کښې د حج د احکامو تفصیل ذکر نه دې ، نو په دې آیت کښې حدیث طرف ته اشاره ده چه په هغې کښې د احکامو پوره تفصیل دې .

(۱۴) ډیر انبیاء علیهم السلام د کتاب نه بغیر مبعوث شوی دی ، پس که چرته د رسول قول حجت نه وې نو د داسې انبیاء علیهم السلام د بعثت نه څه فائده وه ؟

## عقلی دلایل

(۱) قرآن کښې د هرڅیز بیان اجمالاً دې چه دهغې تشریح او تفصیل په حدیث کښې دې ، د مونځونو د د پنځو وقتونو ، د رکعتونو شمیر ، د فرائضو او واجباتو تفصیل ، د صوم او زکوٰة مفصل احکام ، د حج مناسک ، قربانی وغیره ، بیع اوشراء ، خاندانی امور ، د نکاح معاملات او د معاشرې قوانین ، ددې ټولو امورو تفصیل هم حدیث سره ثابت دې ، پس د حدیثونه آنکار د ټول نظام اسلامی نه په یوځائ د لاس صفاکولو مترادف دې ، هم دغه شان د وروکې او غټې تقاضې . د سپی ، ګیدړ وغیره حرمت په قرآن کښې نشته دې ، چنانچه هم ددې اعتراض نه د بچ کیدلو دپاره منکرینِ حدیث ددې جمله خبیثو څیزونو د حلت قائل دی بلکه محمد صبیح ایدوکیټ لیکی چه قرآن کښې مذکورد څلورو څیزونو نه علاوه باقی د هر څیز خوړل فرض دی د خوراک نه انکار کول ګناه اود الله د حکم معصیت دې ، (طلوع اسلام جون ۵۲ هجری)

یعنې د سپی ، خر ، ګیدړ ، پیشو ، مږې ، تردې پورې چه د میتیازو اود ډک اودسماتی خوړل فرض دی . په دې سره ښکاره شوه چه منکرینِ حدیث د الله د حکم دمعصیت نه د بچ کیدلو دپاره فرض او ثواب ګڼلو سره مذکوره څیزونه شپه او ورځ په مزو مزو سره خوری . (سود الله تعالی وجوههم)

(۲) که چرته د احادیثو راویان د قرآن خلاف عجمی سازش کولو والا وی نوځکه حدیث قابل قبول نه دی نوقرآن خو هم دهغوی په ذریعې سره مونږ پورې رارسیدلې دې ، پس قرآن باندې څنګه اعتماد کولې کیږی ؟ که چرته اووئیلې شی چه د قرآن په باره کښې د الله تعالی ارشاد دې ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ﴾ (۱۵، ۹) نو مونږ وایو چه په خپله ددې آیت په صداقت باندې به څنګه

اعتماد کیږی ؟ دا خو هم دهغه خلقو په وساطت سره مونږ پورې رارسیدلې دې چه په حدیث کښې وسائط دی . دا هم نه شی وئیلې کیدلې چه د قرآن اعجازفی البلاغه دهغې په صداقت باندې دال دې ځکه چه اولاً خو د قرآن معجزمن حیث البلاغه کیدل مختلف فیه شو . بعضو د اعجاز من حیث الاخبارعن المغیبات وغیره قول کړې دې چه دهغې تصدیق هم د مذکوره وسائطو په ذریعې سره منقول دې . ثانیاً لږ تغیر او بعضې موقعوباندې د ترتیب په تبدیل سره اعجازفی البلاغه کښې په ظاهره څه فرق نه محسوسیږی ، څنگه چه په « الم اعهد » باندې مختصرالمعانی کښې بحث کړې شوې دې ، ثالثاً اعجاز فی البلاغه به معیارصداقت هغه وقت کښې وی چه تحدی ثابت وی او آیاتِ تحدی هم مذکوره وسائطو سره منقول دی . رابعاً تحدی من حیث البلاغه په موجوده زمانه کښې خو معیارِ صداقت نه شی کیدلې ځکه چه تحدی به د داسې څیز مفید وی چه د هغې به په دنیا کښې ډیر شهرت وی ، ښکاره ده چه دورِ حاضرکښې د علم البلاغه په نسبت د سائنس زیات شهرت دې ، پس د بلاغت په لحاظ سره تحدی به صرف د نزول له زمانې سره مخصوص وی او هغه وخت کښې د اهلِ بلاغت د قرآن د مِثل نه عاجزکیدل د قیامت د قائمیدلو پورې به په صداقتِ قرآن باندې دلیل وی یعنې زمانه حاضره کښې صداقتِ قرآن باندې دا دلیل نشته چه مونږ د هغې د مثل نه عاجز یو بلکه دلیل دادې چه د بلاغت په مشهوردورکښې لوئ لوئ بلغاء دهغې د مثل نه عاجزه وو او دا جمله امور یعنې دا چه د نزول زمانه د بلاغت دور وو او دا چه په هغه زمانه کښې قرآن تحدی من حیث البلاغه کړې وو او دا چه مشاهیرِ بلغاء د قرآن د مثل نه عاجزه شوی وو ، هم دهغوی په واسطې سره منقول دی چاته چه د قرآن خلاف عجمی سازش وئیلې کیږی .

(۳) صحابه رضی الله عنهم وتابعین رحمهم الله ومن بعدهم او ټول اُمت مسلمه چه حدیثو لره حجت تسلیموی نو آیا په هغې کښې دهغوی نه اجتهادی غلطی شوې ده ، یا ئې قصدا داسې کول؟ که چرته اجتهادی غلطی شوی وی یعنې حقیقت کښې حدیث قابلِ اعتبار نه وو مگر د اسلافو نه غلطی اوشوه چه هغه یې هغه قابلِ عمل وگڼل نو د غور کولو مقام دې چه د ټول امت متقدمین او متاخرین علماء اوصلحاء اکثراسلاف هم په دې اجتهادی غلطئ کښې ډیرې مودې پورې مبتلاوو یو سرې هم دا غلطی محسوسه نه کړه ؟ او که چرته اسلافو حدیثو لره ناقابلِ اعتبار گڼل دهغې باوجود قصدا حدیثونه بیانولوسره د قرآن په خلاف سازشونو راروان دی نو په دې امت کښې مؤمن څوک پاتې شو ؟ صحابه ، تابعین ، تبع تابعین ، ائمه ، محدثین او ټول سلف صالحین خو نعوذبالله گستاخ او د قرآن مخالف وو . آیا د مذهبِ اسلام په څوارلسو کالو کښې رومبنئ مؤمن صرف پرویز علیه ماعلیه ، دې چه کوم دین څوارلسو کالوپورې صرف د مخالفینو اود دښمنانو په قبضه کښې وو دومره اوږدې مودې پورې دهغه څوک محافظ اودهغه قبلولو والا پیدا شوې نه وی ، داسې دین باندې څنگه اعتماد کیدلې شی ؟

(۴) دا خبره د پوښتنې طلب ګاره ده چه الله تعالی قرآن مجید او سابقه آسمانی کتابونو لره د رسول په واسطې سره ولې نازل کړه ؟ که چرته الله تعالی هریوبشرته لیکلې شوې کتاب بغیر د رسول د واسطې نه استولې وې نو دا به د صریح معجزې کیدلو د وجه نه زیات مؤثروې .کفار پخپله ددې طلبګار وو چه لیکلې شوې کتاب د الله تعالی د طرف نه په هغه باندې نازل وی نو که دا طریقه ئې اختیارکړې وې نو د فرمائشي معجزې کیدلو په باعث به زیات د هدایت سبب وې . مګر بیا هم دا طریقه اختیارنه کړئ شوه ، بلکه د رسولانو په معرفت ئې کتابونه نازل کړه او رسولان ئې هم صرف په انسانانو کښې منتخب کړه .کفارو به وئیل چه د پیغام رسولو دپاره الله تعالی فرښتې ولې راونه لیږلې دې دپاره چه مونږ ته د احکامو منزل من الله کیدلو یقین اوشی الله تعالی ددې په جواب کښې فرمائی ﴿وَلَوْ جَعَلْنَٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَٰهُ رَجُلًا﴾ (۲، ۹) ، ﴿قُل لَّوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَٰٓئِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُولًا﴾ (۱۷، ۹۵) غرض داچه سوال دادې چه د کتابونو د نازلیدلو دپاره رسولانو لره د واسطې جوړولو اود رسالت دپاره بالخصوص هم انسانانو لره منتخب کولو باندې دومره اصرار ولې اوکړئ شو ؟ ددې جواب په خپله کلام الله کښې موجود دې ﴿ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ﴾ ( نساء ۹) یعنې الله چه څومره رسولان رالیږلي دی دهغوی د بعثت مقصد صرف دا وو چه هغوی د الله تعالی د فرمانونومطابق حکم ورکړی او په خپله د قوانینِ الهیه مطابق ژوند تیرکړی او نازل شوی احکامو لره عملی کولو سره د امت دپاره یو نمونه قائم کړی، دې دپاره چه امت دهغې اتباع اوکړی که چرته ئې د رسول د واسطې نه بغیر احکام نازل کړی وې اودهغې تفصیل او تشریح کولو او عملی جامه اچولو والا څوک نه راتللې نو خلقو به د آیتونو په مفهوم اومعنوکښې اختلاف کولو اود منشاء الهی په پوهه کښې به ئې غلطی کوله هغوی لره به د پوهولووالا څوک نه وې ، دې ضرورت لره خو څه حده پورې فرښتو هم پوره کولې شو مګر دهغوی متعلق به خلقو دا خیال کولو چه فرښتې خو د قوت شهوانیه او غضبیه نه منزه دی اود انسانی حوائجو او ضروریاتو نه مستغنی دی ددې وجه نه به د تقوی اود طهارت په احکاموکښې انسان د فرښتو تقلید نه شو کولې ، انسان خیټه لری . د خوراک څکاک اومیتیازو محتاج دې . د شهوت اود غضب قوت لری ، د جذباتو ، داعیاتو اود امراضو . عوارضو شکارکیږی ، د ښځې بچو په جنجال کښې مصروفه وی ، ددې وجه نه د فرښتو اتباع د انسان د وس کار نه دې ، خلق وئیلې شی چه مونږه انسانی کمزوریانې ساتلوسره د فرښتو د متقیانه ژوند څنګه تقلید اوکړو ؟ ددې وجه نه ضروری وه چه رسول هم دې جذباتو او عوارض انسانیه سره زمکې ته راتللې ، هغه ته هم هغه تولو معاملات مخې ته راتللې چه یو عام انسان ته مخې ته راځی ، دې دپاره چه هغه د قوانینِ الهیه مطابق ژوند تیرولو سره ښودلې چه په کومه طریقه

انسان د الله په نازل شوی قوانینو باندې عمل اوکړی ، قدم په قدم یې خلقو ته خپل قول او عمل سره هدایات ورکولې او هغوی ئې پوهولې دې دپاره چه انسان د ژوند د مشکلو لارونه په کومه طریقه بې کیدلو سره صراط مستقیم باندې روانیدلې شي . غرض داچه لفظونوکښې نازل شوی احکامو ته عملی جامه اچولو سره د امت دپاره یې دژوند تګ لاره قائمه کړې وې ، نو هم دا وجه ده چه په خپله الله تعالی صرف کتاب لره زمونږ دپاره کافي اونه ګڼلو بلکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اسوۀ حسنه تابعداریٔ لره هغې سره مونږ باندې لازم کړو .

## د دویمې نظریې باطلوالې

که چرته د حضورصلی الله علیه وسلم تعلیمات صرف د دوی په زمانې پورې خاص واې او وروستهحجت نه وای نو د هغې لازمی نتیجه به داوه چه د حضورصلی الله علیه وسلم نبوت به قیامته پورې عام نه وو ، لیکن لاندینی آیتونه ددې تردید کوی :

(۱) ﴿أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ دا حکم قرآنی عام دې او تر قیامته پورې به ثابت وی . که چرته په مونږ باندې قرآن حجت وی نود قرآن دا جمله به ولې حجت نه وی ؟

(۲) ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا﴾ (۷، ۱۵۸)

(۳) ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ﴾ (۲۱، ۱۰۷)

(۴) ﴿وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا كَافَّةً لِلنَّاسِ بَشِيرًا وَنَذِيرًا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (۳۴، ۲۸)

(۵) ﴿تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلَىٰ عَبْدِهِ لِيَكُونَ لِلْعَالَمِينَ نَذِيرًا﴾ (۲۵، ۱)

(۶) ﴿مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلَٰكِنْ رَسُولَ اللَّهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّينَ﴾ (۳۳، ۳۸)

پورته بیان کړیٔ شوی دی چه کتاب الله باندې د پوهیدلو دپاره د معلم ضرورت دې ، چه هرکله د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس یوجدیدمعلم (رسول ) نشی راتللې نو ددې لازمی نتیجه دا شوه چه د حضورصلی الله علیه وسلم تعلیمات ترقیامته پورې واجب الاتباع دی .

(۷) ﴿رُسُلًا مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللَّهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ﴾ (۴، ۱۲۵) که چرته حدیث په مونږ باندې حجت نه وی نو مونږ باندې اتمام حجت څنګه شو ؟ چه هرکله بعثت سره مقصود دې

## عقلی دلائل

(۱) آیا په کتاب الله باندې د پوهیدلو دپاره د معلم الکتاب ضرورت شته او که نه ؟ که چرته نه وی نو رسول ولې مبعوث کړیٔ شو او د حضورصلی الله علیه اهلِ زمانه باندې دحضورصلی الله

علیه وسلم قول ولې واجب الاتباع او گرځولې شو ؟ او که چرته دمعلم ضرورت وی نو مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تعلیماتو نه څنگه مستغنی کیدلې شو؟ . مونږ خودبخود کتاب الله باندې پوهه شو اود صحابه کرامو رضی الله عنهم دپاره دمعلم ضرورت پیښ شو مابه الفرق څه څیز دې ؟ صحابه کرام رضی الله عنهم اهلِ لسان وو د محاوراتو نه واقفه وو . هغوی ته د مواقع تنزیل مشاهده اود شان نزول علم وو . دخطابِ الهی اولین مخاطبین وو ددې باوجود دهغوی دپاره خو دې دمعلم الکتاب ضرورت وی او زمونږ دپاره دې ضرورت نه وی ؟

(۲) هغه دلیل چه د اولې نظرئې په تردید کښې د لائلِ عقلیه لاندې په دریم نمبرکښې تیرشو ، یعنې ټول امت چه حدیثو لره ترننه پورې قبلولو سره راروان دی دهغوی نه اجتهادی غلطی شوې ده یا یې قصدا د قرآن په خلاف عجمی سازش کړې دې ، دواړه شقونه خلافِ عقل او مردود دی .

## د دریمې نظریې باطلوالې

منکرینِ حدیث وائی چه حدیث ظنی دې او د ظنی تابعداری د قرآن په رو سره منع ده . نتیجه دا راووتله چه د حدیث تابعداری د قرآن په رو سره منع ده . د منکرینِ حدیث دا استدلال محض دجالیت او تلبیس دې، د ظن لفظ په دریو معانیو کښې مستعمل دې :

(۱) اټکل یعنې بلادلیل ، محض گمان او تخمین .

(۲) شواهدو او قرائنو سره ظنِ غالب .

(۳) علم یقینی نظری او استدلالی چه دلیل او برهان نه قطعی طور باندې حاصل شوې وی .

لاندینی قرآنی آیتونو کښې د ظن لفظ په همدې علم یقینی معنی کښې ذکر دې :

(۱) ﴿ یَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ﴾ (۲ ، ۴۲)

(۲) ﴿ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا اللَّهِ ﴾ (۲ ، ۲۴۹)

(۳) ﴿ وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ﴾ (۳۸ ، ۲۴)

(۴) ﴿ كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ وَقِيلَ مَنْ رَاقٍ وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴾ (۷۵ ، ۲۸)

(۵) ﴿ أَلَا يَظُنُّ أُولَٰٓئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ ﴾ (۸۳ ، ۵)

قرآن ظن په معنی د محضِ اټکل د پیروئ نه منع کړې ده . د احادیثو سلسله محض اټکل نه ده . پس احادیثو ته د ظن معنی ثانی (ظن غالب) اود معنی ثالث (علم یقینی استدلالی) په لحاظ سره ظنی ونیلې کیږی دیر احادیث د علم یقینی استدلالی فائده هم ورکوی . حافظ ابن حجر شرح په نخبة الفکر کښې فرمائی

((وقد یقع فیها ای فی اخبار الاحاد المنقسمة الی مشهور وعزیز وغریب، ایفید العلم النظری بالقرائن علی

المختار خلافاً لمن ابى ذلك والخلاف فى التحقيق لفظى لان من جوز اطلاق العلم قيده بكونه نظرياً وهو الحاصل من الاستدلال ومن ابى الاطلاق خص لفظ العلم بالمتواتر وما عداه عنده ظنى))، بیا حافظ دخبرمحتف بالقرائن موجب علم یقینی استدلالی یو څو انواع ذکرکړی دی:

(۱) ما اخرجه الشيخان فى صحيحهما مما يبلغ حد التواتر ومما لم ينتقده احد من الحفاظ ولم يقع التخالف بين مدلوليه.

(۲) المشهور اذا كانت له طرق متباينة سالمة من ضعف الرواة والعلل.

(۳) المسلسل بالائمة الحفاظ المتقنين حيث لا يكون غريباً.

پس علم یقینی استدلالی خو ظاهردي چه واجب الاتباع دي . باقي پاتې شو هغه حدیثونه چه د ظنِ غالب فائده ورکوی . نو شریعتِ مطهره ظنِ غالب لره د یقین حکم ورکولوسره واجب الاتباع ګرځولي دي . د شرعی یقین دپاره د ثقه عادل شهادت (چرته د یو چرته د دوو او چرته د زیاتو) کافی دي . نوهغه احادیثو کښې موجود دي . په دې لحاظ سره ټول احادیث یقینی دی . ظنی ورته څکه وئیلي کیږی چه مفید د علم یقینی استدلالی دي . یا ددې وجه نه چه په اکثرو احادیثو کښې عقلاً دخطا احتمال موجود دي . شرعاً نه . غرض داچه احادیثو لره شرعاً ظنی څکه وئیلې کیږی چه ټول احادیث مفید د علم یقینی عقلی استدلالی دی او اکثراحادیث موجب د ظنِ غالب دی . او دنیاکښې ظنِ غالب باندې د عمل کولو نه سوا هیڅ چاره نشته دې . مونږ شپه او ورځ خپلو ټولو معاملاتوکښې هم ظنِ غالب باندې عمل کوُو . د دوا څکلو په وخت کښې د شفا یقین نه وی بلکه زیات د مضرت احتمال موجود دې . ریل موټر . طیاره او بحری جهاز وغیره کښې د سوریدلو په وخت کښې مونږ دهغې د مشینرئ هیڅ علم نه وی د مشینرئ د ټولو پرزو د صحیح علم نه وی د لارې د حوادثو نه د محفوظ کیدلو یقین نه وی د طیارې د غورځیدلو او د ریل د پټرئ نه د کوزیدلو اود بحری جهاز د غورځیدلو احتمال موجود دې . سره ددې نه مونږ شپه او ورځ هم دې ذرائعو سره سفر کوُو . د بازار نه د غوښې اخستلو په وخت کښې دهغې د حلت د شودو . روغن . میوؤ . شکر وغیره د پاکیزګئ . د ابوڅکلوپه وخت کښې . د غسل او اودس کولوپه وخت کښې دهغې د طهارت هیچرې کامل یقین نه وی اونه کیدلې شی . عمربهر هره معامله کښې قدم په قدم باندې د ظنِ غالب په پیروئ باندې مجبوره یو . د ظنِ غالب پیروئ لره پریخودلې شی نو انسان په دنیا کښې ژوندې نه شی اوسیدلې . مار ته تللو سره مونږ ته دهغه د ټک لګولو یقین نه وی او د ټک نه پس د مره کیدلو یقین نه وی هم دغه شان زهرڅکلو سره مرګ یقینی نه دې . سره ددې نه مونږ د زهر نه ځان بچ کوُو او د مار نه پرهیز کوُو . چه کله مونږ شپه او ورځ په هره معامله

کښې هم ظنِ غالب باندې عمل کړو نو څه وجه ده چه حدیثو لره د ظنی کیدلو د وجه نه ترک کړی شی . قرآن یقینی دې او حدیث ظنی . مګر ددې دا مطلب نه دې چه حدیثو لره محض اټکل ګنلو سره ناقابلِ اعتماد اوګرځولې شی . د قرآن یقینی اود حدیثو ظنی کیدلو مطلب دادې چه د قرآن هرهرلفظ تواترسره د ثابت کیدلو د وجه نه یقینی بدیهی دې . حدیث کښې چونکه روایت بالمعنی جائز دې ددې وجه نه دهغه د هرلفظ متعلق دقرآن په شان یقین نه شی کیدلې . لهذا حدیث یقینی استدلالی یا یقینی شرعی دې . څنګه چه د مور علم یقینی دې او د پلار ظنی . څکه چه د مور متعلق قطعی طور باندې وئیلې کیږی چه د فلانکی مور ده مګر د پلار په باره کښې دې یقین سره حکم نه شی لګیدلې . سره ددې نه د پلار علم یقینی شرعی دې .

## عقلی دلیل

چه هرکله دا تسلیم کړې شو چه قولِ رسول الله صلی الله علیه وسلم قیامته پورې واجب الاتباع دې . مګر د حدیثو موجوده ذخیره حجت څکه نه دی چه ظنی دی نو سوال دا پیدا کیږی چه الله تعالی هرکله تعلیماتِ رسول لره په مونږ باندې ترقیامته پورې واجب الاتباع ګرځولی دی نو الله تعالی دهغه تعلیماتو د حفاظت اسباب ولې پیدا نه کړه ؟ آیا دا به تکلیف مالایطاق او امت باندې به ظلم نه وی ؟ چه د هغه اقوالو اتباع په مونږ باندې لازم کړې شوه چه دهغې د علم تحصیل زمونږ دپاره ناممکن دې ، . غرض داچه قولِ رسول صلی الله علیه وسلم لره د همیشه دپاره واجب الاتباع تسلیمولو باوجود هغې لره د ظنی کیدلو د وجه نه حجت نه ګڼل الله تعالی طرف ته د ظلم نسبت کولو مترادف دې . اعاذنا الله تعالی منه .

د منکرینِ حدیث دا وینا چه حدیث د دریمې صدئ په آخرکښې لیکلې شوی دی . صفا دهوکه ده څکه چه د حضورصلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د حدیثو کتابت شروع شوې وو . دحضور صلی الله علیه وسلم د کتابتِ حدیث نه منع فرمائیل ابتدائی دور کښې ددې وجه نه وو چه قرآن سره التباس پیدا نه شی . هغه وخت کښې د کتابتِ قرآن عام دستور وو او عوام د قرآنی اسالیبو نه اودهغه معجزانه انداز نه ترهغه وخته پورې لامانوسه نه وو کتابتِ حدیث نه د منع کولو دا مقصد هیچرې نه وو چه حدیث قابلِ اعتبار نه دې . که چرته دا مقصد وې نو دوی صلی الله علیه وسلم به د حدیثو بیانولو نه هم منع فرمائیلې وې حضورصلی الله علیه وسلم پخپله فرمائیلی دی « فلیبلغ الشاهدمنکم الغائب »

دحضورصلی الله علیه وسلم په زمانه کښې اودهغې نه پس زمانه صحابه رضی الله عنهم کښې د احادیثو بیانولو عام رواج وو . حضورصلی الله علیه وسلم معاذبن جبل رضی الله عنه ته یوخدمت باندې استولوسره ارشاد اوفرمائیلو چه ته به څنګه فیصله کوې ؟ حضرت معاذبن جبل

رضی الله عنه عرض اوکړو چه زموږ قرآن باندې نظرکوو . بیا ستاسو په قول او عمل سره استدلال کوم . بیا به د اجتهاد نه کاراخلم . حضورصلی الله علیه وسلم په هغې باندې دخوشحالئ اظهارکولوسره د حجیتِ حدیث تصدیق اوفرمائیلو ، د حضورصلی الله علیه وسلم دا هم ارشاد دې « **تسمعون ویسمع منکم ویسمع ممن یسمع منکم** » (**ابوداؤد کتاب العلم**) شروع کښې اګرچه عواموته د اختلاط بالقرآن د ویرې نه دکتابتِ حدیث اجازت نه وو ، خوبیاهم خاص خاص خلقو ته د کتابت اجازت وو . طبقات ابن سعد کښې د عبدالله بن عمروبن العاص واقعه مذکورده چه دوی خدمتِ نبوی صلی الله علیه وسلم کښې عرض اوکړو چه کوم حدیثونه ما ستاسو نه بالمشافهه اوریدلی دی دهغې د لیکلو اجازت اوفرمائې . حضورصلی الله علیه وسلم اجازت ورکړو ، بیا عبدالله رضی الله عنه پوښتنه اوکړه چه آیاصرف دحالت نشاط حدیثونه اولیکم یا د حالتِ غضب هم؟ دوی صلی الله علیه وسلم خپلې ژبې مبارکې طرف ته اشاره کولوسر اوفرمائیل چه ددې خولې نه سوا د حق نه هیڅ نه اوځی . چنانچه هغوی نبوی احادیث جمع کړل اودهغې نوم ئې «الصادقه» کیخودلو ، دا واقعه د ابوداؤد په کتاب العلم کښې هم ده ، ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه ماته د ټولو نه زیات حدیثونه یاد دی ، مګر عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنهما لیکل او ما نه لیکل « **انه کان یکتب ولا اکتب** » (بخاری)

مستدرک حاکم نه معلومیږی چه په خپله ابوهریره رضی الله عنه سره هم د احادیثو لیکلې شوې ذخیره موجود وه . چنانچه حسن بن عمرو فرمائی چه ما یو ځلې حضرت ابوهریره رضی الله عنه ته یو حدیث واورولو نو دوی دهغه نه انکاراوکړو او وې فرمائیل چه که چرته تا زما نه دا حدیث اوریدلې وی نو خما په کتابونوکښې به موجود وی چنانچه دوی پخپلو کتابونو کښې اولټولو نو دا حدیث ملاؤ شو ، په دې مقام باندې منکرینِ حدیث دوه اعتراضونه کړی دی : (۱) د بخاری په روایت سره معلومیږی چه د حضرت ابوهریره رضی الله عنه عبدالله بن عمرو بن العاص ته زیات حدیثونه یاد وو . حالانکه د روایاتو ذخیره د ابوهریره رضی الله عنه نه زیاته منقول ده .

ددې جواب دادې چه د بخاری په روایت کښې استثناء منقطع ده . ددې وجه نه ددې سابقه جملې سره هیڅ تعلق نشته دې، نیزکثرتِ علم کثرتِ روایت لره مستلزم نه دې ، د حضورصلی الله علیه وسلم د وصال نه پس عبدالله بن عمروزیات په شام کښې وو ، اود ابوهریره رضی الله عنه قیام په مدینه کښې وو . چونکه دورِ اول کښې د علم مرکز هم مدینه وو . خلقو به تحقیقی مسائلو کښې هم مدینې طرف ته رجوع کوله ، ددې وجه نه ابوهریره رضی الله عنه ته د روایاتو بیانولو زیاته موقع ملاؤ شوه .

(۲) مستدرک حاکم کښې دی چه ابوهریره رضی الله عنه سره لیکلې شوی حدیثونه موجود وو و بخاری کښې دی «**لااکتب**» ددې جواب دادې چه ابوهریره رضی الله عنه خپله نشو لیکلې یعنې

لیکل ورته یاد نه وو . هغه سره چه کومه ذخیره موجوده وه هغه د نورو نه لیکلې شوې وه «فتح الباری جلد ۱ ص ۱۸۴»

چه کله خلق د قرآن د معجزانه اسلوبو نه ښه واقفه شو نو حضورکریم صلی الله علیه وسلم نه صرف د کتابت حدیث اجازت ورکړو بلکه د لیکلو حکم ئې هم ورکړو ، او ډیرو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته دینی مسائل او پیغمبرانه هدایت پخپله وربانديې اولیکل . د فتح مکې په موقع باندې دوی صلی الله علیه وسلم یو خطبه ارشاد اوفرمائیلواود ابوشاه یمنی په درخواست باندې هغه خطبه یې په چاباندې لیکلوسره هغه ته ورکړه . «مفتاح السنة اوبخاری»

عمروبن حزم لره یمن ته د استولو په وخت کښې حضورصلی الله علیه وسلم یومفصل تحریری هدایت نامه ورکړه چه په هغې کښې د صدقاتو ، دیاتو ، فرائضو وغیره احکام وو . «مفتاح السنة مصری ص ۱۸»

دمسلم بن الحارث پلار ته حضورصلی الله علیه وسلم بشارت لیکلوسره ورکړو «ابوداؤد» د طائف یو سړی عبدالله بن عباس رضی الله عنه ته دهغه یو کتاب اوروليې وو . «ترمذی کتاب العلل» د خطیب د روایت مطابق حضرت انس رضی الله عنه سره هم د احادیثو مجموعه وه . حضرت انس رضی الله عنه به خپل اولاد ته د کتابت حدیث حکم ورکولو . «دارمی ص ۶۸» ابن عبدالبرپه جامع کښې د عبدالرحمن بن مسعود رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه هغوی یو کتاب ښودلوسره قسم اوخوړلو او وې وئیل چه دا د عبدالله بن مسعود د لاس لیکلې شوې دې ، حضرت عبدالله بن مسعود او حضرت علی رضی الله عنهما بعضې احادیثو لره د صحیفې په صورت کښې خپل ځان سره کیخودل «بخاری»

د بعضې کثیرالروایات صحابو مثلاً د ابوهریره ، عبدالله بن عباس ، عبدالله بن عمرو ، جابربن عبدالله ، براء بن عازب او انس بن مالک وغیرهم «رضی الله عنهم» مرویاتو لره دهغوی شاگردانو دهغوی په موجودګئ کښې لیکلی وو . «دارمی ص ۲۸ ، ۲۹» تهذیب التهذیب ج ۴ص ۱۹۸ کتاب العلل للترمذی»

حضرت عمررضی الله عنه د حکومت د عمالو دپاره د صدقة الماشیه احکام لیکلی وو . د موطا مصری په صفحه ۱۳۵ ، ۱۳۶ ، ۱۵۱ ، ۱۵۲ باندې داسې قسم مثالونه موجود دی .

د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې اګرچه کتابت حدیث ثابت دې . مګر هغه زمانه کښې حفظ صدر باندې زیات زوررو ، د عربو خلق په حافظه کښې زیات مشهور وو . اوږدې اوږدې قصیدې د مختلفو مضامینو هغوی ته یادې وې . د اوښانو او د اسونو نسب نامې یې حفظ وې . دحضورصلی الله علیه وسلم احادیثو لره هغه خلقو خصوصیت سره وحی الهی ګنلوسره حفظ کړل . اود حضورصلی الله علیه وسلم قول او فعل لره واجب الاتباع ګرځولوسره یې دهغې حفاظت

اوکړو ، د صحابو رضی الله عنهم نه پس د تابعینو رحمهم الله زمانه راغله هغوی ددنیائے اسلام په لریو لریو ځایونوکښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم احادیثو لره کمالِ حفاظت سره اورسول ، صحابو رضی الله عنهم اګرچه ذاتی یاداشتونه لیکلی وو ، مګر د حدیثو یومرتب کتاب نه وو ، د رومبئ صدئ په آخرکښې عمربن عبدالعزیز المتوفی ۱۰۱هجری د مدینې والی ابوبکربن محمدبن عمروبن حزم ته اولیکل ، ((انظر ما کان من حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم فاکتبه فانی خفت دروس العلم وذهاب العلماء)) (مفتاح السنة ص ۱) او هغه ته ئې دا هم اولیکل د عمره بنت عبدالرحمن انصاریه (متوفاة ۹۸هجری) اود القاسم بن محمد بن ابی بکر الصدیق (متوفی ۱۲۰ هجری) چه د احادیثو کومې مجموعې دی هغه لیکلوسره هغه ته واستوه ، هم دغه شان نورو لویو ښارونو ، مکه ، کوفه بصره ، شام او یمن وغیره کښې هم خپلو عمالو ته د تدوینِ حدیث دپاره اولیکه ، امام محمد بن مسلم بن عبیدالله بن عبدالله بن الشهاب الزهری المدنی (متوفی ۱۲۴هجری) هم په هغه خلقو کښې دې چاته چه د تدوینِ حدیث لیکلې شوی وو ، (مفتاح السنة)

د خلیفه عادل دې هدایت د محدثینو حوصله اوچته کړه او هغوی خپلو کوششونو لره تیز کړه اود حدیثونو د تدوین کارئې په غټه پیمانه باندې شروع کړو ، په هغه مقدسه ډله کښې د تولو نه زیات ممتاز شخصیت محمدبن مسلم زهری وو ، دده پیدائش په ۵۰ هجری کښې اوشو ، د سنن اود آثارِ نبویه د قصر دا شپږ ستنې فنِ حدیث کښې ډیره لویه درجه لرله ، امام زهری (مدینه کښې) عمروبن دینار (مکه کښې) قتاده ویحیٰ بن کثیر (بصره کښې) ابو اسحاق وسلیمان اعمش (کوفه کښې) امام زهری د تابعینو د طبقه اولیٰ په محدثینو کښې دې چا چه حدیثونه قلمبند کړه ، بعده هم په دې دویمه صدئ کښې چه طبقه ثانیه راغله په هغې کښې د تدوین کار خورشو ، چنانچه ابن جریج متوفی ۱۵۰ هجری د تولو نه وړاندې مکه مکرمه کښې احادیثو لره د کتابت په صورت کښې جمع کړل (مدینه منوره کښې) ابن اسحاق متوفی ۱۲۱ هجری او امام مالک متوفی ۱۷۹ هج (بصره کښې) ربیع بن صبیح متوفی ۱۲۱هج (کوفه کښې) سفیان ثوری متوفی ۱۲۱ هج (شام کښې) اوزاعی متوفی ۱۵۲هج (یمن کښې) معمر متوفی ۱۵۳هج او خراسان کښې ابن المبارک متوفی ۱۸۱هج وغیرهم (رحمهم الله) حدیثونو لره لیکلوسره مدون کړه ، د دویمې صدئ یو څو مستند کتابونه دادی (۱) موطاامام مالک بن انس متوفی ۱۷۹هج (۲) مصنف اللیث بن سعد متوفی ۱۷۵هج (۳) مصنف سفیان بن عیینه متوفی ۱۹۸هج (۴) مسند الامام الشافعی متوفی ۲۰۴هجری .

ددې نه پس دریمه صدی هجری دخدمت سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم جلیل القدر ...
ده . په هغې کښې د صحاح ستہ وغیره مستند کتابونو تدوین اوشو او ترتنه پورې د علوم نبو...
نورانی منابع بکمالها موجود دی صحاح سته دادی .

(۱) صحیح البخاری . متوفی ۲۵۲هج .
(۲) صحیح مسلم متوفی ۱۲۱هج .
(۳) سنن ابی داؤد متوفی ۲۷۵هج .
(۴) سنن الترمذی متوفی ۲۷۹هج .
(۵) سنن النسائی متوفی ۳۰۳هج .
(۲) سنن ابن ماجة متوفی ۲۷۳هج . ددې نه علاوه لاندینی کتابونه هم دې دریمې صدئ کښ... مدون شول :
(۷) مسند احمد بن حنبل متوفی ۲۴۱هج .
(۸) مسند اسحاق بن راهویه متوفی ۳۷۳هج .
(۹) مسند عبدبن حمید متوفی ۷۴۹هج .
(۱۰) مسند الدارمی متوفی ۲۵۵هج .
(۱۱) المسند الکبیر للقرطبی متوفی ۲۲۲هج .
(۱۲) مسند ابی یعلی الموصلی متوفی ۳۰۷هج .
(۱۳) تهذیب الآثار للامام محمد بن جریر الطبری متوفی ۳۱۰هج وغیرها

**فقط** : ربنا آمنا بما انزلت واتبعنا الرسول فاکتبنا مع الشاهدین .

**رشید احمد ۳ ذیقعده ۷۴ هج یوم الجمعة**

بسم الله الرحمن الرحيم

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ

# ارغام العنيد في ميراث الحفيد

(۱) د نمسي ميراث
(۲) اصولِ وراثت باندې د منكرينِ حديث د اعتراضونو جوابونه

## د نمسي ميراث

**سوال** :- د خوئ په موجودګئ كښې د يتيم نمسي د وراثت مسئله نن سبا پنجاب اسمبلئ كښې دغور لاندې ده، ددې وجه نه په اخباراتو كښې مختلف خلق په دې مسئلې باندې خپلې رائې ښكاره كوي ، چنانچه اخبارآثار (زميندار) د ۳۱ دسمبر ۱۹۵۳ء په اشاعت كښې يو مضمون د اجماع امت په عنوان سره شائع شوې دې چه په هغې كښې د شريعت مطهره د قانون خلاف د نمسي د وراثت يې مضبوط تائيد كړې دې . لهذا جناب عالى نه درخواست دې چه دې مسئلې باندې رڼا واچوي د اخبارآثار پرچه هم درليږلې شوې ده .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د منكرينِ حديث اصل مقصد دا دې چه د قرآن كريم د قطعى فيصلې خلاف د خوئ په موجودګئ كښې ديتيم نمسي ميراث ثابتوي . افسوس دادې چه مضمون ليكونكې بې ضرورته بحث (منكرِ اجماع كافر نه دى) لره كافى اوږد كړو ،مګرچه كله اصل مقصد ته اورسيدلو نوصرف يو مجمله جمله ليكلوسره يې دهغې د معمولى تشريح جرات هم اونه شو . دهغې نه پس ئې د علم فرائض بعضې مسائل پيش كړل او په هغې كښې ئې هغه زاړه اعتراضونه سردوباره كړل چه د دښمنانِ رسول اودمنكرينِ حديث د قائد اسلم جيراجپوري اود هغه ملګرو خلقو طرف نه د طلوع اسلام وغيره په صفحاتو باندې باربار شائع شوي دي او هركرت د علمائې حق د طرف نه دهغې مسكت جواب وركړې شوې دې . غرض داچه مضمون نګار اصل مقصد باندې فقط يوه مجمله جمله ليكل كافى اوګڼل . چنانچه دوئ ليكي "قرآن كښې د اصولِ وراثت بيان كولوسره وئيلې شوي دي چه نژدې رشته دار ته به د لرې رشته دار نه وراندې ميراث

ملاویږی» لیکن علماء دخپل جوړ شوؤ اصولو په خاطر دهغې مفهوم دا گرځوی چه نزدې رشته دار لرې رشته دار لره محرومولی هغې ته حجب حرمان وائی»

تاسو خو دا اولیکل چه د قرآنی اصولو په موجب نزدې رشته دار ته به د لرې رشته دار نه وراندې میراث ورکول کیږی مگر د رومبنۍ میراث د ملاویدلو د مفهوم دتشریح او تفصیل نه مو بالکل دده کړې ده چه د دیانت قطعاً خلاف ده ، زه اوس وخت صرف د « رومبیۍ میراث ملاویدلو » د مفهوم معین کول غواړم . غالباً مضمون نگار ته به هم دې سره اتفاق اوشی چه د «رومبیۍ میراث ملاویدلو » مفهوم دا نه دې چه د نزدې حصه دې هغه ته د سحر په وخت کښې ملاؤ شی او لرې ته د ماښام په وخت کښې ، بلکه ددې مفهوم صرف هم دا کیدلې شی چه د نزدې حق د لرې نه زیات دې او دا د « الاقرب فالاقرب » قانون «آیت کریمه ﴿ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴾ نه مستنبط دې ، پس د قرآن کریم هم دا قانون ( چه هغې لره په خپله مضمون نگار هم تسلیم کړې دې ) تولو وارثانو ذوی الفروضو او عصباتو کښې به جاری کیږی . احکم الحاکمین د ذوی الفروضو حصې معین کولو کښې هم دې قانون لره ملحوظ ساتلې دې . د نزدې حصه ئې د لرې نه زیاته مقررکړې ده ، ممکن وو چه عقلِ انسانی یو خاص صورت لره دهغه قانون قدرت خلاف گڼل شروع کړی . لهذا دهغه د تسکین دپاره ئې ارشاد اوفرمائیلو ﴿ آبَاؤُكُمْ وَأَبْنَاؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ﴾ څنگه چه د ذوی الفروضو حصې معین کولوکښې ددې قانون لحاظ دې هم هغسې د عصباتو په توریث کښې هم دا قانون معمول به دې فرق صرف دادې چه د ذوی الفروضو حصې چونکه معینې دی ددې وجه نه د قریب حصه د بعید نه زیاتولو سره قریب ته ترجیح ورکړئ شوې ده ، ددې په عکس د عصباتو حصې نه معین کیدلو د وجه نه په هغې کښې داسې قسم ترجیح ناممکن ده ، څکه چه دهغې څه حصه مقرر نه ده چه د بعضو حصه ئې د بعضو نه زیاته ساتلې وې بلکه قرآن کریم کښې صفا ارشاد دې چه د ذوی الفروضو نه څه باقی پاتې شی هغه دې په عصباتو باندې ﴿ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ﴾ تقسیم کړئ شی . لهذا په هغې کښې قریب لره دمقدم ساتلو صرف هم دا صورت ممکن دې چه بعیدلره بالکل محرومه کړئ شی ، په دې بیان سره واضحه شوه چه د عصباتو په باره کښې د فقهاؤ مقررکړه قانون (د قریب په موجودگئ کښې د بعید محرومه کیدل ) د قرآن قانون نه مخالف نه دې بلکه عین هم هغه قانون دې کوم چه په قرآن کښې دې ، یعنې د قریب د بعید نه زیات حق دې مگر عصباتو کښې ددې قانون د اجراء صرف هم هغه صورت ممکن دې کوم چه فقهاء بیانوی ، عصباتو کښې ددې قانون د اجراء صورت لره اگرچه قرآن په واضحه طور باندې بیان کړې دې خوبیا هم معلم الکتاب والحکمة سید الکونین صلی الله علیه وسلم هم صفا الفاظو کښې دهغې تشریح کړې

ده . اوګوري ((عن ابن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الحقوا الفرائض باهلها فما بقي فهو لاولى رجل ذكر)) (بخاري كتاب الفرائض) يعني ذوي الفروضو ته دهغوی حصې ورکولو نه پس چه څه باقي پاتې شي . هغه ټول په ټوله عصباتوکښې دهغه سړي حق دې چه د ټولو نه زیات نژدې وي ، په بخاري کښې د جلیل القدر صحابي کاتب الوحی حضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه دا قول هم منقول دې ((قال زيد ولد الابن بمنزلة الولد اذا لم يكن دونهم ولد ـ الى قوله ـ ولا يرث ولد الابن مع الابن)). یعنې د خوئ اولاد د مړي د اولاد قائم مقام په دې شرط سره کیدلې شي چه د مړي په اولاد کښې څوک سړې هم نه وي او وې فرمائیل چه دکوم یو خوئ په موجودګئ کښې نمسې وارث نه شي کیدلې ، که چرته د ذوي الفروضو په شان عصباتوکښې هم قریب ته زیات او بعید ته کم ورکولو اصولو باندې عمل اوکړې شي نودهغه کمئ بیشئ معیاربه څه وي ؟ که چرته هم پخپل خیال او اټکل سره د خوئ دپاره (۲/۱) او د نمسي دپاره ۱۱۳ معین کړئ شي نوآیا ددې به واضحه مطلب دا نه وي چه ترنه پورې نعوذ بالله قرآن ناقص وو؟ چه دهغې تکمیل جیراجپوری اودهغه متعینو کړې دې ؟ او که چرته خوئ او نمسي ته مساوي حصه ورکول غواړي نو دا هم ستاسود بیان کرده قرآني قانون (قریب ته به د بعید نه رومبې ورثه ملاویږي) ، خلاف دې . زه فاضل مضمون نګار نه مؤدبانه التماس کوم چه تاسو هم دخپل بیان شوي د قرآني قانون مطابق خوئ او نمسي یا نورو عصباتو کښې د تقسیمِ ترکه متعلق د فقهاؤ بیان شوي صورت نه علاوه یو بل صورت پیش کړئ . امید دې چه د جواب نه به دریغ اونه کړئ . د نمسي د وراثت په باره کښې دا سوچ ضروري دې چه آیا خوئ دخپل پلار په ژوند کښې دهغه د وراثت مالک یا د حق دعویداردې یا نه ؟ که چرته بالفرض دې نو دا سوال بالکل پیدا کیږي نه چه آیا ددې خوئ . خوئ (نمسي) حق داردې یانه ؟ مګر داسې نه ده بلکه ددې په عکس ده . یعنې خوئ دخپل پلار په ژوندکښې بالکل د داسې سړي په شان دې چه هغه ته صاحبِ جائیداد وئیلې کیدلې نه شي نو داسې صورت کښې دنمسي د حقوقو سوال بالکل عبث دې .

| | زید | |
|---|---|---|
| عمرو | بکر | خاتون (جنئ) |
| خالد | | |

په ذکر شوي صورت کښې د زید په موجودګئ کښې عمرو دهغه د هیڅ مال حقدار نه دې . چه هرکله عمرو حقدارنه دې نو دخالد د حقدارکیدلو بالکل سوال باطل دې کوم څیز لره چه عمرو پخپل ژوند کښې حاصل نه کړئ شو ،دهغه دپاره دهغه خوئ څنګه دعوی کولې شي ؟ معترضینو د ولد لفظ کښې وسعت پیدا کولوسره دهغې نه خوئ ، نوسې او کړوسې مراد اخستلې دې اولور

لره نې بالکل پریخودله ، حالانکه داسې کولونه پس دیو قاعدې په رو سره چه هرکله لفظ ولد نه لور لره اوویستلې شي نونوسې د صورت ولد په ضمن کښې نه شي راتللې ،دویم خاځ لفظ قریب باندې چه دکوم خیال اظهارکړې شوې دې هغه هم عجبیه دې ، لږ خیال اوکړئ چه د زید د مرګ نه پس صرف خاتونه (جینئ )او بکر (هلک) ژوندی دی عمرو دهغوی په ژوندکښې وفات شو ، که چرته عمرو لره دهغوی د مرګ نه پس هم ((قریب)) کښې شاملیدلې شي نود زید خپل ذات دهغه نه هم زیات قریب دې لهذا که چرته داسې اوکړئ شي نونظام دنیا به چه نظام حیات باندې مبنی ده ختم اوخراب به شي ددې وجه نه عمرو په یوحالت کښې هم په قریب کښې شاملولې نه شي ، نودهغه د خوئ خالد په قرب کښې شاملیدل بې بنیاد دی ، صرف بکر او خاتون په قرب کښې د شاملیدلو صحیح حقدار دی .

ددې نه پس لفظ ((قائم مقام)) باندې په دې طریقې سره بحث کړې شوې دې چه د نیغو خلقو دګمراهئ موجب جوړیدلې شي ، حالانکه قائم مقام او وراثت کښې چه کوم فرق دې هغه لږ غوندې عقل والا سړې هم پیژندلې شي ، مثلاً اوس حال کښې جستس رشید صاحب د غلام محمد ګورنر جنرل قائم مقام وو مګر وارث نه وو ، لیکن دهغه خوئ وارث وو مګر قائم مقام نه وو حالانکه هغه قائم مقام کیدلې شي ، باقي پاتې شو د یتیم نمسی د پرورش سوال نو شرعاً مړی ته پخپل مال کښې د دریمې حصې حده پورې د وصیت کولو اجازت دې ، پس نیکه بطور وصیت دخپل نمسی د پرورش انتظام کولې شي ، بلکه پخپله پخپل ژوندکښې مناسب ملکیت خپل نمسی ته ورکولوسره هغه د معاشی مشکلاتو نه بچ کولې شي ، که چرته بالفرض نیکه نمسی ته څه ورنه کړه او نه ئې وصیت اوکړو نو تره ددې یتیم ولی دې اودهغه د پرورش جمله مصارف تره باندې شرعاً لازم دی ، فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد ((۳جنوری ۱۹۵۴ء))

**سوال** :- نن سبا دپنجاب په قانون ساز اسمبلئ کښې د یتیم نمسی د وراثت د مسئلې دپیش کیدلو د وجه نه په دې موضوع باندې عام اخبارونو او رسالوکښې مختلف قسم مضامین تردیداو تائید کښې متواترشائع کیږی ، د جناب عالی نه امید دې چه دې موضوع باندې مدلل او مفصل مضمون ولیکی او د حق تحقیق وکړی .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د یتیم نمسی متعلق د قرآن او حدیثو اود اجماع امت د فیصلو خلاف کوم خلق چه په میدان کښې په نظر ښکاری دهغوی اصل مقصد د حدیثو نه انکار کولو سره ټول اسلامی نظام ختمول اود هر امراونهی نه آزادانه ژوند تیرول دی ، دا خلق منکرین حدیث دی او اصولی طورباندې دمسلمانانونه یو جدا نظریه لری ، ددې وجه نه شپه اوورځ د دین په مسلماتو کښې داسې مسائل رااوباسی چه په هغې کښې تلبیس کولوسره څه مالیږې او مصالحې لګولوسره همدردانه لهجه او جذباتي تحریرونو لره د ساده مسلمانانو په وړاندې د سنت

نبویه اود څوارلسو کالو د نظام شریعت اود اجماعِ امت تمسخر اوکړئ شی ، د یتیم نمسی د وراثت مسئله هم ددې سلسلې یوکړئ ده ، لهذا هغه خلقو سره یو خاص جزئی کښې بحث کول فضول دی . که چرته دیو جزئی فیصله هم اوشوه نو دویمه مسئله به شروع شی ، ددې وجه نه دهغوی مقابله اصولی طور باندې ضروری ده . چنانچه د حجیت الحدیث په باره کښې مونږه یو مدلل او مبسوطه رساله «فتنهٔ انکارِحدیث» شائع کړې ده ، د سنتِ نبویه او د نظام فقه او د قانونِ اسلامی په باره کښې د دین دښمنانو او منکرینِ حدیث او ملحدانو دا پروپیګندا شروع کړې ده چه دا دساده ملایانو بې بنیاده خبرې دی چه په زړو کتابونو کښې راروانې دی او روستو خلق دهغوی په ذهنی غلامئ کښې مبتلاکیدلوسره تقلیدپه تقلید راروان دی ، نو په پوهه حضراتو باندې پټه نه ده چه د منکرینِ حدیث دا تصور محض د بازاری خرافاتو حیثیت لری ، دا نظام اسلامی او قانونِ فقه چه زمونږ د نصاب نه خارج او زمونږ د مکتبواو حدودِ مطالعه نه بهرشوی دی څه مده وړاندې هم دا قانونِ فقه داسې نافذ وه څنګه چه نن زمونږه دلته انګلوسیکشن نظام قانون رائج دې ، دا قانونِ فقه باقاعده د اسلامی ملکونو په اسمبلئ کښې او پارلیمنټ کښې زیرغوروفکرراتللوسره مرتب شوې ده فاضل ججانو اود قانونِ اسلامی ماهرانو ددې اصولوسره عدالتونوکښې روزمره پیش راتللو والا مقدماتو باندې منطبق کولوسره او د هرقسمه نوو پیدا شوو حوادثو لره هغه قوانینو سره حل کولوسره دهغه قانون په ډیرکرته امتحان اخستلونه پس هغه د انسانی ژوند کامل معیارګنړلوسره یوخاص وسعته پورې رسولې دې ،دا د جمات په هالونو کښې نه بلکه د حکومت په ایوانونوکښې ، یونیورسټیانو ، تحقیقی ادارو کښې او په عدالتونوکښې هم هغه شان سره مرتب دی څنګه چه نن سبا د یو حکومت قانون مراد ته رسی ، یو یو شعبه کښې دهغې اصول متعیین کړئ شوی دی حکمتونه او مصلحتونه مخامخ راوړلے شوی دی هربحث کښې د مصلحت او مضرت هر اړخ مدِنظرساتلے شوې دې ، او منافع او مفاسدو لره مدِ نظر ساتلوسره د قانون ماهرینو د فراخه نظر او فکر ډهانچه تیاره کړې ده چه هغې لره ډیرې مدې پورې پیش راتللو والا واقعاتو باندې قیاس کولوسره مدون کړئ شوی دی اودهغې دپاره نوی اصطلاحات وضع کړئ شوی دی . بیا دانه چه هرقانون دان په توکل سره ګذار کولو سره روان شوې دې . بلکه دهغې په عکس د ماهرینِ قانون فقهاؤ په مینځ کښې لوئ لوئ اختلافات موجود دی . متفقه اصولو باندې د اجتماع باوجود تفاصیلوکښې اختلاف راتې موندلې کیږی تردې پورې چه څلور لوئ لوئ منابعِ فکر زمونږ په فقه کښې پیدا شوئ بیا خودِ په هغې کښې داخلی طور باندې اجتهادی اختلاف ښکاره دې .

وروستو چه کله دا نظامِ فقه متروک شوه نو ددې فائده داسې بنده شوه څنګه چه د کوم یو حکومت یو قانون عملی ژوند نه برطرفه کیدلو نه پس د فطری فائدې نه بندیږی . لیکن نن هم

دهغې د چينو بهيدل ، دهغې د اصولو مضبوطوالې اودهغې قابلِ نشوونما کيدلو کښې هيڅ فرق واقع نه شو . يوحکومت کښې هم فارمولو او کلياتو لره چه کله يو خلې د پوره غورنه پس اختيارولې کيږی نو بيا هغه د قانون په پوره نظام باندې اثرانداز کيږی . او هغوی ته يو رايه هم قانمولو . فيصله کولو . اجتهاد کولو يا کومه مقدمه کښې يو نظير پيش کولوکښې په پوره شان مدِ نظر ساتلې کيږی . بيا کله دا هم کيږی چه کليات او فارمولې په بعضې ځايونو کښې تفاصيلو کښې تللوسره چه کله پخپل مينځ کښې متاثرکيږی نو څه نا څه مشکل والې هرې فارمولې او کليې ته مخې ته راځی . ليکن د دنيا په يونظام کښې هم دا حماقت نه شی کولې چه چرته څه مشکل والې د يو کليې د وجه نه پيش راشی نو هغه پريخودلو سره فوراً يو متضادې او نوې کليه اختيارکړی ، بلکه د کلياتو او د فارمولو بنيادی اساس لره برقرار ساتلوسره هم هغې کښې دننه اوسيدلوسره د مشکل والی حل لټولې شی هم دغه شان د اجماع انستی ټيوشن اسلامی نظامِ قانون ته يو مستقل ډهانچه فراهم کولودپاره هم د نصوصو نه اخذکرده متفق عليه کليات او فارمولې مخې ته راوړی ، دهغه فارمولو په تعامل سره تفاصيلو کښې تللو سره چرته نه چرته مشکلات هم ښکاره کيږی ليکن دهغه مشکلاتو د وجه نه ، نه هغه قانون ته د ملايانو د لاپو نشانه جوړول يو معقول حرکت کيدلې شی اونه دهغه جزئی څيزونو په خاطر د قانون مجموعی ډهانچې لره ماتولوسره نوې ډهانچه جوړولوکښې لګيدل د حقِ اجتهاد استعمالولويو صحيح صورت دې .
هغه جزئی مشکلاتو لره بهرحال د اسلامی نظامِ فقه وقانون مجموعی فريم کښې ايخودلوسره د اجماعی کلياتو او فارمولو لاندې حل کولې شی ، حقيقت کښې داسې مواقعو باندې چه هرکله په يو وخت کښې د دوو يا د دريو کليو عمل جمع شی نو سوچ کول دا وی چه مسئلې باندې د کومې کليې عائد کول زيات اهم دی او چالره د کم اهميت د وجه نه پريخودلې کيدلې شی ، چنانچه داسې مواقع باندې اختلاف هم ضروری کيږی او داسې پيچيده مسائلو کښې زمونږ د مدارسِ فقهې د اول نه اختلاف موجود دې او آئنده به هم موجود وی ، مګر نه وړاندې کله د تفاصيلو د فنی اشکالاتو او پيدا کيدلو والا اختلافاتو د وجه نه چادهغه کلياتو د صحت او اهميت نه انکار کړې دې او نه نن داسې کول صحيح دی . د دنيا په هرنظامِ قانون کښې بلکه د ژوند په هرې شعبې د علومو او فنونوکښې کلياتو لره تفصيلی او جزئی امورو باندې منطبق کولوسره هم دا صورت مخې ته راځی . ليکن کله اهلِ فهم بنيادی مسلماتو لره د جزئی اشکالاتو په بناء باندې مضحکه انګيز نه ګرځوی ، ليکن د منکرينِ حديث دا طريقه ده چه زمونږ علماء د قانون د کتابونونه چهانړکولوسره هغه حصې راوړی چه هغې باندې اعتراضات او اشکالات زبردست بيان دسره مخې ته راوړی ، ليکن هغې سره د قانون ماهرينو چه د اعتراضاتو کوم جوابونه ورکړی دی او اشکالاتو لره ئې چه په کومه طريقه حل کړی دی دهغه حصو يا خو بليک آوټ کولې کيږی او يا هغې لره

حد درجه كمزورى كولو سره پيش كولې كيږي هم دغه شان د فقهې او حديث په خلاف انتشار پېدا كولو كښې هم كاميابيږي اود علميت اوتفكر خراج هم قائمولې كيږي .

غرض داچه منكرينِ حديث چونكه كليات او هم بنيادى اصولوكښې د مسلمانانو نه يو جدا جماعت دي ددې وجه نه مسئله زيرِ بحث كښې دهغوى سره خطاب كول خو بالكل بې معنى دې . البته د ساده مسلمانانود اطمينان دپاره دهغې مسئلې وضاحت او تفصيل ضرورى دې . پس مونږ فنِ ميراث سره متعلق د نظامِ اسلامى يو څو اجتماعى اصول ذكر كوؤ او صرف د داسې اصولو په ذكر باندې به اكتفا اوكړې شى چه دهغې مسئله زيرِ بحث سره ژور تعلق دې

**اول اصل** اسلام بلكه هرمذهب او ملت كښې د ميراث د تقسيم معيار ضرورت ، حاجت ، او خدمت يا لياقت يا قائم مقام يا يتيم او قابلِ رحم كيدلو باندې نه دې بلكه داحق چه په كوم بنياد باندې قائميږي هغه قرابت دې اوكه فقط په ضرورت او حاجت باندې مدار وې نو د هرسړى د مرګ نه پس به دهغه مالداره خامن ، نمسى ، پلار ، نيكه ، ښځه ، ورور ، خورياڼې وغيره ټول به محروم وو او د كلى فقيران ، مسكينان او يتيمان به وارثان جوړيدلې ، همدارنګه وصى به هم د قائم مقام كيدلو د وجه نه كيدلو . دا اصل په مسلماتِ عقليه كښې داخل او اجماعى او ټولو مذاهبو كښې متفق عليه كيدلوسره د قرآن مجيد په نصوصِ صريحه سره هم ثابت دې « **مما ترک الوالدان والاقربون** » او په نورو ټولو متعلقه آيتونو كښې ددې تصريح ده

**دويم اصل** چه هركله د وراثت مدار رشتې او قرابت باندې دې نو ټوله دنيا د آدم عليه السلام د اولاد كيدلو د وجه نه پخپل مينځ كښې د رشتې او قرابت تعلق لرى ، حالانكه ټولې دنيا ته د وراثت حق وركول نه عقلاً ممكن دې او نه په يو مذهب كښې هغه قابلِ عمل ګڼلې شوې دې ، لهذا د « الاقرب فالاقرب » قانون مخې ته راځى ، يعنې د قرابت په درجه كښې چه كوم خلق مقدم دى هغوى به مؤخرينو لره كُلًا يا جزءً محروموى ، كوم خلق چه اصولاً وارث كيږي په هغوى كښې د درجهٔ قرابت د تفاوت د وجه نه به حصې متفاوت وى . استحقاقِ ارث كښې د قرب او بُعد تفاوت په لاندينى دلائلو سره ثابت دې .

(۱) « **مما ترک الوالدان والاقربون** » كښې د « اقربون » لفظ .

(۲) د بنوت په علاقه كښې د زيات قرب كيدلو د وجه نه والدينو ته خاص طور باندې د اقربون نه جدا ذكر كول .

(۳) « **واولوا الارحام بعضهم اولى ببعض فى كتاب الله** » (۴) اجماعِ امت

بيا د قرب او د بُعد د لحاظ دوه صورتونه دى :

الف: حجب نقصان يعنې قريب ته زياتې اوبعيد ته كمې حصې وركړې شى .

ب: حجب حرمان يعنې د قريب په موجودګئ كښې بعيد بالكل محروم پاتې شى ، ذوى

الفروضو کښې دا دواړه صورتونه موجود دی ، احکم الحاکمین د ذوی الفروضو حصې متعین کولو وخت کښې خپل حکمت سره د قریب په موجودګئ کښې بعید لره کلاً یا جزءً محروم کړې دې ، چنانچه د قرب او بعد په لحاظ سره وارثانو لره په دریو مراتبو باندې تقسیم کړئ شوی دی:

(۱) ذوی الفروض (۲) عصبات (۳) ذوی الارحام

او بیا په هره مرتبه کښې د قرب او بعد په لحاظ سره درې درجات دی:

(۱) جزء میت (۲) اصل میت (۳) جزء اصل میت

د عصباتو او ذوی الارحامو متعلق دا تقسیم مشهور او کتب متداوله کښې ذکر دې ، لهذا مونږ دلته صرف ذوی الفروضو لره دریو درجاتو باندې تقسیموؤ:

**رومبئ درجه**:- (جزء میت) په دې کښې لور ، نمسی ، خاوند او ښځه ده ، ځکه چه زوجینو کښې د ولد د وجه نه علاقه د جزئیت پیدا کیږی.

**دويمه درجه**:- (اصل میت) مور ، پلار ، نیکه ، نیا وغیره لره شامل دې.

**دریمه درجه**:- (جزء اصل میت) خور او وروراخیافی ، خورعینی او علاتی باندې حاوې دې ، په دویمه درجه کښې د مورحصه ۱/۳ په رومبئ درجه کښې د ښځې حصه د ۱/۲ نه د زیاته ساتلو وجه دا کیدلې شی چه ښځه کښې علاقه د جزئیت من کل الوجوه نشته دې ، همدارنګه د مور حق پرورش ملحوظ دې ، او په دریمه درجه کښې اګرچه د خور عینی اود علاتی حصه ۱/۴ درجه په دوم کښې د مور حصه ۱/۳ اود نیا حصه د ۱/۲ نه زیاته ده مګر دلته د مور اود نیا د قرب داسې لحاظ ساتلې شوې دې چه ډیر وارثان خوریانو لره بالکل محروموی ، مور او نیا لره نه شی محرومولې ، مور په یو حالت کښې هم محرومه نه ده ، نانی صرف د مور په موجودګئ کښې او نیا د مور یا د پلار په موجودګئ کښې محرومیږی ، ددې صورت نه سوا په یو حالت کښې هم نیا محرومه نه ده ، علاوه ددې نه د مورحصه د ۱/۲ نه کله هم نه کمیږی ، او اخوات چه کله زیات وی نو د هریوحصه د ۱/۲ نه کم هم کیدلې شی ، همدارنګه مونږ پورته بیان کړی دی چه په کوم خاص جزئی کښې یومشکل پیدا کیدلو د وجه نه قانون لره پریخودل بې وقوفتیا ده ، غرض دا چه غور کولو سره به معلومه شی چه په دې دریو واړو درجاتو کښې او هم دغه شان دهریو درجې په وارثانو کښې الله تعالی د قرب او بعد لحاظ ساتلې دې ، ممکن وو چه د انسان کوتاه نظر یو خاص صورت لره دهغه په خلاف اوګڼلو ، لهذا ارشاد اوشو ﴿ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا﴾ حاصل دا چه ذوی الفروضو کښې قریب بعید لره کلاً یا جزءً محروموی ، اول ته حجب حرمان او دویم ته حجب نقصان وئیلې کیږی ، عصباتو کښې صرف حجب حرمان وی ، حجب نقصان ممکن نه دې ، ځکه چه د عصباتو یو حصه هم معین نه ده چه د قریب د وجه نه د بعید حصه

ناقصه شی . د عصباتو حصه معین نه کیدلو باندې لاندې دلائل دی:

(۱) قرآن یا حدیثو کښې یو حصه هم معینه مذکوره نه ده . حال دا چه قرآن کښې د ذوی الفروضو حصې نهایت وضاحت او طوالت سره مفصل بیان کړی شوی دی:

(۲) ﴿ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ﴾

(۳) ﴿ فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ ﴾

(۴) ﴿ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾

حضرت ابن عباس ، مجاهد او قتاده نه روایت دې چه دلته د موالی نه مراد عصبات دی.

(احکام القرآن للجصاص ج۲ص ۲۲۳)

(۵) حدیث ((من مات وترك مالا فماله للموالی العصبة)) (احکام القرآن ج ص ۳)

(۶) عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما عن النبی صلی الله علیه وسلم قال الحقوا الفرائض باهلها فما بقی فهو لاولی رجل ذکر (بخاری، کتاب الفرائض)

(۷) ما احرز الولد او الوالد فهو لعصبته من كان (مسند احمد، ابوداؤد)

(۸) فایما مومن ترك مالا فلیرثه عصبته من كانوا (بخاری، کتاب التفسیر)

(۹) واجعلوا الاخوات مع البنات عصبة (بخاری)

(۱۰) اجماع امت

غرض دا چه عصباتوکښې د قرب او بعد لحاظ صرف داسې کیدلې شی چه د قریب په موجودګئ کښې بعید بالکل محروم پاتې شی . د بخاری روایتِ مذکوره ((الحقوا الفرائض باهلها فما بقی فهو لاولی رجل ذکر)) هم صراحةً ددې مثبت دې حقیقی عصبه صرف هم سړی دی خوردخپل وررور سره ضمناً عصبه جوړیږی . لقوله تعالی (للذکر مثل حظ الانثیین) او د لوڼ سره د خور عصبه کیدل صرف حدیث باندې مبنی دې.

د عصباتو په شان د ذوی الارحامو هم څه حصه معین نه ده . بلکه د لاندې په دلائلو سره د قرب او بعد په لحاظ سره مطلقاً استحقاق ثابت دې.

(۱) ﴿ وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ ﴾

(۲) ﴿ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ﴾ لفظ اقربون کښې د قرابت هره درجه داخله ده خصوصاً په لفظ للنساء سره د ذوی الارحامو د استحقاق زیات وضاحت وشو.

(۳) الخال وارث من لا وارث له (بخاری)

(۴) التمس واله وارثاً او ذا رحم (ابوداؤد)

**دریم اصل** :- یو سړی هم د بل سړی په ژوند کښې دهغه وارث نه شی کیدلې بلکه د مرګ نه پس استحقاقِ وراثت وی ، دا اصل په لاندې دلائلو سره ثابت دې :

(۱) عقلِ سلیم ، چنانچه د ټولو ادیانو په دې اصل باندې اتفاق دې .

(۲) قانونِ وراثت سره متعلق نصوصِ قرانیه کښې د «**مما ترکن ، مما ترک ، مما ترکتم**» الفاظ بار بار راغلی دی یعنې د قانونِ وراثت د بحث موضوع هم تقسیم ترکه دې ، نه یو مال د چا په ژوند کښې ترکه کیدلې شی اونه په هغه مال کښې بحیثیت وارث د چا حق پیدا کیدلې شی.

(۳) ﴿إِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ وَلَهُ أُخْتٌ﴾ (۴، ۱۷۶)

په دې کښې پوره وضاحت دې چه د اقرباء د استحقاقِ وراثت سوال د مورث په مړکیدلو باندې پیدا کیږی نه په ژوند کښې ، غرض داچه دا اصل هم قطعی دې چه د چا په ژوند کښې بل څوک د هغه وارث نه شی ګرځیدلې بلکه دهغه د مرګ نه پس د وراثت حق پیدا کیږی ، برطانوی قانونِ وراثت کښې هم دا اصول هم داسې معمول دی .

**څلورم اصل** :- ترکه کښې حقِ وراثت صرف د ژوندی وارثانو وی ، د مورث نه وړاندې مړه کیدلو والا وارثان بالکل نه حسابیږی ، غورواوکړئ چه قانونِ میراث سره متعلق آیتونو کښې دا الفاظ دی «**للرجال نصیب ، للنساء نصیب ، یوصیکم الله فی اولادکم ، فان کن نساء فوق اثنتین وان کانت واحدة ، ان کان له ولد ، ان لم یکن لکم ولد ، فان کان لکم ولد ، وله اخ اواخت ، فان کانوا اکثرمن ذلک ، لیس له ولد وله اخت ، ان لم یکن لها ولد ، فان کانتا اثنتین ، وان کانوا اخوة رجالاً ونساء**» آیا دا الفاظ مړو او ژوندو ټولو ته شامل دی ؟ آیا دا خبره صرف د ژوندو وارثانو ده یا د مړو هم ده ؟ د مذکوره آیتونو جملو لره مخې ته ایخودلوسره فیصله اوکړئ چه که چرته فلانکې رشته دار وی « نو دا مدعا راویستلې کیدلې شی چه کله مخکښې موجود وو» ، یا فلانکې رشته دار نه وی « نو دا مفهوم هم پیدا کیدلې شی چه د داسې قسم رشته دار بالکل پیدا شوې نه وی ؟» که چرته څوک دې مدعی وی نو موږ به هغه ته عربی ژبه او ادب ایزده کولو باندې توجه ورکوو ، ترننه پورې یو کس هم د دورِ نبوی نه واخله تر اوسه پورې داسې پیدا شوې نه دې چه هغه ددې نا اشنا اجتهادی مفهوم ګنجائش د چرته نه راویستلې وی ، که چرته دې باندې هم د اجتهاد نشه کوزه نه شی نو موږ به لاندینی نصوص مخې ته ایخودلوسره پوښتنه کړو چه هغې باندې به ستا مفهوم څنګه منطبق کیدلې شی .

(۱) ﴿وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ﴾ کلاله هغه چا ته وائی چه دهغه

نه پلار ژوندي وي او نه څوئ ،نو آیا دلته دا تصور کیدلې شي چه یو سړي بې پلاره د عیسی علیه السلام په شان پیدا شوې وي . ښکاره ده چه پلار وو خو مړشو . لهذا دهغه د وارث کیدلو سوال له بحث نه خارج دې .

(۲) ﴿فَإِن لَّمْ يَكُن لَّهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ﴾ آیا والدین دمړه کیدلو په صورت کښې به هم وارثان وي . او مړه موربه هم ۱\۳ حصه اخلی ؟

(۳) حدیث ((الخال وارث من لا وارث له)) (ابوداؤد) کښې آیا « من لا وارث له » نه دا مراد دې چه د سره دهغه څوک وارث پیدا شوې نه وي یا دامطلب دې چه دماما نه سوا بل څوک یې وارث ژوندې نه وي ؟ همدارنګه آیا د خال نه مراد داسې خال هم مراد اخستلې کیدلې شي چه د مورث نه وړاندې مړ شوې وې .

(۴) عن بریدة رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم جعل للجدة السدس اذا لم تکن دونها ام (ابوداود) آیا « اذا لم تکن دونها ام » نه دا مراد اخستلې کیدلې شي چه د سره ئې مور نشته ؟ یایې صفا دا مطلب دې چه مورخوئې وه لیکن د مورث نه وړاندې مړه شوه .

(۵) که چرته نزدې رشته دار لره دمرګ نه پس هم مستحق وراثت اوګڼلې شي نو پکار دی چه په دنیا کښې یو سړې هم د چا وارث نه وي ، ځکه چه د مرګ نه پس د مورث نفس هغه طرف ته د ټولو نه زیات نزدې دې . لهذا مورث به پخپله دخپل مال وراث شي .

پس په دې معامله کښې پوره امت متفق دې چه د وراثت د حق د بحث تعلق صرف د هغه ورثاؤ سره چه د مورث د مرګ په وخت کښې ژوندی وي ، د مورث نه وړاندې د مړه کیدلو والا هیڅ قسمه استحقاق د شریعتِ اسلامی نظام قانون کښې نه موندلې کیږي ، هم داسې د غیرِ عقلی استحقاق مثال صرف هندوانه رواجی قانون کښې دې ، اوس که چرته چاته دا هندوانه قانون خوښ وی نو شریعت لره پریخودلو سره هغه اختیارولې شي لیکن دهغه هندوانه رواجی قانون اجزاؤ لره راوړلو سره د شریعت په قانون کښې پیوند نه شي ورکولې .

پاسنی اصولو . دلائلِ عقلیو ، نصوصِ قرانیه ، احادیثِ صحیحه او اجماعِ امت نه ثابتیدلو د وجه نه قطعي او یقیني دی چه په هغې کښې ذره قدرې هم د اجتهاد ګنجائش نشته دې . لهذا هر داسې اجتهاد چه په مذکوره اصولو کښې د کوم یو اصل سره معارض کیږي باطل او ناجائز دې .

پس اوس موږ دهغه صورتونو تجزیه کوو چه یتیم نمسی ته حصه ورکولو دپاره پیش کولې کیږي

**اول صورت** - نوسې زیات صاحبِ ضرورت او حاجت مند او قابلِ رحم دې او بعضې وقتونو کښې د نیکه په نسبت زیات خدمت ګزار یا لائق وي . دا صورت د اصلِ اول سره معارض دې یعنې د وراثت استحقاق ضرورت . حاجت او قابلِ رحم کیدلو یا خدمت او لیاقت باندې مبنی نه دې بلکه

دهغې معيار په قرابت او رشته دارئ باندې دې . منکرينِ حديث شاذاونادر په کوم يو خاص صورت کښې د جذبهٔ رحم د وجه نه د قرآن قطعي اصل لره معارض کول غواړي . تفصيلي جزئياتو کښې ډير د رحم مواقع موندلې کيږي ، مثلاً زوجه مفقود . عدة ممتدة الطهر ، منکوحهٔ صغير، مطلقه ثلاث وغيره صورتونو کښې بعضې کرت ښځه غريبه او مسکينه کيږي اودهغې څوک رشته دار يا کفيل هم موجود نه وي . خودِ ميراث کښې ددې ډير مثالونه موجود دی چه دهغې د وجه نه که چرته معاذالله د حديثو او اجماع انکار هم اوکړئ شي نو قرآني قانون کښې هم د داسې صورتونو نه نجات نشته دې مثلاً د نر اولاد ،خواه هم نوسې وی ، د وجه نه خورعينيه محرومېږي . خصوصاً چه کله دا خور کونده وی ، بال بچ لري . ددې خاوند څه ترکه نه وی پريخودلې هم داسې هغه نمسی چه دهغوی مور دخپل پلار په ژوند کښې وفات شوی وی . په داسې صورتونوکښې هم به ستاد رحم جذبه رااوچتيږي او تاسو به وائې چه د الله قانون داسې بې رحمه نه شي کيدلې . حضور صلی الله عليه وسلم د کونډو او رنډو د پناه ځائ وو . غرض دا چه نه صرف په ميراث کښې نکاح . طلاق ، رضاعت ،کفالت وغيره کښې هم تاسو ته به ډيرجزئيات مواقع رحم په نظر راشي ، پس که چرته ستاسو د رحم جذبې ته کولاؤ اجازت ورکړئ شي نو دا جذبه به قطعي اصولو لره ماتولوسره ټول نظامِ اسلامي لره به درهم برهم او د قانون اساس لره به ټکرټکرې کړي ، منکرينِ حديث دا سوچ نه کوی چه اولاً د يتيم نمسی د وراثت مسئله فی صدی په څومره صورتونو کښې پيش راځي ، او بيا په څومره صورتونو کښې نمسی پخپله بالغ او کاروبار کښې د مستقل آمدنئ مالک کيږي يا دخپل پلار نه ورته ډيره ترکه پاتې کيدلو سره لري . علاوه ددې نه نيکه پخپل ژوند کښې څومره چه غواړي يتيم نمسی ته ورکولې شي . بلکه قرآن اوحديث ځائ په ځائ ددې ترغيب ورکړې دې او ورسره د خانداني قرابت جذبات هم دهغه مؤيد کيږي . که چرته په ژوند کښې ورنه کړئ شو نو ثلثِ مال پورې وصيت کولې شي بيا تعجب په دې باندې دې چه دهغه خلقو نظرِ رحم صرف هم په يتيم نمسی باندې مرکوز دې هغه طرف قطعاً توجه نه ځي چه د انتقالِ اراضي په وخت ورور د خپلو خوريانو نه او خوئ دخپلې مور نه د دستبرداری بيان ورکړی او رشوت خور افسرموقع د غنيمت ګڼلوسره ټول هرڅه ورکړی . که چرته په تاسو کښې هم داسې جذبه د رحم پيوست ده نو د داسې بيچارګانو ماڼدو او خويندو متعلق ولې قانون نه پاس کوئ ؟ حالانکه د مستوراتو د حقوقو د حفاظت متعلق ارشاد دې «**وللنساء نصيب مما ترک الوالدان والاقربون**» قرآن کريم کښې هرځائ د سړو په احکامو کښې ضمناً ښځو لره هم داخلې کړئ شوې دی ، مګر دلته د اهتمام دپاره د زنانو حکم مستقل اوفرمائيلو او بيا مزيد تاکيد دپاره ئې د «**نصيب منه**» په ځائ «**نصيب مما ترک الوالدان والاقربون**» لره مکرر راوړلې شو . بيا د «**نصيبا مفروضا**» نه واضحه شوه چه مستحق ته دهغه حصه بعينه بکمالها ورکول فرض ده . همدارنګه نه هغې کښې

په دې باندې هم دلیل دې چه وارث که چرته خپله حصه نه اخلي یایې پرېږدي نو بیا هم دهغه حق نه ساقطیږي . د مذکوره آیت علی الاعلان خلاف ورزی کولې کیږي مګر ددې متعلق د جناب د غیرت رګ توپونه نه وهي . حالانکه د هغوی په غیږو کښې بعضې وخت یتیم وی ﴿إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾ پخپله د یتیم نمسی هم همدردي داده چه د قرآن قطعي قانون لره د معارض کولو په ځائې د مستوراتو د حقوقو حفاظت اوکړئ شي د یتیم نمسی مور ته چه د ډیرو طرفونو نه حصه ملاؤ شي نو هغه خوشحالیږی نو د هیچا به غریب پاتې نه شي . علاوه ددې نه که چرته یتیم نوسې محتاج وی نو ترڅو پورې چه هغه نابالغه وی یا شل وی نو دهغه مصارف شرعاً دهغه په تره باندې واجب دی . که چرته خدانخواسته یو صورت هم اونه کړئ شي نو بیت المال به د تولو مساکینو اود محتاجو د مصارفو کفیل وی . اسلامی قانون لره مکمل طور باندې د نه جاری کولو د وجه نه که چرته د ملک یتیمانان آفت کښې مبتلاوی نو ښکاره ده چه د هغې ذمه داری د قانونِ اسلامی په ځائې هغه قانون ساز مجلس باندې ده دچا په لاس کښې چه دهغې نفاذ دې . پس تاسو ته که چرته واقعي یتیم نمسی باندې شفقت دې نو اسلامی قانون پاس کړئ .

په ذکر شوو صورتونو سره معلومه شوه چه د منکرینِ حدیث دا سوال چه د یتیم نمسی د معاش صورت به څه وی ؟ بالکل باطل دې . قانونِ وراثت یا وصیت د تولو انسانانو د پرورش ذمه دار نه عقلاً کیدلې شي نه شرعاً که چرته د خلقو د معاش مدار هم په وراثت باندې شي نو په کروړونو انسانان داسې دی چه دهغوی مورث هیڅ ترکه نه پرېږدي نوچه کوم انتظام دهغوی د معاش وی هغه به د یتیمانانو د معاش هم وي .

**دویم صورت** :- که د شریعت په قانونِ میراث کښې د تقدم او تاخر ضابطه بالکل ختمه کړئ شي نو یتیم نوسې به د ځامنوسره شاملیدلوسره میراث اومومی . دا صورت اصلِ دوم یعنې د «الاقرب فالاقرب» قانون سره ټکر خوری زمونږه ددې اجتهادی اقدام اثر به نظام قانون لره پخپله منګل کښې واخلی . یعنې اوس به دیو سړی په مرګ سره دهغه ټول رشته داران وارثان وی . خواه که درجه قرابت کښې څومره تفاوت وی ددې صورت په اختیارولو کښې اجماع خو څه کوې په خپله نصوصو باندې به اوبه توئ شي .

**دریم صورت** :- «**یوصیکم الله فی اولادکم**» که د «اولاد» د لفظ لاندې ځامنو . نوسو . کروسوتولو لره جمع کړئ شي او تولو ته هم په یو درجه کښې راورلوسره هغوی باندې علی السویه تقسیم کړئ شي . دا اجتهادی تجویز هم د اصلِ دوم یعنې د « الاقرب فالاقرب » قاعده کلیه باندې لاس صفا کوی . لفظِ اولاد عربی لغت او محاوره کښې حقیقةً بلاواسطه د اولاد دپاره

ونیلی کیږی . اګرچه کله توسعاً د اولاد په اولاد باندې هم اطلاق کیږی . لکه څنګه چه «فان لم یکن لهن ولد» کښې لفظ ولد عام دې «روح المعانی» «یوصیکم الله فی اولادکم» کښې لفظِ اولاد لره عام اخستل نه اصولی طور باندې معقول دی نه چه قریب او بعید ته یوشان حصه ملاؤ شی او نه په عهدرسالت کښې اونه د خلفائې راشدینو اونه په مابعد کښې چرته داسې عمل اوشو او نه په پوره امتِ محمدیه کښې څوک ددې قائل دې ، تاسو چه هرکله دا اصول تسلیموئ چه د پلار په موجودګئ کښې نوسې دخپل نیکه وارث نه دې څکه چه اقرب الی المیت ددې نوسې پلار دې لهذا هم هغه اصل وارث دې نو په دې سره معلومه شوه چه نوسې ته د پلار په وسیع مفهوم کښې داخلول مجاز دې اود حقیقت په موجودګئ کښې مجاز طرف ته رجوع نه کیږی که چرته د پلار په مفهوم کښې نوسې حقیقةً داخل وی نو د پلار په موجودګئ کښې هم نمسی ته ضرور حصه ورکول پکار دی .

**څلورم صورت** . د ذوی الفروض په شان خوئ او نمسی کښې هم د قرب او بعد لحاظ ساتلو سره خوئ ته دې زیاته حصه ورکړئ شی او نمسی ته کمه . دا صورت هم د اصلِ دوم سره ټکره خوری اصلِ دوم کښې مونږ بیان کړی دی چه عصباتو کښې حجب نقصان ممکن نه دې بلکه دهغوی حصه نه معین کیدلو د وجه نه په هغوی کښې د « الاقرب فالاقرب ، قانون جاری کولو صرف دا صورت دې چه د قریب په موجودګئ کښې بعید بالکل محروم پاتې شی که چرته تاسو بلحاظ قرب اوبعد خوئ او نمسی لره کم اوزیات حصه ورکول غواړئ نودهغې کمئ بیشئ معیاربه څه وی ؟ آیا نشة اجتهاد کښې د عصباتو متعلق « **للذکرمثل حظ الانثیین**» کښې بیان شوی غیرِ معینو حصولره معین کولو اود قرآن د قانون مخالفت کولو ګنجائش دې ؟ بیا مونږ یتیم نمسی لره د ظلم نه د بچ کولو مدعیانو نه پوښتنه کوو چه بعید لره که چرته د قریب په حصه کښې شریک کړې شی نو ایا په هغې کښې قریب باندې ظلم نه دې چه یتیم نمسی ته خو حصه ورکړئ شوه مګر د ژوندی خوئ اولاد لره محروم کړئ شو چه په درجه کښې د یتیم نمسی مساوی دې اودهغه پلار ته چه څه ملاؤ شوی دی هغه په حقیقت کښې هغوی ته نه دې ملاؤ شوې او دا هم څه لرې نه ده چه آئنده هم هغه هغوی ته ملاؤ نه شی او که چرته ملاؤ هم شوه نودخپل پلار د ترکې په حیثیت سره به ملاویږی چه دهغې نه یتیم نوسې هم محرومه نه دې . مطلب دا چه یتیم نمسی باندې رحم کولوسره قانونِ شرعی کښې ترمیم کول په ډیرو خلقو باندې به د بې رحمئ سبب جوړیږی او د ټولو نه لوئ ظلم به پخپل نفس وی چه احکم الحاکمین اودهغه د رسولِ امین صلی الله علیه وسلم په اصل قانون کښې خلاف ورزی کوی

**پنځم صورت** . نظریه د قائم مقامئ . یعنې کوم تعلق چه بالواسطه کیدلو د وجه مرتبه ثانی باندې کیږی هغه د واسطې د مینځ نه برطرفه کیدلو باندې مرتبهٔ اول باندې راځی . ونیلی کیږی

چه فقهاء متقدمينو پخپله د قائم مقامئ نظريه اختيار كړې ده لكه د حضرت ابوبكر او د ابن عباس قول « الجد اب » لاندې د پلار حصه نيكه طرف ته منتقل كيږي چه هركله د پلار خالي ځاى لره نيكه ډكولې شي نو د خوئ خالي ځاى لره نوسې ولې نه شي ډكولې . دا صورت هم د اصلِ دوم سره تكره خوري او نمسى لره په نيكه باندې قياس كول باطل دى . د تره په موجودګئ كښې نمسى لره د خوئ قائم مقام كولو سره د تره برابر كولو سره د « الاقرب فالاقرب » قانون ماتيږي او نيكه لره د پلار قائم مقام كول ددې قانون مطابق دي حقيقت دادې چه د يو سړي خامن ډير كيدلې شي . مګر پلاران متعدد كيدلې نه شي بيا به دا سوال كيدلو چه آيا په ډيرو پلارانو كښې ديوپلار په مرګ باندې دهغه پلار دهغه قائم مقام كيدلو سره دنورو پلارانو سره شريک كيدلې شي يا نه ؟ د «الاقرب فالاقرب » دقانون حاصل دادې چه درجهٔ اول كښې چه ترڅو پورې يو فرد هم موجود وى د درجه دوم يو سړې به هم نه وارث كيږي . درجه اول كښې كه چرته څوک موجود نه وى نود درجه دوم افراد به د درجه اول قائم مقام كيږي . هم دا قانون اصول او فروعو كښې دواړه طرفه جاري كيږي . لهذا ترڅو پورې چه يو خوئ موجود وى نوسې وارث نه شي كيدلې . چنانچه اصولو كښې هم چه كله نيا مړه شوې وى اودهغې مور ژوندئ وى او نانى هم موجوده وى نو د نيا مور ته دنيا قائم مقام كولو سره د نانا سره په سدس كښې شريكولې نه شي او پلار چونكه هم يو كيدلې شي ددې وجه نه دهغه په عدمِ موجودګئ كښې درجه اول خالي كيدلو د وجه نه درجه دوم كښې نيكه لره دهغه قائم مقام كولو سره ميراث وركولې كيږي . غرض داچه د پلار په مرګ باندې نيكه لره دهغه قائم مقام څكه كولې كيږي چه درجه اول خالي ده او د تره په موجودګئ كښې نمسى لره د خوئ قائم مقام څكه نه شي كولې چه درجه اول خالي نه ده بلكه په هغې كښې تره (د مړي خوئ) موجود دې . كه چرته تره نه وى نو نوسې به هم د خوئ قائم وى . منكرينِ حديث دا عجيبه ضابطه ايجاد كړې ده چه هغه ابعد وارث چه مړي طرف ته بالواسطه منسوب وى .د واسطې په فوت كيدلو باندې د اصل

واسطې قائم كيدلو سره د مړي اقرب جوړيږي ، شعر: *برين عقل ودانش بايد گريست*

د ټولو اهلِ عقل په نزد دكوم رشته دار قرابت چه مړي سره بلاواسطه وى هغه ته اقرب وئيلې كيږي اودچا تعلق چه يو واسطې سره وى هغه ابعد وى. برابره خبره ده كه دا واسطه ژوندئ وى يا مړه . څكه چه د واسطې ژوند اود مرګ د رشتې د نوعيت اودهغې د قرب او بعد سره متعلق څه تعلق نشته دې . كوم سړې چه قرابت بالواسطه ساتلو د وجه نه ابعد دې هغه څنګه د واسطې په ژوند كښې ابعد دې هم دغه شان د واسطې مړ كيدلو نه پس هم هم ابعد پاتې كيږي دهغه د رشتې اود قرابت نوعيت نه بدليږي هغه اوس هم ابعد دې . البته د اقرب نه موجود كيدلو باندې د ابعد كيدلو باوجود هغه لره وارث تسليمولې كيږي او بيا تعجب دادې چه دا خلق د تره په موجودګئ

کښې نمسی لره د یتیم کیدلو په باعث میراث ورکوي . پس هرکله چه نمسی ته یتیم وئیلې کیږی نو دا دعوی باطله شوه چه د ځوئ په مرگ باندې هغه د یتیم ځوئ قائم مقام شو او هغه ته د ابن کیدلو درجه ملاؤ شوه . چه کله نمسی لره ځوئ گڼلې کیږی نو هغه ته یتیم ولې وئیلې کیږی ؟ غرض دا چه د اهلِ عقلو اجماع ده چه واسطه فوت کیدلو سره ابعد اقرب نه کیږی .

حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه لور ته نیم ، نمسی ته سدس او باقی دې خور ته ورکړې شی (بخاری ص ۹۹۸)

په دې سره معلومه شوه چه لور او نمسئ برابر نه دی . ددې حدیث نه د نمسی په وراثت باندې داسې استدلال کولې کیږی چه کله د لور په موجودگئ کښې نمسئ وارثه ده نو د لور په موجودگئ کښې نوسې ولې نه وارث کیږی ؟ دا قیاس په څو وجوهو سره باطل دې .

(۱) رسول الله صلی الله علیه وسلم لورته ۱/۲ او نمسی ته ۱/۶ حصه ورکړه او تاسو ځوئ او نمسی لره برابر ساتئ

(۲) که چرته ځوئ لره په لور باندې قیاس کړئ شی نوځنگه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د لور په موجودگئ کښې خورلره هم وارثه جوړه کړه هم دغه شان تاسو ته پکار دی چه د ځوئ په موجودگئ کښې هم خورلره مه محرومویٔ

(۳) د مؤنث اولاد ټوله حصه ۲/۳ ده . یو لور چونکه د ۱/۲ مستحقه ده لهذا باقی ۱/۶ نمسی ته ملاویږی دې دپاره چه ۲/۳ حصه پوره شی . چه کله زیاتې لورگانې وی نو چونکه ټوله ۲/۳ په هغوی کښې تقسیمیږی نو ددې وجه نه نمسی محرومه پاتې کیږی . ځوئ چونکه د ټول مال مستحق دې ددې وجه نه دهغه څخه څه نه پاتې کیږی چه باقی نوسو ته ورکړئ شی .

(۴) یو ځوئ د دوو لورگانو په ځائ دې . پس چه کله د دوو لوریانو په موجودگئ کښې نمسئ وارثه نه جوړیږی حالانکه لورگانې د ټول مال مستحقې نه دی نو ځوئ چه د ټول مال مستحق دې په طریقِ اولیٰ سره به نمسی لره به محرومویٔ

(۵) لور او نمسی په ذوی الفروضو کښې دی ددې وجه نه حجب نقصان جاری کیدلې شی او ځوئ او نوسې عصباتو کښې دی . په هغوی کښې د « الاقرب فالاقرب » قانون صرف د حجب حرمان په صورت کښې جاری کیږی . حجب نقصان ممکن نه دې .

**شپږم صورت** :- د منکرینِ حدیث د نظرئې دقائم مقام کیدلو هغه بل تصوراختیارکړې شی چه د هندوانو د رواجی قانون نه ماخوذ دې او په اخباری بحثونوکښې زیات وقت پیش کولې کیږی همدارنگه کوم باندې چه د محمداقبال چیمه ترمیمی مسوده قانون مبنی دې چه هغه د پنجاب پارلمان کښې پیش کړې دې . یعنې دا تصور چه یتیم نوسې اگرچه په خپله وارث نه دې لیکن هغه د خپل پلار حصه د نیکه نه د اخستلو حق دار دې . دا صورت د دریم اوځلورم اصل سره ټکر

خوری .یعنې هغه تصور لره قبلولو دپاره به مونږ ته د شریعت دا بنیادی اصول ختمول ضروری وی چه د یو سړی په ژوند کښې دهغه په مال باندې دچا د میراث حق نه کیږی او دا اصول به هم ختمول وی چه د ترکې د تقسیم په وخت کښې د ژوندیو وارثانو سره یو مړ وارث لره مستحق نه شی جوړیدې. که چرته ددې دوو اصولو نه آزاد پاتې کیدلو سره قانون جوړکړئ شی نو صرف د نمسی دپاره دهغه مړ پلار لره به ژوندې کول نه وی بلکه د هرې ترکې د تقسیمولو په وخت کښې به جمله ممکن وارثانو لره ژوندی فرض کولې کیږی او په دې طریقې سره چه کوم رشته هم فوت شوې وی هریو ته به حصه ورکول وی .د قرآن او حدیث . اجماع اود عقل سلیم خلاف که چرته دې اجتهاد لره زیرِ عمل راوړلې شی نو د ترکې تقسیم ممکن نه دې . جمله وارثانو باندې تقسیمول لا پریږده صرف د دوو رشته دارانو مال په خپل مینځ کښې ترقیامته پورې به تقسیم نه کړئ شی . فرض کړئ چه د زید ځوئ بکرچه صاحبِ اولاد دې د زید نه وړاندې مړ شو . ددې وجه نه د بکر دمال نه ۱/۲ زید ته ورکړئ شوه بیازید فوت شو نو هم دامال به دهغه مړځوئ بکر ته ملاویږی . بیا د بکر ترکه تقسیمولو په وخت دهغې نه ۱/۲ د بکر مړپلار زید ته ورکولې کیږی او زید نه بیا مړ ځوئ بکر ته . هم دغه شان د پاس نه لاندې ته اود لاندې نه پاس ته دا تسلسل بالکل ختمیږی نه او مال تقسیمولوسره سره به اجزائې لاتتجزی پورې ورسیږی .آخر دا دور د اجزاء لا تتجزی د کرشمو دور دې بیا خو به په ټوله دنیاکښې ددې اجتهاد مشهور شی . د اسلامی قانون به لوئ قدر اوقیمت شی اود ملایانود حماقتونو اصلاح کولو والا استاذانو دماغ به په سروزرو کښې تللې کیږی .

پورتنی تفصیل سره ښکاره شوه چه د یتیم نمسی د وراثت متعلق چه کوم صورت هم اختیارولې کیږی ټول په ټوله د نظامِ اسلامی د کلیاتو خلاف دی . او قرآن . حدیث . اجماع او عقل سره ثابت شوی د قطعی اصولو اساس لره ټکرې ټکرې کوی . لهذا په هغه صورتونوکښې یوصورت لره اختیارول نظام اسلامی لره صدمه رسول دی . دحضورصلی الله علیه وسلم نه واخله ترننه پورې څوارلس کلن اسلامی تاریخ کښې یو جزئیه هم منکرینِ حدیث دخپلې نظرئې په تائید کښې پیش نه کړئ شو حالانکه په دې اوږده مده کښې به په سلګونو بلکه په زرګونو صورتونه داسې قسم علمائے مجتهدینو ته مخې ته راغلی وی، دهغې په عکس د ځوئ په موجودګئ کښې د نمسی وارث نه کیدلو باندې بالاختصار لاندې دلائل لیکلې کیږی :

(۱) د عقل او د قرآن کریم په متعددو آیتونوسره ثابت شوې قانون « الاقرب فالاقرب » چه دهغې تفصیل پورته تیر شوې دې

(۲) الحقوا الفرائض باهلها فما بقی فهو لاولی رجل ذکر (بخاری ومسلم)

(۳) عن علی مرفوعاً الرجل یرث اخاه لامه وابیه دون اخیه لابیه . (رواه الترمذی وابن ماجة والدارمی

(مشکوٰة) چه کله د سکه (اعیانی) وروڼو په موجودګئ کښې علاتی وارث نه دې نو وراره به په طریقِ اولی وارث نه وی حالانکه منکرینِ حدیث په دې باندې هم اصرار کوی

(۴) قال زید ولد الابناء بمنزلة الولد ان لم یکن دونهم ولد ذکرهم کذکرهم وانثاهم کانثاهم یرثون کما یرثون ویحجبون کما یحجبون ولا یرث ولد الابن مع الابن (بخاری) دا د حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه فتوی ده چه اعلم بالفرائض دی (طبقات ابن سعد ومسند احمد)

او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې کاتبِ وحی او عهدِ صدیق کښې جامع القرآن او عهدِ عثمان کښې ناسخ مصحف دې (بخاری)

د څوارلسمې صدئ مجددینو دلته یو عجیبه نکته پیدا کړې ده . یعنې «لا یرث ولد الابن مع الابن» کښې ولدالابن نه صرف هغه نوسې مراد دې چه دهغه پلار ژوندې وی او هغه باندې د اصولِ فقهې دلیل پیش کولې کیږی چه الابن چه د معرفې په صورت کښې مکرر راوړلې شوې دې د احنافو د اصولو مطابق دهغې نه عینِ اول مراد دې ، مګر هغوی په دې نه پوهیږی چه فقهاء هغه قاعده کلیه نه ګرځوی. بیا تعجب دادې چه په کوم اصولِ فقه باندې د استهزاء او مسخرو کولو دپاره دا نوې اسلام راښکاره کیږی ددې نه استدلال هم کوی ، حال دا چه دهغه په شروع کښې «اذالم یکن دونهم ولد» کښې ولد نکره راغلې ده . او بیا د بخاری ترجمة الباب هم عام دې او ماقبل کښې مرفوع حدیث هم عام دې . دا خلق ګویا مطمئن وو چه څوک زحمت کولو سره بخاری اوچت کړی اودهغې غلا او بددیانتی ښکاره کړی ، هغوی ته دا هم معلومه نه ده چه که چرته هم دا مراد وې کوم چه خلق بیانوی نو دهغې دپاره به عبارت داسې وې «لایرث الابن مع ابیه» .

(۵) عینی شرح بخاری او موطا کښې د ابن په موجودګئ کښې د ابن الابن محروم کیدلو باندې اجماع منقول ده د موطا عبارت دادې : ((الامر المجتمع علیه عندنا (الی قوله) فان اجتمع الولد للصلب وولد الابن فکان الولد للصلب ذکر فانه لا میراث معه لاحد من ولد الابن فان لم یکن فی الولد للصلب ذکر وکانتا اثنتین فاکثر من ذلك من البنات للصلب فانه لا میراث لبنات الابن معهن الا ان یکون مع بنات الابن ذکر. الخ)) (موطا مالك)

(۶) «للذکر مثل حظ الانثیین» او «ان کانت واحدة فلها النصف» نه صفا ښکاری چه دمړی کله فقط یوه لور وی نو هغه به صرف د نصف حقداره وی او که چرته هغې سره نوسې هم وی نو باقی نصف به هغه وړی . پس چه کله الله تعالی دیو هلک دپاره د دوو جینکو برابر حصه مقرر کړې ده او یواځې جلئ دپاره ئې نیمه مقرر کړه نو د یواځې هلک دپاره د نیم دوه چنده کیدل ښکاری چه کل دې ، چه کله تنها خوئ د ټول مال مستحق شو نو نمسی او نمسئ به محرومه پاتې کیږی .

(۷) رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه لورته نصف ، نمسی ته سدس او خور ته به باقی ملاویږی (بخاری) په دې سره معلومه شوه چه د لور او نمسی په شان خوئ او نمسی کښې هم مساوات نشته ، په دې حدیث سره د منکرینِ حدیث د استدلال جواب تیرشوې دې.
کله دا سوال پیدا کیږی چه آخر د یتیم نمسی دپاره به صورتِ معاش څه وی ؟ ددې جواب اود معاش د صورتونو تفصیل د اول صورت لاندې تیرشوې دې . که چرته اووئیلې شی چه نن سبا دبیت المال د نه موجود کیدلو د وجه نه دهغوی گذاره مشکل ده نو ښکاره ده چه دهغې حل دا نه شی کیدلې چه اسلامی قوانینو لره هم ختم کړئ شی . بلکه د هغې واحد علاج دادې چه د داسې ترمیمونوپیش کولو په ځائ هغه قوانینِ شرعیه لره نافذکړی چه دهغې په ذریعې سره د یتیمانانو او غریبو کفالت اوشی او دپنجاب قانون ساز پارلمان ته زمونږه مشوره ده چه هغوی په دې قانونِ شریعت کښې چه په اجماعِ امت سره ثابته ده د ترمیمِ خطرناک اقدام هیچری اونه کړی . په دې مسئله کښې دمسلمانانو ټول جماعتونه حنفی ، شافعی ، مالکی ، حنبلی او اهل حدیث وغیره ټول متفق دی په دې کښې اختلاف کولو والا صرف داسې یو څو کسان دی چه قرآن لره د رسول الله صلی الله علیه وسلم تعلیماتو نه جدا کولوسره دخپلو خواهشاتو تابع جوړول غواړی . دهغه خلقو دمسلمانانو په مقابله کښې نه څه شمیرشته اونه څه علمی یا عملی حیثیت لری . د حکومت د طرف نه د داسې قسم خطرناک اقدام دهغوی د اسلامی حیثیت منافی دې .

## د میراث په اصولو باندې د منکرینِ حدیث د اعتراضونو جوابونه

**اول اعتراض** :- قرآن د وصیت پوره پوره حق ورکړې دې او چرته ئې دا نه دی لیکلی چه وصت صرف ۱/۳ حصه مال کښې کیدلې شی ، الله تعالی د وصیت په حکم کښې چرته دا اونه وئیل چه وصیت صرف ۱/۳ حصه کښې کیدلې شی لیکن ملا وائی چه نه تاسو وصیت صرف ۱/۳ حصې پورې کولې شئ ، یعنې (معاذالله) الله تعالی ته دومره خبره هم نه ورتلله چه وصیت ئې ۱/۳ حصه کښې کړې وې هغه ددې دپاره هم د روایاتو محتاج شو ،دادې د ملاً روایاتی مذهب (طلوع اسلام جون ۵۲ء ص ۲)

**جواب** :- د وصیت حکم په ټول مال کښې نه جاری کیدلو ته روایاتی مذهب گرځول یا د ملا لاپې وئیل محض حماقت دې ﴿ لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴾ کښې صفا ارشاد دې او نهایتِ تاکید کړئ شوې دې چه د مړی په ترکه کښې بهرحال د وارثانو حق ثابت دې چه دهغې نه ښکاره دې چه د کل مال وصیت به هیڅ کله نه نافذ کیږی. او بیا ﴿ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ

وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ﴾ کښې هم د ټول مال د وصيت نه صراحةً منع کړې شوې ده . ﴿ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ بِالْمَعْرُوفِ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴾ کښې لفظ بالمعروف نه معلومه شوه چه د ټول مال وصيت جائز نه دې . تعجب دې د قرآن د پيژنددونکو مدعيانو سترګې دغه آيتونو نه بريښيږي چه دغوی د اوهامو خلاف وی ، احاديثو کښې د ۱/۳ حصې تصريح موجود ده . اوګورئ :

عن سعد بن ابي وقاص رضي الله تعالى عنه قال مرضت بمكة مرضا اشفيت معه على الموت فاتاني النبي صلى الله عليه وسلم يعودني فقلت يارسول الله ان لي مالا كثيرا وليس يرثني الا ابنتي افاتصدق بثلثي مالي فقال لا ، قال فالشطر قال لا قلت فالثلث قال الثلث كثير انك ان تركت ولدك اغنياء خير من ان تتركهم عالة يتكففون الناس وانك لن تنفق نفقة الا اجرت عليها حتى اللقمة ترفعها الى في امراتك الخ (بخاری)

د وصيت ۱/۳ حصه کښې منحصر کيدل احاديثِ متواتره سره ثابت ده (احکام القرآن للجصاص ص ۱۱۸ ج۲) ، او په دې باندې د امت اجماع ده (نووی شرح مسلم ج۲ ص ۳۹) ، د حديثِ مذکوره نه لاندې مسائل مستنبط کيږي :

(۱) د ثلث ۱/۳ نه زيات وصيت جائز نه دې .

(۲) مستحب دادې چه د ۱/۳ نه هم کم وصيت اوکړئ شی ځکه چه حضورصلی الله عليه وسلم ثلث ته کثير وئيلې دې .

(۳) چه کله مال کم وی او ورثاء هم محتاج وی نو افضل دادې چه بالکل وصيت اونه کړی . ((لقوله صلى الله عليه وسلم انك ان تدع ورثتك اغنياء خير من ان تدعهم عالة يتكففون الناس)) .

(۴) چه کله څوک وارث نه وی نو د ټول مال وصيت صحيح دې . ځکه چه زيات وصيت صرف د ورثاؤ د حق د وجه نه ناجائز دې .

(۵) صدقه فی مرض الموت هم دوصيت په حکم کښې ده ځکه چه دحضرت سعد سوال د صدقې په باره کښې وو . بعضې رواياتوکښې د وصيت لفظ دې . تطبيق دادې چه ړومبئ ئې وصيت بجميع المال اوکړو . چه کله حضورصلی الله عليه وسلم منع اوکړه نو د ټول مال د تصدق اراده ئې ښکاره کړه په دې باندې حضورصلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه صدقه هم په حکم د وصيت کښې ده

د معلم الکتاب والحکمة صلی الله عليه وسلم ارشاداتِ ګرامی ثابت بالتواتر نه انحراف کول او اجماعِ امت لره معارض کول او قرآن کريم کښې دخپلو خواهشاتو مطابق تحريف کول د منکرينِ حديث د مبارک اسلام طلوع ده . هم ددې وجه نه مونږ دراندې هم ليکلی دی چه دغوی اختلاف د

مسلمانانو سره اصولي اختلاف دي . ترڅوپورې چه دا خلق د اسلام اصولو له قبول نه کړي هغه وخته پورې دهغوی سره يو جزئي مسئله باندې بحث کول عبث دی

**دويم اعتراض** :- د ټولو نه لوئ افسوس ناک صورت داچه دهغه قانون په رو سره دا تسليمول پيښيږي چه (معاذالله) الله تعالى د څلورم جماعت ماشومانو هومره حساب نه پيژنی هغه اصولو له ماشوم هم پيژنی چه کله يو څيز له مختلفو حصو کښې تقسيم کړې شی نود ټولو حصو حاصل جمع يو (۱) راتلل پکار دی . که چرته حاصل جمع يو نه راځی نود رياضی د ابتدائی قاعدې مطابق دا تقسيم غلط دې مثلاً (۱۱۲ + ۱۱۴ + ۱۱۴ - ۱) دا تقسيم صحيح دې ليکن (۱۱۲+ ۱۱۲+ ۱۱۳- ۴۱۳) دا تقسيم غلط دې ځکه چه ددې حصو مجموعه يو نه بلکه (۱.۱۱۲) ده (طلوع اسلام جون ۵۲ء ص ۲۳)

**جواب** :- منکرينِ حديث له الله تعالى د قرآن او حديثو د علم او په هغې باندې د عمل نه خو محروم ساتلی دی مګر اوس ښکاره شوه چه د انکارِ حديث اود رسول الله صلى الله عليه وسلم د دښمنی په شان د جرم نتيجه داده چه د حساب ابتدائی قواعدو د پيژندلونه هم قاصر دی . د حساب په تفاصيلوکښې ډيرو ځايونوکښې داسې صورتونه پيش راځی چه د حصو مجموعه د مخرج نه زياتيږی ، چنانچه داسې مواقعو باندې حصو له د اندازې مطابق کمولوسره مخرج کاملولو دپاره اهلِ حساب مختلف قوانين او طريقې ليکلی دی ، که چرته په حساب کښې داسې صورتونه ممکن نه دی يا وقوع کښې نه راځی نودهغه قواعدو او طريقو وضع کولوڅه حاجت وو ؟

حقيقت دادې چه تفصيلی او جزئی صورتونوکښې د مستحقينو د کمی اوزياتی د وجه نه که چرته په حصوکښې څه فرق راشی نودهغې د وجه نه د سهامو په کلياتو باندې هيڅ اعتراض نه شی کيدلې ، لږ غور اوکړئ که چرته مړی باندې ديو سړی زر روپئ قرض وی اود بل پنځوس روپئ . يا مړی ديو سړی دپاره د زرو روپو وصيت کړې وی او د دويم دپاره ئې پنځوس روپئ ، حالانکه دمړی ټوله ترکه صرف زر روپئ ده نو آيا په دې صورتوکښې تاسو د عول نه سوا بله طريقه اختيارولې شئ ؟ همدارنګه د رد په صورتونو کښې هم (نعوذبالله) تاسو به الله تعالى باندې د جهالت حکم اولګوئ ، مثلاً د جلئ حصه په قرآن کښې ۱۱۲ ده اود مور ۱۱۲ مګر چه کله يو دويم وارث نه وی نو تاسو به وائې واه الله تعالى د ترکې د تقسيم ښائسته طريقه ايجاد کړه او داسې غلطی ئې اوکړه چه څلورم جماعت والا ماشومان هم هغه پيژنی ، يعنې د کسرونو جمع پوره يو نه (۱۱۲ + ۱۱۲ - ۲۱۳) دا تقسيم غلط دې او که چرته صرف يو جلئ وی نو زيات تعجب به وی چه الله تعالى کُل ترکې له داسې تقسيموی چه جلئ له ۱۱۲ ورکړئ اوبس . معاذالله الله تعالى په ټول څيزکښې صرف يو کسر (۱۱۲) پيژندلې دې ګويا د الله په نيز (۱۱۲) او (۱) کښې څه فرق نشته دې . د مکتب په ابتدائی کتابونوکښې دحضرت علی رضی الله عنه د قضاء يو واقعه درج ده چه

دریو سرو د تقسیم مطالبه اوکړه چه په اولس اوښانو کښې داسې شریک وو چه د یو ۱۱۲ د دویم ۱۱۳ او د دریم ۱۱۹ حصه وه. حضرت علی رضی الله عنه یو اوښ د بیت المال نه راوستلوؤ اتلس اوښانو کښې ئې ۱۱۲ حصې والا ته ۹ او ۱۱۳ حصې والا ته ۲ او ۱۱۹ حصې والا ته ئې ۲ ورکړه . داسې ټول اوښان تقسیم شو او اتلسم اوښ ئې بیت المال ته واپس کړو . هرشریک ته اوښ هم پوره بلاکسرملاؤ شو او هریو ته حصه هم زیاته ملاؤ شوه . بیا د بیت المال اوښ هم بچ شو . د مکتب ماشومان ددې مسئلې د اصلِ حقیقت او طریقِ تخریج نه ناواقفه وی اود هغې حقیقت هغه ظاهری صورت لره ګنی چه ساده خلقو لره پوهولو او مطمئن کولو دپاره اختیارکړې شوې وو . خیال دې چه پرویز (بدبخته) هم معاذالله خدای لره د جهالت نه بچ کولو دپاره داسې مواقعو باندې هم دا صورت او حیله اختیاروی . حالانکه هغه ته څه معلوم دی چه ظاهری صورت بدلولونه پس هم حقیقت هغه دې کوم چه د رد او عول دې .

دغه د قرآن مدعی که چرته لږ په قرآن کښې غورکړې وې نو دا اعتراض به پیدا شوې نه وو مګر هغه ته څه معلوم دی چه دا د عول طریقه په خپله قرآن کښې هم موجود ده . یعنې چه کله جلۍ خانله وی نو دهغې حصه ۱۱۲ ده او هلک خانله وی نوهغه د ټول مال مستحق دې . مګر که دواړه جمع شی نو جلۍ ته به ۱۱۴ او هلک ته به ۲۱۳ «**للذکرمثل حظ الانثیین**» ملاویږی . آیا د فقهاؤ اختیارشوې طریقه (عول) دذې نه سوا څه بل نوعیت لری ؟

بیا مونږ پوښتنه کوؤ که چرته طریقه د عول زیرِعمل راوړلې نه شی نو لامحاله بعضې وارثانو لره به محرومول پیښیږی آیاپه هغوی باندې به دا ظلم نه وی ؟ او د ټولو نه لوئ ظلم خو به پخپل نفس وی چه کومو وارثانو لره الله تعالی محروم نه دی ګرځولی بلکه نصوصِ قطعیه سره دهغوی سهام متعین دی هغوی تا صرف خپل خیال سره محروم کړل ، دا خلق د عینی اخیافی وراثت په باره کښې د حضرت عمررضی الله عنه قول پیش کوی او عول سره متعلق د حضرت عمررضی الله عنه فیصلې لره معارض کوی شاید چه مسئله عول کښې د منکرینِ حدیث مرکزی نظر د ابن عباس رضی الله عنهما قول وی د ابن عباس دا رایه وه چه په داسې صورتونو کښې د عول نه د بچ کیدلو دپاره هغه ذوی الفروضو لره محروم کول چه یو وخت عصبه بالغیریا مع الغیرجوړیږی . کوم ذوی الفروض په یو حالت کښې هم عصبه نه جوړیږی هغوی ئې مقدم ګنړل . که چرته واقعی دهغه خلقو د خیال بنیاد هم هغې باندې دې نودهغې تقاضاده چه د عول په صورت کښې د اخت اخیافی په موجودګئ کښې اخت اعیانی محرومه پاتې شی مګر دا خلق ددې په عکس بنوالاعیان لره د محرومئ نه د بچ کولو دپاره باربار د حضرت عمررضی الله عنه قول پیش کوی . غرض داچه دهغوی تاله (قفل) نه دې طرف ته لګی اونه هغه طرف ته ، د منکرینِ حدیث په نزد اګرچه اخت اخیافی او اعیانی کښې څه فرق نشته دې . اخت اخیافی هم اخ اخیافی سره عصبه جوړیږی . مګر

داهم دعوی وهم محض او جهالت دي چه دعغې تفصيل عنقريب راروان دي . د عول په باره کښې د ابن عباس مذهب د قرآن خلاف دي . نيز ددې نه وړاندې د حضرت عباس په تحريرسره د حضرت عمر وړاندې طريقه د عول باندې د صحابو اجماع شوې وه . ددې وجه نه امت کښې چا هم د ابن عباس قول قبول نه کړو .

**دريم اعتراض** . قرآن وئيلى دى چه ستاسو نزدې خپل وفات شي نودغه تقسيم به داسې وى يعنې کتل دا دى چه مړې به په خپلو ژوندو رشته دارانو کښې د چا چا اقرب وى .دا مطلب نه دې چه ژوندو رشته دارانو کښې چه مړى ته د ټولو نه نزدې وى هغه ته به حصه ملاويږي

،طلوع اسلام جون ۵۲ء ص ۲۵،

**جواب** :- په دې نا اشنا تحقيق سره به منکرينِ حديث ته څه فائده رسيدلى وى اوکه نه؟ بلکه بالعکس ډير مصيبتونه دعوى دپاره بلاګانې جوړشوې دى ، مثلاً که چرته يو سړى ترور «دپلار خور» او وراره وارث پريخودلى وى نو پکار دى چه ترور د ټول مال مستحق وى او وراره محروم پاتې شى . ځکه چه مړې د ترور وراره دې او د وراره تره . ددې وجه نه مړې د ترور اقرب دې . هم دغه شان د پلار په موجودګۍ کښې د مړى ځوئ محروم کيدل پکار دى . ددې وجه نه چه دمړى دخپل پلارسره د بنوت تعلق دې او د ځوئ سره د ابوت اود بنوت رشته زياته نزدې ده غرض داچه دغه اجتهاد پهخپله د مجتهد دپاره د ذلت باعث ثابت شو . چنانچه چه کله پرويز باندې دا اعتراض اوکړې شو نو جواب ئې ورکړو چه ددې جواب دې د حافظ اسلم جيراج پورى نه طلب کړې شى . تعجب دې چه يو اجتهاد اوکړى او جواب د بل چا نه طلب کړې شى . شعر

الجھا ہے پاؤں یار کا زلفِ دراز میں لو خود ہی اپنے دام میں صیاد آگیا

جواب معلوم دې کاش چه هغه ورڅو کښې معلوم وې

او بيا چه کله دحافظ اسلم جيراج پورى نه دا سوال اوکړې شو نو ارشاد اوشو چه د پلار او ځوئ د وراثت متعلق چه کومه خبره تاسو ليکلې ده او قياس مو لګولې دې ددې څه ضرورت راغلو. وړاندې آيت «**يوصيكم الله**» کښې الله تعالى د مورپلار او د ځوئ لور وراثت مفصل بيان کړې دې هغې لره ولې نه ګورئ او غلط قياس ولې په مينځ کښې راولئ . شعر

لیجئے اب تو چلے کے اجتہاد کو خود گروہی نے خاک میں ملادیا

اس گھر کو آگ لگ گئی گھر کے چراغ سے

حقيقت دادې چه «**ترک الوالدان والاقربون**» کښې اقرب په معنى دقريب سره دې . ددې نه فقهاؤ د « الاقرب فالاقرب » قانون داسې استنباط کړې دې چه قرآن د وراثت مدار قرابت باندې ايښې دې چه په کوم مستحق کښې دا سبب د وراثت قوي وى او کوم وارث چه زيات قريب وى

هغه به مقدم وی ، د عقل هم دا مقتضی ده . دا قرب او بعد د مړی د طرفه نه بلکه د مستحقینو د طرف نه به ملحوظ وی . ځکه چه ددې نه څه بحث نشته چه ورکولو والا یا مال پریخودلو والا نه څوک وی بلکه سوال دادې چه اخستلو والا یا مستحقین څوک څوک دی . په خپله قرآن مجید کښې د «ترک الوالدان» لفظ په دې باندې ښکاره دلیل دې چه قرب او بعد د وارث د طرف نه ملحوظ دې نه د مورث د طرف نه. والدینو لره د جمله اقربینو نه جدا ذکرکولوسره د اقرب ترین وارث «اولاد» د استحقاق اهمیت مقصود دې ، علاوه ددې نه قرآن کریم کښې څومره چه هم مفصل سهام مذکور دی په هغې کښې غورکولو سره ښکاره دی چه د مورث د طرف نه د قرب او بعد لحاظ نه دې کړې شوې بلکه د وارث په قرب اوبعد باندې د حصو بنیاد ایښودلې شوې دې

معلم الکتاب والحکمة صلی الله علیه وسلم هم د ((فما بقی فهو لاولی رجل ذکر)) په ارشاد سره ددې پوره وضاحت اوفرمائیلو ، شاه عبدالقادرصاحب د «اقربون» ترجمه نژدې رشته دار کړې ده ددې وجه دا کیدلې شي چه د «اقربون» عطف د للرجال په محل باندې وی یا د اقربون رفع د والدان د جوار د وجه نه وی « فقه اللغه للثعالبی » قسم ثانی کښې د عطف علی اللفظ مستقل فصل دې

**خلورم اعتراض** :- که چرته دا قاعده « الاقرب فالاقرب » خپل ظاهری معنی سره واخستلې شی یعنې دا چه مطلقاً د درجې په لحاظ سره چه کوم قریب وی هغه بعید لره محروم کړی نو د وراثت ډیرمسلمه او اجماعی مسائل به مات کړې شی . ددې نه پس بې یو څو مثالونو پیش کولوسره په هغې باندې اعتراض کړې دې . «طلوع جون ۵۲ء ص ۳۱»

**جواب** - ددې اعتراض منشا داده چه « الاقرب فالاقرب » قانون لره ئې په حجب حرمان کښې منحصرکړې دې حالانکه مونږ پورته بیان کړی دی چه ذوی الفروضو کښې ددې قانون د اجراء دوه صورتونه دی (۱) اقرب ته د ابعد نه زیاته حصه ملاؤ شی . (۲) د اقرب د وجه نه ابعد بالکل محروم شی .

الله تعالی پخپل حکمت سره د قرب او بعد په لحاظ سره د ذوی الفروضو حصې کم اوزیات معین کړی دی او په هغې کښې د حجب حرمان اصول دادی چه د واسطې په موجودګۍ کښې به ذی الواسطه محرومه وی . په دې شرط چه سبب وارثت متحد وی یا واسطه د کل مال مستحق وی .
په دې قاعده باندې چه په طلوع اسلام کښې اعتراض کړې شوې دې او دوه مثالونه ئې پیش کړی دی . هغه بیّن البطلان دی ځکه چه لورد نمسی دپاره او حقیقی خور د علاتی خور دپاره واسطه نه ده . علاوه ددې نه نمسی او علاتی خورته صرف تکملةً للثلثین حصه ورکړې شوې ده

**پنځم اعتراض** . چه هرکله د حجب حرمان رومبنۍ قاعدې دا غوښتل چه دوا په مادری ورونه حه د مور په واسطې سره رشته لری دهغې په موجودګۍ کښې محروم وی لیکن هغوئ محروم نه شو دویمې قاعدې هم دا غوښتل چه مور چه قریبی رشته داره ده مادری اخیافی لره باید محرومه کړی

لېکن هغه یې محروم نه کړي شول. «طلوع . جون ۵۲، ص ۳۲»

**جواب** :- د څلورم اعتراض په جواب کښې تیرشوی دی چه ذوی الفروضو کښې د ابعد محروم کیدل لازم نه دی ، باقی داچه د اخیافی حصه د مور نه ولې کمه نه ده . ددې جواب په اصلِ دوم کښې مفصل بیان شوې دې او دلته د واسطې د وجه نه ذی واسطه څکه محروم نه ده چه سبب وارثت مختلف دې او واسطه د کل مال مستحق نه ده .

**شپږم اعتراض** :- تعجب دپاسه تعجب دې چه مور کمزورې ده هغه خو نیا لره محرومَوی او پلار چه قوی وارث دې نانا لره نه شی محرومولې (تیره شوې حواله) .

**جواب** :- واقعی چه دکوم څیز حکمت په سوچ او فکر کښې رانه شی په هغې باندې هم تعجب کیږی ، حقیقت دادې چه د نیا او نانا استحقاق هم ددې وجه نه دې چه دا حکماً موریانې دی پس د حقیقی مور په موجودګئ کښې به حکمی مورمحرومه کیږی په دې سره دې د قائم مقام نظرئې شبهه اونه کړئ شی څکه چه نیا اونانی د مور په عدم موجودګئ کښې پخپله درجه کښې دپاتې کیدلو باوجود د بعید کیدلو دخپل ذاتی قرابت د وجه نه وارثه کیږی ، د پلار حصه نانی طرف ته نه منتقل کیږی ددې وجه نه هغه نانی لره نه محرومه وی ، بلکه صرف نیا لره محرومه وی څکه چه د پلار واسطه ده او هغه د کل مال مستحق دې .

**اووم اعتراض** :- په دنیا کښې کوم سړې دې چه وئیلې شی چه حقیقی اخیافی لره محرومولو سره اخیافی اخیافیته حصه ورکول چه زیات تر دخپل خاندان هم نه وی کوم یو معقول اصلِ وراثت باندې مبنی دې ، دا د سوچ خبره ده چه کومې رشتې نه اخیافی وارث جوړکړې شو حقیقی اخیافی کښې که چرته د پلار د رشتې هم خیال اونه کړې شی نو کم ازکم هغه رشته خو ضرور موجود ده ، بیا هغوی لره دمحرومولو سره څه معنی ، چنانچه د امام مزنی کتاب «المختصر» کښې دی چه په دې صورت کښې حضرت عمررضی الله عنه حقیقی اخیافی لره نه محرومه کول ، «طلوع ، جون ۵۲، ص ۳۲، ۳۳»

**جواب** :- وړاندې معلومه شوې ده چه د بعید حرمان ضروری نه دې بلکه دا ضروری ده چه قریب نه د بعید حصه کمه وی ، چنانچه اعیانی او علاتی خور نه د اخیافی حصه کمه ده ، د اعیانی او علاتی اخیافی درجه هم د اخیافی اخیافی نه د قوتِ قرابت په لحاظ سره ډیره زیاته ده ، د همدې وجه نه هغوئ د بچو په شان عصبه کړې شول او حقیقی وارث هم عصبه وی ، چنانچه اکثرو حالاتو کښې د حقیقی اخیافی حصه د اخیافی اخیافی نه زیاته وی ، علاوه ددې نه اخیافی ورور د لور د وجه نه محرومیږی ، علاتی او اعیانی نه محرومه کیږی ، غرض داچه د اعیانی اخیافی درجه او استحقاق د اخیافی اخیافی نه ډیره زیات دې ، ذکر شوی مثال کښې هم حقیقی اخیافی ته محروم وئیل صحیح نه دی بلکه شاذ اونادر یو جزئی صورت کښې دهغوی دپاره باقی هیڅ پاتې نه شو ،

په یو جزئی صورت کښې کله کله شاذ اونادر څه مشکل پیدا کیدلوسره قانونِ کلی لره ماتول لوئ حماقت دي . پاتې شو د حضرت عمررضی الله عنه خیال نودهغې علت هم دادې چه اعیانی ورود هم د مور په رشته کښې شریک دي ددې وجه نه دهغه حصه داخیافی اخیافی نه کمه نه ده پکار . مگر د حضرت عمررضی الله عنه دا قول پخپله دهغه د بیان شوی قول خلاف دې . چنانچه کله یو اخیافی او متعدد اعیانی ورونه وی نو حضرت عمررضی الله عنه به یو سدس اخیافی ته ورکولو او یو سدس به ئې اعیانی اخیافی باندې تقسیمولو . «هدایة المجتهد جلد دوم ص ۳۴»

په دې صورت کښې د حقیقی اخیافی حصه د اخیافی نه کمیږی . غرض دا چه د حضرت عمر رضی الله عنه خیال چونکه هم دخپل بیان شوی دلیل خلاف دې، ددې وجه نه بالاتفاق علماء کرامو دا خیال غیرقابلِ قبول گنړلوسره پریخودلو . تعجب دادې چه منکرینِ حدیث په دې صورت کښې حقیقی ورونو ته حصه ورکولودپاره دحضرت عمررضی الله عنه د قول نه استدلال کوی . مگر د اخیافی ورونو اود حقیقی ورونو په مینځ کښې د تقسیم دطریقې په باره کښې د حضرت عمررضی الله عنه قول لره پریږدی . دهغوی اجتهاد په هره مسئله کښې یونا آشنا نوعیت لری .

د طلوع اسلام جون ۵۲ء ص ۳۲. ۳۳ حاشیې نه معلومیږی چه منکرینِ حدیث اخیافی ورونو لره عصبه گرځوی . اود سورة نساء په آخر کښې کلاله والا آیت لره د اعیانی ، علاتی ، اخیافی دجمله اقسامو ورونو خویندو دپاره عام وائی . اود آیت ﴿وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَٰلَةً أَوِ ٱمۡرَأَةٌ وَلَهُۥٓ أَخٌ أَوۡ أُخۡتٌ فَلِكُلِّ وَٰحِدٍ مِّنۡهُمَا ٱلسُّدُسُ﴾ متعلق وائی چه په دې کښې د «له» ضمیر مرجع «کلاله» ده او «لکل واحدمنهما» کښې د تشنیه ضمیر «رجل اوامراةً» طرف ته راجع دې نه اخ او اخت طرف ته . «یورث» د باب افعال نه دې نه ده مجرد نه پس د آیت معنی داده چه که چرته یو سړې دیو کلاله وارث جوړکړې شی یا یوه ښځه په داسې حال کښې چه دهغه کلاله څوک ورور یا خور وی نو هغه سړی یا ښځه کښې به هریوته سدس ورکول کیږی . په دې آیت کښې د ورور او خور حصه قطعاً نه ده بیان کړې شوې بلکه د عهدی رشته دارانو حصه ده چه «والذین عقدت ایمانکم فاتوهم نصیبهم» کښې مذکور دی . د ورور او خور ذکر صرف ددې وجه نه راغلې دې چه دوی د والدینو او اولاد په شان عهدی رشته دارانو لره نه محرومه وی بلکه د هغوی په موجودگئ کښې وارث کیدلې شی .

ددې دعوې د اثبات دپاره لیکی چه فقهاء او مفسرین د «له» واحدمذکر غائب ضمیرلره رجل او امراة دواړو طرف ته راجع کوی چه په هغې کښې امراة مؤنث حقیقی دې هغه کله هم دهغه مرجع کیدلې نه شی . په دې صورت کښې «لهما» یا «لکل واحد منهما» کیدل پکار وو . نیز په دې آیت کښې د «لام» لفظ او توریثِ کلاله والا آیت کښې چه د سورت په آخر کښې دې د «لاب وامٍ» یا «لاب» زیاتولو هیڅ قرینه نشته دې .

منکرینِ حدیث د اجتهاد په نشه کښې دې حده پورې مست شوی دی چه د قرآن په صریح نصوصو کښې هم تحریف کوی . ددې نه زیات څه حماقت کیدلې شی چه اخیافی ورونو ته عصبه اوونیلې شی . عصبه هغه سړې کیدلې شی چه په نسب کښې شریک وی او نسب صرف د پلار د طرف نه وی . ددې وجه نه اخیافی ورور هیچرې عصبه نه شی کیدلې . په دې آیت کښې هم د اخیافی ورونو او خورګانو حصه معین کول مقصود دی او په دې باندې دلائل حسب ذیل دی

(۱) د اخیافی ورونو حصه قرآن مجید کښې په بل ځائ کښې قطعاً نشته دې . د سورتِ نساء په آخری آیت کښې بالاجماع صرف د اعیانی او علاتی بیان دې . په دې باندې د امت د اجماع نه علاوه دا قرینه هم ده چه په دې کښې د اخت اود اخ اجتماع په وخت کښې د «**للذکرمثل حظ الانثیین**» تقسیمولو حکم دې . حالانکه اخیاقی ورور او خور عصبه نه شی کیدلې

(۲) د اخت او اخ حصه ۱۱۲ او ۱۱۳ بیان کړې شوې ده او ددې ماقبل د مور حصه هم ۱۱۲ او ۱۱۳ بیان شوې ده . په دې مناسبت سره معلومه شوه چه دا حصه د مادری ورونو او خویندو ده . ددې قرائنو د وجه نه دې ځائ کښې (لأم) او په بل آیت کښې «لام واب» لفظ ذکر نه کړې شو

(۳) د حضرت سعد بن ابی وقاص او د ابی بن کعب په قراء ت کښې د «لام» لفظ هم موجود دې چه دهغې نه ښکاره دې چه دا لفظ به دوی د حضورصلی الله علیه وسلم نه بطورِتفسیر اوریدلې وی . منکرینِ حدیث (معاذالله) د حضورصلی الله علیه وسلم نه هم زیات په قرآن باندې د پوهیدلو مدعیان دی . (فعلیهم ماعلیهم)

(۴) په دې آیت کښې د اخیافی ورونو حصه مذکورکیدلو باندې د ټول امت اجماع ده .

باقی پاتې شو د «له» د ضمیر سوال نو دهغې یوڅو وجوه دی

(۱) د عربو قاعده ده چه کله دوه اسمونه په حکم کښې متحد وی نو په دواړو کښې یو طرف ته ضمیرله کافی ګنی څنګه چه «**واستعینوا بالصبروالصلوة وانها لکبیرة**» کښې دې **قال الفراء اذا جاء حرفان بمعنی واحد جاز اسناد التفسیر الی ایهما ارید ویجوز اسناده الیهما ایضاً (خازن)**

(۲) د «له» ضمیر رجل او امراة هریو طرف ته راجع دې مګر مذکرله غلبه ورکولو سره ضمیر مذکر راوړلې شوې دې لکه څنګه چه «**وان کانوا اخوة رجالا ونساء**» کښې «کانوا» او «اخوة» مذکر دی

(۳) ضمیرصرف رجل طرف ته دې . د ښځې حکم به خودبخود معلوم شی

(۴) ضمیر د لفظ «احدهما» طرف ته راجع دې چه مذکر دې او حرفِ (او) نه فهمیږی

(۵) مورث منه طرف ته راجع دې

(۶) میت طرف ته راجع دې

(۷) که چرته د «له» ضمیرله کلاله طرف ته اووئیلې شی نو بیاهم دمقصود خلاف نه دې

(۸) تاسو خو د ضمیر «له» د اصلاح دپاره د آیت تحریفِ معنوی اوکړو . مگر دا سوچ مو اونه کړو چه ددې تحریف نه پس هم تاسو په هغه مصیبت کښې مبتلا یئ . ستاسو د تحریف مطابق هم «او» عاطفې د وجه نه عبارت داسې شو « ان کان امراة یورث » په دې کښې «کان» او «یورث» مذکر دی . ستاسو بیان شوې تفسیر د لاندې وجوهو د وجه نه محض تحریف او باطل دې .

(۱) دلته عهدی رشته دار مراد اخستلو باندې هیڅ قرینه نشته دې .

(۲) د (امراة) عامل «کان» او ضمیر «یورث» مذکردې چه ستاسو په خیال کښې صحیح نه دې .

(۳) حال د ذوالحال عامل دپاره قید وی . پس جمله حالیه «**وله اخ او اخت**» به د استحقاق سدس دپاره قید وی . تاسو پخپله دهغې ترجمه په حال سره کړې ده او دا ستاسو د مقصود خلاف ده . ستاسو نظرئې باندې «ان» وصلیه سره «**وان کان له اخ او اخت**» کیدل پکار وو .

(۴) قرآن کریم کښې دهغه آیت په سیاق او سباق کښې د وارثانو دپاره فعل مجرد نه صیغه د معلوم استعمال کړې شوې ده « وورثه ابواه » « وهو یرثها » وغیره . په دې سره معلومه شوه چه «یورث» هم مجرد نه صیغه د مجهول ده او رجل نه مراد موروث منه دې نه وارث .

(۵) ستاسو تحریف باندې لازمیږی چه د اخیافی ورونړو حصه قرآن کښې مذکور نه وی یا اخیافی ورور هم عصبه وی او دا دواړه امور باطل دی .

(۶) دا تحریف د حضورصلی الله علیه وسلم د تفسیر خلاف دې چه د سعد بن ابی وقاص او د ابی بن کعب رضی الله عنهما نه منقول دې .

(۷) دا تحریف د اجماعِ امت نه خلاف دې . دا قراء ت صرف د ابی بن کعب نه دې بلکه د ابن مسعود . سعد ابن ابی وقاص او سعید بن ابی وقاص نه هم منقول دې (فتح الباری ج ۱۲ ص ۳)

((واخرج غیر واحد عن سعید بن ابي وقاص)) . (روح المعاني ج ص ۲۰) د ابی بن کعب په قراء ت کښې د معوذتینو د قرآن نه خارجیدل د نقل محتاج دی . عبدالله بن مسعود طرف ته دا نقل منسوب دې چه دهغې محققینو تردید کړې دې او وئیلی دی چه عبدالله بن مسعود باندې دا بهتان دې . اوګورئ د المحلی لابن حزم شروح . شرح التهذیب للنووی . د ابن همام کتابِ د التحریرشرح ج ۱۰ ص ۹ . شفاء للقاضی د عیاض المالکی شرح لملاعلی القاری ج۲ ص ۵۵۱ . که چرته بالفرض د ابی بن کعب قراء ت باندې معوذتین د قرآن نه خارج وی نو آیا د یو صحابی یو قول غیرمقبول کیدلو د وجه نه دهغه هرقول رد کیدلې شی خصوصاً چه هرکله حضرت ابی بن کعب سید القراء دې . کمافی تقریب التهذیب . هم داسې بیهقی کښې بعضې روایات دضعیف کیدلو د وجه نه دهغه ټول روایاتو لره ردکول څه معقول څیز نه دې . خصوصاً چه هرکله فتح الباری کښې او روح المعانی کښې هم د نورو صحابو نه دا قراء ت منقول دې او هغې باندې اجماع هم ده

**اتم اعتراض** ۔ اقرب هغه رشته دار دي چه بلاواسطه مورث سره رشته لري یا بالواسطه لیکن د وفات په وخت کښې د مورث هغه واسطه موجود نه وی ځکه چه د میت د مړ کېدلو په وخت که چرته دهغه پلار موجود نه دې نو نیکه به ځائ د پلار قائمولې کیږی . ددې وجه نه چه په مینځ کښې کومه واسطه وه یعنې پلار چه دهغه د وجه نه نیکه محجوب کیدلو هغه نه دې . لهذا نیکه دهغه واسطې عدم موجودګئ سره پخپله اقرب شو . او اوس یو اقرب هم حتی که هغه خوئ هم وی نیکه لره محجوب کولې نه شی . ‹طلوع ۵۲ ، ص ۳۵›

**جواب** ۔ ددې مفصل جواب او پوره تحقیق پنځم صورت کښې تیرشوې دې

**نهم اعتراض** ۔ که چرته عصباتو کښې ‹‹ اولیٰ رجل ذکر ›› تاسو د قانون کلی په طور ګرځوئ نو پخپله ولې هغه قانون ځائ په ځائ ماتوئ . مثلاً لورګانې . ۲ . خور . ۱ . وراره . محروم

په دې مثال کښې لورګانې ذوی الفروض دی هغوی ته ۲ ثلث ورکولو نه پس چه څه پاتې شوی وو هغه ددې قاعدې مطابق وراره ته چه اقرب ترین سړې دې ملاویدل پکار دی . لیکن هغه محروم کړې شو او خور چه زنانه ده د باقی مال وارثه جوړه شوه . ‹طلوع جون ۵۲ ، ص ۳۷›

**جواب** ۔ هغه حدیث کښې د عصبه بنفسه حکم مذکور دې ځکه چه حقیقی عصبه صرف هم دادی . د ‹‹رجل ذکر ›› قید سره د عمه . بنت العم او بنت الاخ وغیره اخراج مقصود دې . د عصبه بالغیر استحقاق قرآن مجید نه او د عصبه مع الغیر دحدیث ‹‹ اجعلوا الاخوات مع البنات عصبةً ›› نه ثابت دې . دا حدیث د آیتِ کلاله خلاف نه دې . ځکه چه د اخت صاحبِ فرض کیدلو دپاره د میت کلاله کیدل شرط دی او حدیث کښې د بنت په موجودګئ کښې اخت لره صاحبِ فرض ونه ګرځولې شوه

**لسم اعتراض** ۔ د یتیم اولاد محجوب کولو کښې یو فساد خو دادې چه د محجوب اولاد په زړونو کښې د محرومتیا د وجه نه غم پریوځی . ځکه چه هرسړې خو فرښته نه دې چه مادی جذباتو نه بالاتروی . د انسان فطرت داسې دې چه کله هغه ګوری چه هُم ځما د بزرګانو په ګټه سره دچا وینه چه ځما په رګونوکښې ګردش کوی ځما د تره خوئ خو دې عیش او عشرت کوی او زه بغیر د څه قصور نه دهغه نه بالکل محروم یم نوهغه ته صبر نه کیږی ـ الخ .

دویمه خرابی داده چه کله لائقو ځامنو ته چه د پلار خدمت ګزار دی اودهغه د ملکیت په انتظام او ترقئ کښې شپه او ورځ کوشش‌ونه کوی دا یقین شی چه که چرته اتفاقاً هغه دخپل پلار نه وړاندې مړ شو نودهغه اولاد به محجوب کیږی نو هغه به د پلار د خدمت اودهغه د کاروبار نه برطرفه کېدل شروع کړی اوپخپلې ګټې او کوشش سره به دخپل جُداګانه ملکیت په فکرکښې شروع سی ـ الخ . دریمه خرابی به یو مثال سره په فکر کښې راځی . فرض کړئ چه د یو سړی دوه ځامن دی چه په هغوی کښې د یو خوئ ځلور ځامن اود بل صرف یو خوئ دې . اوس که چرته د

ځلورو خامنو پلار دخپل پلار په ژوند کښې مړ شي نو دهغه ځلور واړه خامن به د محجوب الارث قانون مطابق پوهه شي چه څه خاندانی ملکیت دي هغه به دنیکه په مرګ سره تره ته او بیا دهغه نه منتقل کیدلوسره د تره خامنو ته ملاویږي ، مونږ ځلور واړه خو د همیشه دپاره دهغې نه محرومه شو ، ددې وجه نه په هغوی کښې که چرته څوک د محرومو الی په خیال سره غصه کښې راتللو سره دخپلو ورونو په خاطر بغیر د هغوی دمشورې نه خپل ځان په خطره کښې اچولوسره دنیکه په ژوند کښې تره لره په کومې حیلې سره اووژنی نو بالکل قرینِ قیاس دې ـ الخ .

(طلوع اسلام ، جون ۵۲ ص ۴۱)

**جواب** :- حقیقت خو دادې چه د باطلو خواهشاتو او نفس پرستئ په نشه کښې هرمحمود څیز معیوب او هر معیوب څیز محمود په نظر راځي ، چنانچه اسلم صاحب د اجتهاد په نشه کښې راتللو سره نمسی لره د محجوب کولو خرابیانې خو ولیکلې . لیکن دهغې برعکس محجوب نه کیدلو کښې بعینه هم دا خرابیانې بلکه ددې نه هم زیات مضرتونه کیدلو باوجود د سترګو نه پټ دی . غوراوکړئ چه وراره لره د تره مقابل او رقیب جوړولوسره به د تره په زړه کښې غم نه پیدا کیږي ؟ خصوصاً چه کله د تره ډیر خامن وی ، فرض کړئ چه یتیم نوسې یو دې او د تره پنځه خامن دی نو په ټول مال کښې ۱۱۲ صرف نوسې به حصه یوسی او د تره خامن فی الحال محروم دی اودهغوی د پلار په مړکیدلو باندې هم یقین نشته چه هغه به دهغوی دپاره څه پریږدي او که نه ؟. بیا که چرته ملاؤ هم شو خو د نیکه دملکیت څخه نه بلکه دهغوی د پلار د ملکیت نه به ملاویږي او هغه هم دومره لږ چه د یتیم نمسی نه پنځه چنده کم ، آیا دا څیز د تره او د تره خامنوسره د عداوت او خاندانی بربادئ باعث نه دې ، او چه کله دتره یقین راشي چه یتیم نمسی ته ځما د خامنو نه پنځه چنده زیاته حصه ملاویږي بلکه ځما رقیب به جوړیږي حالانکه ځما خامن دنیکه د وراثت نه بالکل محرومه دی نو آیا په دې صورت کښې به تره دخپل پلار د کاروبار اودهغه د خدمت نه برطرفه کیدلوسره دخپل جداګانه ملکیت پیدا کولو فکر کښې نه پریوځي ؟ او که چرته تره واره لره خپل مساوی کتلوسره او دخپلو خامنو نه مقدم الی الاستحقاق ګنلوسره غصه کښې راتللو سره هغه اووژنی یا د تره خامن په دې صدمه کښې چه مونږ خو د نیکه د میراث نه محروم یو او دې زمونږ د پلار شریک کیږي ، بیاکه چرته یو وخت زمونږ طرف ته داملکیت منتقل هم شو نو بیا هم دهغه حصه زمونږ نه پنځه چنده زیاته ده ، دې به په عیش اوعشرت کښې ژوند تیروی او مونږ په غریبئ کښې ،((یتیم نمسی لره اووژنی نو آیا دا قرینِ قیاس نه دې ؟)) حقیقت دادې چه خاندان کښې اتفاق او محبت هغه وقت کښې باقی پاتې کیدلې شی چه یتیم نمسی لره د تره د خامنو درجه ورکړئ شي . ځنګه چه هغوی د نیکه وارثان نه وی هم دغه شان یتیم نمسی هم وارث نه وی ، په دې صورت کښې به د تره او د تره د خامنو په زړه کښې د عداوت څه باعث نه وی بلکه د

یتیم کیدلو د وجه نه به فطری شفقت مضبوط شي او څنګه چه د تره خامن ددې وجه نه دهغه فرمانبرداروی چه دې پخپله د یو څيز مالک نه دې دخپل پلار محتاج دې هم دغه شان یتیم نوسې به هم دخپل تره مطیع وی ، ددې برعکس که چرته هغه لره د تره هم درجه جوړ کړئ شي نو دې به د تره اطاعت نه کوی بلکه د هغه به مقابل او هره معامله کښې به دهغه رقیب وی چه دهغې خاندانی بربادی ښکاره ده .

دلته د طلوعِ اسلام د مضمون نه صرف دهغه امورو جواب ورکړئ شوې دې چه موجبِ شبهه کیدلې شو کوم څيزونه چه وهم محض او بین البطلان دی دهغې د جواب ضرورت نشته دې ، منکرینِ حدیث وراثت سره متعلق د نظامِ اسلامی پورهِ ډهانچې لره تکړې تکړې کړې ده ، پس هغوی باندې لازم ده چه د اصولِ وراثت یو نوې ډهانچه تیارولوسره پیش کړی د یتیم نمسی مسئله چه هغې باندې د محدثینو ، ائمو ، علماؤ ، صوفیاؤ ، فقهاؤ ، حنفیه ، مالکیه ، شافعیه ، حنبلیه ، شیعه ، غیرمقلد ، اهل بدعت وغیرهم د ټول امت اجماع ده دهغې نه انکار کولوسره د منکرینِ حدیث مقصد د قرآن حقانیت لره مخدوش (مشوش) کول دی ، حالانکه څوارلسو کالو پورې یو کس هم په دې مسئله باندې پوهه نه شو بلکه ټول امت په ګمراهئ کښې مبتلا وو نودهغه اسلافو په لاسونوسره مونږ پورې رارسولې شوی قرآن او ټول نظام باندې څنګه اعتماد کیدلې شي ؟

زه په آخره کښې د منکرینِ حدیث نه بیا هغه سوال کوم چه روزنامه زمیندار بابت ۱۱ جنوری ۵۲ ء کښې پیش کولوسره په سختو الفاظو کښې دهغوی د جواب مطالعه مې کړې ده ، مګر ترننه پورې د منکرینِ حدیث په خوله باندې د چپوالی مهر لګیدلې دې .

د اخبارزمیندار ۳۱ دسمبر ۵۳ ء په اشاعت کښې منکرینِ حدیث دا اعتراض کړې وو چه په قرآن کښې د اصولِ وراثت بیان کولوسره وئیلې شوی دی چه نزدې رشته دار ته به د لرې رشته دار نه وړاندې حصه ملاویږی ، لیکن علماء دخپل اصولِ وراثت په خاطر دهغې مفهوم دا ګرځوی چه د نزدې رشته د بعید رشتې لره محرومه وی هغې ته حجب حرمان وائی .

دهغې جواب چه څما د طرف نه د ۱۱ جنوری په اشاعت کښې ورکړئ شوې وو ، دهغې خلاصه داده چه که چرته د ذوی الفروضو په شان عصباتو کښې هم قریب ته زیات او بعید ته کمه حصه ورکولو اصولو باندې عمل اوکړئ شي نو ددې کمئ بیشئ معیار به څه وی ؟ او که چرته څوئ او نمسی ته مساوی حصه ورکول غواړې نو دا هم ستاسو د بیان کرده قرآنی قانون « قریب ته به د بعید نه وړاندې ورثه ملاویږی » خلاف دې ، څکه چه د وړاندې ورثه ملاویدلو دا مفهوم خو نه شي کیدلې چه قریب ته د سحر په وخت حصه ورکړئ شي او بعید ته د ماښام په وخت ، او دا هم تاسو نه تسلیموئ چه د نزدې د وجه نه بعید محروم دې نو د وړاندې ورثه ملاویدلو ستاسو په نزد صرف هم دا مفهوم کیدلې شي چه قریب ته زیات او بعید ته کمه حصه ملاؤ شي نو ددې کمئ

بیشئ معیار څه دي؟ ما هغه وخت هم دد‌ې جواب سختنهٔ مطالعه کړې وه او اوس بیا اخطار ورکوم چه پخپله مضمون نګار یا دهغه غیرتمند طرفدار دې میدان ته راشی «**وادعوا شهداء کم ان کنتم صادقین**» منکرینِ حدیثو کښې که چرته څه چپ والې باقې وی نو صرف ددې یو سوال جواب دې راکړی ، د غیرت تقاضاده چه ددې سخت اعتراض نه د بچ کولو کوشش اوکړی ، و دونه خرط القتاد ، یوڅیز دنیا کښې پیش کولوسره دهغې د جواب طاقت نه لرلوسره زاویهٔ ګمنامۍ کښې غورځیدل لوئ ذلت او لویه بزدلی ده ، فی الحال دومره قدرې مضمون باندې اکتفاکوم چه د اهلِ عقل دپاره کافی او وافی دې .

اب تو جاتے ہیں میکدہ سے میر پھر ملیں گے اگر خدا لایا!

واخر دعوانا ان الحمد للہ رب العالمین

رشید احمد ۱۵ شعبان ۱۳۷۳ هجری





بسم اللہ الرحمن الرحیم

لجعلنٰها رجوما للشیٰطین

# الرجوم الشهابیة علی الفرقة الذکریة والاباضیة

بسم اللہ الرحمن الرحیم

## ذکری فرقه

**سوال**:- په بلوچستان او خاص طور په ضلع مکران کښې یو مهدوی فرقه د«ذکری» په نوم سره مشهوره اومعروفه ده . دا په اصل کښې د مهدویانو یو شاخ دې چه د دریو څلورو کالو نه را په دې خوا دهغې په سلسله کښې د لاندې سوالونو جوابونه ستاسو خدمت ته وړاندې کیږی .

(۱) دهغوی سره دنکاح رشته کول جائز ده اوکه نه؟ زمونږه بعضې جاهلان دهغوی سره رشته کوی او ورکوی .

(۲) که چرته ئې نکاح کړې وي نو اوس مسئله داده چه معلومېدلو نه پس څه وکړی؟

(۳) د افتراق په صورت کښې دهغه نکاح نه چه کوم بچي پیدا شوی دی هغه دچا دی ؟
(۴) آیا دا خلق اهلِ کتاب شمیرلې شی ؟ چه هرکله دوی قرآن منی او هغه وائی او منزل من الله یی گڼی ؟
(۵) دهغوی د لاس ذبیحه څنګه ده ؟ چه هرکله د ذبح په وخت کښې کلمه او الله اکبر وائی

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د د سوالونو د جوابونو ورکولو نه وړاندې مناسب دی چه په ذکری مذهب باندې یو سرسری رڼا واچولې شی ، تاسو ته دې اوریدلوسره شاید تعجب اوشی چه « ذکری مذهب » یو داسې مذهب دې چه دهغې څه ضابطه حیات نشته بلکه وقتی طور باندې دهغې پیشوا چه هغه ته ملائی وئیلې کیږی هغه چه څه حکم ورکړی هم هغه د هغوی دین دې ، دهغوی په مذهب باندې که څرته یو کتاب اصولی طور باندې دهغوی د مذهب بانی یا یو بل پیشوا لیکلې هم وی ، نو اول خو هغه قلمی دې اود یوې نسخې نه زیات نشته دې ، له دې نه علاوه د بهائیانو د کتاب اقدس په شان فضا سازګار کیدلو پورې برسرِعام نه شی راوړلې کیدې ، بلکه هغه یو دوه نسخې اباًعن جدٍ دهغوی مذهبی پیشواګانو طرف ته منتقل کیږی رامنتقل کیږی .

خوبیا هم دهغوی مذهبی عقائد چه کومه حده پورې مونږ ته معلوم دی په هغې کښې یو څو اصولی څیزونه ذکرکولې کیږی دهغې نه پس به د مذکوره سوالونو جوابونه لیکلې کیږی . انشاء الله تعالی .

## مهدوی فرقه

د دې فرقې د عقایدو ذکرکولو نه وړاندې دا وئیل ضروری دی چه « ذکری مذهب » حقیقت کښې د مهدویه فرقې یو شاخ دې ، مهدوی فرقه میراسیدمحمدجونپوری طرف ته منسوب ده ، مختلفو ځایونوکښې ددې مختلف نومونه دی چرته دې خلقو ته مهدویه وئیلې کیږی او چرته «دائرې والا » او چرته «مصدق » او چرته «ذکر» او چرته « داعی » او چرته « طائی » نوم لری (مهدوی تحریک ص ۵)

## مهدی جونپوری

میراسید محمد جونپوری، جمادی الاولیٰ د پیر په ورځ په ۸۷۴هجری مطابق ۱۴۴۳ء جونپور (دوآبه ، هندوستان کښې پیدا شو ، (مهدوی تحریک ص ۵)، د پلارنوم ئې عبدالله دې دولسمه پیړۍ کښې یی موسیٰ کاظم پورې سلسله د نسب رسی ، دمور نوم ئې آمنه خاتون او عرف آغا ملک دې ، (مهدوی تحریک ص ۳۵)

د سنده عوام سیدمحمد جونپوری لره د ((میران سائیں)) اودمکران قلات ایران ذکری د «نود پاک» په لقب سره دهغه تذکره کوی ، جمادی الاولی ۸۸۷ هجری کښې جونپور پریخودلوسره

مختلفو علاقو کښې ئې گشت کولو ، تردې پورې چه ۹۰۰هجری کښې احمدنگر را اورسیدلو او ۹۰۱ هجری کښې د حج دپاره لاړو ، نهه میاشتې ئې په مکه معظمه کښې قیام اوکړو اود «رکن» اود «مقامِ ابراهیم» په مینځ کښې اودریدلو او اعلان یې اوکړو چه څما ذات هغه دې دکوم چه الله تعالی وعده کړې وه او محمد صلی الله علیه وسلم او مخکینو انبیاؤ چه دهغه د راتللو خبر ورکړې وو او دائې اووئیل چه مهدی آخرزمانی څما ذات دې (تحریک مهدویت ص ۴۴) .

شیخ محمداکرم «رودِ کوثر» کښې دې واقعې لره داسې لیکلې ده چه :

دهغې نه پس واپس هندوستان ته راغلو ، د تولو نه وړاندې احمدآباد (گجرات) کښې داخل شو . چنانچه ۹۰۵ هجری کښې هغه دمجوده پاکستان تهټه علاقې ته راغلو او هغلته ئې تقریبا شپږ میاشتې قیام اوکړو . تهټه کښې دهغه د قیام ځائ ترننه پورې زیارت گاه جوړه شوې ده .

د تهټه نه روانیدلوسره د بلوچستان غیرآباد او مشکلو لارو باندې تیریدلو سره دوی خپل یو لوئ جماعت لره ځان سره کړو او قندهار ته را اورسیدلو ، قندهار نه فراه (چه په هغه زمانه کښې ایران کښې داخل وؤ اوس افغانستان کښې شامل دې) ته راغلو ، او فراه کښې ۱۹ ذیقعده ۹۱۰هجری کښې د دوشنبې په ورځ وفات شو . (مهدوی تحریک مختصراً ص ۴۲)

## د مهدی کیدلو دعوی او سلاطینو ته دعوت نامه

دلته مونږ دهغه یو دعوت نامه نقل کؤو چه هغوی مختلفو امراؤ او سلاطینو ته یې لیکلې وه ، دا خط شمس الدین مصطفائی پخپل کتاب (مهدوی تحریک) کښې د «قول المحمود» په حوالې سره نقل کړې دې دا خط په برلی (گجرات) مقان نه په ۹۰۵ هجری کښې د مختلفو امراؤ او سلاطینو په نوم جاری کړئ شو .

اے خلقو ! دې خبره باندې پوهه شئ چه زه د محمدبن عبدالله رسول الله (صلی الله علیه وسلم) هم نام یم . زه الله تعالی د ولایتِ محمدیه خاتم او دخپل نبی بزرگ امت باندې خلیفه جوړکړې یم ، زه هغه سړې یم ، چه دهغه په آخری زمانه کښې د مبعوث کیدلو وعده کړئ شوې ده ، او زه هم هغه یم دچا خبر چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورکړې دې ، زه هم هغه یم چه دهغه د سابقه پیغمبرانو په صحیفو کښې ذکر کړئ شوې دې ، زه هم هغه یم دچا چه وړاندینو او وروستو ډلو توصیف کړې دې ، زه هم هغه یم چاته چه رحمانی خلافت ورکړئ شوې دې ، زه الله طرف ته خپل بصیرت باندې مخلوق لره د الله په حکم سره رابلم ، زه ددې دعوې په وخت د نشې په حالت کښې نه یم ، بلکه بیداریم ، هوش کښې د راوستلو اود بیدارولو محتاج نه یم ، د الله د طرف نه ماته پاک رزق ملاویږی اوماته سوا د الله نه دبل یو څیز احتیاج نشته ، زه د ملک او حکومت طالب نه یم او نه ماته د ریاست او سلطنت قائمولو خواهش دې ، زه امارت ، ملک او ریاست لره نجس گنړم ، د دنیا د محبت نه خلاصول څما کار دې .

ځما ددې دعوت باعث هم دادې چه زه د الله جانب نه په دې دعوت باندې مامورېم ، تاکید اوتهدید سره زه خپل دعوت تاسو پورې رسوم ، الله مالره متفرض الطاعة جوړکړې دې یعنې ځما اطاعت فرض دې ، زه ټولو انس او جن طرف ته خپل دا دعوت رسوم ، په دې مضمون سره چه زه د ولایتِ محمدیه خاتم یم ، زه د الله خلیفه یم ، چاچه ځما اطاعت اوکړو هغه دالله اطاعت اوکړو او چاچه ځما نه مخ واړولو ګویا هغه د الله تبارک وتعالی نه مخ واړولو . اے خلقو ! ما باندې ایمان راوړئ دې دپاره چه تاسو ته نجات ملاو شی . ځما خبره واورئ او ځما په تابعدارئ کښې تلوار کوئ دې دپاره چه تاسو کامیابی اوموموئ چه څوک ځما نه انکار کوی او ځما د احکامو نه انکارکوی هغه لره به الله تعالی په سختو نیولوسره نیسی ، اے خلقو ! دهغې ورځې د عذاب نه ځان اوساتئ په کومه ورځ به چه غرونه د نرئ شګو په شان واګرځې شی ، تاسو ددې دنیا نه هغه حالت کښې سفر مه کوئ چه په هلاکت کښې ګرفتاره ئې ، حسنِ ثواب آخرت اختیارکړئ ، ثوابِ آخرت لره د رَدِی پیسو په عوض مه خرڅوئ ، تاسو دفکر خاوندان یئ ، که چرته تاسو دفکر خاوندان یئ چه زه دروغجن یم او زه په الله تعالی باندې دروغ ترړم نو تاسو باندې فرض دې چه تحقیق اوکړئ او ددې خبرې دپاره کوشش اوکړئ ، که چرته تاسو ځما په خبره باندې توجه اونه کړه نو ستاسو دروغژن والې به ثابت شی تاسو د حق خبرې په تحقیق باندې قادره ئې او که چرته تاسو زه په دروغو باندې پریخودلم نو لازماً تاسو به ماخوذ شئ ، زه په الله باندې قسم خورم او الله د شهادت دپاره کافی دې چه زه د امتِ محمدیه دافع هلاکت یم او د ګمراهئ نه بچ کوونکې یم ، تاسو باندې لازم دې چه په دهوکه کښې مه اوسیږئ بلکه ځما اقوالو ، افعالو او احوالو لره قرآن پاک سره ملاو کړئ او غوراوکړئ ، که چرته ځما هرکار او ځما هرحال د قرآن مطابق وی نو ځما خبره اومنئ اوکه نه نو ما اووژنئ ، هم دا ستاسو د نجات ذریعه ده ، د الله نه او ویریږئ او عاجز زره سره هغه جانب ته متوجه شئ ځکه چه هغه مهربان او متوجه کیدلو والا دې ، هغه پخپلو بندګانو باندې ظلم کولو والا نه دې ، دا خبره نصیحت دې دهغه چا دپاره چاچه قلبِ حاضر سره دې لره واوریدلو » آه (مهدوی تحریک ص ۴۷تا ص ۴۹ بحواله قول المحمود )

## د مهدویت درجې

د سیدمحمدجونپوری د پلار نوم عبدالله نه وو ، اونه ئې د مور نوم آمنه بلکه چه کله سید محمد دمهدی کیدلو د دعوې اراده اوکړه نو دا خیال ئې تیرشو چه حدیث کښې د مهدی د پلار نوم عبدالله اود مور نوم آمنه راغلې دې ددې وجه نه ئې دخپلو والدینو نومونه بدل کړل د دې لپاره چه د حدیث د هغه پیش ګوئې سره مطابقت اختیارکړې شی، چنانچه دخپلو والدینو نومونه ئې بدل کړه ، چه کله هغه په دې نومونوسره مشهورشو نود مهدی کولو دعوی ئې اوکړه ، دهغه همعصر

مصنفینو کښې یو هم د پلارنوم عبدالله اود مور نوم آمنه نه لیکی ، د بعضې محققینو عبارات لاندې ذکر کیږی :

**الجونپوری** :- سید محمد الکاظمی الحسینی بن سیدخان المعروف بڈھ اویسی او مور یی آقاملک ، د مهدی کیدلو مدعی ، جونپورکښې د یکشنبې په ورځ ۱۴ جمادی الاولی ۸۴۷هجری ، ۱۰ ستمبر ۱۴۴۳ء کښې پیدا شو همعصرماخذ کښې څوک هم دهغه د والدینو نوم عبدالله او آمنه نه دی وئیلی څنګه چه مهدوی مآخذ مثلاً سراج الابصارکښې دعوی کړې شوي ده ، ظاهراً دهغې مقصد دادې چه دې نومونو لره د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د والدینو د نومونو په شان جورکړې شی دې دپاره چه د حدیث بعضې پیشن ګوئیانې جونپوری باندې درستی راشی ، د علی شیر قانع د تحفة الکرام او خیرالدین اله آبادی جونپورناموکښې ددې نومونو ذکر دې ، دا وروستی تالیفات دی ددې وجه نه معتبرنه دی .

(دائره معارف اسلامیه اردو ص ۵۲۱ج۷ ، دانشګاه پنجاب لاهور)

علامه عبدالحی ابن فخرالدین الحسینی پخپل مشهورکتاب د (نزهة الخواطر) سلسله ۴۸۲کښې لیکی :

الشیخ الکبیر محمد بن یوسف الحسینی الجونپوری المتمهدی المشهور بالهند، ولد سنة سبع واربعین وثمان مائة بمدینة جونپور (نزهة الخواطر ص۳۳ج۳) په دې کتاب کښې وراندې دهغه نور بې پرده کولو سره لیکی : قال ابورجاء الشاهجهانپوری فی الهدیة المهدویة ان الجونپوری لم یمنع اصحابه من ذلک (ای عن نسبته الی المهدی الموعود) مولفه وبدل اسم ابیه بعبدالله واسم امه بآمنة واشاعها فی الناس وصنف کتبا فی اصول ذلک المذهب)) (نزهة الخواطر ص۳۳ج۳، طبع دائرة المعارف، حیدرآباد دکن)

ملاعبدالقادر د بدایونی فارسی تاریخ « منتخب التواریخ » مترجم محمود احمد فاروقی حاشیه لیکلی دی ، « سیدمحمد د جونپور اوسیدونکې وو ، دده پلار نوم یوسف وو ، د یو مجذوب شیخ دانیال مرید اوخلیفه شو .

(ترجمه منتخب التواریخ ص ۲۱۰)

بهرحال که د سیدمحمد جونپوری د پلار نوم یوسف وی یا سیدخان یا سیدمحمدیوسف خان ، لیکن دومره خبره ثبوت ته رسیدلې ده چه د پلار نوم ئې دمهدویت د شوق نه پس ایخودلې شوي دې ، او هم داسې دمورداصلی نوم ئې آقا ملک وه چه هغې لره شوقِ مهدویت په آمنه سره بدل کړو او آقاملک (آغاملک) لره عرفی نوم تجویز کړو ، په دې سره قارئین حضرات ښه اندازه لګولې شی چه سید محمدجونپوری څنګه د والدینو نوم وروستو نقلی تجویزکړو هم داسې ئې د مهدویت دعوی هم نقلی ده چه هغې لره په بل عبارت سره مصنوعی مهدی سره تعبیر کولې شی .

## ذکری مذهب

دې ځاې پورې دا خبره ثابته شوه چه سیدمحمد جونپوری دمهدی آخرالزمان کیدلو دعوی کړې ده اوس مونږ دمذهب ذکری متعلق یو څومختصر خبرې عرض کؤو :

دا خلق ددې قائل دی چه سید محمدجونپوری مهدی آخرالزمان دې ، همدارنګه هغه لره رسول هم منی ، چنانچه دهغه کلمه د اهلِ اسلام د کلمې نه برعکس داده : « لااله الاالله نورپاک محمد مهدی مراد الله » ، (بلوچستان ګزیر جلد ۷ آرهیوزبلر ۱۹۰۷ ء مکران ص ۱۱۲) .

همدارنګه دې کله خپله کلمه داسې هم وائی : «لااله الا الله نورپاک محمدمهدی رسول الله» (ملتِ بیضا ص ۱۰) دا خلق خپل پیغمبرته عام طور باندې مهدی اتکی وائی ، د دوی خیال دې چه د دوی پیغمبرمحمدمهدی اتکی (پنجاب) نه مکران ته راغلې وو ، هغه یونوررو چه ښکاره کیدلو سره دهغوې بزرګانو لره د دین لاره ښودلو سره ښکاره شو ، دهغوی خیال دې چه ددې واقعې څلور پنځه سوه کاله تیرشوی دی اودهغې تفصیلی حالات (مهدی نامه) کښې لیکلې شوی دی مګر هغه دا کتاب چاته نه ښائی ، دا کتاب په فارسی ژبه کښې دې (ماخوذ ازملت بیضاء ص ۲۷) .

لیکن دهغوی دا خیال غلط دې ، دا محمداتکی ، هم سیدمحمد جونپوری ته وائی . او وړاندې یې بیان کړی دی چه سیدمحمدجونپوری د مکران علاقې بالکل تللې نه دې بلکه چه کله د پنجاب نه اووتلو نود بلوچستان په هغه لارې باندې لاړو چه قندهار ته ځی ، رومبې قندهار ته او بیا (فراه) ته لاړو او په «فراه» کښې ئې انتقال اوشو ددې وجه نه مکران ته دهغه د راتللو سوال نه پیدا کیږی . ابوسعید بلیدی چه د سیدمحمدجونپوری په لاس باندې بیعت شوې وو دهغه د وجه نه په مکران کښې دا فتنه راغله ، دا هغه زمانه ده چه هرکله په دې علاقه کښې د بلیدیانو حکومت وو . دا د پنځلسمې صدئ عیسوی زمانه وه ، هغه زمانه کښې ایران باندې د صفوی خاندان شاه اسماعیل صفوی چه غالی شیعه وو ناست وو او ترکی کښې د سلطان سلیم اول حکمرانی وه ، پرتګیز ، ولندیز او انګریز هم په دې زمانه کښې د بحیرهٔ عرب نه هندوستان کښې د تجارت او سیاسی قسمت آزمائلو کښې مصروف وو ، دهغوی د وجه نه د هندوستان حاجیانوته کافی تکلیف پیښ شو دا تفصیلات مهدوی تحریک سره متعلق تقریباً ټولو کتابونو کښې لیکلې شوې دې .

## د ذکریانو عقائد

د مهدوی اود ذکری فرقې ټولو تاریخی حالاتو پیش کولو موقع دلته نه ده ، یوڅوخبرې په طور د اظهارِ حقیقت ذکرکړې شوې ، اوس لاندې دهغوی یو څو عقائد ذکر کوو :

(۱) د ذکریانو کلمه جدا ده . د ذکریانو کلمې سره متعلق څه حوالې مونږ ذکرکړی دی . له هغې نه علاوه یو څو حوالې نورې هم اوګورئ :

«اول آنکه فرقه داعیان کلمه طیبه رابدین طریق میگویند لااله الا الله محمد مهدی رسول الله (عمدة الوسائل ص ۴)»

دهغوی په نوې کلمه کښې د نورپاک اضافه هم ده . «زه ذکری یم ص ۳۲ ج ۱»

همدارنگه ذکری او داعی خلقو د «رسول الله» په ځائ کله ناکله «امرالله» یا «مرادالله» هم وائی دهغوی یو کلمه هغه هم ده چه هغې لره هغوی پخپل پنځگانه تسبیحاتو وائی . (لااله الاالله الملك الحق المبين نور محمد مهدی رسول الله صادق الوعد الامین).

ترجمه دالله نه سوا څوک معبود نشته دې ، بادشاه دې ، برحق دې ، ښکاره دې ، نورِ محمد مهدی د الله رسول دې ، چه د وعدې رښتینې او امانت داردې .

«ذکرتوحید ص ۹، ۱۴، ۱۲ ومهدی تحریک ص ۴۷»

(۲) دمونځ نه منکردی :- دا خلق د مونځ نه منکردی اود مونځ په ځائ پنځه وخته ذکرکوی «زه ذکری یم ص ۸»

دوم آنکه داعیان دراوای نمازپنجگانه براه انکار واعراض آمده اندومی گویند نمازیکه شما مردمان میخوانید درپنج وقت علی التعیین فرض فجروظهر وعصرومغرب وعشاء ثبوتی ندارد وخداوند تعالی حکم عدم قرب نماز داده است بمقتضای آیت یاایهاالذین امنوا لا تقربوا الصلوة (ترجمه) اے مومنان نزدیک مشوید نماز را (عمدة الوسائل مولانا محمد موسی صاحب ص ۲۰)

«مکران د تاریخ په آئنه کښې ص ۱۰» وغیره

(۳) دورمضان د روژو نه منکر دی :- سوم آنکه مذهب والا داعیان درماه صیام رمضان المبارک روزه نمی دارند وتمام ماه رحمن وشر بحان بشوق وذوق درخوردن وچریدن مشغول اند ، ازفرضیت صیام منکرند ومیگویند که خداوندتعالی گفته است بخورید ونوشید خطاب بماداعیان کرده است قال الله تعالی کلوا واشربوا آیه - گفت خداوند بخورید ونوشید ، برآن عمل که خداوندبجاآورده ماه رمضان خورد ونوش داریم (عمدة الوسائل ص ۲۸)

همدارنگه د ذکریانو خپل کتاب «میں ذکری ہوں» کښې لیکلی دی چه هغوی د رمضان په ځائ په نورو ورځو کښې د دریو میاشتو او د اتو ورځو د روژو قائل دی . هغه داسې چه دوشنبه ، ایام بیض اود ذی الحجې اته ورځې دا ټولې درې میاشتې او اته ورځې شوې » (میں ذکری ہوں) ص ۷ ج ۱ و ص ۷، ۸، ۳ ، ۸ ج ۱)

(۴) د بیت الله د حج نه منکر دی :- داخلق «ذکری او داعی» دبیت الله د حج نه منکر دی او خانه

کعبې لره قبله نه تصورکوي ، د حج بیت الله په ځای «کوهِ مراد» ته تللو سره حج کوي ، چه د تربت «ضلع مکران» نژدې یومیل فاصلې باندې یو غردې .
«ماخوذازمهدی تحریک ص ۷۱»

مولانا محمد موسیٰ دشتي لیکي :

چهارم آنکه منکر بیت الله خانه کعبه شریف بقصد زیارت هستند (الی قوله) وکوه مراد راکه ذکرآن گذشته بود قبله ور مقررکرده اند (الی قوله) برای زیارت وطواف کوه مراد فراهم وجمع می شوند) (عمدة الوسائل ص ۲۹،۳۰)

دا خلق په ۲۷ رمضان او نهم او لسم ذی الحجه د زیارت په بهانې باندې حج کوي .
«مهدوی تحریک ص ۷۱ ، سپاسنامه آل پاکستان مسلم ذکری انجمن ص ۱۰ ، ۱۱»
**۵. د کعبة الله د قبلې کیدلو قائل نه دي :-** مولانا محمد موسیٰ عمدة الوسائل کښې لیکي :

((ایضاً پنجم آنکه از توجه بطرف کعبه ضرورت عبارت ندانند ، میگویند ملایان **فاینما تولوا فثم وجه الله** پس بر جاکه روی آرید پس آنجا خدای تعالیٰ هست ، لهذا توجه کعبه قبله ضرورت ندارد» (عمدة الوسائل ص ۳۱)

## دین یا مذهب

عامو خلقو لره په مغالطه کښې د اچولو دپاره د دین اومذهب عجیب تقسیم کولوسره لیکي :
زمونږ د مسلمانانو دین یو اسلام دې ، لیکن مذهب جدا جدا دي ، لکه حنفی ، حنبلی ، مالکی ، شافعی ، جعفری ، شش امامی ، ذکری او اهل حدیث وغیره وغیره ، زمونږه اودهغه ټولو دین اسلام دې او څوک چه د اسلام نه خارج دي هغه کافر دي ، (میں ذکری ہوں ص ۹ ج ۱)
دا عجیبه اتحادِ اسلام دې چه کلمه یې دمسلمانانو نه جدا ده ، دمونځ ، روژې ، حج په شان د اصولِ اسلام منکر دي مگر مسلمانان دي .

## د عباداتو ذکری تخیل

د (میں ذکری ہوں) دکتاب مصنف د عباداتو په باره کښې خپله نظریه داسې لیکي :
« څما عبادت دادې ، ذکرخداوندی پنځه وخته ، رکوع او سجده درې وخته او روژه مونږ د ټولو مذهبونو نه زیاته نیسو ، یعنې کال کښې درې میاشتې اته ورځې او زکاة څلویښتو باندې یو اوعشر یعنې لسمه حصه هرې آبادئ یا گټې باندې او دا مونږ فرض گڼو (میں ذکری ہوں ص ۷)
**ددې نه علاوه :-** «ذکری» د جماع او د احتلام نه پس د غسل قائل نه دي «عمده ص ۳۲»

د مړی دپاره دجنازې د مونځ قائل نه دی ، صرف دعا کوی چه په ذکرخانه کښې کیږی . (مہدی ذکری ہوں گ ص ۳۵ج۱)

ددې نه علاوه نورهم څه ډیرخرافات دی ، چه دهغې په تحریرکښې راوستل مناسب نه دی .

## چوګان یا مذهبی رقص

ددې نه وړاندې چه مونږ استفتاء کښې د لاندې سوالونو جوابونه ورکړو ، د ذکری مذهب دیو مهم او مشهور رقص (ګډا) تذکره کوو :

**چوګان** :- دا یو قسم مهم رقص دې چه یومذهبی رنګ ورکړې شوې دې ، دا چوګان د سپوږمۍ په شپو کښې او مقدسو شپوکښې بالعموم فراخه میدان کښې کیږی ، ځوانان ، ماشومان ، بوډهاګان ټول په دې کښې په ډیرې جذبې او شوق سره حصه اخلی ، چوګان کښې شریک کیدلو والا په یو دائره کښې اودریږی او مینځ کښې یوښائسته اواز والا سړې یا ښځه چه د چوګان د قدمونو نه او حرکتونو نه کماحقه واقف یا واقفه وی ، اودریدلوسره د مهدی د صفت اود الله د حمد اشعار وئیل شروع کوی او ټول شرکاء چه هغوی ته جوابی وئیلې کیږی د شاعر د خولې نه وتلو والا الفاظو باندې حرکت کښې راځی اود شعر آخری مصرعه په یو آواز سره وائی ، چوګان کښې هیڅ قسمه آله د موسیقۍ نه استعمالیږی .

د چوګان وینا په درې قسمه وی : دوچاپی ، سه چاپی او چارچاپی ، مثلاً هادیاً مهدیاً نازمین ، مهدیا ، الله یک ، مهدی برحق ، یارا ، مهدیًا بلوتیت ، مهدی منی دِل مراد وغیره

(مهدوی تحریک ص ۷۲)

په دې چوګان (سماجی رقص) کښې داخلق د دائرې په شکل کښې اودریږی ، چه کله د چوګان وینا وئیلې کیږی نو د رقص په شان هغوی پورته لاندې کیږی او مخکښې وروستو داسې خوځیږی چه دائره پخپل حال باندې باقی پاتې وی ، ذکری مذهب کښې دا رقص ډیر لوئ ثواب دې ، په هغې کښې د شاملیدلو والا د ثواب خو څه اندازه نشته دې ، دهغې تماشګیرهم لوئ ثواب ګټی .

یو عزیز اووئیل چه هغه دوه مدعی « مهدی آخرالزمان » لیدلی دی ......د ذکریانو په شان هغوی هم دخپلو منونکو د اصلاح دپاره ددې په شان یو مذهبی رقص اختیارکړې دې چه په هغې کښې حسبِ ضرورت ښځې هم شاملیږی ، ذکر شوو دوو مهدیانو کښې دیو رقص اکثر اوبیشتر وروستنو شپو کښې کیږی او داسې معلومیږی چه هغوی ته پخپله د ګډیدلو او خلقو لره د ګډولو کوم شوق اوشو نودخپلو خواهشاتِ نفسانی پوره کولو دپاره ئې د مهدویت جال استعمال کړو .

شعر : دل کو بہلانے کے لئے یہ چال چلی ہے ہم نے

داخلق د سید محمد جونپوری یوجملې سره خپله دائره یا مذهبي رقص باندې استدلال کوي اگرچه د سید محمد جونپوری اصلاحي دائره په یو بل شکل وه ، هغه قول دادې «خما د دائرې یو سړی به هم نه ضائع کیږي» (مهدوی تحریک ص ۷۲)

## ذکري کافر دي

ذکري چونکه محمد مهدي لره رسول مني ، دهغه د نوم کلمه هم وائي اود اصولِ اسلام مونځ ، روژې ، حج وغیره نه منکر دي ، ددې وجه نه دهغوی په کافر کېدلو کښې هیڅ قسمه شک اوشبهه نشته دې

## آمدم برسرِ مطلب (خپل اصل مطلب ته راتلل)

ددې تفصیل نه پس اوس مختصراً دمطلوبه سوالونو جوابونه ذکر کوو :

(۱) د ذکریانو سره نکاح جائز نه ده ، قال فی الدر (و) حرم نکاح (الوثنیة) قال فی الشامیة تحت (قوله الوثنیة) ویدخل فی عبدة الاوثان عبدة الشمس (الی قوله) وفی شرح الوجیز وکل مذهب یکفر به معتقده آه قلت وشمل ذلک الدروز والنصیریة والتیامنة فلاتحل مناکحتهم ولا توکل ذبیحتهم لانهم لیس لهم کتاب سماوی (الشامیة ص ـ ج ۳)

(۲) چونکه نکاح د شروع نه ، نه ده شوې ددې وجه نه جدا والې دې اختیارکړې شي او دومره موده چه بلانکاح د ښځې خاوند په صورت کښې یوځائ اوسیدل دهغې نه دې توبه اوکړي

(۳) کوم ماشومان چه پیدا شوي دي هغه ولدالزنا دي ، دهغوی نسب ثابت نه دې ، چونکه دهغوی پلار نشته ددې وجه نه دهغوی په کفالت کښې به وي ، پلار سره دهغوی د وراثت هیڅ تعلق نشته دې

(۴) اهلِ کتاب هغه دي چه یورښتیني رسول ته منسوب وي او ذکري مذهب والا محمدمهدی لره رسول مني چه دهغوی د کلمې «لااله الا الله نورپاک محمد مهدی رسول الله» نه صفا ښکاره دي ، حالانکه محمد جونپوري نبي نه دې ددې وجه نه دا خلق اهلِ کتاب نه دي

(۵) د هغوی د لاس ذبیحه حلاله نه ده ، عبارت د اول سوال په جواب کښې اوګورئ ، د ذبیحې د حلالیدلو دپاره صرف کلمه وئیل او الله اکبر وئیل کافي نه دي بلکه دهغې دپاره مسلمان یا اهلِ کتاب کیدل لازم دي

فقط والله تعالی اعلم ۱۴ ربیع الآخر ۱۴ هجری

## اباضي فرقه

**سوال** : په سلطنتِ عمان کښې اکثر اوزیات د اباضي فرقې ، چه د خوارجو په فرقو کښې یو فرقه ده ، خلق اوسیږي او د اهلِ سنت والجماعت خلق هم په ډیر تعداد کښې هغلته ژوند تیروي ،

بلکه عماني فوجونو کښې اکثرخلق سني دی ، اوس هغلته فوجی کیمپونوکښې اباضي فرقې والا مستقل پیش امام دې او هم هغلته مونځ ورکوی آیا هغه پسې داهلِ سنت والجماعت مونځ کیږی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مسقط کښې چه کومه اباضي فرقه ده ، دهغوی صحیح عقائد څه دی ؟ دهغې مونږ ته معلومات نشته ، دهغوی متعلق به صحیح فیصله هغه وقت کښې کیږی چه کله دهغوی عقائدٗ هم ذکر کړې شی ، البته عبدالله بن اباض جانب ته منسوب چه کومه فرقه اباضیه ده اوچه د خوارجو یوشاخ دې ، دهغوی عقائد په کتابونو کښې موندل ، که چرته دا فرقه بعینه هم هغه وی یا د دوی عقائد دهغوی مطابق وی نو دوی پسې مونځ نه کیږی ، ددې وجه نه هغوی پسې دې مونځ اونه کړئ شی .

د سلفو په کتابونوکښې دهغوی متعلق لاندې عقائد مونږ ته ملاؤ شوی دی :

قال العلامة الشیخ محمد کامل بن مصطفی بن محمود الطرابلسی الحنفی سئلت عن اهالی جبل طرابلس الغرب الذین لا یتمذهبون بمذهب من المذاهب الاربعة ما مذهبهم ومن هو امامهم ؟ فالجواب انهم یتمذهبون بمذهب عبدالله بن اباض وهم اباضیة وهم من جملة الخوارج وقد قسم فی المواقف الخوارج الی سبع فرق احداها الاباضیة ، قال انهم قالوا مخالفونا من اهل القبلة کفار غیر مشرکین تجوز منا کحتهم وغنیمة اموالهم من سلاحهم وکراعهم حلال عند الحرب دون غیرة ودارهم دار اسلام الا معسکر سلطانهم وقالوا لا تقبل شهادة مخالفیهم ومرتکب الکبیرة موحد غیر مؤمن بناء علی ان الاعمال داخلة فی الایمان والاستطاعة قبل الفعل وفعل العبد مخلوق لله تعالی ومرتکب الکبیرة کافر و کفر نعمة لا ملة وتوقفوا فی تکفیر اولاد الکفار وتعذیبهم وتوقفوا فی النفاق اهو شرک ام لا وفی جواز بعثة رسول بلا دلیل ومعجزة وتکلیف اتباعه فیما یوحی الیهم ای ترددوا فی ان ذلک جائز ام لا وکفروا علیا واکثر اصحابه وافترقوا فرقا اربعا انظرهم فی المواقف والله تعالی اعلم (فتاوی کاملیة ص ، طبع قندهار ، افغانستان)

فقط والله تعالی اعلم ۲۰ ذی الحجه ۱۴هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ

## ازالة الريب عن مسئلة علم الغيب

(۱) د علم غيب په مسئله باندې مفصل تحقيق
(۲) حكم عقيده علمِ غيب كلى

## ازالة الريب ......................

- د غيرالله نه نفى علمِ غيب سره متعلق نصوصِ قرآنيه
- د حضور صلى الله عليه وسلم ارشادات
- حضور صلى الله عليه وسلم ته د شعر جوړولو علم نه وو وركړې شوې
- علمِ غيب سره د حضرات صحابه كرامو رضى الله عنهم عقيده
- دحضرت على رضى الله عنه عقيده
- د ازواجِ مطهراتو رضى الله عنهن عقيده
- د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله عقيده
- د فقهاء كرامو رحمهم الله عقيده
- يو څو نكاتِ نفيسه
- د اهلِ بدعت د دلائلو حقيقت
- د علمِ غيب نفى سره متعلق د اهلِ بدعت د مشرانو عبارات
- دعلمِ غيب كلى د عقيدې حكم

## د علمِ غيب په مسئله باندې مفصل تحقيق

**سوال** :- د آيتِ كريم ((**فى خمس لا يعلمهن الاالله ـ الايه**)) نه معلوميږي چه ددې پنځو څيزونو علم مختص دې له الله پاك سره ، حال دا چه په دې كښې د ډيرو امورو علم غيرالله ته كيدل مشاهدې نه ثابت دې پس د علم مختص بالله تفصيل څه دې دلائلو سره يې واضح كړئ .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** :- په آيتِ كريمه ((**فى خمس لا يعلمهن الاالله ـ الايه**)) باندې دوه

سواله پیدا کیږی.

**اول**: دا چه ددې پنځو څیزونو د اختصاص څه وجه ده؟ حال دا چه د ټولو انبیاء علیهم السلام اود ټولو مخلوقاتو علم متناهی، اود باری تعالی علم غیرمتناهی دې او متناهی لره دغیرمتناهی نه ویستلو نه پس غیرمتناهی وی، بیا ئې دې پنځو لره ولې مختص کړه؟ ددې پنځو نه علاوه نور هم ډیر علوم دی چه هغې لره صرف الله تعالی پیژنی.

**دوم**: دا چه ددې اختصاص دظاهری مشاهدې خلاف دې یو نه بلکه په زرګونو واقعات دی چه بعضو ته دهغې څیزونو علم حاصل شو، لکه چه ابوبکرصدیق رضی الله عنه دخپلې لور حصه وراندې د ولادت نه مقررکړې وه، شاه عبدالله صاحب به تعویذ کتلوسره دا خبر هم ورکولو چه ستابه هلک کیږی یا جیلۍ، حضرت محمد یعقوب نانوتوی رحمه الله دخپل مرګ خبر د وراندې نه ورکړې وو.

د اول سوال جواب دادې چه کتاب النقول للسیوطی کښې دی چه د دوی صلی الله علیه وسلم نه ددې پنځو څیزونو سوال شوې وو ددې وجه نه په جواب کښې هم دهغې ذکر راغلو.

د دویم سوال جواب په یو څومقاماتو باندې مبنی دې.

(۱) غیب عبارت دې دهغه امورِ غیبیه نه چه دهغې ادراک په حواسو، دلائلِ عقلیو او ریاضیاتو سره نه شی کیدلې، پس معلومول پکار دی چه د علم غیب څه کلیات اوجزئیات او اصول اوفروع دی، په دنیا کښې دیوې ذرې حرکت هم بغیر د اصولو او ضوابطو نه نه کیږی، که چرته چاته د زرګونو بنځو د حمل علم اوشی نو دا جزئیات دی، که چرته د داسې ولی نه پوښتنه اوکړې شی نو هغه به هم دکشف حواله درکوی، هم داسې منجّم هم د ستورو تاثیرات وغیره د علاماتِ ظنیه نه معلوموی، یقینی ضوابطو نه هغه هم خالی لاس دې، یو طبیب یا ډاکټرکه ددې دعوی کوی نو هغه به د آلاتو په ذریعه مشاهده یا دلائلِ طبیه باندې مبنی وی، معلومه شوه چه د مغیباتو بلاواسطه علم اودهغې اصول او کلیات مختص بالله دی.

یاد دې وی چه مغیبات په دوه قسمه دی: تشریعی او تکوینی، تشریعی لکه وحی، ټول دغیب له قبیلې نه دی تشریعیاتوکښې څینی کلیات په قدر د ضرورت تلقین کیږی، او په تکوینیاتو کښې کلیات نه شی ښودلې کیدلې، هم هغه کلیاتو لره ئې په مفاتیح سره تعبیرکړی دی، د خزانې نه هم هغه شوک څه راویستلې شی چاسره چه یې چابی وی، بس ښکاره شوه چه علم کلیات مفاتیح د جزئیات دې لکه چه ارشاد دې ﴿وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَرَقَةٍ إِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِي ظُلُمَاتِ الْأَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَلَا يَابِسٍ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ﴾

خلاصه داچه د کلیاتِ تکوینیه علم او هم دغه شان د جمله فروعو داسې علمی احاطه چه څه هم

خارج پاتې نه شی خاصه د باری تعالی ده ،غيرته دا نه شی حاصليدلې ، لهذا كه چرته ديو جزئی علم هم دغيرنه نفی ثابته شی نو د احاطې به نفی ثابتيږی ، چونكه اهلِ بدعت د ايجابِ كلی قائل دی لهذا د زرګونو جزئياتو دعلم ثبوت هم دهغوی دپاره مفيد نه دې ، او اهلِ سنت د رفع ايجاب كلی قائل دی ددې وجه نه يو جزئيه منفيه به هم زمونږ دپاره دليل وی لهذا مونږ داسې دلائل[1] پيش كړو چه په هغې سره به ثابته شی چه بعضې داسې امورهم دی چه دهغې علم حضورصلی الله عليه وسلم ته نه وو وركړئ شوې .

**اول دليل** : لاندې آيتونو نه ثابتيږی چه د قيامت علم الله پورې خاص دې .

(۱) ﴿إِنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ أَكَادُ أُخْفِيهَا لِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَىٰ﴾ صحابه كرامو رضی الله عنهم نه ددې تفسير داسې منقول دې ، اكاداخفيها عن نفسی وهذه كناية عن شدة الاخفاء .

(۲) ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَا إِلَّا هُوَ ثَقُلَتْ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً يَسْأَلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٨٧﴾﴾ .

(۳) ﴿يَسْأَلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَاهَا فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرَاهَا إِلَىٰ رَبِّكَ مُنتَهَاهَا﴾

(۴) ﴿وَعِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ﴾

(۵) ﴿إِلَيْهِ يُرَدُّ عِلْمُ السَّاعَةِ﴾ .

(۶) ﴿قُلْ إِنْ أَدْرِي أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ أَمْ يَجْعَلُ لَهُ رَبِّي أَمَدًا﴾ .

(۷) ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾ (نزلت فی سؤالهم عن الساعة)

(۸) ﴿وَأَجَلٌ مُّسَمًّى عِندَهُ ثُمَّ أَنتُمْ تَمْتَرُونَ﴾

(۹) ﴿وَإِنْ أَدْرِي أَقَرِيبٌ أَم بَعِيدٌ مَّا تُوعَدُونَ﴾

(۱۰) ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هُوَ قُلْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَرِيبًا﴾

(۱۱) ﴿قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا﴾

(۱۲) ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ ﴿قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِندَ اللَّهِ﴾

(۱۳) ﴿وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي ضَرًّا وَلَا نَفْعًا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ﴾ .

(۱۴) ﴿إِنَّ اللَّهَ عِندَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ﴾ .

---

[1] بوارق الغيب كښې په دې مسئلې باندې خلويښت آيتونه او يو سل پنځوس حديثونه پيش كړی دی .

قیامت سره متعلق قرآن کریم کښې چه څومره آیتونه دي دهغې نه واضحه ده چه د قیامت د وخت علم الله پورې خاص دې چرته یې «اکاد اخفیها» اوفرمائیلو او چرته «انما» یانفي او استثناء یا تقدیم ماحقه التاخیرسره دهغې د علم حصر د باری تعالی په ذات کښې کړې شوې دې او چرته «بغتة ان ادری» او «ما یشعرون» فرمائیلوسره دغیرنه دعلم نفی کړې شوې ده او چرته یې د قیامت علم لره علی سبیل المدح ذکرفرمائیلې دې او آخری آیت کښې د پنځو څیزونو علم مختص بالله کیدل مذکور دی ، همدارنګه قرآن کریم کښې تصریح ده چه حضورصلی الله علیه وسلم ته علم شعر نه دې ورکړې شوې.

**دویم دلیل** : ﴿قُل لَّا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللَّهُ ۚ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ﴾ د تقریرِ استدلال نه وړاندې یو دوه مقدمې پیژندل ضروری دی :

(۱) په دې آیت کښې د خیراو سوء نه مراد دنیاوی خیراو سوء دې ، ځکه چه آخرت کښې هرقسمه خیر حضورصلی الله علیه وسلم ته حاصل دې او هیڅ قسمه سوء به دوی لره نه مسح کوی ، معالم التنزیل وغیره کښې ددې آیت شانِ نزول متعلق د کفارو کومه معرکه نقل کړې شوې ده هغه هم دنیاوی خیراو سوء سره متعلق ده ، لهذا کومو خلقو چه اخروی خیراو سوء مراد اخستلې دې په هغوی باندې محققینو مفسرینو رد کړې دې.

(۲) د جلبِ منفعت او د دفعِ مضرت دپاره علم ذاتی کیدل ضروری نه دی ، عطائی هم کافی دې ، همدارنګه شانِ نزول کښې سوال صرف د علم عطائی نه وو نه د علم ذاتی نه،کمارواه فی المعالم ددې تمهید نه پس د استدلال تقریر داسې دې چه ذکر شوی آیت کښې د دلیل دوه مقدمې دی.

**اوله مقدمه** :- «ولو کنت اعلم الغیب ـ الایه» ده ، په دې کښې رفع تالی لره رفع مقدم دپاره مستلزم ګرځولې شوې دې ، دویمه مقدمه ددې نه وړاندې «لا املک لنفسی ـ الایه» ده په دې کښې د رفع تالی بیان دې ، د تالی هردوه جزء د وفات تروخته پورې مرتفع دی ، آخر وخته پورې د دوی عام حالاتو نه علاوه په خپله مرض الوفات رفع تالی باندې شاهد دې بالخصوص د دوی بار بار غسل کولوسره جماعت ته تللو کوشش کول او په هرځلې بیهوشه کیدل ،که چرته دوی ته هغه وخت معلومه شوې وې چه دا اراده به پوره نه شی او چه کله زه پاسیږم نو په ماباندې به بې هوشی راځی نو یقیناً دا اراده به ئې نه وې کړې ، په هر حال داحقیقت ناقابلِ انکاردې چه آخرزمانهٔ حیات پورې عدم استکثارخیر او مس سوء کښې د دوی هم هغه حال وو چه د مخکښې نه وو ، پس معلومه شوه چه هغه وخته پورې هم دوی ته د داسې غیبو علم ورنه کړې شو چه استکثارخیر اواجتناب عن مس السوء کښې عادةً مؤثرکیږی.

**دریم دلیل** : قال النبی صلی الله علیه وسلم انی اعوذبک من علم لا ینفع وقلب لا یخشع (مشکوة) آیا چاته

جراء ت شته چه ددې دعا د عدم استجابت تصوراوکړی ، د دویمې دجزء مقبولیدل اظهرمن الشمس دې بلکه دهغې انکار کفر دې ، «قال الله تعالی فبما رحمة من الله لنت لهم ولو کنت فظاً غلیظ القلب لا نفضوا من حولک» پس د اولې جملې مستجاب کیدل هم متیقن دی ، نصوص هم ددې تائید کوی ، څکه چه کوم څیز د حضورصلی الله علیه وسلم لا ینفع دې هغه لا ینبغی هم دې او د داسې علم نفی په قرآن کښې ده ، فرمائی : «وما علمناه الشعر وما ینبغی له» په کومو روایاتو کښې چه د حضورصلی الله علیه وسلم نه یو مضمون د شعر په وزن باندې منقول دې هغه رجز دې ، (وقال الاخفش ان الرجز لیس بشعر) (فیض الباری ص ۳ج ۲) وروسته له تسلیم د دې خبرونه هغه کلمات د حضورصلی الله علیه وسلم دمبارکې ژبې نه په جوش کښې بلاقصد جاری شواو د شعر په تعریف کښې د قصد شرط دې ، (کماصرح به علماء العروض) اوکه نه نو بعضې آیاتِ قرانیه مثلاً د «لن تنالوا البر حتی تنفقوا» او «ثم اقررتم وانتم تشهدون» او «ثم انتم هؤلاء تقتلون» شعرکیدل به لازم شی حال دا چه قرآن ددې نه بری دې «وما هو بقول شاعر» او بقصدِ شعر څه وئیل ثابت شی نو بیا هغه شعر د حضورصلی الله علیه وسلم خپل نه بلکه د غیرنه ئې نقل کړې دې او که چرته هم خپل تسلیم کړې شی نو دوی هغه په شعری وزن باندې ادا نه کړې شو بلکه وزن مات شو ، څنګه چه صاحب مدارک او نورو مفسرینو لیکلی دی چه د «انا النبی لا کذب ،انا ابن عبد المطلب» په رجز کښې دوی د کذب یاء لره مفتوح او مطلب لره مجرور وئیلو چه دهغې د وجه نه په هغې کښې د شعر وزن باقی نه پاتې کیدلو .

همدغه شان امام بخاری رحمه الله ج ۱ ص ۵۵۵ باب الهجرة کښې ((تحت قوله علیه السلام ان الاجر اجر الآخرة - الخ)) د ابن شهاب زهری نه نقل کړی دی ، ((ولم یبلغنا فی الاحادیث ان رسول الله صلی الله علیه وسلم تمثل ببیت شعر تام غیر هذا البیت)) ،بهرحال په دې رجز سره دنصِ قرآنی خلاف حضور صلی الله علیه وسلم دپاره علم شعرثابتول او دا دعویٰ کول چه حضورصلی الله علیه وسلم معاذالله شعر وئیلې دې خطرناکه ګمراهي ده ، فتاوی قاضی خان کښې یې مشایخِ حنفیه نه د داسې سړی تکفیر نقل کړې دې چه دا اوواثی چه حضورصلی الله علیه وسلم شعر وئیلې دې (قاضی خان کتاب الردة)

حاصل دادې چه دا قطعی څیز دې چه حق تعالی دوی ته غیرمعمولی کمالاتو ورکولو نه باوجود د شعر علم نه وو ورکړې ، او په هغې کښې حکمت داوو چه که چرته دوی صلی الله علیه وسلم شاعروې نو دښمن به وئیل چه جناب دې خو د وراندې نه کامیاب شاعر دې ، که چرته هغه پخپل شاعرانه کمال سره د قرآن په شان فصیح او بلیغ کتاب جوړکړو نو څه تعجب دې ، پس حق تعالی د داسې قسم شکونو دروازه بندولو دپاره او د دوی په نبوت باندې د ټولو نه لویْ دلیل یعنې قرآن باندې د شکونو او شبهاتو باران کیدلو دپاره دوی لره د علم شعرنه قطعاً محفوظ

اوساتلو اودهغه د طرف نه طبیعت کښې دومره لرې والې پیدا کړو چه دوی صلی الله علیه وسلم به د بل چا شعر هم صحیح وزن باندې نه شو وئیلې ، اودا بالکل هم هغه شان دې څنګه چه الله تعالی دوی لره امی اوساتلو ، که څرته دوی امی نه وی نو دښمنانو ته به ددې وئیلو ګنجائش وې چه جناب دوی دا اعلیٰ مضامین دیو کتاب نه نقل کړی دی ، قرآن کښې راغلی دی «**ما كنت تتلوا من قبله من كتاب ولا تخطه بيمينك اذا لارتاب المبطلون**»

## علمِ غیب سره متعلق د صحابه کرامو رضی الله عنهم عقیده

**د صدیقِ اکبر رضی الله عنه عقیده** : ابن سعد اوابن ابی حاتم او مرزبهی د حسن بصری نه روایت کړې دې چه حضورصلی الله علیه وسلم به کله کله داسې وئیل : «کفی بالاسلام والشیب للمرء ناهیا» ، حالانکه موزون مصرع داسې ده : «کفی الشیب والاسلام للمرء ناهیا» ، مګر حضور صلی الله علیه وسلم همیشه هم داسې ګډوډ وئیلو ، حضرت صدیقِ اکبر رضی الله عنه عرض اوکړو ((**اشهد انك رسول الله صلى الله عليه وسلم ما علمك الشعر وما ينبغي لك**)) (**درمنثور وابن کثیر**) په دې کښې واضحه دلیل دې چه د صدیقِ اکبررضی الله عنه په نزد حضورصلی الله علیه وسلم ته علم شعر نه وو ورکړې شوې چه په ماکان وما یکون کښې داخل دې .

**د حضرت عمررضی الله عنه عقیده** : مسلم شریف ج۱ ص ۴۸۰ «باب ان تخییره امراته لا یکون طلاقا» ، کښې ذکر دی چه حضورصلی الله علیه وسلم به د ازواجِ مطهراتو سره ایلاء کړې وه نو په یوه بالاخانه کښې تشریف فرما وو ، حضرت عمررضی الله عنه د تحقیقِ حال دپاره د دوی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو دکمرې په دروازه کښې یې د دوی غلام رباح ولیدلو ، حضرت عمررضی الله عنه هغه ته اووئیل چه څما د پاره اجازه طلب کړه ، دوه درې ځله اذن طلب کولو باندې چه کله جواب ملاؤ نه شو نو حضرت عمررضی الله عنه په اوچت آوازسره عرض اوکړو چه دحضورصلی الله علیه وسلم دا ظن دې چه زه دخپلې لور حفصې د سفارش دپاره راغلې یم ، دې نه صفا معلومیږی چه حضرت عمررضی الله عنه دوی صلی الله علیه وسلم لره عالم الغیب نه ګڼلو .

**د حضرت علی رضی الله عنه عقیده** : ((**قال لم يعمر على نبيكم الا الخمس من سرائر الغيب**)) (**درمنثور ج ص**) همدارنګه د حضرت علی رضی الله عنه نه طبرانی او ابنِ مردویه روایت کړې دې چه دوی رضی الله عنه د سورۂ مؤمن آیت «**منهم من قصصنا عليك ومنهم من لم نقصص عليك**» تفسیر کولوسره فرمائی ((**بعث الله عبدا حبشيا نبيا فهو ممن لم يقصص على محمد**)) (**درمنثور و کنزالعمال ج ص**) هم دغه شان د سورۂ نساء رکوع ۴۳ یوآیت لاندې د حضرت علی رضی الله عنه دا قول په روایت

دابن ابی حاتم سره منقول دي «درمنثور ج ۲ ص ۳۱».

واضحه دې وی چه د حضرت علی نه وراندې روایت کښې حصرِ حقیقی مراد کیدلې نه شی ځکه چه امورِ خمسه لره د ویستلونه پس هم باقی علوم غیرمتناهی دی چه دهغې حصول دیو مخلوق دپاره محال عقلی اوشرعی دې ، دحضرت علی رضی الله عنه نه دویم روایت هم په دې باندې دلیل دې ، چه په هغې سره معلومه شوه چه د حضرت علی په نزد د علوم خمسه نه علاوه هم بعضې نور علوم حضورصلی الله علیه وسلم ته عطا نه کړې شو ، پس داسې قسم الفاظ چه چرته هم د یوصحابی نه منقول دی دهغې هم دا مطلب دې .

**د ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن عقیده** : «**واذ اسرالنبی ـــ الایه**» «سورة تحریم» ددې آیتونو شانِ نزول صحیح بخاری وغیره کښې داسې نقل شوې دې چه حضورصلی الله علیه وسلم به حضرت زینب بنت حجش ته تللو نو هغې به شهدورته پیش کول چه د دوی صلی الله علیه وسلم ډیر خوښ وو ، دوی صلی الله علیه وسلم به ډِ‌ا شهد خوړل ، د ښځې والی د تقاضا مطابق د حضور صلی الله علیه وسلم بعضې نورو ازواجو ته په دې باندې غیرت راغې نو هغوی په خپل مینځ کښې مشوره اوکړه چه په مونږ کښې چاته هم حضور صلی الله علیه وسلم تشریف راوړی نو هغه دې داسې اووائی چه تاسو مغافیر خوړلی دی «دایوبدبوئ بوټې دې» ، چنانچه هغوی داسې اوکړه نودوی اوفرمائیل چه ما خو شهد خوړلی دی نو وې وئیل چه شاید د شهدو موچو مغافیر خوړلی وی ، دوی قسم اوخوړلو چه زه به د نن نه پس شهد نه خورم او په دې خیال سره چه د زینب زړه خفه نه شی دهغې خبر د پټولو ئې تاکید اوفرمائیلو مگر هغه بی بی نورو ته اووئیل نو حضورصلی الله علیه وسلم ته د وحی په ذریعې سره دهغې اطلاع ورکړې شوه ، دوی صلی الله علیه وسلم د ښکاره کولو والا بی بی نه پوښتنه اوکړه نو هغې په تعجب سره پوښتنه اوکړه «**من انبئک هذا**» نو دوی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه «**نبئنی العلیم الخبیر**» دا پخپل مینځ کښې مشورې کولو والا ازواج عائشه او حفصه وه او په بعضې روایاتو کښې دی چه حفصه شهد ځکولو والا اوعائشه ، سوده او صفیه مشورې کولو والا وې .

بعضې روایاتو کښې د شانِ نزول بل رنگې هم قصه راغلې ده ، ممکن ده چه ډیر واقعات وی او د ټولو نه پس دا آیتونه نازل شوی وی په هرصورت زمونږ مقصد دومره دې چه ددې ازواجو مطهراتو د حضورصلی الله علیه وسلم دپاره خفیه تدبیرکول او بیا پوښتنې باندې «**من انبئک هذا**» وئیل ، په دې باندې ښکاره دلیل دې چه ازواجِ مطهراتو د حضورصلی الله علیه وسلم متعلق دماکان اومایکون د علیم اوخبیرکیدلو اعتقاد نه لرلو .

د سورة نمل آیت کریمه «**قل لایعلم من فی السموات والارض الغیب الا الله ـــ الایه**» په تفسیرکښې ابن کثیر په روایت د ابن ابی حاتم حضرت عائشې رضی الله عنها نه نقل کوی ، «**قالت من زعم انه**

يعلم ما يكون في غد فقد اعظم على الله الفرية لان الله تعالى يقول لا يعلم من في السموات والارض الغيب الا الله)) (ابن كثير ج ص) او صحيح بخاری کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روايت دي. ((من حدثك انه يعلم ما في غد فقد كذب ثم قرأت وما تدري نفس ماذا تكسب غدا)) (بخاری ج ص)

درمنثور کښې دی ، ((قيل لعائشة رضي الله عنها هل كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يتمثل بشيء من الشعر قالت كان ابغض الحديث اليه غير انه كان يتمثل ببيت اخي بني قيس يجعل اوله اخره واخره اوله ويقول ويأتيك من لم تزود بالاخبار فقال ابوبكر ليس هكذا فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اني والله ما انا بشاعر وما ينبغي لي)).

## د امام ابو حنيفه رحمه الله عقيده

تفسير مدارک التنزيل کښې د «ان الله عنده علم الساعة» لاندې ذکر دی چه ، ((رأى المنصور في منامه صورة ملك الموت وسأله عن مدة عمره فاشار اليه باصابعه الخمس فعبر بخمس سنوات وبخمس اشهر وبخمسة ايام وقال ابو حنيفة هو اشارة الى هذه الاية فلا يعلم هذه العلوم الخمس الا الله)) (مدارك التنزيل ج ص)

## د امام مالک رحمه الله عقيده

«الم يأتكم نبؤا الذين من قبلكم قوم نوح وعاد وثمود ـ الايه» ددې په تفسير کښې بيان کړې شوی دی چه د امام مالک په نزد دا مکروه دی چه څوک سړې خپل نسب حضرت آدم عليه السلام پورې بيان کړی تردې پورې چه د حضور صلی الله عليه وسلم په باره کښې هم د دوی دا مسلک دې . ځکه چه د مينځنو آباؤ او اجدادو علم د الله نه سوا چاته نشته (معالم التنزيل ج۴ ص۲۸)

او پخپله د حضور صلی الله عليه وسلم نه روايت دې چه ((انه كان في انتسابه لا يتجاوز عن معد ابن عدنان)) (تفسير كبير ج ص و سراج منير ج ص)

## د فقهاء کرامو رحمهم الله عقيده

البحر الرائق او قاضی خان وغيره د فقهې په کتابونو کتاب النکاح کښې تصريح ده چه څوک سړې د نکاح په وخت دا اووائی چه زمونږه شاهد الله او رسول دې دهغه نکاح نه کيږی او قائل په يوې وجهې سره حضور صلی الله عليه وسلم لره عالم الغيب گڼلو سره کافر کيږی

## يو څو زړه راښکونکې نکتې

(۱) د ټولو څيزونو علم باره خبره د که د غيب له قسم نه وی او که د شهادت صرف الله ته دې او داسې علم محيط د الله دپاره ضروری او صرف هم دهغه دپاره کمال دې . د بندگانو دپاره داسې

علم نه ضروري دي اونه د هغوی دپاره کمال دي ،بلکه د هرښده دپاره هم دهغه څيزونو علم موجب کمال دي دکومو دپاره چه هغوی پیدا کړې شوی دی .ددې وجه نه چه د شریعت په اصطلاح کښې دعلم معنی هم داده . لغت کښې خو دهرڅیز پیژندلو ته علم وائی مګر د شریعت په اصطلاح کښې صرف دهغه څیزونو پیژندلو نوم علم دي چه دهغې د پیژندلو وسیله تقربِ الٰهی او ذریعه تقربِ ایزدی وی . آیا د ریل ګاړی د جوړولواو هغه لره د چلولو د ټیلیګراف وغیره مسائل پیژندلو ته علم وئیلې شی ؟ هم دا وجه ده چه انګریزانو ته علماء نه شی وئیلې . د علماؤ خطاب صرف د علم دین د حاملینو سره مخصوص دي ، حدیث «طلب العلم فریضة علی کل مسلم ومسلمة» کښې هم د علم اصطلاحی معنی یعنې د دین د ضروریاتو معلومول مراد دی . په اصل کښې د بندګانو دپاره حقیقی کمال د مولٰی د رضا تحصیل دي او څومره کمالات چه دی هغه ټول هم ددې اصل کمال ذریعې او وسیلې دی ، لهذا د بندګانو دپاره علم هم هغه کمال دي چه د الله د رضا سبب جوړ شی ، د رضاخانیانو عقیده ده چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د سمندر د قطرو او د ونو دپانو علم دي او هر وخت دهرسړی حرکاتو اوسکناتو نه واقف دي ، ګویا چه د الله تعالی په شان په هرځائ کښې حاضرناظردي ، دا څیز د دوی دپاره باعثِ کمال نه دي بلکه د دوی د ذاتِ مقدس نه ددې نفی کول د دوی د شان لائق دي ، د دوی صلی الله علیه وسلم زړه مبارک د علومِ ربانیه اود معارفِ الٰهیه خزانه دي نه د ټولو خلقو د صورتونو او حرکاتو سکناتو آئینه .

(۲) د «**علمت علم الاولین والاخرین**» هم دا مطلب دي چه اولین او آخرین ته د تقربِ الٰهی اود الله د رضا د وسائلو تعلیم چه څومره ورکړې شوې وو د ټولو علم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عطا کړې شوې دي ، زمونږه عقیده ده چه د شریعت په اصطلاح کښې چه کوم ته علم وائی یعنې د مقربات بارګاهِ الٰهی علم ، په هغې کښې د حضورصلی الله علیه وسلم سره څوک مساوی شته . نه یوملکِ مقرب د دوی مقابله کولې شی اونه یو نبی مرسل .

(۳) دیوڅیز عالم چاته وئیل په دوو صورتونو کښې منحصردي :

اول دا چه دهغه علم ټولو مسائلو لره پیژنی .

دویم داچه دمسائلو ډیر مقدار لره پیژنی ، مثلاً د فقهې عالم به هغه ته وائی چه د فقهې ټول مسائل یا مقدارِ کثیرلره پیژنی ، چاته د اودس یا د مونځ لس یا شل مسائل معلومه شی نو هغه ته عالمِ فقه نه شی وئیلې علی هذا القیاس ، عالمِ طب به هغه سړی ته وئیلې کیږی چه د طب دټولو مسائلو یاد مقدارِ کثیر علم لری صرف په دومره پیژندلوسره چه زنجبیل ګرم دي او کافوریخ ، سقمونیا مسهل دي . تعفنِ اخلاط نه بخارپیدا کیږی . عالمِ طب نه شی کیدلې .

ددې تمهیدنه پس غوراوکړئ چه عالم الغیب یا غیب دان څنګه وئیلې شی په دې کښې هم دا دوه صورتونه دی ، یعنی ټولو غیبو لره پیژنی یا په هغی کښې د ډیر مقدار عالم وی ، د غیبو د

تولو امورو علم د الله تعالی سره مخصوص دې ، دا تخصیص د قرآن په آیتونو سره هغه صراحة سره ثابت دې چه دهغې خلاف عقیده ساتلو والا لره فقهاء کرامو کافر گرځولي دي ، اهل بدعت هم د تولو غیبو قائل نه دی کما سیجئ ، اوس پاتې شو دمقدار کثیر پیژندلی نو دهغې متعلق دا خیال کول دی چه کثرت په اعتبار د کل سره وی ، ځکه چه کثرت اوقلت اضافی امردې ، مثلاً د کل تعداد یوسل دې نو شپیتو اویاؤ ته کثیروئیلې شي ، لیکن که چرته دکل مقدار یوزر وی نو شپیتو اویاؤ ته کثیرنه شي وئیلې ، پس ضروری شوه چه د غیبو کل مقدار معلوم وي او بیا دا معلومه وی چه په هغې کښې څومره مقدار حضورصلی الله علیه وسلم ته ورکړې شو ددې دوارو امورو معلومولونه پس دې اوکتلې شی چه حضورصلی الله علیه وسلم ته څومره قدرې د امورِغیبیه علم ورکړې شو هغه د کل غیبو په لحاظ سره کثیر دې اوکه نه ، حالانکه دا دواړه امور مجهول دی ، څوک پیژنی چه کل غیوب څومره دی ؟ او څوک پیژنی چه د څومره امورو علم حضورصلی الله علیه وسلم ته ورکړې شو؟ ، ورکولو والا پیژنی ، غرض دا چه حضورصلی الله علیه وسلم ته عالم الغیب یا غیب دان یا د غیبو پیژندلو والا په یو صورت کښې هم نه شې وئیلې ، نه دکل په لحاظ سره اونه د مقدارِ کثیر په لحاظ سره ، هم دا وجه ده چه الله تعالی په قرآن مجید کښې د عالم الغیب لفظ دخپل ځان دپاره مخصوص کړې دې ،د انبیاء علیهم السلام دپاره ئې د اظهاراواطلاع لفظ اوفرمائیلو ، کماقال تعالی:((عالم الغیب فلا یظهر علی غیبه احداً، الا من ارتضی من رسول۔ الایه)) ،((وما کان الله لیطلعکم علی الغیب ولکن الله یجتبی من رسله من یشآء))،اوگورئ په دې دواړو آیتونو کښې الله تعالی د انبیاء علیهم السلام دپاره غیب باندې اظهار اواطلاع کړې ده ، د عالمَ الغیب لفظ ئې په دوی باندې اطلاق اونه فرمائیلو ، بلکه دائې دخپل ځان دپاره خاص کړو.

(۴) قرآن مجید کښې چرته چه هم دغیب لفظ راغلې دې نو دهغه تولو ځایونو سیاق اوسباق چه معلوم کړې شی اوهغې ته غور وکړې شی نو معلومه به شی چه آیاتِ قرانیه کښې د غیب اطلاق صرف په دوو څیزونو باندې شوې دې :یو وحی او دویم د قیامت په وخت ، انبیاء علیهم السلام ته چه کوم غیب باندې د اطلاع ورکولو په باره کښې فرمائیلی دی هغه وحی الهی ده ، څمادا مقصد نه دې چه دغیب لفظ دلغت په اعتبارسره دې دوو څیزونو سره خاص دې لغت کښې خو تولو څیزونو غائبوته عام دې ، مگر د قرآن په اصطلاح کښې صرف وحی اود قیامت وخت پورې خاص دې.

## د اهلِ بدعت د دلائلو حقیقت

(۱) اهلِ بدعت په دې مسئله کښې دومره غلو کوی چه خپلو مخالفینوته کافر وایی اویا یې د سنتو نه خارج گنی ، پس مسئله چه هرکله دومره اهمه ده او په عقائدو کښې ده نو هغوی ته پکار دی چه دهغې متعلق یو داسې دلیل پیش کړی چه قطعی الدلالة او بین الثبوت وی ، داسې دلیل

هغوی هیڅوک نه پیش کوی او نه د عقائدو په کتابونو کښې خپل یو تائید حاصلولې شي.

(۲) د مجال د توسیع په خاطر اهلِ بدعت فقه حنفی لره پریخودلو سره د قرآن او حدیث نه استدلال کوی او دارخاء عنان دپاره مونږ هم دا طرز قبلوُو، اوکه نه نو د مقلد دپاره صرف دامام قول حجت وی، عباراتِ فقهیه چونکه ناقابلِ تاویل دی، ددې وجه نه اهلِ بدعت دې طرف ته راتللو سره ویریږی، پس هغوی باندې لازم دی چه یا خوفقه حنفی لره فیصل تسلیم کړی اوکه نه نو د امام ابوحنیفه رحمه الله د تقلید دعوی دې پریږدی اود غیرمقلد کیدلو دې عام اعلان اوکړی.

(۳) دا خلق دنزولِ قرآن په اختتام باندې دحضورصلی الله علیه وسلم علومو لره محیط لجمیع ماکان ومایکون منی لهذا هغوی ته ضروری دې چه د دعوې د اثبات دپاره د قرآن د ټولو نه آخری آیت پیش کړی او که نه نو دعوی او دلیل کښې مطابقت نه پاتې کیږی.

(۴) قرآن کریم کښې چه چرته هم غیرالله ته دعلم الغیب اعطاء معلومیږی هغلته ایجابِ جزئی دې اوچرته چه نفی ده هغلته رفع د ایجاب کلی ده، په دې تقریرباندې د قرآن په آیتونوکښې تطبیق کیږی د ذاتی او عطائی تطبیق په هرځائ کښې جاری کیدلې نه شي.

(۵) «کل» او «ما» پخپل عموم باندې قطعی نه دی، کوم دلائل چه اهلِ بدعت پیش کوی په هغې کښې چه چرته هم د کل لفظ وارد شوې دې هغلته استغراقِ حقیقی کیدلې نه شي، ددې وجه نه چه د غیرمتناهی علومو حصول د مخلوق دپاره محالِ عقلی اوشرعی دې، لهذا د کل نه مراد امورِ کثیره دی، کل وئیلو سره کثیرمراد اخستل عام او شائع دی، قال الله تعالی **«یجبی الیه ثمرات کل شیء»** (سورة قصص) ښکاره ده چه مکه مکرمه کښې د دنیا ټولې میوې نه شي راتللې چه یو هم خارجه نه شي، هم دغه شان دبلقیس متعلق ارشاد دې **«اوتیت من کل شیء»** او د ذوالقرنین متعلق فرمائی **«واتیناه من کل شیء سببا»** حال دا چه د موجوده زمانې ایجادات هغوی سره نه وو، هم داسې **«وعلی کل ضامریاتین من کل فج عمیق»** کښې استغراق نشته، امام ترمذی د لفظ کل ددې اطلاق متعلق د امام الحدیث والفقه عبدالله بن مبارک دا ارشاد نقل کړې دې **((جائز فی کلام العرب اذا صام اکثرالشهر صام کله الخ))(ترمذی)**

پخپله مولوی احمد رضاخان صاحب هم ددې اطلاق اقرار کړې دې، چنانچه پخپله فتاوی کښې یوځائ فرمائی «کله د کل نه مراد اکثروی» (فتاوی رضویه ج۱ ص ۷۳۷)

هم دغه شان د «من» او «ما» متعلق صاحبِ منار د نورالانوار په متن کښې فرمائی «من وما یحتملان العموم والخصوص» قرآن کریم کښې هم د خصوص دپاره مستعمل دی چنانچه د یهودو متعلق ارشاد دې **«وعلمتم ما لم تعلموا»** (انعام ۱۱) **«ویعلمکم مالم تکونوا تعلمون»** (بقره ۱۸)

اهلِ بدعت عموماً داسې قسم الفاظو سره استدلال کوی چه په مراد کښې قطعی نه وی، هم

دغه شان چه کوم حدیث پیش کوی هغه د ظني الثبوت کیدلو نه علاوه ظني الدلالة وی لهذا د نصوصِ قرآنیه په مقابله کښې به معتبر نه وی.

(۲) د اهلِ بدعت په مستدل آیتونو کښې چرته چه «ما» واقع ده که چرته هغه عام واخستلې شی نو په خپله دهغوی په دعوی او دلیل کښې تطبیق نه پاتې کیږی ځکه چه د هغوی دعوی خاص د پیدائشِ عالم نه واخله ترقیامته پورې د مغیباتو د علم ده د ټولو مغیباتو دعوی نه کوی (کماسیجیء) او که چرته «ما» لره خاص کوی نو دخاص ذیرافراد دی، متعین مراد دهغې نه څنګه ثابت شو؟

## د علم غیب نفي سره متعلق د اهلِ بدعت د مشرانو عبارات

(۱) فاضل بریلوی د «الدولة المکیة» په نظرثالث کښې فرمائی. ((العلم الذاتی والمطلق المحیط التفصیل مختص بالله تعالیٰ)).

(۲) هم ددې کتابِ مذکور په نظرخامس کښې دی: ((لا نقول بمساواة علم الله تعالیٰ ولا بحصوله بالاستقلال ولا نعمهم بعطاءالله الا البعض)).

(۳) نعیم الدین مراد آبادی په «الکمة العلیا» ص: ۳ کښې فرمائی، ټول څیزونه جمله کائنات یعنې د ټول حاضره او غائبه علم عطا کړو، بدء الخلق یعنې د دنیا د ابتدا نه دخول جنت او دوزخ پورې ټول ئې په شان د تلی ښکاره کړه.

(۴) د ذکر شوې حوالې مطابق، واضحه دې وی چه د حضورصلی الله علیه وسلم دپاره نه مونږ د ټولو غیبو غیرمتناهیه علم ثابته وو نه د جمله معلوماتِ الهیه

پس اهلِ بدعت باندې لازمه ده چه خپلې هغه مخصوص دعوې باندې یو داسې دلیل پیش کړی چه دهغې سره مطابق وی، و دونه خرط القتاد. فقط والله تعالیٰ اعلم. «ربنا لاتزغ قلوبنا بعد اذ هدیتنا وهب لنا من لدنک رحمة انک انت الوهاب».

رشید احمد

۲۷ رمضان المبارک سنه ۱۷ هجری

## د علم غیب کلی د عقیدې حکم

**سوال:** - د ماهنامه الصدیق ملتان حجاج نمبر زمونږ د نظر نه تیرشو، په هغې کښې «قائلِ علم غیب کلی» ته کافر وئیلوکښې د احتیاط ـ الخ، په عنوان سره فتوی باندې زمونږ نظر پریوتلو. مستفتی چه د امینیه مدرسې دهلی کوم جواب نقل کړې دې اوهغې ته نزدې د دارالعلوم دیوبند جواب وئیلې دې، دهغې حاصل دادې چه اهلِ بدعت دعلم غیب عطائی تاویل کوی او مؤول کافر

نه دي . او د مولانا عبدالله صاحب مفتی خیرالمدارس طرف نه دهغه استفتاء د جواب خلاصه داده چه د فقه اکبر د شرح نه ئې نقل کړې ده چه ترڅوپورې یو قول کښې یو بعید نه بعید تاویل داسې اوشي چه موجب د کفر نه وی هغه وخته پورې دهغې قائل ته کافر نه دی وئیل پکار . اګرچه قول ظاهر موجب د کفر وی . نو تاسې مهربانی وکړئ دې تحقیق سره متعلق تاسو په خپله رایه مونږ له راکړئ . بینوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د احتیاط فی التکفیر هم هغه وجه صحیح ده چه د مدرسه امینیه دهلی اود دارالعلوم دیوبند په جواب کښې مذکوره ده ، د مفتی عبدالله صاحب په فرمایلې شوې توجیه کښې دا اشکال دې چه شرح فقه اکبرکښې د مذکورې قاعدې دپاره ضروری دی چه قائل په خپله دهغه احتمالِ بعید انکار اونه کړی ، که چرته قائل په خپل ظاهرباندې د ایښودلو تصریح کوی او هم هغې باندې اصرارکوی په بل احتمال باندې د حمل کولو نه یې پندوی نودهغه قول لره خلافِ ظاهراحتمالِ بعید باندې محمول کول به څنګه صحیح وی ؟ پخپله ملاعلی قاری د شرح فقه اکبر په ص ۲۳۷ باندې لیکلی دی ((ثم ان کان نیة القائل الوجه الذی یمنع التکفیر فهو مسلم وان کان نیته الوجه الذی یوجب التکفیر لا ینفعه فتوی المفتی الخ))قول علم غیب عطائی کښې یو محملِ بعید داسې نشته چه قائل دعلمِ غیب دهغه محمل هم قائل وی یا کم ازکم دهغې نه چپ وی او انکار نه کوی دهغه د کلام یو داسې محمل نه شی کیدلې چه دهغې دې پخپله قائل وی او دهغې په بنا باندې د تکفیرنه احتراز اوکړې شی فقط والله تعالی اعلم ۲۵ صفرسنه ۷۴ هجری

## د تیرې شوې خبرې متعلق یو بل سوال

**سوال** :- بنده د علم غیبِ کلی د عقیدې متعلق دیو استفتاء پوښتنه کړې وه دهغې په جواب کښې څه شبهه باقی پاتې ده ، امید دې چه حل کولوسره مونږ مطمئن کړئ ، جناب عالی د احتیاط فی التکفیر په بناء «مؤول کافر نه دې» لره دګرځولو تصدیق کړې دې په دې باندې شبهه داده چه د نصِ قطعی معنی ګانی هم که چرته تواترسره قطعی طور باندې ثابت وی نودهغه معنې نه انکار کول او څه بل تاویل کول کفر دې « لانه انکار ما ثبت من الدین ضرورةً » لهذا د « مؤول کافرنه دې» قاعده مخصوص شوه داسې نصوصو سره چه دهغې الفاظ خو قطعی دی مګر معنې قطعی یې نه ده . نودهغې انکارکولوسره بل تاویل کول واقعی موجب د کفر نه دې ، قادیانی د خاتم النبیین د لفظ منکر نه دی بلکه د معنې منکر دی یعنې تاویل کوی ، مګر ددې باوجود کافر دی . ځکه چه د خاتم النبیین هغه معنی دګومې چه هغوی انکار کړې دې قطعی دی ، پس اوس په زیرِ بحث صورت کښې دا پوښتنه کول دی چه آیانصوصِ نافیه دعلم غیب کلی علم عطائی ته شاملیدل قطعی نه دی ؟ که چرته دهغه نصوصو عموم تواترسره ثابت نه وی او معنې عام قطعی نه وی نو

داسې مؤول ته کافر وئیل به صحیح نه وی ، غرض داچه د علم غیب کلی عطائی غیرالله نه منفی کیدل قطعی او ثابت بالتواتر دې اوکه نه ؟ بینوا بیانا شافیا توجروا اجراوافیا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : هغه قطعیات چه دهغې په ثبوت او دلالت دواړو کښې ظن نه وی ، الفاظ هم ثابت بالتواتر وی او دلالت علی المعنی المراد هم قطعی وی دهغې انکار کفر وی لیکن کله دا قطعیات ضروریاتِ دین نه وی او کله وی ، د ضروریاتِ دین نه مراد دادې چه هغه مسئله داسې وی چه هرهغه سړې چه دهغه دین سره څه نا څه تعلق وی هغې لره من الدین ګنی یعنې هغه د اسلام د اجلی بدیهیاتو مسائلو نه وی ((کوجودالله تعالیٰ ووحدته وقیام الساعة وحشر الاجساد وحدوث العالم والجزاء فی الدار الاخرة والجنة والنار الی غیرذلک)) ، حضرت شاه صاحب اکفار الملحدین کښې لیکلی ((والمراد من الضروریات علی ما اشتهر فی الکتب ما علم کونه من دین محمد صلی الله علیه وسلم بالضرورة بان تواتر عنه واستفاض وعلمته العامة کالواحدانیة والنبوة وختمها بخاتم الانبیاء وانقطاعها بعده وثم قال بعد اسطر ) وکالبعث والجزاء ووجوب الصلوٰة والزکوٰة وحرمة الخمر ونحوها (وقال فی الحاشیة) ای استفاض علمه حتی وصل الی دائرة العوام . الخ)) اوس ددې ضروریاتو انکار کولو والا خواه متمسک بالکتاب والسنة ولې نه وی او خواه هغه قطعیات ثابته بالتواتر کښې تاویل ولی اونه کړی د اسلام نه به خارج وی کمسئلة ختم النبوة .

او عقیده ثابته بالتواتر المدلول علیها قطعاً کله چه هغه د ضروریاتِ دین نه وی جوړه شوې بلکه د خواصو په دائره کښې وی لکه چه ((نفی علم الغیب عن غیرالله یا خالقیة الله تعالیٰ کل شیء حتی الافعال الاختیاریة للعباد وقدم القران)) ددې انکارکه چرته عن تاویل «ولو ضعیفا ناشئا من غیر دلیل یعتدبه» ، او ددې تمسک هم دکتاب اوسنت نه وی نو مونږ به اووایو چه اګرچه دا انکار کفر دې او دا عقیده کفریه ده لیکن ددې معتقد بوجهِ دهغه تاویل ضعیف اوتمسک بالدلیل الشرعی من الکتاب والسنة خارج دې له اسلام نه ، «**خلق کل شیء ، خالق کل شیء ، خلقکم وماتعملون**» په شان دنصوصِ قطعیه په موجودګئ کښې معتزله انسان لره خالق د افعالِ اختیاری منی لیکن شرح عقائدِ نسفی کښې علامه تفتازانی دهغوی عدمِ کفرلره د جمهورو قول ښودلې دې او ورسره ورسره دا هم لیکی چه د ماوراء النهرعلماؤ دهغوی په تضلیل کښې مبالغه کړې ده «حتی قالوان المجوس اسعد حالا منهم حیث لم یثبتوا الاشریکا واحدا» ، او دوئ لاتعد ولاتحصی خالق منی . په هر حال بعضې علماء په دې زمانه کښې هم دتیز او سخت اقدام قائل وو ، لیکن جمهورو د احتیاط نه کار واخستلو او اوس هم هغه معامله ده . البته بشریتِ انبیاء علیهم السلام اود غیر الله متصرف فی الامور نه کیدل څما په نزد د ضروریاتِ دین نه دی چه دهغې انکار «ولو عن تاویل» ، کفر دې فقط والله الهادی الی سبل السلام

«۱۴ ربیع الاول ۷۲ هجری»

بسم الله الرحمن الرحیم

وما توفیقی الا بالله علیه توکلت والیه انیب

د اُردو شعر ترجمه: ما داسې وګڼلو چه هغه د دین یو زاهد او خضر علیه السلام دې ، کله مې چه پرده ترې لرې کړه نو معلومه شوه چه هغه ابلیس وو

# د ګډ په صورت کښې شرمخ

## یعنې دیندار انجمن

بنده دې موضوع سره متعلق د شائع شوی مضامینو مجموعه د ترتیب او تحریر دپاره د یو داسې اهلِ قلم په حواله کړه چه هغه باندې د لیکلو د اوږدوالي او د تکثیرِ اشعار او د عبارت ښائسته کولو غلبه ده ، چه کله هغه رساله ولیکله او ماته یې پیش کړه نو ما په هغې کښې صفحې په صفحې ولیکلې ، دهغې باوجود د عبارت د تطویل او د اشعارو د تکثیر نه علاوه دهغې طرزِ تحریر هم د بنده د اسلوبِ تحریرنه زیات مختلف دې ، امید دې چه کوم حضرات د بنده د تحریر سره مانوسه دی هغوی به د دې خلافِ طبع تحریرنه د مطلب د اخذ کولو زحمت برداشت کړي.

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وکفی والصلوة والسلام علی عباده الذین اصطفی

اما بعد

﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ۚ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ﴾

یو مذهب، ملت یا مستحکم قانون دوه قسمه خطراتو سره مخامخ کیږي . چه کله مخالفین بوې نظریې لره ناکامول جوړول غواړي نو هغوی په لکونو حربې استعمال کړي مګر د ټولو حاصل اندرونی سازش او بیرونی یلغار دې او بس . یو مذهب یا نظریه یا د کوم یو مملکت داسې وجود نه دې راغلې اونه به راشي چه دهغې په خلاف څوک په سازش کښې لګیدلې نه وي . او عادة د الله پاک هم دا دې چه د داسې تقابل په میدان کښې د صحیح او غلط معلومات وشي.

عام طور باندې یو نظریې لره د ناکامه کولو دپاره اول خارجي وسائل عملي کیږي او چه کله دهغې نه ناامیدي وشي . نو اندروني طور باندې داسې خلق تیاریږي چه هغه تحریک لره ناکامه کړي د امتحان او آزمائش په هغه سختو مرحلو کښې بعضې ماتې اوخوري او بعضې دهغه آزمائش

نه بری شی.

اسلام چونکه یومکمل ضابطهٔ حیات دې بلکه حقیقت دادې چه اسلام دینِ فطرت دې ، د فطرتِ انسانی صحیح ترجمانی که چری چرته موندلې کیږی نوهغه صرف اسلام دې ، نظریه اسلام او نورو مختلفو نظریاتو کښې چه چرته بل فرق دې هغلته دا فرق نهایتِ واضح دې چه هغه تول قوانین او نظریات چه غیراسلامی دی هغه دیو خاصې طبقې اود مکتبه فکر د جذباتو ترجمان کیږی ددې وجه نه هغه خالص جذباتو باندې د مبنی کیدلو په بناء باندې اول خو د مصالح بشریه نه بالکل خالي وی او که چرته په هغې کښې که څه مصلحت وی هم نو هغه مخصوصې طبقې او مخصوص زمانې پورې محدود وی ، په خلاف د اسلام چه هغه چونکه دخالقِ کائنات دخپل مخلوق دپاره جوړه شوې ضابطه ده چه دعلیم او خبیر کیدلو د وجه نه چه د بندګانو د ماقبل او ما بعد حالاتونه ښه واقفه دې ، ددې وجه نه هغه ضابطهٔ حیات کښې چرته چه د انسانانو د جذباتو رعایت ساتلې شوې دې هغلته دهغه خاص لحاظ ساتلې شوې دې چه هغه د انسان د طبیعتِ سلیمه اود فطرتِ عالیه حقیقی ترجمانی اوکړی ، ارشاد ربانی دې ، ﴿ فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾

هسې خو هرفرد بشرچه کله خپل د یو نیم انچ دله جوړوی نو هغه هم هغې لره خپل معراج اود کائناتو د نجات واحده ذریعه ګرځوی ، ارشاد دې : ﴿ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴾ لیکن چه کله واقعاتو او حقائقو باندې نظر اچولې کیږی نو واپس کیدلوسره خبره بیا هم هغلته حصاریږی چرته نه چه مونږ تلی وو چه ﴿ أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴾

لیکن ښکاره ده چه داسې عالمګیرمذهب او جذباتو او فطرتِ انسانیه باندې حاوی ضابطهٔ حیات دښمنانو ته یو سترګه نه غړوی ، ددې وجه نه چه کله په ګردونو اودورو کښې ککړو خلکو د اسلام نمر روښانه کړو نو نمرته د سترګو بندولو والا سترګې توری شوې او کتلو والا اوکتل چه د اسلام د ختمولو څومره کوششونه بې فائدې کړې شو مګر هغه قدم په قدم باندې د اسلام دترقۍ موجب جوړیدل.

بالاخر چه کله هغو دښمنانِ اسلام اوکتل چه په داسې طریقې دهغوی سره زور نه چلیږی نو هغوی د دښمنۍ دویم اړخ اختیارکړو ،که خوښه دې وی نودې ته هغه طریقه اووایه ، کومه چه رئیس المنافقین عبدالله بن ابی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عداوت کښې شروع کړې وه ، یا د هوسِ نبوت هغه زهرقاتل ورته اووائې چه د هغې کرونده مسیلمة الکذاب اودهغه ملګرو سجاح او طلیحه اسدی کړې وه ، بهرحال دا تول د یوې ونې خبیثې میوه ده او ددې «الکفرملة واحدة» قانون لاندې راځی ، صرف د نوم اود رنګ فرق دې او بس : شعر :

عشق کی چوٹ تو پڑتی ہے دلوں پر یکساں  ظرف کے فرق سے آواز بدل جاتی ہے

او شاعر هم د داسې حالت مطابق ښه ښه وئیلی دی: شعر:

ستیزہ کار رہا ہے ازل سے تا امروز  چراغِ مصطفوی سے شرارِ بولہبی

مگر یاد ساتئ چه دا ټولې حربې اندرونی وی اوکه بیرونی څنګه چه ترننه پورې دهغوی دپاره غیرمفید راروانې دی ، هم دغه شان آئنده به هم دهغوی هره حربه بې نقاب کیدلوسره هم دهغوی دپاره د ذلت او رسوائې موجب وی انشاء الله تعالی.

دمسلمانانو د زړونو نه د اسلام اهمیت لره د کمولو بلکه هغوی د بې دینئ په لاربانديې د راوستلودپاره چه چرته نور ذرائع په کار لګولی دی په هغې کښې یو فتنه د دعوائې نبوت هم ده. نبی جوړیدل ئې دومره آسان کړل چه هر کله غواړې نو نبی جوړ شی.

هسې خو د حضورصلي الله علیه وسلم د انتقال نه پس ډیرو خلقو د نبی ، رسول ، مسیح موعود اودیوسفِ موعود کیدلو دعوی اوکړه ، بلکه د عینِ محمد صلی الله علیه وسلم کیدلو پورې دعوې اوشوې ، لیکن د قابل خلقو پیدا کولو شرف چه کوم هندوپاک او خصوصاً سرزمینِ پنجاب ته نصیب شوې دې هغه به د دنیا یوعلاقې ته په خوب کښې هم ملاؤ نه شی ، په دې خطهٔ مقدس کښې چه غلام احمد قادیانی لعنة الله علیه وعلی من حذاحذوه کوم فصلِ نبوت کرونده کړې دې ، اود هغې میوې پورته دی ، دا شرف کوم بل دښمنِ اسلام ته ډیر کم نصیب کیږی ، شعر:

این چه شوریست که در دور قمر می بینم

عجیبه خبره ده چه استاذ پیر(غلام احمد قادیانی) خو د نبوت د درجې نه پورته شو او مرید (صدیق دیندارچن بسویشور) د نبوت نه ترقی کولو سره د خدایٔ مظهر جوړ شو.

الله تعالی دې چاته اختیارنه ورکوی اوکه نه نو .......اکبرآله آبادی مرحوم هم د دوی نه تنګیدلوسره دا اووئیل: شعر:

صورت فانی سے آخر کیوں نہ پہچانے گئے

مجھ کو حیرت ہے کہ یہ بت کیوں خدا مانے گئے

والله دې او دده مریدان ښه پوهیږی چه خدایٔ چه هغه ټول کائنات ددویٔ په شمول پیدا کړی دی هغه څه بل ذات دې ، صدیق دیندارچن بسویشور نه خدایٔ دې اونه دهغه مظهر اونه یو نیک بنده بلکه دا ټولې پیچیده معاملې دی.

داسې معلومیږی چه د اکبر په وړاندې به هم یو داسې بې وقوفه وی ، ارشاد دې

واعظ ہم بھی سمجھتے ہیں خدا ہے کوئی اور  دل لگی کے لئے ایک بت بھی لگا رکھا ہے

مگر ددې غریبانانو قصور نشته دې ، دوی ته د دوی دادا (انگرېز) هم دا سبق ښودلې دې چه قسمت آزمایی کوئ ، کېدلې شي قرعه اندازئ کښې د مرزا صاحب د مصاحبت په وجه د خدائ جوړېدلو دپاره نوم را اوځي ، اوکه نه نو پیغمبرانو کښې خو به شمېرشو اودا د څه تعجب خبره نه ده ، څکه چه : شعر:

عہدِ انگلش میں ہے ہر چیز کے اندر نمبر کیا تعجب ہے جو نکلا ہیمبر نمبر

د مرزا احمدقادیانی په مریدانو کښې خو نبیان ډېر شوی دی ، بلکه داسې هم دی چه دخپل پیر حتہ نه هم څه پنځه قدمه وړاندې تللی دی ، لیکن دا سعادت ډېرو کمو کسانو ته نصیب شوې دې چه په یو وخت کښې یوسف موعودهم وی ، نبی هم وی ، عینِ محمد(صلی الله علیه وسلم) هم وی او مظهرِ خدائ هم ، مگر صدیق دیندارچن بسویشور کښې دا ټول صفات متضاد موجود دی ، شعر:

این سعادت بزورِ بازو نیست تانہ بخشد خدا ئے مرزائیش

لاندې موږ هم ددې مردِ مجاهد صدیق دیندارچن بسویشور (لعنه الله) سره متعلق څه عرض کول غواړو ، او دا دهغه سلسلې آخری کړئ نه ده بلکه د مرزائیت د فتنې نه پس حکومت او عوامو ته هغه طرف ته د توجه ورکولو یو درخواست دې ، د ټولو نه وړاندې مناسب معلومیږی چه د صدیق دیندارچن بسویشور مختصراً تعارف اوکړې شي.

## صدیق دیندارچن بسویشور

انسانی تاریخ کښې هغه څومره منحوسه ورځ وه چه په هغې کښې صدیق دیندار پیدا شو ، چه هغه خپل خودساخته دین ته د دینداری نشانې لگولوسره د کفر او ارتداد تیارې خورې کړې . ساده مسلمانانو ته ئې د احتیاطِ توسع ، شوقِ جهاد اود اتفاق پسندئ شین باغ ښودلو سره د ذلت په کنده کښې گذار کړل ، بلکه ساده مسلمانان دهغه په جال کښې په پوره طور باندې رانه غلل . هغوی لره هم شیطان په دې دهوکه اچولی دی چه دا د اسلام د خدمت کولو والا مجاهدینو یو غلطی ده ، حالانکه دکفر او ارتداد په سیلاب کښې دوی خو پخپله غرق شو که چرته ستاسو هم دا طریقه وی نو الله دې نه کړی چه یو ورځ به دا سیلاب تاسو لره هم غرق کړی : شعر:

خود تو ڈوبے ہیں صنم تم کو بھی ڈوبیں گے

ددې بدبخت نوم صدیق دې ، دیندارئې لقب دې . عام طور باندې خپل نوم سره ئې « چن بسویشور» لیکلو ، حیدرآباد دکن کښې دده د اوسیدو ځائ وو . په ۴ رمضان د پیر په ورځ ۱۳۰۲ هجری کښې هم په دکن کښې هغه خپل منحوس قدم کیخودلو . عام طور باندې ئې خپل نوم اولقب داسې لیکلو . « صدیق دیندار چن بسویشور » آصف نگر حیدرآباد کښې دهغه د

خانقاه نوم «خانقاه سرورعالم» یا «جگت گروآشرم» وو ، چه په هغې کښې ئې د سیرت النبی صلی الله علیه وسلم جلسې هم کولې ، پخپله چونکه تقریرکښې څه دیر ښه نه وو ، ددې وجه نه ئې خپلو جلسو لره ښائسته کولو دپاره بعضې نور حضرات هم راغوختل ، صدیق چن بسویشور د غلام احمد قادیانی سره تعلق لرلو ، لیکن بشیرالدین محمود د قادیان خلیفه ته تللو سره بیعت اوکړو ، بیا محمدعلی لاهوری مرزائی ته ورتللوسره دقادیانی تفسیر اوونیلو ، ، ددې نه پس بیا حیدر آباد دکن ته راتللو سره د هندوانو کتابونو اود مرزا غلام احمد قادیانی پیشگوئیانې یې خپل ځان باندې لګولوسره دهندوانو د اوتار(نبی) چن بسویشور کیدلو دعوی اوکړه ،دیوسف موعود ، مثیلِ موسی ، مظهر خدا دعوې سره سره ئې دا دعوی هم اوکړه چه «خانقاهِ سرورعالم واقع آصف نگر (حیدآباد دکن) کښې د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دوباره بعثت شوې دې» ، همدارنگه خپل ځان ته ئې الله ، د قیامت مالک او شافع محشر هم اولیکلو ،دا تولې خبرې به انشاء الله هم دهغوی د کتابونو په حوالې سره وړاندې شی.

د چن بسویشور په تصانیفو کښې تراوسه پورې «مهرنبوت» «خادم خاتم النبیین» «جامع البحرین ،معراج المؤمنین اود دعوت الی الله» حوالې ملاویږی ددې نه علاوه نور تصانیف هم دی چه بهائیانو دکتاب اقدس په شان فضا سازگار کیدلو باندې به میدان ته راغی .

مؤخرالذکرکتاب «دعوت الی الله» دهغه د مذهب اود نورو کتابونو سنګِ بنیاد دې ، دهغه باقی کتابونه او د مریدانو نور کتابونه گویا هم ددې تعبیر او تشریح دی ، د کتاب په اولنۍ پانه باندې دا عبارت پټ شوې دې .

«دعوة الی الله» الداعی مولانا صدیق دیندارچن بسویشور ، یوسفِ موعود ، سردارآخرین چه د دیندارانجمن د اراکینو په اهتمام سره پریس مغل پوره کښې طبع کیدلوسره دربیع الآخر په ۱۳۵۹هجری کښې د حیدرآباد نه شائع شو .

## دیندار ټولګې

صدیق دیندارچن بسویشور په ۱۹۲۴ء کښې دخپل دعوت د وړاندې کولو دپاره یو مجلس او تولګې جوړکړو ، چه د هغې نوم یې «دیندارانجمن» کیخودلو ، په یو ښائسته نوم سره یې ډیر مسلمانان یې په دهوکه کښې واچول او په مصیبت کښې گرفتار کړل، ددې انجمن اصول دادی چه خلقو ته داسې خبرې ښکاره کړې شی چه د هغوی د نظرونو دپاره جاذب وی ، مثلاً د جهاد ترغیب د اتفاق او اتحاد وغیره کوشش وغیره ، اودهغوی دنبی د چن بسویشورچه کوم اصل عقائد دهغوی په کتابونوکښې دی حتی الامکان دا کوشش کوی چه هغه عوامو ته مخامخ رانه شی .

نن سبا دهغه انجمن درې تحریکونه په دریو مختلفو نومونو کښې چلیږی دهغې وضاحت ددې

وجه نه ضروری دې چه چرته عوام په یو بل نوم سره دهغوی په دهوکه کښې رانه شی ، پوره هندوپاک کښې دهغوی مبلغین خواره شوی دی هندوستان کښې دې تحریک ته « حزب دیندارانجمن » ونیلې کیږی ، ددې یو شاخ په کراچئ کښې هم دې، په کراچئ کښې د سعیدبن وحید بی ، اے «علیگ» په امارت کښې د « جمعیت مجاهدین فی سبیل الله دیندارانجمن » په نوم سره دا خلق کارکوی ، دا «انجمن فقراء مبلغین اسلام دیندارانجمن » او زیات ترصرف د «دیندارانجمن » په نوم سره کار کوی ، چه دهغې سربراه سعید بن وحید دې ، ددې انجمن مرکزی دفتر کورنگی کراچئ کښې دې ، دریم تحریک د « مرکزی دیندارانجمن » په نوم سره دې چه دهغې مبلغین پنجاب او پیښور وغیره کښې ښکاره او پټوطریقوسره کارکوی ، عوامو ته د دهوکې ورکولودپاره دهغوی د مبلغینو دوه خاصې پیشې دی ، بعضې امام قوم جوړیدلوسره جماتونو کښې امامت کوی او بعضې پیرجوړیدلوسره پخپله حلقه کښې دا زهر خوروی ، دهغوی وضعیت او کیفیت هم خاص دې، ددې وجه نه هغه هم لیکلې کیږی دې دپاره چه ناواقفه مسلمانان دهغوی د وضع او قطع پیژندلوسره دهغوی د شکارکیدلو نه بچ شی.

## وضع، قطع «وضعیت او کیفیت»

د انجمن دیندار خلق د شین رنگ پګړی تړی چه دهغې د لاندې عموماً ساده ټوپئ وی ، رنګارنګ جامې اچوی ، اوږده ږیره ، خواره واره ویختان ، په فقیرانه شکل کښې په نظر راځی ، زاهد صدیقی صاحب سابق مبلغ دیندارانجمن ، چه اوس ئې توبه ویستلې ده فاران کراچی فروری ۱۹۵۷ء کښې لیکی:

« راقم الحروف» د څلورو کالو په موده کښې جمعیت حزب الله دیندارانجمن لره یو تبلیغی اداره تصورکوله او خپل ژوند یې هغوئ ته وقف کړې وؤ او خپل خدمات یې پیش کړی وو ، دهغې نه پس پورته واقعې پورې ما د یو مبلغ په حیثیت سره مغربی پاکستان کښې دوره کوله ، او په زرګونو مجلسونو کښې ما دهغه جماعت تعارف کولو لیکن دارانه وه معلومه چه څوک ما خدام الدین ګڼل هغه د ایمان بربادولو والا او منکرینِ ختم نبوت دی ، صوفیانه حلیه ، دیندارانه وضع قطع ، د فرقو د اتحاد متمنی ، غرض داچه هغوی که تاسو وکتل نو ګله هم دا تصور نه شئ کولې چه د داسې وضع قطع «وضعیت اوکیفیت والا» خلق به هم د دینداری په جامه کښې د بې دینئ او د مشرکانه عقائدو تبلیغ کوی.

## اقتباسات

تردې ځائ پورې ددې انجمن اجمالی تعارف اوکړئ شو ، اوس د انجمن د بانی صدیق دیندارچن بسویشور تصانیفو نه یو څو اقتباسات پیش کولې شی ، دهغې نه به دهغه معتقدات.

عزائم او څه نور خرافات تاسو ته معلوم شي ، او بيا اندازه اولګوئ چه دا خلق «ديندار انجمن والا» حقيقت کښې څوك دى او په كوم شكل كښې ښكاره كيږى ، دهغه عقائدو اوعزائمو حاملين په عوامو کښې د جهاد او اتحاد په نوم سره تبليغ كوى او عوام په خپل جال کښې ګيروى . شعر:

لباسِ خضر میں یاں سینکڑوں رہزن بھی پھرتے ہیں

اگر دنیا میں رہنا ہے تو کچھ پہچان پیدا کر

اوګورئ اقتباسات . [1]

## چن بسويشور او مرزا غلام احمد قادياني

د ديندار انجمن باني صديق ديندار چن بسويشور وائى :

« د نبيانو د اسرارو په مابانديې د ښكاره كيدلو دوه اسبابه دى . رومبنئ سبب دا چه فقير په ۱۹۰۷ء كښې د دجال د فتنې نه كماحقه واقفه كيدلوسره د مسيح په كوشش كښې وو ، په ۱۹۱۴ء كښې يى مسيح «مرزاغلام احمد» لره اوموندلو ، او نهايتِ مخلصانه طور بانديې د اته ويشتو كالو په عمركښې تركِ دنياكولوسره د زيات حصولِ علم دپاره قاديان ته اورسيدلو . اود مرزا صاحب ليكل شوى لسو زرو صفحاتو نه چه په هغې كښې دريې سوه ځايونوكښې د نبوت مسئلې لره د حل كولو كوشش كړې شوې دې ،پوره پوره واقفه شو . په دې طريقه « د نبوت د اسرارو » ښكاره كيدلو په دې فقيربانديې دا رومبنئ سبب دې «مهرنبوت ص ۲۵»

ددې اقتباس نه درې خبرې معلومې شوئ ، د چن بسويشور قاديان ته تلل ، مرزاغلام احمد قاديان لره مسيح موعود منل . اودهغه د تصانيفو نه استفادهٔ دينى اود نبوت د اسرارو ښكاره كيدل ، لوستونكو حضراتو ! ددې ځائ نه اقتباساتو لره په ذهن كښې نوټ كوئ او دا خبره هيروئ چه هم ددې ځائ نه صاحب بانديې د نبوت د اسرارو ښكاره كيدل شروع شو ، اوس وخت د اته ويشتو كالو په عمركښې دې ، نن تركِ دنيا كولوسره د مرزا د كتابونو نه د كفرياتو په لټولو كښې مصروف دې ، سبا به معلوميږى چه «اسرارِ نبوت » ښكاره شوى دى اوكه د جهنم د سكروتو نه يى لمنه ډكه كړې ده ، شعر:

آج کفر سے معروف ہیں سرگوشی میں　　　ہوش آئے گا انہیں موت کی بیہوشی میں

(اکبر الٰہ آبادی)

د غلام احمد قاديانى د كتابونو نه به اسرارِ نبوت څنګه حاصل شي . هغوئ خو هغلته د اغوا

---

[1] - دهغوى په عباراتوكښې اردوزبان ، اوزانِ شعر حتى چه آياتِ قرآنيه بانديې كوم ظلم شوې دې هغه د كاتب سهوه نه ده بلكه د هغوى د لياقت عكس دې .

نفساني د پیریانو په کمین گاه کښې د شکار دپاره ناست دی، آیا چرته د زقوم په ازغکو کښې هم گلونه ملاویږي ؟ اوس خو به جهنم ته د تگ نه پس چن بسویشور صاحب په زړه کښې وائی چه کاش هغلته نه وې تلې ، مگر اوس خو د «یلیتنی کنت ترابا» نه سوا هیڅ په لاس نه ورځی .

مدتوں بیٹھا ترے ہنگامہ عشرت میں میں — روشنی کی جستجو کرتا رہا ظلمت میں میں

آہ وہ یوسف نہ ہاتھ آیا ترے بازار میں — مدتوں ڈھونڈا کیا نظارۂ گل خار میں

د قادیان ددربار نه نا امیده واپس شو ، نو ځکه خو د قادنیانو نه بالخصوص د میامحمود نه واپس شو اودخپل مستقل نبوت او د مامور او موعود کیدلو دعویدار جوړ شو او د حال په ژبه دې وئیلو سره د قادیان د دربار نه واپس شو چه ، شعر:

چشم حیراں ڈھونڈتی اب اور نظارے کو ہے

آرزو ساحل کی مجھ طوفان کے مارے کو ہے

چھوڑ کر مانند بو ، تیرا چمن جاتا ہوں میں

رخصت اے بزم جہاں سوئے وطن جاتا ہوں میں

یعنې د نبی جوړیدلو لاره لټوم چه تاسره ملاؤ نه شوه ، شعر

اے میرے خضر ختم کب ہوتی ہے مری طلب

اس کو چلا ہوں ڈھونڈنے جو ابھی ملا نہیں

## موعود یوسف

صدیق دیندارچن بسویشور چونکه قادیان ته تللو سره د غلام احمد قادیانی د علمی خزانو نه کافی استفاده کړې وه ، چه دهغې د وجه نه اسرارِ نبوت په دوی باندې منکشف شوی وو ، نو ځکه اوس د نبوت په دعوې کولو کښې څه ناوخته وو ، بس حیدرآباد ته رسیدلو سره ئې دعوی اوکړه ، زه یوسف موعود یم ، مامور من الله چن بسویشور یم ، اودخپلې دعوې د وضاحت دپاره ئې یو کتاب د «خادم خاتم النبیین» په نوم سره اولیکلو چه په هغې کښې ئې اکثراو زیات د مرزا غلام احمد قادیانی په الهاماتو او پیشنگوئیانو سره خپله دعوه مضبوطه کړې ده ، تاسو هم یوڅو اقتباسات اوریدلو سره د قوتِ دلیل اندازه اوکړئ:

«اوس حق راغلو» هغې طرف ته حضرت صاحب (مرزا غلام احمد قادیانی) اشاره کړې وه چه نرخوبوري څوک د روح القدس نه تائید موندلو سره اودریدلې نه وی نو تول په شریکه کار کوئ اودهغې نه پس دهغه اتباع کول ، هم په دې کښې نجات دې ، دهغه کار دپاره ئې پخپل جماعت

کښې شپه او ورځ د دعا کولو دپاره وټیلي وو ، شعر:

عید منائیو اے احمدیو تم سب مل کر منتظر جس کے تھے آج وہ موعود آیا (۱)

« په تېرشوؤدریو کالوکښې د میاصاحب په نوم ما ډیر خطونه ولیږل او بار بار مې ورته ولیکل چه د دکن د اولیاء الله (هندوسادهووغیره) کتابونه چغې وهي چه یو سړی به په شمال کښې پیدا کیږي چه دهغه نوم به محمود وي ، د غلام احمد قادیاني په چوکۍ باندې به کینی .

ددې نه پس ئې نور هم تفصیل ذکرکولوسره بشیرالدین محمود لره د هندوانو د کتابونو نه د موعود انسان ثابتولو کوشش کولوسره خپل متعلق لیکلي دي چه:

« چه د هغه اصلاح به صدیق دیندار چن بسویشور کوي » (خادم خاتم النبیین ص ۱۰۹) از دیندارچن بسویشور .

اوګورئ د یوسف موعود دعوی لږ نور وضاحت سره فرمائي

« د حضرت مرزا (غلام احمد) صاحب په بشارت کښې چه څومره صفتونه د یوسف موعود راغلي دي هغه ټول کمال درجې سره په ماباندې صادق راځي ، (خادم خاتم النبیین ص ۵۸)

ددې نه پس هم په هغه کتاب کښې ص ۴۸ نه ص ۲۸ پورې د شپې دوه بجې د یو بناسته جینۍ دهغې په بستر باندې د سملاستلو واقعه ذکرکړې ده ، او آخر کښې یې یوسف علیه السلام باندې دخپل فضیلت شپږ وجوه ذکرکړې دي:

د یوسف موعود دنیاته راتللوسره د خلقو د اصلاح کولو روایت د هندوانو د کتابونونه یا بیا د مرزا غلام احمد قادیاني د الهاماتو نه څوک پیش کوی نو پیش دې کړي ، قرآن ، حدیثو اود شریعت په کتابونوکښې خو دهغه نوم او نښان هم نشته دې ، شعر

سر خدا که عابد وزاہد کسے نگفت! درحیرتم که باده فروش از کجا شنید

چه کله صدیق دیندار په هندوانوکښې دچن بسویشور کیدلو دعوی اوکړه ، نو په هغه سلسله کښې ئې اولیکل چه:

« دکن کښې د یو مامور انتظار تقریباً د اتو کالو راسې راروان دې او په هغه شورشغب سره چه د کرناټک هر بچې واقف دې ، دومره انتظار دیومامور په مسلمانانو کښې نشته دې ، په دومره کثرت سره نبئي بیان کړې شوی دی چه د مهدی او مسیح هم نشته» ، (خادم خاتم النبیین ص ۱۱)

اونور هم واورئ او د چن بسویشور صاحب علم کلام کښې د مهارت هم شاباشې ورکړئ .

« خما د ماموریت د انکار په صورت کښې یو سوال پیدا کیږي ، که چرته هغه په موعود کښې نه وي نو بل یو پیش کړئ ، (خادم خاتم النبیین ص ۵۹)

۱ - دلته « مردود » هم بنه جسپان کیږي ، دجال مردود هم دې او موعود هم دې .

صحیح اوفرمائیل حضرت والا ، څنګه چور نظر دې ، « خانه خالی را دیومی گیرد» دماموړ وخت په شان اهم عهده خالي پرته پاتې کیدل زیب نه ورکوی . داسې معلومیږی چه دجناب په شان عالی کښې شاعر وثیلی دی ، شعر.

دل نفس کا تابع غفلت میں دنیا کی حقیقت کیا جانے
امڈے ہیں غرب امیدوں کے طوفان ہیں ہیارمانوں کے

تھی عقل زباں پائے اکبر او عشق پہ رکھی ہم نے نظر
ممتاز رہے ہشیاروں میں سرخیل رہے دیوانوں کے

## د یوسف موعود کیدلو دعوې یو بل اړخ

الله دې وکړی چه دا لاندې دعوی هم ستاسو په فکر کښې راشی ، خعغ اورئ او سرخوزوئ :

« هسې خو د جلال په لحاظ سره موسی هم وی او داؤد علیه السلام هم ، د مسیح موعود په عبارت کښې ددې دوارو نمونه ولې رانه غلل ؟ ددې وجه داده چه یوسف د مصر بادشاه وو ، هغه چه په کوم قوم باندې حکمرانی کوله هغه عربي النسل قوم وو ، د اسلام د ظهورنه وراندې په دوه زرو کالو کښې دئنه هغه ټول قوم د هندوستان جنوبی علاقی ته کښې رسیدلی وو ، دوی په شرک باندې قائم وو . په هغوی کښې د یو رسول بشارت راروان وو چه هغه ته شنمکهه اوتار وائی . د شنمکهه اصلی معنی د نفس اماره مقابله کولووالا ده ، حقیقت کښې دا د یوسف تعریفی نوم دې ، قوم لنگایت کښې د شنمکهه څما نه ډیر وراندې ۲۷ خلې راتلل منلې کیږی او دا آخری ظهور دې . د نن نه اته سوه کاله وراندې اولیاء الله (هندوسادهو) هغه لره د دیندار چن بسویشور په نوم سره مسمی کړې دې ، (دعوت الی الله ص ۲۸ از دیندار چن بسویشور)

محترمو لوستونکو ! څه پوه شوئ ؟ حضرت یوسف علیه السلام په مصر کښې صرف یو ځلې نه دې راغلې بلکه د چن بسویشور په قول دهغه نه وراندې ۲۷ کرته هغه د هندوستان په قوم لنگایت کښې تشریف راوړې دې ، اوس اته وېشت کرته یو هندو د چن بسویشور په شکل کښې راشی نعوذبالله من شرذلک ، د الله پیغمبراود هندو په شکل کښې ، العیاذ بالله ، یاد ساتئ چه دا د دعوؤ رومبنئ درجه ده ، وراندې تللو سره په خپله حضرت یوسف علیه السلام باندې خپل فوقیت اوچتوی ، د خاموشئ اود گوتې په خوله پاتې کیدلو نه سوا څه چاره نشته، چه خبره په فکر کښې راشی نو څه عرض هم اوکړې دلته نو شعر :

رنج آسماں میں ہے نہ راحت زمیں میں ہے
اپنے ہی حسن کا جوش ہے سب کچھ ہمیں میں ہے

خپلو قارئینو دوستانو ته بس دومره وئیل ضروری گنم او ددې نه زیات د یوسف ذوزان تعارف
ځما ناچیز نه نه شی کیدلې او هغه داچه چه څومره اندازه ستاسو په ذهن کښې د حضرت یوسف
علیه السلام حسنِ مبارک وی هغومره د چن بسویشور د بدصورتئ اندازه اوکړئ او دا حقیقت
دې مبالغه کول نه دی دهغه جهنم ته د داخلې څه ډیره موده نه ده تیره شوې دهغه کتلو والا اوس هم
ژوندی دی . شعر : برعکس نہند نام زنگی کافور

## مهدی اخرالزمان

کوم سړې چه د نبی جوړیدلو صلاحیت لری دهغه دپاره مهدی آخرالزمان جوړیدل څه مشکل
دی چه هر کله په دې سلسله کښې یو خوب هم دتائید په طور په نظر راغلې وو ، وائی :
حضورصلی الله علیه وسلم ځما طرف ته په گوتې سره اشاره وکړه او عوامو لره یې مخاطب کړل
او وې فرمائیل چه ترڅوپورې یو سړې په هغې کښې فنا نه شی هغه ما پورې نه شی رارسیدلې »
(خادم خاتم النبیین ص ۸)
ځما آقا صلی الله علیه وسلم طرف ته د دروغو خوب نسبت کولو سره خو له آسمان نه ورته سند
ملاؤ شوې وؤ ، اوس خلقو ته دهوکه ورکول دهغه د چپ لاس کار وو ، په داسې صورت کښې
دعوائې مهدیت او بیعت رضوان اخستلو کښې څه څیز مانع وو ؟ چه کومو ساده مسلمانانو د
حضورصلی الله علیه وسلم نوم مبارک سره بشارت واوریدلو خپل جان اومال ئې ټول قربان کړو ،
مهدی منلو سره ئې بیعت اوکړو ، واورئ د چن بسویشور خپله وینا :
«هیلی کښې یو زنانه ځما وعظ اوریدلو ،د روحانیت دومره اثر اوشو چه چرته گوری چن
بسویشور په نظر ورځی او هریو آواز چن بسویشور دې ، که چرته چرگ آذان وکړی نو چن
بسویشور وائی ، او ماشوم هم ژاړی نو هم چن بسویشور وائی ، که د پولئ دپرق آواز اوری نو هم
د چن بسویشور آواز راځی ، یو څو ورځې هم داسې حالت وو ، په دې معامله کښې هغه زنانه او
ویریدله ، خپل خاوند سره ماته راغله ما بیعت اخستلو سره ورته دعا اوکړه ، تراوسه پورې هغه
ښه ده ، ډیر خلق دی چه ورروسته له وعظونو یې ځغه پورته شی چه تاسو مهدی ئې ، بعضو مهدی
منلو سره بیعت اوکړو ، (خادم خاتم النبیین ص ۴۸)
هم داسې په هغه کتاب کښې دخپل روحانیت یوبله واقعه بیانولوسره لیکی :
« هغه ( یوه جینئ ) ځان جوړولوسره په شپه کښې ماته راتللوسره نزدې شوه» دادی د مهدی
آخرالزمان د روحانیت کرشمې ، شعر: درواکہ راز پنہاں خواہد شد آشکارا
ستاسو څه قصورنشته دې اصل کښې اسلام لره د پریخودلو کافی موده تیره شوې ده ، لاس
یاد نه دی پاتې شوی چه مهدی څه وی ، پس د فکر غلطی ده بیچاره هم دا اوگڼل چه مهدی

آخرالزمان به هم ددې قسم یوخه وی . «انا الله وانا الیه راجعون» ، شعر:

کس چمن میں نشیمن یہ نہیں یاد مجھے گھر کو چھوڑے ہوئے مدت ہوئی صاد مجھے

تعجب په هغه کم عقلانو باندې نه کیږی ، خکه چه هوس راتللو سره د تولو نه رومبې وار په هوش باندې کوی ، چه هر کله عقل لاړو نوبیا ژړا څه فایده کوی ، مګر تعجب په هغه مسلمانانو ورونو باندې ضرور کیږی چه د داسې خرافاتو وئیلو والو په مخکښې لاس په نامه په ادب سره اودریږی او هغه لره خپل رهبر منی مګر «لکل ساقطة لاقطة» قانون باندې دهغه نه بغیر عمل ناممکن وو. شعر:

گردش چرخ بدل دیتی ہے دنیا کا طریق ہو ہی جاتے ہیں سب اس شعبدہ پرواز کیساتھ

## د تازه ګل غوړیدل

«که چرته زه د احمدیانو مامورِ موعود نه یم نو بل څوک اوښائې چه په عینِ وخت یعنې ۱۹۲۴ء کښې راغلو ، که چرته د میا (محمود) صاحب د مامور کیدلو انتظار وې نو هغه بالبداهة غلط دې رومبې خو په دې بنا باندې غلط دې چه مامور کله هم د یو زبردست جماعت خلیفه نه وی ، خکه چه د مامور سره کیدلو والا ته ایمان بالغیب او په امتحاناتو باندې تیریدل وی او سوا ددې نه حضرت (مرزاصاحب) د یوسف موعود دپاره ئې نطفه او علقه لیکلې ده او لیکلی ئې دی چه هغه به معمولی انسان وی او ستاسو نظرونه به دهوکه خوری او هم دا سنت الله دې ، په داسې صورت کښې نه خواجه کمال الدین صاحب اودریدلې شی اونه مولانا محمد علی صاحب او نه میا محمود صاحب دا تول مشهور انسانان دی ، که چرته دا خلق ددې کار دپاره مامور کړې شی نود الله په سنتو کښې فرق راځی ، هم ددې وجه نه الله جل شانه دخپلو سنتو مطابق د جماعت احمدیه د ابتلاء په زمانه کښې د صدیق انتخاب اوکړو ، د «دیرآمده ز راه دورآمده» وعده ئې پوره کړه ، ددې تفصیل ذکربه آئنده راځی .

د پیشنګوئې هرلفظ په فقیرباندې صادقیږی ، رومبې خو دا نشان چه هغه د نطفې علقې په شان دې ، هغه لره به کتلوسره دخلقو نظرونه دهوکه خوری هغه داسې چه د پیدائش په لحاظ سره هم خما دا حال دې چه زه حد درجې کمزورې پیدا شوې یم ، د ژړا آواز قدرې نه وتلو ، پلار مې دا اووئیل چه دا ماشوم به څه ژوندې پاتې شی په دیران ئې ګذارکړې ، (کاش چه د پلار خبره ئې منلې شوې وې) «رشیداحمد» مورئې اووئیل چه تر اوسه خو په کښې سا شته لو ئې پریږدئ ، الله د جماعت احمدیه نه کار اخستل غواړی ، په هغوی کښې مخلص خلق ډیر دی ..... الله هغه جماعت لره پریخودل نه غواړی، بیا دوباره فضل شوې دې ، حضرت مرزا صاحب لیکلی دی چه ترڅوپورې چه یو روحِ حق اودریدلې نه وی تول په شریکه کار کوئ ، دهغه روح حق طرف ته شئ او هغه

صدیقی رنګ کښې دې ، دنطفې او علقې په شان دې ، حقیقت به په نظر راشی دوکه ونه خورئ ، غرض په دې وخت کښې چه څه کیږی هغه د الله وعدې پوره کیږی ، (خادم خاتم النبیین ص ۱۸)
جناب صحیح اوفرمائیل واقعی تاسو د احمدیانو (قادیانیانو) مامورِ موعود ئې څوک چه شک کوی هغه کافر دې ، ((اشهد انك من القادیانیین ومتلبهم لعنة الله علیك وعلی شیخك غلام احمد وعلی من حذا حذوکم الی یوم التعادواخلکم الله اخل عزیز مقتدر))
مونږ ته ډیر افسوس اوشو ستاسو د خلیفه وحیدبن سعید قلمی کتاب (( دختم نبوت قرآنی مفهوم )) په کتلوسره هغه صرف خلقو ته د دوکې ورکولو دپاره تاسو لره او ستاسو جماعت لره د قادیانی جماعت نه جدا بلکه بیزاره ښکاره کړې دې ، بې شک تاسو د قادیانی نه کیدلو د الزام نه بری یئ ، بلکه تاسو پوخ قادیانی ئې .
چن بسویشور ته څما مشوره ده چه هغه خلیفه لره چه کورنګی ۱۱۲: ۳ کښې اوسیږی زر دې لرې کړی اوکه نه نو دې ستاسو د مذهب ختمولو دپاره تیار دې ، شعر :
ان خادم دلوں کے عنصر پر بنیاد نہ رکھ تعمیر نہ کر
چن بسویشور دخپل ماموروخت کیدلو د دعوې په سلسله کښې د هندوانو د کتابونو نه هم بعضې پیشنګوئیانې درج کړی دی .
((شیور به پخپله د دنیا یو سل یو ذاتونو لره دیوکولودپاره راځی ، د لسو اوتارو په رنګ کښې به پخپله اس باندې سوریدلوسره په ملکونو باندې ګرځی ، بسوپربهوهغه لره انسان ګڼلوسره او انکارکولوسره دهغه سره خبرې مه کوئ ......دائم قائم اوسیدلو والا پرماتما پخپله راکوز شوې دې ، معجزې به ښکاره کوی ...... د ایشو روپ والا ......دنیاکښې ایشور راځی څه ناواختوالې به نه وی ....... د دنیا ایشور چن بسویشور به د دنیا لوبه او دهوکه ښکاره کوی ، شګلنه زمکه باندې به راکوزیږی )) (دعوة الی الله ص ۱۷ ، ۱۸)
اوګورئ ، چن بسویشور قائم دائم اوسیدلو والا دې یعنې هوالحی القیوم دې ، ډیر ښه ، دا عجیب الحی القیوم دې چه ډیره موده ئې اوشوه جهنم ته داخل شوې دې .
شیو لره خو مونږ د وراندې نه پیژنو چه هغه غلام احمد قادیانی دې ، د ایشور حضرت تشریح اوکړه چه هغه چن بسویشور دې ،مګر دا شنکراو پرماتما په سوچ کښې نه راځی ، آیا دا څه بلاګانې دی ، هسې خو حسنِ ظن هم دا ساتو دې چه هغه هغه جهان والا دې ، او لس اوتار چه دهغې په رنګ کښې به د ایشور صاحب ظهور کیږی او هغه به په ملکونو باندې ګرځی ، دهغې تشریح اوس پریږدو ، دهغې په غوته باندې به یو بل دوست انشاء الله پوهه کړی .
ښه د بسوپربهو دچا چه دلته ذکر دې چه هغه به دوی لره انسان اوګڼی ، هغه خو واقعی د

ډيرلوئ جرم ارتکاب اوکړو ، بربنډه انسانيت لره انسان ګڼل دا خو واقعي د هغه ناپوهي ده ، مګر دا معلومه نه شوه چه دا مردِ مجاهد ښوپربهو څوک دې ؟

## په حضور صلی الله عليه وسلم باندې تهمت

د نبوت او مامور کيدلو په تائيد کښې که چرته د غلام احمد قادياني الهامات اود هندوانو په پيشنګوئيانو باندې ئې اکتفاکړې وې نو تعجب به نه وې ځکه چه هغه هم په دې برخه کښې شمير دی ، مګر حضورصلی الله عليه وسلم باندې يې هم دځپل تائيد کوم تهمت اولګولو په هغې کښې د دروغو انتها کړې ده ، ليکی:

« حضورصلی الله عليه وسلم چه کوم تاريخ پيدائش ښما ښودلې دې او حالات ئې ښودلی دی هم هغه د اولياءِ دکن (سادهوڅ) ښودلی دی ، او هغوی چه کوم تاريخ پيدائش او حالات ښودلی دی هم هغه د مرزا صاحب په کتابونو کښې په نظر راځی » (خادم خاتم النبيين ص ۱۲)

ښه ښکاره دروغ دی ، حضورصلی الله عليه وسلم دا چرته فرمائيلی دی ؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم باندې دا دومره لوئ تهمت دې چه په دې باندې د لوټې نه لويه سزا هم تجويز کړې شی هغه ددې جرم په نسبت کمه ده ، شعر

سر خدا که عابد وزاہد کسے نگفت　　　　در حیرتم که باده فروش از کجا شنید

غلطئ سره يی هغه ته باده فروش اوويلو ، اوکه نه نو دې باده نوش دې .

## د مثيلِ موسی عليه السلام کيدلو دعوی

مسيح موعود هم ښما نسبت اوفرمائيلو چه ماته الهام شوې دې چه يو موسیٰ دې زه به هغه لره ښکاره کوم ، (دعوة الی الله ص ۲۱)

ربښتيا وائی : زه هم تائيد کوم چه دوی مثيلِ موسی بلکه عينِ موسی دې آيا معلومه ده چه کوم موسی ؟ هم هغه موسی دچا په باره کښې چه ارشاد دې ، شعر : (فموسی الذی رباه جبريل کافر).

ستاسو هيڅ قصورنشته ، د مرزا په الهام باندې پوهيدلوکښې غلطی شوې ده او دا اجتهادی غلطی ده ، ستاسو د شيخ الشيخ حضرت مرزا عليه ماعليه نه هم داسې اجتهادی غلطی شوې وه ، شيطان په يی زړه کښې وهم واچولو نو هغه پوهه شو چه دا وحی نازليږی .

## هر رنګ يی چه غواړې په هغه جامو کښې پټ دې

زياتې يی دا اوکړو چه کله د نبوت خواهش زيات شو نو دځپل ځان دپاره ئې مختلف نومونه تجويز کړه او کيدل هم پکاروو ، ځکه چه صرف د چن بسويشور يوسف موعود ، مثيل موسی ،

مصلح موعود ، ماموروقت ، شنکر اود پرماتما وغیره په دعوؤ سره چرته هغه ته تسلی کیدله ، چنانچه دخپلو الهامی نومونو اعلان ئې اوکړو :

«لهذا دپنځه ویشتو کالو نه څما سره مکالمهٔ الهیه جاری ده او څما اعزازی نومونه دادی :»

« اې پیران پیر، محمد ، امام الغیب ، صدیق ، کلیم الله ، سپه سالار ، محبوب ، ته محمدجلال ئې ، مهدی آخرالزمان ، دهن پتی ، دیندار ، محی الدین ، صادق جنگ ، سری پتی ، اې تاج الاولیاء ، فاتح هندوستان ، نورمحمد محمودصدیق ، جری الله ، اې د نبی فرزند ، سکندراعظم ، عبدالقادر ، عبدالله موسی ، سلیمان ، مولانا ، نګهبان ، اې عیسی ، اې پهلوان ، عادل میراصاحب اې څما د آسمان ستورې ، د بی بی فاطمې لعل ، اندرجیوتی ، څما صاحبرچراغ دهر، سلطان نصرالدوله ، کروناتهه ، یا منصور ، نور هم ډیر نومونه دی ، ددې نومونو نه علاوه ماته بارباراواز اوکړئ شو په یوسف سره او په صفا الفاظو کښې الله تعالی اووئیل یوسف دې باباصدیق او اووئیل هم ته ئې چن بسویشور» (دعوة الی الله ص ۳۵)

## د یوې ونې نیولې (میوې)

خلیفه د قادیان په باره کښې لیکلی دی :

«اې خلیفهٔ جماعت احمدیه زه تاسو لره د ډیرې مودې نه پیژنم چه تاسو متقی ضرور یئ»
(خادم خاتم النبیین ص ۷۳)

په همدې صفحه کښې بی نور تقدیس بیانوی :

« هغه وخت به څه حال وی چه کله اولوالعزم دکن ته تشریف راوړی ، زه میا محموداحمد صاحب ته د دکن دبشارتونو په بناباندې خلیفهٔ جماعت احمدیه منم ، اګرچه د لاهور جماعت مخالف وی . »

حقیقت دادې که د صدیق دیندارجماعت وی یا د قادیانی یا د لاهوری ټول د یو ونې بار او میوې دی ، د چن بسویشور اودهغه د کتابونو نه چرته چه قادیانیت ته تقویت رسیدلې وو هغلته هم دهغوی په ذریعې د لاهوریت پرچار وو ، چنانچه د محمد علی لاهورې په باره کښې لیکی :

«حضرت مولانا محمدعلی امیرجماعت احمدیه په یو خط کښې ماته اطلاع راکړې ده چه تاسو نه څما د جماعت هر فرد خوشحاله دې» (ذکر شوې حواله)

هم داسې یو خط د قادیان نه راغلې دې ، هغه اوس ذکر کوو :

« محترم : السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته :

عرض دادې چه د مجلس د مشورې نه پس د آئنده کال په پروګرام کښې دکن طرف ته به د وفد لیږلو کوشش کیږی ..... بهرحال تاسو کار کوئ ، د الله تعالی وعدې به پخپل وخت باندې پورهٔ کیږی . د دې نه علاوه دا عرض دې چه د مال د تنګوالی په وجه هغه علاقې طرف ته توجه اونه

کړې شوه ... مهربانی وکړئ د کار راپور رالیږئ اود مشکلاتو او نتائجو نه مونږ خبروئ ۔

والسلام ۔

دستخط عبدالرحیم نیر

نائب ناظم دعوة وتبلیغ قادیان، مهرقادیان (منقول ازکتاب خادم خاتم النبیین ص ۸ ۷)

دکوم کتاب نه چه حواله ورکولې کیږی هغه په خپله د بانی انجمن چن بسویشور تصنیف دې ، دا اقتباسات بالخصوص د مذکوره خط نه دا خبره صفا ښکاره کیږی چه دیندارانجمن باقاعده د یو شاخ په حیثیت سره خپل مرکزِ قادیان کښې د کار راپور او نتائج لیږل ، ددې وجه نه د جماعت د بعضې افرادو دا وئیل چه زمونږ د قادیانیانو سره نه نظریاتی څه تعلق شته او نه څه بل قسم . بدیهی البطلان دی .

## د دیندار انجمن والو امتحان

د عوامو دهوکه کولو دپاره د دیندار انجمن مبلغین دا وائی چه زمونږ د قادیانیانو سره اودهغوی د عقائدو سره هیڅ تعلق نشته دې ، او زمونږ د انجمن بانی د چن بسویشور هغه عقائد نه وو کوم چه د مرزا غلام احمد قادیانی وو ، او دا چه هغهٔ د نبوت مدعی نه وو وغیره . دا ټول فریب او رنګ سازی ده ، کوم حده پورې چه دهغوی د مرزائیت دواړو جماعتونو قادیانی او لاهوری سره د تعلقاتو معامله ده هغې سره متعلق مونږ وروستو خود د جماعت د بانی د کتابونو نه ثابته کړې ده چه دهغه جماعت د قادیانی د جماعت دیو شاخ حیثیت لری ، قادیانیانو سره د چن بسویشور اتفاق او غلام احمد قادیانی لره د مسیح موعود وغیره منلو تصریحات هم وروستو تیرشوی دی ، اوپخپله د بانی د نبوت دعوې سره متعلق هم بعضې عبارتونه وړاندې تیرشوی دی او بعضې آئنده راروان دی ، دا داسې حقائق دی چه ددې انکار په یو طریقه هم نه شی کیدلې ، که چرته واقعةً دهغه مبلغینو حضراتو دې عقائدو سره هیڅ تعلق نشته دې نودا د خوشحالئ مقام دې ، مګر صرف دومره وئیل کافی نه دی ، بلکه کومو خلقو چه بشمول چن بسویشور د نبوت دعوی کړې ده هغه ټولو ته علی الاعلان تقریراً وتحریراً کافر اووائې اودهغوی کتابونو لره په میدان کښې اوسوزوئ ، دهغوی د جماعت نه دخپل براء ت اظهاراوکړئ ، که چرته دې دپاره تیارنه ئې بلکه د بانی انجمن په تابعدارو کښې خپل ځان شمیرکوئ ، دهغوی تحریک لره وړاندې بوتللو کښې مصروف عمل پاتې کیږئ ، دهغوی کتابونو لره چاپ کوئ او اشاعت ئې کوئ ، نوښکاره ده چه صرف ژبه سره دا وئیل معتبر نه دی چه زمونږه دهغوی د عقائدو سره هیڅ تعلق نشته دې ، بلکه څنګه چه بانی جماعت چن بسویشور دخپلو عقائدو کفریه په بناء باندې دجال اود اسلام د دائرې نه خارج شمیرلې کیږی هم دا حکم به دهغه هم وی .

قارئین حضرات دې ددې تجربه اوکړی چه کله هم د ګډ په صورت کښې یو شرمنخ لره اوګوری ،

د اوږدو ویختانو او شیې پگړۍ والو یو خضرصورت منافق سره ملاقات اوشی نو اولاً خو دهغه په ملعونه چهره باندې به دهغه د زړه تیاره ښکاری ، د زیاتې تجربې دپاره دهغوی نه د غلام احمد قادیانی او ختم نبوت سره متعلق پوښتنه اوکړئ نو هغوی به مرزا قادیانی سره د سختې بیزارۍ او ختم نبوت باندې به د ایمان تقریرکوی ، مگر که تاسو دهغوی نه د ملعون قادیانی اود چن بسویشور د تکفیر د اعلان مطالبه اوکړئ نو هغوی به هیچرې دې ته تیار نه شی .

د نن نه تقریباً شل کاله وړاندې غالباً ۱۳۷۲هجری کښې ماته د دارالعلوم کورنگی نه اطلاع ملاؤ شوه چه د لانډهی د ماچسو فیکټرۍ په جمات کښې د دیندارانجمن یو منافق امام دې ، ماد دارالعلوم نه یو طالب علم ته د چن بسویشور د کتابونو حواله مهیا کولوسره دجمعې په ورځ هغه جمات ته واستولو هغه د جمعې د مونځ په وخت عوامو وړاندې دهغه مردود امام د نفاق پرده پرانیستله خلقو هغه ملعون لره انتهائی ذلت سره دجمات نه اوویستلو ، هغه په منډه منډه ماته راغلو او څما د اعتماد جوړولو ئې کوشش اوکړو چه دهغه د دیندارانجمن او قادیانیانو سره هیڅ تعلق نشته دې او هغه پوخ مسلمان دې بالاخرده پورې ئې اوونیل که چرته زه وړاندې مسلمان نه ووم نو اوس ستاسو په وړاندې اسلام قبلوم او مرزا قادیانی او چن بسویشور ته کافر وایم تاسو څما امامت په هغه جمات کښې پخپل حال کړئ ، ما اووئیل چه تاسو د جمعې په ورځ هم هغه جمات کښې دا اعلان اوکړئ چه : « زه رومبې مرتد ووم ، اوس دوباره ما اسلام قبول کړو ، زه غلام احمد قادیانی او صدیق دیندارچن بسویشور اودهغه جماعت لره کافر او مرتدگنم زه به آئنده دهغوی سره هیڅ قسمه تعلق نه ساتم»

همدارنگه دا اعلان اخبارجنگ او انجام کښې هم شائع کړئ ، ددې نه پس به ته مسلمان گڼل کیږې ، باقی پاتې شوه د امامت مسئله نوکه نن یو سکھ اسلام قبول کړی او فوراً هغه ته د امامت منصب هم ورکړې شی دا نه عقلاً قابلِ تسلیم ده اونه شرعاً ، یوکاله پورې به ستاد حالاتو جائزه اخستلې کیږی اود دیندارانجمن نه د تعلقاتو قطع کولو اطمینان کیدلو نه پس به تا لره امام جوړول کیږی .

هغه منافق چه کله اوکتل چه دلته دهغه هیڅ طاقت نه چلیږی نود تیختې لاره ئې اختیاره کړه ، چرته په یوبل جمات کښې به ئې د امامت په صورت کښې د عوامو په ایمان باندې لوټ مارشروع کړې وی ، شعر

راہزن ، ڈاکو ، لٹیرے ، خودغرض حق ناشناس

بھیڑیے پہنے پھرتے ہیں بھیڑوں کا لباس

## دحضورصلی الله علیه وسلم دویم بعثت

هغه په خپل کتاب مهرِ نبوت کښې لیکی:

« الحمدلله اعلانِ نبوت د احمدیانو د جانب نه د مسیح موعود د شهرت باعث جوړشو او دا شهرت د قیامت د قائمیدلو یوعظیم الشان حجت وو ، هم دا ایقانِ قیامت د «بعثتِ ثانی» په ثبوت کښې بینات جوړیدلو سره د همالیه غره په شان اوچت او مستحکم ولاړ دې » «مهرنبوت ص ۵۲».

په دې عبارت سره که تسلی نه وی شوی نو نوره تشریح یې واورئ:

« چه کله «بعثتِ ثانی» کښې دهغه پلار حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم تشریف راوړو هغه لره پریخودلو سره احمدیانو د ولدالله حقیقت لره قائم ساتل اوغوښتل چه هغوی لره نې په فتنو کښې مبتلاکړل » «مهرنبوت ص ۳۲».

ښاپه خیال لوستونکی حضرات به پوهه شوې نه وی ، دا دیو مقدر سوال جواب دې ، مطلب داچه څوک وئیلې شی چه ته نبی برحق ئې نو دا ای احمدی «قادیانی» تا ولې نه منی ؟ جواب ئې دا ورکړې دې چه څنګه د حضرت عیسی علیه السلام نه پس حضورصلی الله علیه وسلم تشریف راوړو نو اکثرو عیسائیانو اونه منلو ، هم دغه شان مسیحِ موعود نه پس چه کله دوباره د حضورصلی الله علیه وسلم بعثتِ ثانی د چن بسویشور په شکل اوشو نو هغه احمدیانو هم د عادتِ سابقه په شان اونه منلو ، راروان عبارت ددې نوره وضاحت کوی اوګورئ:

«په نورو الفاظو کښې دهغه ولی په وجود کښې به د قیامت زمانې ته نزدې حضورصلی الله علیه وسلم پخپله تشریف راوړی ، ددې حقیقت د وجه نه دې ته بروزِ محمد وئیلې کیږی ، هم دهغه وجود په نشاندهئ کښې به مسیح ښکاره کیږی چه د « انه لعلم للساعة » حقیقت ښکاره کولو دپاره د ماشوم په شان څه نه څه وئیلوسره عقائدی طوفان راپورته کوی ، د قیامت علم ورکولودپاره دهغه بدنامی مقدر کیږی » «مهرنبوت ص ۴۳».

لوستونکی حضرات په دې عبارت کښې آخری فقره « بدنامی مقدرکیږی » لره دوباره اوګورئ آیا تاسو ته داخوښه ده چه خدانخواسته ستاسو بدنامی مقدر وی؟ یقیناً نه ، نو آیا چه دخدائ نبی بروزِ نبی شی نو الله ته دا خوښه ده چه هم دهغه بدنامی مقدر وی ، ښکاره خبره ده چه مقدر نه وی، بنه اوشو پخپل قلم سره ئې منصبونه تقسیم کړل ، چه د الله مقرب او نبی وی بعضې موقعو باندې الله تعالی هغه په آزمائش کښې اچوی ، شعر

آزمائش ہے نشان بندگان محترم　　جانچ ہوتی ہے انہی کی جن پہ ہوتا ہے کرم

اوچه کوم نبی نه دې بلکه متنبی د «دروغو نبوت دعویدار» وی د الله تعالی د جانبه دهغه دپاره

بدنامی مقدر وی»، چن بسویشور ته دخپل حقیقت علم خو وو نوځکه ئې حقیقت ښکاره کړو هغه داسې بروزِ محمد دې چه بدنامی دهغه دپاره مقدر ده، سود الله وجهه یوم القیامة.

## د بروز محمد تشریح

تیرشوی عبارت کښې د بروزمحمد «صلی الله علیه وسلم» تشریح اگرچه تیره شوه چه د «هغه ولی په وجود کښې حضورصلی الله علیه وسلم پخپله راځي» لیکن دهغې ئې نوره تشریح په اشعارو کښې کړې ده، هغه هم وړاندې کیږي:

بروز محمد ہے نبیوں کا حاکم

ہے مظہر خدا کا قرآن کا ہے عالم ہے قاضی حشر، حوض کوثر کا قاسم

(مهرنبوت ص ۴۳)

د دوارو جهانو سردار صلی الله علیه وسلم خپل ځان ته قاضی حشر نه دی فرمائیلی سیدولد ادم خو ئې فرمائیلی دی لیکن حاکم الانبیاء ئې نه دی فرمائیلی، ددې وجه نه چه دلته د بروزمحمد کومه تشریح کړې ده هغه داسې بروز دې چه د حضورصلی الله علیه وسلم نه یې هم څه قدرِمنزلت زیات دې بلکه قاضی حشریا مالک حشرخو صفاتِ خداوندی دی، ددې وجه نه بلامبالغه د بروز محمد مطلب به دا وی چه هغه خدائ چه صفاتِ محمدیه سره د هندوچن بسویشور په شکل راغلې دې، هغه دا بنده ناچیز دې، شعر

جو چاہے آپ کا حسنِ کرشمہ ساز کرے خرد کا نام جنوں رکھدیا جنوں کا خرد

مذهب «چن بسویشور» کښې هغه دننه څه محال والې نشته ځکه چه دهغه په نزد دمسلمان درجه د نبی سره برابره ده، او چه کوم جامع الانبیاء وی هغه ښکاره ده چه کم نه کم خدائ خو به وی. د مسلمان او نبی درجه د برابره کیدلو په باره کښې پخپله د چن بسویشور الفاظ واورئ: شعر

نہیں کوئی مسلم ہے نبیوں سے کچھ کم (مہرنبوت ص ۱۱)

هم دا وجه ده چه هغه د یو نبی دعویٰ نه ده کړې او که نه نو دعامو مسلمانانو برابر به وې، العجب ثم العجب

## د بسویشور په دربار کښې د نبیانو اجتماع

شعر: ہوس نے کردیا ہے ٹکڑے ٹکڑے نوعِ انساں کو

د خواهش پوره کولو انتهاء وشوه، مامورِ وقت نه واخله تر مهدی آخرالزمان او یوسفِ موعود او نورو خیالی مراتبوپورې د رسیدلو نه پس اوس هم خواهش پوره نه شو نو دا افواه ئې شروع کړه چه ټول انبیاء ځما په دربارکښې حاضری ورکوی، فرمائی:

«بروزمحمد» نه مطلب بعثت ثانی کښې د آخرین منهم مالک او آقا دې ...
«هم دا وخت به د انبیاؤ د اجتماع وی ، چه کله ټول انبیاء جمع شی په هغوی باندې به حاکم یو امتی فنافی الرسول وی چه بروزِ محمد ورته وئیلې کیږی » (مهرنبوت ص ۴۴)
چه هرکله پخپله بروزمحمد شو د محمدصلی الله علیه وسلم بعثت ثانی دچن بسویشورشو په شکل کښې، د بیت المقدس په ځائ حیدر آباد دکن کښې انبیاءِ کرام جمع شو ، حاکم چن بسویشور مقررشو اوس د آسمانه نه د نزولِ قرآن خیالی تصور کښې هیڅ وقت نه لګیږی ، ددې وجه نه ارشاد دې:
علم قرآن چه کله خلیج عوج کښې د اولیاؤ د بعثت په زمانه کښې په تدریج سره په زرو کالو کښې دننه آسمان ته اوخیژی نو دوباره به هغه ذاتِ بابرکت تشریف راوړی ، هم هغه باندې به د قرآن علم نازلیږی » (مهرنبوت ص ۴۴)
عجیبه ده ، هغه قرآن چه دهغه نزول په حضورصلی الله علیه وسلم باندې مکه اومدینه کښې کیدلو ، نن د هندوانو په اوتارچن بسویشور باندې دهغه نزول حیدرآباد دکن کښې کیږی ، شعر:

وئے رے قرآن مظلوی تری

د بهائیانو کتابِ اقدس دنیاکښې د عمل دپاره راغلې وو ،د فضا سازګار نه کیدلو د وجه نه تختیدلوسره پټ شو ،که فضا سازګاره شی نو بیا به نزول کوی ، هغه د الله دښمن په نزد قرآن هم زرکاله پورې په آسمان کښې پټ وو ، اوس د چن بسویشور په موجودګئ کښې د حیدرآباد فضاسازګاره شوه نو هغه نازل شو ، شعر:

وائے ناکامی متاعِ عقل ہی غارت گئی

اے د خدائ دښمنه ! د عقل علاج اوکره چرته د الله کتاب هم تیخته کوی ، کتاب الله خو دې دپاره راغی چه د بې عملئ په زمانه کښې خلق دهغه نه عمل یاد کړی .

## د بی ادبی انتهاء دې وګوره

اول یې د مسیلمۂ کذاب مرتبه واوریدله شاباشې یې ورکړو :
«دا فقیرفنا فی الرسول دخپل دننه خان نه د حضورصلی الله علیه وسلم قدسی طاقت لره بیکاره کوی ، چه دهغې د وجه نه څما وړاندې نه بلکه د حضوریه وړاندې ټول انبیاء د ګونډو په سر په ادب سره ناست دی . » (مهرنبوت ص ۲۲)
اومو کتل د «من توشدم تومن شدی» عجیبه اوغریبه مظاهره چه ټول انبیاء څما وړاندې د ګونډو په سر په ادب سره ناست دی ، مګر زه چونکه بروزمحمد یم ددې وجه نه په حقیقت کښې د حضور وړاندې انبیاء په ادب سره ناست دی ، دا عجیبه منطقی جمله ده ، نبوت هم خپل ایجاد !

منطق هم.

دا د مسلمانانو غیرت ته چیلنج نه دې نوځه دی ، د ټولو انبیاء کرامو علیهم السلام داسې توهین چه هغوی یوهندوکذاب ورانديږ په ادب سره ناست دی .. دهغه انجمن یوتصنیف هم د داسې قسم لغویاتو نه خالي نه دې ، ضروردې بدو حرکاتو په شاه یو بدبخته لاس کار کوی مگر . شعر :

سنبھل کے رکھنا قدم دشتِ خار میں مجنون

کہ اس نواح میں سودا برہنہ پا بھی ہے

## جنت نه بې کاره کور

تصورِ آخرت ، د جهنم ویره ، د جنت طلب دایو داسې څیزونه دی چه مسلمانانو ته عمل طرف ته دعوت ورکوی ددې وجه نه دهغه الله د دښمن په زړه کښې دا شرارت پیدا شو چه ړومبې هم ددې تصور خاتمه اوکړې شی دې دپاره چه وړاندې مختلفې دعوو کولو سره خپل خواهش پوره کړې شی او د آخرت تصور د زړه نه د ختمولو نه پس دنفس مسخر جوړیدلو سره دهغې خواهشاتو لره برداشت کړی ، ارشاد دې :

«چه کله په دنیا کښې دګناهونو زور شروع شی نو جنتی ارواحو ته غیرت راځی ، د الله په اذن سره د اولیاء الله په صورت راتللو سره کارکوی ، اوکه نه نو داخیال اوکړې شی چه جنتی خلق همیشه په جنت کښې وی ، هغه خو جنت نه شو بې کاره کورشو ، د بې کاره انسان د بې کارئ په باعث کیږی ، بیزاره انسان ته جنتی نه شی وئیلې کیدلې .» (معراج المؤمنین ص ۵۲)

مسلمانانو ورونو ! دې طرزِفکرباندې پوهه شئ ، دمرګ نه کامل انسان چرته ځی؟ آیا دوباره راتللو سره دګناهونو دنیا ته راځی؟ د واپس کیدلو نه وړاندې چرته وو؟ بې کاره کورجنت کښې . د چن بسویشور دعقیدې مطابق اوس د دیارلس نیمو کالو نه پس دحضورصلی الله علیه وسلم بعثت ثانی اوشو ، لیکن په هغه دیارلس نیموکالو کښې حضورصلی الله علیه وسلم چرته وو ؟ آیا نعوذ بالله په بې کاره کور کښې وو؟ که چرته نه وؤ نو اوفرمائې چه په دې درمیانه وقفه کښې چرته وو ؟

مسلمانانو په هوش کښې راشئ ! څه پوهه شوئ داڅه وئیلې کیږی ؟ چن بسویشور بکیږی د آخرت تصور غلط دې ، جنت بې کاره کور دې ، حضورصلی الله صلی الله علیه وسلم په بې کاره کورکښې اوسیدلې نه شی ، ددې وجه نه دوی صلی الله علیه وسلم دې دنیا ته په بله جامه کښې تشریف راوړې دې ، چه کله ستاسو نبی په هغه بې کاره کور کښې اوسیدلولره نه خوښوی نو تاسو د جنت په فکرکښې اخته کیدلو سره ولې حماقت کوئ ؟

دا مېږې د اسلام د جرړو په کټ کولوکښې څومره زیاتې مصروفه دی . او ظلم دپاسه ظلم داچه

دمسلمانانو نه چنده کولوسره د اسلام په خلاف دا سازش کیږی دي حالت کتلوسره زړه اودماغ بې قابوکیږی ، کاش چه الله تعالی لره وحده لاشریک او حضوراکرم صلی الله علیه وسلم لره خاتم النبیین منلووالا مسلمانانو په ملک کښې مسلمان حکومت ، د نبوت او د خدائ مدعیانو ، د الله تعالی اودهغه د رسول توهین کولو والو اودهغه متبعینو لره د بازار په مینځ کښې د مرګ عبرتناکه سزا ورکولو سر دخپل ایمان ثبوت ورکړي وې اوعوامو د حکومت نه داسې پُر زوره مطالبه کړي وې چه دهغه مردودو د وجود نه دپاکستان د پاکولو نه بغیر هغوی ته سکون نه راتللې ، مګر شعر

وائے ناکامی متاعِ کارواں جاتا رہا

کارواں کے دل سے احساسِ زیاں جاتا رہا

## راز ښکاره شو

اې اسلام باندې ځان قربانولووالا ! ښه پوهه شئ ، چن بسویشور ته دحضور صلی الله علیه وسلم سره مینه نشته چه دوی ته بروز او فنافی الرسول وئیلې کیږی بلکه دا سازش انګریز په ویر سوچ اوفکر سره تیارکړې دې ، چه کله هغوی اوکتل چه مسلمانانو ته دخپل پیغمبرسره ډیره زیاته مینه ده او هغې لره د کمولویې څه بل صورت په نظر رانه غلو نودهغوی نظرِانتخاب په دې باندې پریوتلو چه خلقو لره اول دا باور ورکړئ شی چه د حضورصلی الله علیه وسلم بعینه سره دخپلوټولو صفاتو په یو بل انسان کښې حلول کیدلې شی ، اوبیائې یو څو احمقان په دې دعوې باندې تیارکړل ، دې دپاره چه مسلمان دا اوګوری چه زمونږ نبی چه هغه باندې مونږ ځان قربانولو ته تیاریو هغه ددې اخلاقو او عاداتو مالک دې .

لیکن هغه بدماغ ته دا نه ده معلومه چه کوم منافق دی هغوی دهغه ملګرتیاکوی او اسلام ته دهغوی ضرورت نشته دې بلکه ښه اوشو چه دهغه په ذریعه صحیح اوغلط جدا شو اوچه کوم مسلمانان دی هغوی ته دحضورصلی الله علیه وسلم د صفاتِ عالیه او د اخلاقوحمیده درس رب العزت پخپل آسمانی کتاب قرآن مجید سره ورکړې دې . «وکان خلقه القرآن» (حدیث) د دوی اخلاق د قرآن مطابق وو .

دا سبق مسلمانانو ته په دومره اندازه یاد شوې دې چه په هیرولوسره نه هیریږی ، ستاسو د سازش صرف دا نتیجه راوځی چه کوم منافق د مسلمان په شکل کښې د اسلام دعویدار جوړ شوی . هغه جدا شو فلله الحمد علی ذلک .

## مجهہ اوتار

د چن بسویشور متعلق حقیقتِ حال خود دهغه د ژبې نه معلوم شو هغه خپل ځان لره د مسلمانانو پیغمبرنه دهندوانو اوتار وائی ، د مهرنبوت عبارت وړاندې کیږي :

« شته یودنیاکښې داسې نبی چه دهغه په دربار کښې انبیاء جمع وی ، د آدم نه واخله تر عیسی پوري ټول انبیاء او مجهہ اوتار نه واخله ترگوتم بدھ اوتار پورې ټول انبیاء جمع دی » (مهرنبوت ص ۲۳)

بیا هغه داسې نبی ثوک دې ، پخپله دهغې تشریح فرمائی :

« دا فقیرفنا فی الرسول دخپل داخل نه د حضور صلی الله علیه وسلم قدسی طاقت لره ظاهره وی ، چه دهغې د وجه نه ځما وړاندې نه بلکه د حضورصلی الله علیه وسلم په وړاندې ټول انبیاء په آدب سره ناست دی (مهرنبوت ص ۲۲)

وروستو ډیرو عبارتونو کښې دا بیان شوی دی چه هغه هندوانو سادوؤ ته اولیاء الله وئیلی دی مونږ ته په دې باندې تعجب کیدلو چه هندو ته یې اولیاء الله څنګه اووئیل ، مگر چه خپل ځان ته د هندوانو اوتار اووائی ښکاره ده هغه به هندوانو ته هم اولیاء الله وائی ، داسې تحریرونه کتلو سره بې اختیاره دهغه په عقل باندې ماتم کولو لره زړه غواړی ، مسلمانانو کښې دعوت کوی او خپل ځان لره د هندوانو اوتار ثابتوی مگر سوا ددې نه نورمونږ څه وئیلې شو چه شعر :

تجربہ فقط آسماں ہی نہیں  یہاں پر عجائب نظارے بہت
فلک پر ہی دمدار تارا نہیں  زمیں پر بھی دمدار تارے بہت

## هیڅ یو مسلمان (د دوی په عقیده) د نبیانو نه کم نه دې

په زړه باندې انتهائی زور کولوسره لیکم اوکه نه نو قلم د داسې عبارتونو نقل کولو دپاره تیار نه دې ، نه ضمیر ددې اجازت ورکوی چه داسې خرافاتو لره نقل کړې شی ، د انبیاءِ کرامو علیهم السلام په شان کښې داسې توهین امیز عبارتونو کتلوسره جذبات د قابو نه بهر کیږی ، جگر ټکرې ټکرې کیږی په الله قسم مسلمانانو لره دهغوی د عقائدو نه د بچ کولو په خاطر دا عبارتونه دهغوی په وړاندې کیږدم ورنه دهغه خرافاتونقل کول خو لرې خبره ده هغې ته کتلو لره هم گناه کبیره گنم .

چن بسویشور خپل ځان سره دخپلو مریدانو هم آخرت تباه کړو ، هغوی ته ښنه باغونه ښودلو سره ئې مائل کړه عاشقان یې کړه ، څنګه ممکن وو چه پیرصاحب خو «محمدثانی » جوړ شی او مریدان دې تش په توره ناست وی ، ددې وجه نه ئې خپلو مریدانو ته د انبیاؤ لقب ورکولوسره یې له هغوی نه هم شرمخان جوړکړل ، لوستونکی حضراتو ته به یاد وی چه غلام احمد قادیانی خپلو

مریدانو ته د صحابی لقب ورکړې وو لیکن دلته خو «این خانه همه آفتاب است» والا معامله ده ، ارشاد دې ، شعر

پروز محمد فنا فی الرسولم    همه انبیاء رارفیقما کی بینم

چرته چه ئې دخپلو مریدانو د خوشحالولو دپاره هغوی ته د نبی خطاب ورکړو ، هغلته ئې د عامو مسلمانانو د زړه ساتنې دپاره عام قانون جوړکړو چه شعر:

نہیں کوئی مسلم ہے نبیوں سے کچھ کم

راشئ چه درته ئې اوښایم ، د چن بسویشور خپل عبارت ستاسو په خدمت دې:

«کوم مسلمان چه پیدا کیږی ، یامسلمانیږی هغه په ړومبی قدم کښې دیونه یو نبی د مثیل جوړیدلو بالقوة طاقت لری او دویم تصرف د حضرت منبع انور په مسلمانانو کښې دا چلیږی چه یومسلمان ته هم دا خیال نه کیږی چه هغه دیو خپل بچی نوم دیونبی په غلامئ کښې کیږدی .خنگه چه عام طور باندې غلام محمد ، احمدغلام ، غلام علی ، غلام دستگیرنومونه ږدی ، هم دغه شان د غلام ابراهیم ، غلام موسی ، غلام عیسی ایخودلو یو مسلمان ته خیال نه کیږی څکه چه شعر

نہیں کوئی مسلم ہے نبیوں سے کچھ کم (مہر نبوت ص ۶۰، ۶۱)

دې لیکلوله کتلوسره دهغه په عقل باندې چه څومره غمرازی اوکړئ شی هغه کمه ده ، هغه ددې قابل هم نه دې چه دده د رد کولو دپاره کاغذ ضائع کړئ شی ، لیکن فقط ددې د وجه نه د دیندار انجمن موجوده نگران اعلی سعید بن وحید کشمیر کښې د سیرت النبی په جلسه کښې وئیلی وو چه:

«د کوم ځائ نه چه نبوت ختمیږی دهغه ځائ نه خو د مؤمن د کمال آغاز کیږی او یومؤمن که چرته د نبوت دعوی کوی نوهغه د خپلې مرتبې د لاندې خبرې دعوی کوی»

د گستاخئ انتهاء ده چه مؤمن د نبی نه لوئې درجې والا وی ، نبی که چرته د مؤمن نه کمې درجې والا دې نو ددې صفا مطلب دادې چه معاذالله انبیاء علیهم السلام مؤمنان نه دی او چه کله د انبیاؤ دپاره مؤمن کیدل ضروری نه دی نو هغوی به هم کافر وی خنگه چه چن بسویشور دې ، عجیب منطقی چال دې ، نبوت ئې داسې آرزان کړو چه د ایمان شرط ئې هم ختم کړو ، که چرته نبوت د بې ایمانئ او د بې غیرتئ نوم وی نو هغه دې هم ستاسو مبارک وی ، شعر

رقیب سرٹیفکٹ دیں تو عشق ہو تسلیم    یہی ہے عشق تو اب ترک عاشقی اولیٰ

حقیقت څه بل شی دې ، هغوی ته پخپله هم پته نشته چه نبی څه ته وائی ، په اصل کښې د غلامی

احمد قادیانی مسیح موعود ، مهدی آخرالزمان او د نبوت دعوی ته فراخه رخصتی حاصله شوه ، چنانچه بیسیو دروغژن نبی هم په دې زمانه کښې پیدا شو ، ددوی هم داشوق راغې چه څه مونږه د هغه سره یو ، شعر

نہیں معلوم منزل ہے کدھر کس سمت جاتے ہیں

مچا ہے قافلے میں شور ہم بھی غل مچاتے ہیں (اکبر)

چن بسویشور پخپلو تصنیفاتو کښې بیا بیا مقام مسلم لره مقام نبوت نه د اعلی او افضل ثابتولو دپاره کوشش کړې دې ، دخپل تصنیف (مهرنبوت) په شروع کښې لیکی : شعر

نبوت کے اسرار بے انتہا ہیں | بفضل خدا اس کے در مجھ پہ وا ہیں
کسوں رازداری کے اسباب کیا ہیں | میں ان کی جگہ ہوں وہ میری جگہ ہیں
کہ عیسی تلک جس قدر انبیاء ہیں | وہ رفقاء کا رسول خدا ہیں
فنافی الرسول خدا جو ہوا ہے | وہ لاریب حق میں فنا ہوگیا ہے
کہ نبیوں سے دربار اس کا بھرا ہے. | ہیں رفقا نبی یہ عجب ماجرا ہے

همدا رنګه ددې کتاب په شروع کښې دا هم دی ، شعر

ہے فائق ہمارا ولی ہر نبی پر

انتهاء اوکړه د چن بسویشور شاګرد مولوی غازی ابوالکلام عبدالغنی ، پیر خو صرف دخپل رفقاؤ په انبیاؤ باندې فضیلت ثابت کړو ، مګر عبدالغنی سود الله وجهه خو دې پورې اوونیل چه د چن بسویشور مبعوث کیدلوسره د محمد صلی الله علیه وسلم په امت کښې راتلل د نورو انبیاؤ دپاره باعثِ معراج دې ، «انالله وانا الیه راجعون» .

لیکی : شعر :

محمد کی امت میں ہمکران کا آنا نبیوں کا گویا ہے معراج پانا (شمس الضحی ص ٣٣)

داسې معلومیږی چه چن بسویشور د « مهرنبوت » لیکلو له وخت نه دا قسم خوړلې وو چه د انبیاء علیهم السلام توهین چه کومه حده پورې کیدلې شی په هغې کښې به هیڅ کمې نه پریږدی ، لیکی : « دهغه یو وجود څه ډیرو انبیاؤ لره په خپل ځان کښې کیښودلو ، په همدې وسیلې سره انبیاء اقوام عالم چه هغوی باندې صرف سلام وو د « رحمة الله اود رضی الله عنه » حقدار شو »
(مهرنبوت ص ٣۴)

## د ظلم دپاسه ظلم

د توهین نبوت چه کوم کردار چن بسویشور ادا کړې دې ، هغې لره د قلم په څوکه باندې راوړلوسره لاس ریږي ، لیکن دهغه مرید ابوالکلام عبدالغنی د توهینِ نبوت چه کومه سلسله روانه کړې ده بیشکه چه دچا په زړه کښې لږ غوندې ایمان هم وی هغه به ددې بدبخت د سرکښ کولو دپاره بې قراره وی ، شعر

لرزتے تھے دل نازک قدم مجبور جنبش تھے ،

کاش چه څما مسلمانانو ورونوته دهغوی د خرافاتو د وراندې نه علم وې ، دې دپاره چه ماته د «کفرنقل کولو» ضرورت نه وې پیښ شوې او الله شاهددې چه «نقل کفرکفرنباشد» لره مخې ته ایخودلوسره دا قدم اوچتوم ، د عبدالغنی عبارت پیشِ خدمت دې :

جماعتِ دینداران ته د الله له طرف نه خطابونه ملاؤ شوی دی ، د دوو سوو نه زیاتو مردِمیدان ، دیرو د انبیاؤ منازل طئ کړی دی هغوی د متعدد انبیاؤ په نومونو سره یاد کړئ شو ، هغوی دربار بروزمحمد ( خانقاه سروزعالم آصف نگردکن ) کښې جمع دي ، صرف رام او کرشن اوتار دیو درجن نه زیات دی » (شمس الضحی ص ۹۱)

غوراوکړئ ! آیا دوی شاگردانو د خپل گرو نه سبقت یوړلو نه ؟ واقعی لائقِ انعام دې په سکیندونو کښې ئې د جماعت په درجنونو افرادو لره د هندوانو رام او کرشن اوتار جوړکړه ، دیرو حضراتو لره ئې په یو وقت کښې نبیان جوړکړه ، او څوک منتظرِ نبوت دی هغوی ته ئې خطابات منجانب الله تقسیم کړه ،

دلته خو قادیانیت هم شرمیږی ، هغلته خو ئې د تحقیق نه پس نبوت یوځائ کولو ، مگر دلته خو د نبوت منازل ډیر زر سر ته رسی ، .... هغلته خو دا ظالمان عوام کالانعام لره دخپلې خوشحالئ سامان جوړولوسره رقص کوی ، دلته په مجنونیت کښې خرافات وئیلې کیږی او هغه خلق چه هغوی ته د نبوت سند ملاویدلو والا دې په انتظارکښې د بیزوگانو په شان دهغه بدبختو په رقص کښې مصروف دی .

## د صحابه کرامو طبقه بندی

د حضور صلی الله علیه وسلم صحابورضی الله عنهم ته چه کوم اعزاز حاصل دې اوس چن بسویشور خپل دروغژن نبوت باندې د ایمان راوړلو والا بې وقوفانو هم هغه مرتبه ښائی ، داسې د صحابو دوه دوره جوړیږی ، هغه خوش کن گروه بندئ لره ذکرکولوسره د دوو پیرو سره متعلق لیکی .

«تراوسه پورې دا وعده دوه ځلې پوره شوې ده» (۱) زجاجه قرن اولی (۲) زجاجه قرن اخری »

(مهرنبوت ص ۳۴)

دا خنگه کیدلې شو چه بیشور صاحب خو شور جوړکړې او باشوره صاحبان خاموشه وی ددې وجه نه ئې د گرو په ها کښې ها ملاوولوسره عبدالغنی باشور فرمائي : شعر

عیاں قرن اولیٰ میں تھی ان کی کثرت

عیاں قرن اخری میں ہے ان کی قلت (شمس الضحیٰ ص ۸۰)

## شمس الضحی

ددې کتاب مصنف ابوالکلام عبدالغنی دې چه د هغه د کتاب متعدد حوالې تیرې شوی دی، په دې کتاب باندې د دیندارانجمن د بانی چن بسویشور تقریظ دې، دهغه تقریظ د وجه نه د کتاب اهمیت نور هم زیات شو، چن بسویشور پخپل تقریظ کښې لیکی :

«د دې کتاب مصنف مولوی غازی ابوالکلام عبدالغنی صاحب مصنف میثاق الانبیاء مضامین تبلیغ لره د مسدس په صورت کښې یوځای کړی دی، هغه کتاب ځما د نظر نه تیرشو، انتهائی معقولیت نه ئې کار اخستلې دې، زمونږ د انجمن جذباتو لره په واضح طور باندې بیان کړئ شوی دی، حقیقت کښې هغه جذبات څه دی قرآن کریم عمل کښې دې دا کتاب به د هرمسلم دپاره د هدایت باعث وی د شفاعت باعث به وی وئیلو والو لره به په صراط مستقیم باندې راولی» فقط

دستخط دیندارچن بسویشور المرقوم ۲۵رجب ۱۳۷۵هجری

دصاحب تقریظ په قول: دا کتاب مسلمانانو لره په هدایت او صراط مستقیم باندې د راوړلو په غرض سره تصنیف کړئ شوې دې، هغه صراط مستقیم څه دې ؟ ددې کتاب محوله عباراتو او د چن بسویشورد تصنیفاتو خرافاتو لره مخې ته ایخودلوسره قارئین حضرات دې پخپله فیصله اوکړی چه دهغې خلاصه داده، توهین انبیاء علیهم السلام، چن بسویشورلره یوسف موعود، مثیل موسی، مصلح موعود، مامور وقت، امام الناس، مالک قیامت، بروزمحمد، او الله لره دچن بسویشور په شکل سرهمنل، نعوذبالله من ذلک.

## لتنذر قوماً لدا

وائی د شیطان کولمه ډیره اوږده وی، دهغه د لغویاتو هم دا عالم دې چه بیانولو والا ستړې کیږی مگر دهغه لغویاتو لسمه حصه هم نشې بیانولې لیکن د «لتنذر قوما لدا» چه کوم تفسیر کړې شوې دې هغه خو دریائې معرفت دې، خصوصاً په هغوی باندې چه عبارت تطبیقولو سره ددې آیت وضاحت ئې کړې دې هغه خو بې نظیردې، زر واورئ داسې بې بهانعمت د بل ځائ نه نه ملاویږی:

هغه دي خانقاه ته څنګه راتللې شي دچا په سينو کښې چه د قرآن وتيلو جذبه نه وی ، مبارک هغه دی چاچه په آسانه ژبه کښې يعني د صديق د ژبې نه د قرآن کريم رموز زده کړه ، د صديق ژبه په اصل کښې د محمد ژبه ده ، چه دهغه نه په مونږ باندې قرآن نازل شو ، قرآن کريم د محمد د ژبې نه د وئيلو قيد لګولې دې . «انما يسرناه بلسانک» او بيا وايي چه «لتنذر قوما لدا» يعني تاسو به په آخرې زمانه کښې د قرآن اسانولو دپاره تشريف راوړئ» (شمس الضحی ص ۴۲)

مصنف ته د اختلاط مرض دې ، د صديق د ژبې نه چه کوم کتاب په تاباندې آسان کړې شو هغه قرآن نه دې ، د هندوانو ويد دې ، چه هغې لره تا په بې وقوفتيا سره قرآن ګڼلې دې ، چاچه قرآن کتلې وی ، هم هغه دې بيان کړی ، دخپل ګرو نه دې ويد وئيلې دې او تفسير دقرآن کوې ، شعر

صورت لیلی نہ دیکھی پڑھ لیا دیوان قیس — شاعری ان کو نہیں آئی زباں داں ہو گئے

## تبليغ اوهجرت حرام دی

د کتاب شمس الضحی په ديباچه کښې غازی عبد الغنی ليکی :

« اوس مونږ صفا وايوچه زمونږ د ماضی موعود دنورو بشارتونو په بناء باندې تيرشو ، مستقبل هم موعود دې ، او هغه به هم تيرشی آئنده به داسې قسم تبليغ ، هجرت او غزوات ديارلسو کالو پورې نه وی » (ديباچه شمس الضحی)

د جهاد د حرمت حکم خو دهغوی ګرو غلام احمد قاديانی د وړاندې نه کړې وو اوس مريدانو تبليغ او هجرت باندې پابندی اولګوله مګر د «برعکس نهند نام زنګی کافور» مطابق غازی وئيلې کيږی حضرت فرمائی ، چه د کوم تبليغ دپاره ديندار صاحب تشريف را نه وړو چاته څه حق کيږی چه هغه راتللو سره تبليغ شروع کړی . دا ميراث خو هم هغه ته اباً عن جد ملاؤ شوې دې په دې باندې د نورو قبضه اچول جائز نه دی .

## ګهن چکر

مسلمانانو ! کليجه مضبوطولو سره د ګهن چکر په معنی باندې پوهه شئ ، او بيا اوګورئ چه چن بسويشور صاحب چاته ګهن چکر ښودلو سره پخپله طوفانی دورې باندې څی :

«حضور (چن بسويشور) اوفرمائيل ، ځما کار ختم شو ، زه يو طوفانی دورې باندې تللو والا يم ، زه به هميشه اوتار يم ، الله لوئ ګهن چکر دې ، هغه د چا په فکر کښې هم نه راځی ، که چرته هغه د چا په فکر کښې راغلو نو هغه خدائ نه دې (شمس الضحی ص ۱)

مسلمانانو ورونو ! دا خبرې په عالم خواب کښې نه وئيلې کيږی ، د يو مجذوب خبرې نه دی ، دلته هره خبره سوچ او فکر سره د تصنيف دپاره فارغيدلو سره مصنف دخپل ګرو (پير) خبرې تبرک ګڼلو سره ليکی ، يو کس به تر ننه پورې يو بدمعاش ، شرابی او چرسی لره نشې کښې هم داسې

خبرې کولو سره نه وي کتلې په دې باندې مزید داچه دیندارانجمن والا هم دې خرافاتو باندې د خوشحالۍ نه ټالۍ وهي ، او بقولِ خود پاخه مسلمانان بلکه د نبیانو په منزله دي ، چه د هغوی په مسلمانانو کښې دا امتیاز دې چه دیندار ورته وئیلې کیږي .

## فکر وکړئ!

ای خما دهوکه شوو ورونو ! اوس هم د هوش نه کار واخلئ ، زمونږه دین یو ، خدائ یو ، نبي یو ، قرآن هم یو ، راشئ د شهادت کلمه وئیلو سره دوباره د دوی د رحمت په لمنه کښې آرام اوکړئ ، دهغه دهوکه بازو په چالونو کښې راتللو سره خپل ایمان ، مال اوعزت مه بربادوئ ، خبره که په فکر کښې نه راځي نو د بل چا نه پوښتنه اوکړئ ، پخپله هم د عقل نه کارواخلئ ، دا عقل هم داسې مواقعو باندې په کارکښې د راوستلو دپاره ورکړئ شوی دی ، د سحر هیریدونکې که د ماښام کور ته واپس راشي نو هغه ته هیریدونکې نه وائي شعر

ظالم ابھی ہے فرصتِ توبہ دیر نہ کر وہ بھی گرا نہیں جو گرا پھر سنبھل گیا

## تفسیری نقطې

صاحب شمس الضحی د سورۂ بلد په تفسیر کښې لیکي :

« ددې نه علاوه په دې سورت کښې د متقیانو دیو جماعت هم ذکر دې ، چه د اسلام دپاره مصیبتونه تیرولو والا دې او پخپل عمل سره د صبر او زحمت ثبوت پیش کوی ، هم هغوی له داصحابِ ممینه یعنې د غازیانِ اسلام په نوم سره یاد کړئ شو ، دهغوی په مخالفت کښې راتللو والا قوت له د اصحابِ مشئمه یعنې بدبخته ډله اووئیلې شوه ، دهغوی انتهاء داده چه هغوی به یو داسې اور کښې غورځولې کیږي چه هغې ته نارمؤصده وئیلې شوې دې یعنې د هغه اورنه د وتلو به څه لاره نه وي تولې دروازې به بند کړئ شي ، د تولو نه وړاندې الله پاک «**لا اقسم بهذا البلد**» وئیلو سره په بلدِ امین سره قسم خوړلې دې «**انت حل بهذا البلد**» وئیلو د حضور په یو بل بلد کښې د بیا راکوزیدلو بشارت ورکړې شوې دې چه د (انت حل) نه ظاهره ده «**ووالدوما ولد**» کښې بلدِامین له پلاز گرځولو سره بعثتِ ثانی کښې بلې بلدې له دهغې خوئ اوگرځولې شو چه د زمکې په سر باندې هم د حیدرآباد د ښار په نوم سره مشهور دې ، هم دې د خپلې بلدې خوئ دې ، چه په هغې کښې د بعثتِ ثانی دپاره حضور عالم هم هغه راتللو والا موعود ته رجل من امتی او من ولدابن وئیلې دې او هغه وجود د حضرت مولانا صدیق دیندارچن بسویشور دې ، چه هغه جسماني ۵۲ او اخلاقي ۹۲ نشاناتو سره په یو بل ښار کښې نزول اوفرمائیلو ، «**لقد خلقنا الانسان فی کبد**» کښې یو داسې انسان له په حجت کښې پیش کولې کیږي چه د خپل مقصد په حصول

کښې انتهائی مشقت اچتولو نه مخ نه اړوی لیکن هغه د لقاء الله نه محرومه دې . هغه د برداشت لرلو باوجود د روحانیت نه محرومه دې ، د حضور سروعالم به په بل لباس کښې په بل ښار کښې نزول لره نه منی او هغه وجود د قاسم رضوی دې «**ایحسب الانسان ان لن یقدر علیه احد**» . یعنې انسان باندې دا حجت پیش کړې شوې دې چه هغه ولې پخپل اقتدار کښې دومره متکبره دې . آیا هغه ته دا خیال نشته چه شاید بل څاته به په دې باندې قدرت حاصل وی ؟ دا هغه عالم ښودلې شوې دې چه کله سید قاسم رضوی په پوره حیدرآباد ریاست باندې د حکومت او اقتدار په نشه کښې وو او داخیال ئې کولو چه دهغه قوت او سیاست به همیشه وی د حضرت صدیق دیندار اودهغه د ملګرو په نظر کښې هم نه راتللو ، لیکن وراندې ښودلې شوی دی «**یقول اهلکت مالا لبدا**» یعنې بالاخر هغه سرې به پخپلو لاسونو سره خپل ډیر سامان بربادوی د قوم تول دولت لره به پخپلې غلطې رهبرئ سره د هلاکت په کنده کښې غورځوی ، (شمس الضحی ص ۸۵)

د قرآن کریم داسې تحریف چه د قرآن مطالبو لره ئې د نفسانی مطالبو په چوکاټ کښې واچول .

ګرانو لوستونکو ! دا مه هیروئ چه قرآن څن بسویشور باندې دوباره نازل شوې دې ، په ده باندې د قرآن علوم ښکاره دی څکه ئې خو د قرآن داسې تفسیر لیکلې دې چه د دنیا د لوئ نه لوئ دروغژن ظالم داسې تفسیر نه دې کړې چه د الف نه یاء پورې نفسانی خواهشاتو باندې مبنی وی ، مګر یاد ساتئ چه دا دروغ او دهوکه آخره پورې اوبه کیږی . شعر :

جھوٹ کا بازار تھوڑے روز ہے    بعد اس کے حسرتِ دل سوز ہے

عدو شرے برانگیزد کہ خیر ما دراں باشد

د سورهٔ بلد په تفسیر کښې د قاسم رضوی نسل لره انتهائی ذلت ورکوتکو الفاظو کښې ذکر کولو سره ګستاخ عبدالغنی لیکلی دی :

« د اولیاء الله په مخالفت کښې دوه قسمه خلق ولاړ دی یو هغه چه دهغوی نسل صحیح نه وی یا هغه چه د نسل نه خو ښه دې لیکن ګنهګار دې ، سیدقاسم رضوی په حیثیت دصدر اتحاد المسلمین زمونږ متعلق صدرناظم کوتوالی ته حکم ورکړې دې چه دیندار غل او ډاکو دې . خیر غوښتلو سره ګرځی راګرځی ، اوس ئې د کمونستانو د حملې په موقع باندې لوټ مار شروع کړې . دې عیاشی دې نه مسلمان ، دې بې دینه دې ، هغه لره بهادریارجنګ مرحوم ختمول غوښتل . افسوس هغه ختم نه کړې شو ،زه هغه لره ختموم هغه دا چه زه حکم ورکوم چه هغه لره ختم کړئ چرته موچه موندلو وې نیسئ ، د سختې نه سخته سزا ورکړئ دوی دوه سوو ته نژدې دی دوی ختم شو نو نورنشته » (شمس الضحی ص ۱۰۳)

همدارنګه دوی باندې یو شعر د قاسم رضوی په باره کښې نازل شوې دې . شعر :

گئی بزم میں خوبی خرطوم تیری
گئی حیف بیکار ہر بوم تیری (محالہ بالا)

مصنف چه دکوم مقصد لاندې دا عبارت نقل کړې دې چه په هغې کښې د بهادریارجنګ دهغه دیندارو په باره کښې نظریه او د قاسم رضوی د ختمولو ذکر کړې دې، هغه خو مصنف ښه پیژنی، مگر په هغه عبارت سره مونږ ته ډیره فائده اوشوه او هغه داچه هغه متنبی سره متعلق د دوو داسې حضراتو رائې معلومې شوې چه هغه لره ئې د نزدې نه کتلې دې. دهغوی په دعوو او اخلاقی ټولو کیفیاتو باندې د واقفه کیدلو نه پس هغوی دا رایه قائمه کړې ده

## د قران کریم نزول

محترمو لوستونکو ته به یاد وی چه چن بسویشور صاحب باندې خود قرآن نزول په بعثت ثانی کښې شوې وؤ. لیکن په هغه دعوی کښې یو کسر باقی نه وو چه د نزولِ اول نه پس د صحابه کرامو رضی الله عنهم په زمانه کښې د قرآن جمع هم اوشوه لیکن نزولِ ثانی کښې ددې بالکل ذکر نشته دې، ددې وجه نه د چن بسویشور مریدانو دا کسر هم پوره کړو. اوګورئ:

«**ان علینا جمعه وقرانه**» یعنې د قرآن جمع کیدل اودهغې وئیل یو خاص وخت باندې وی او هغه وخت معین دې، دا عمل د حضورسرورعالم په ظهور باندې اوشو یا بیا د حضرت مولانا صدیق دیندار وجود هغه عمل لره پوره کړو» (شمس الضحی ص ۲)

آیا د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس د صدیق د ظهوره پورې د قرآن پاک رومبنې ظهور جمع او ترتیب باقی پاتې شو او که ختم شو؟ که چرته هغه موده کښې هم هغه منزل قرآن مرتب موجود وو نو نه صدیق باندې دنزول ضرورت پاتې شو اونه د صدیق دیندار د جمعې او ترتیب حاجت، او که چرته د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس قرآن ختم شو العیاذبالله، نو اوفرمائې چه په دې دیارلس سوه کاله کښې مسلمانانِ عالم کوم قرآن لره قرآن منلوسره راروان دی؟ په دې موده کښې چه قرآن نه وو نو ظاهره ده چه مسلمانانو سره چه کوم وو هغه د قرآن نه علاوه وو ددې تشریح د دیندارانجمن والو نه مطلوبه ده.

## ظالم (بد ذات) (بدکار)

اوس جناب محترم رښتیا شروع کړی دی. فرمائی

«مونږ کښې تقریباً د ټول هندوستان اوتار دی. مونږ سره به هندوستان ته امن وی. د ظالمانو ذاتو په نمبر کښې مه راځئ» (دیباچه شمس الضحی)

خیر هیڅ خبره نه ده د ظالمانو نمبر وروستو صحیح دې مگر جناب اوس د راز خبره اونبوده. بو اوتار د لغویاتو تحمل هم مشکل کیږی. چه هرکله ستا په پیر کښې یا پخپله تاکښې د

هندوستان ټول اوتار جمع دی نوداسې صورت کښې به پته نشته چه د هغه لغویاتو او خرافاتو څومره لوئ انبار وی او بلاشبه دلته هم داسې دی ، تاسو به یو څو اقتباسات په دې رساله کښې هم کتلی وی

محترمو لوستونکو ! دا هیر نه کړئ چه د «اوتار» اصطلاح په مسلمانانو کښې نشته دې ، دا د هندوستان د سادهو اصطلاح ده ، د هندوانو خدائ ورته اووائې یا موعود مذهبی رهنما . بهر حال د اسلام لمنه ددې اوتارو نه پاکه ده ، په دې سره دا هم معلومه شوه چه د مصنف بیچاره میلان هندوانو طرف ته زیات دې ، چه دهغې وجه شاید دا کیدلې شی چه دهغه د نبوت او د نورو دعوی ګانو دلائل هم دده د کتابونو نه ماخوذ دی ، په داسې صورت کښې که چرته د هغه د زړه دپاره هغه طرف ته څه میلان نه وی نو دا خو به نمک حرامی وی ، مونږ ته هیڅ اعتراض نشته په شوق سره د هندوانو د نمک حق ادا کړه ، مګر نه د اسلام دننبې لګولوسره.

## په مقام محمود باندې قبضه کول

د چن بسویشور مرید عبدالغنی پخپل کتاب شمس الضحی کښې یو شعر لیکلې دې ، شعر

زمانے میں قرآن مشہور ہے اب     کہ ذات محمد محمود ہے اب

حاشیه کښې ئې ددې شعر اوږده تشریح کړې ده ، داسې تاویل ئې کړې دې چه بیشکه د تاویل لفظ بلکه د شرم لفظ هم له هغې نه شرمیږی ، لیکی :

« چونکه ټول اولیاء د حضور په مدح کښې ډوب وو ، لیکن یو ولی ته هم مقام محمود حاصل نه شو ، څکه چه هغه دور وړاندې وو څنګه چه ددې آیت نه ښکاره دې ، «**عسی ان یبعثک ربک مقاما محموداً**» د آیت په دریمه حصه کښې د حضور ذات لره مقام محمود باندې د راوړلو بشارت ورکړې شوې دې ، دا دورِ آخر دې چه موعود دې ، حضور ددې مقام محمود والا بعثت دپاره مسلمانانو ته د اذان نه پس دعا ښودلې ده ، چه دهغې په تعمیل کښې هر مسلمان د «وابعثه مقاما محموداً» الفاظ باربار وائی ، دمونځ په قعده کښې د شهادت ګوته هم ددې بعثتِ ثانی په شهادت کښې اوچتیږی ، دکوم انتظار چه په مسلمانانو کښې دې ، هم هغه بعثت مقام محمود والا بعثت دې چه دهغې نه ظاهره ده چه محمد صلی الله علیه وسلم هر دیارلسو کالونه پس د یو امتی قبا اچولوسره ښکاره کیږی ، ددې وجه نه په قعده کښې «السلام علیک ایها النبی» وئیلې کیږی چه په هغې سره حضور سره مخاطب کیږی د ایهاالنبی مخاطبه د غائب سره نه ده بلکه سترګوسره د کتلو حجت پیش کوی.

په هرصورت دا بعثت ثانی به په کوم رنګ کښې وی ، بعثتِ ثانی کښې به هغه خپل نوم څه ښائی ددې دپاره الله تعالی پخپله قرآن کښې حضور ته دعا کولو دپاره وئیلی دی او هغه دادہ چه

«قل رب ادخلنی مدخل صدق ... سلطانا نصیراً» د حضور د ټولو روحاني کمالاتو که چرته يو وجود متحمل کيدلې شي نو هغه وجود د صديقِ اکبر دې ، بعثتِ اول کښې هم صديق وو بعثتِ ثاني کښې هم صديق دې .... پس اوس ظاهره شوه چه حضور شاهد اومشهود هم دې او د قيامت په ورځ کښې محمود هم دې او دغه شان چه کله د دوی اعاده کيږي نو موعود هم دې ، حقيقت دادې چه دا آخري بعثت دې چه هغې ته «والبعث بعدالموت» هم وئيلې شوې دې . د حضور نه سوا يو بل وجود به ددې امت د اصلاح دپاره نه اودريږي ، يعنې په دې امت کښې به يو کامل انسان د بروزمحمد په شکل کښې مبعوث کيږي ، » (اقتباسات ازکتاب شمس الضحی ص ۳۰، ۳۱)
اعادې سره متعلق اشعار هم واورئ ، وايي : شعر :

يه خود عود کر آئے موعود ہوکر | شہادت میں خود اپنی مشہود ہوکر (شمس الضحی ص ۴)

همدارنګه ارشاد دې ، شعر

محمد بن کے قرآں کے مشہود آئے | قيامت کی بعثت ميں محمود آئے

اعادہ ميں اپنے وہ موعود آئے | غرض دور آخر کے مقصود آئے

(شمس الضحی ص ۵)

د مسلمان د يوبچي نه پوښتنه اوکړئ هغه به هم دا وائي چه مونږ د چن بسويشور د بعثت دپاره دا دعا نه کوو ، بيا ددې وئيلو تاسو ته جرئت څنګه اوشو چه حضورصلی الله عليه وسلم ستاسو د بعثت دپاره وروستو د اذان نه دعا اوښودله چه دهغې په تعميل کښې هرمسلمان د «وابعثه مقاما محموداً » الفاظ بيا بيا وائي ، چن بسويشور ته شيطان دوکه ورکړې ده چه مسلمانان ستا د بعثت دپاره دعاکوي .

افسوس غضب ئې اوکړو دې بدبخت دې وئيلوسره چه « د مونځ په قعده کښې د شهادت ګوته ددې بعثتِ ثاني په شهادت کښې اوچتولې کيږي ، «العياذبالله» آيا د حضورصلی الله عليه وسلم د يو هندو په شکل کښې د راتللو شهادت يومسلمان ورکولې شي ؟

الله دې غرق کړي ، وائي چه د حضورصلی الله عليه وسلم د ديارلسو کالو نه پس د چا په شکل کښې د ښکاره کيدلو په مسلمانانو کښې انتظار دې ، مسلمانان بيچاره ګان خو په خوب کښې هم داسې ګمان نه شي کولې ، بلکه ديندار انجمن والا چه په اتفاق سره کافر او منافقان دي هغوی هم پخپله سينه باندې لاس کيخودلو سره پخپل ضمير سره دې اوتلي چه آيا واقعي تاسو د چا په شکل کښې د حضورصلی الله عليه وسلم د بعثتِ ثاني انتظار وو ، يقيناً د زړه نه به هم دا فتوی ښکار کيږي چه نه دا خو په دې جماعت کښې د شامليدلو نه پس ستاسو په ذهنونوکښې د کينولې شوی دروغو نتيجه ده .

بعثت ثانی باندې دلیل قاطع چه مصنف پیش کړې دې هغه داچه قعده کښې ایهاالنبی سره حضورصلی الله علیه وسلم طرف ته مخاطبت دې او دا مخاطبت غائب طرف ته نه دې ، د سترګو د لیدلو حجت پیش کوی ، معلومیږی چه ددې جملې د لیکلو په وخت د بیچاره مصنف د عقل جنازه اوچته شوې وه ، د نبوت د تمنا په نشه کښې دماغ مفلوج شوی وو نوځکه ئې ذهن مبارک د داسې دروغو شکار دې...... حضورا اوفرمائې چه د بعثت اول اود بعثت ثانی په مینځ کښې چه دیارلس کاله تاسو هم منځ په هغې کښې آیا مسلمان دمونځ په قعده کښې ایهاالنبی نه وئیلو ؟ اوس اوفرمائې چه په هغه زمانه کښې مخاطبت په سترګوسره د لیدلو څه حجت پیش کړو او اوس د چن بسویشور جهنم رسید کیدلوسره طوفانی دورې باندې د تللو نه پس ستاسو سترګو وراندې مخاطب چرته موجود دې ؟ او په کومه زمانه کښې چه د خدائ د غضب مظهر چن بسویشور خپلو تولو نحوستوسره آصف نګر حیدر آباد دکن کښې موجود وو هغه وخت د باقی دنیا تولو مسلمانانو دپاره ایهاالنبی کوم یو حجت پیش کړو دا تول بې کاره سوچ سره استدلال کوی ، داسې ابوالکلام ته نور څه اووئیلې شی سوا ددې نه چه شعر :

اب اگر کچھ شرم ہے تو ڈوب کر مرجائیں وہ ۔۔۔ افترا پردازی و بہتان سے باز آئیں وہ

ماته بار بار خیال راځی چه دا ساده زړه والا بندګان داسې په بې کاره جال کښې څنګه ګیرشو چه که چرته لړ غوندې پوکې هم ورکړې نودهغوی د جال تکړې به والوځی ، شعر

مسلمانو ذرا سوچو تو دل میں ۔۔۔ پھنسے ہو کر کس طرح تم اب وګل میں

دا څما په آقائې نامدار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم باندې څومره لوئ بهتان دې چه د دوی په دعا «رب ادخلنی مدخل صدق» کښې د صدق نه مراد صدیق دیندار چن بسویشور دې ، د خدائ دپاره دې کم ازکم پخپل خان باندې رحم وکړی ، د بهتان تړلو داسې مثال خو مونږ ته په نظر رانه غلو ، دیندار انجمن والا دې د حضورصلی الله علیه وسلم نه دې روایت لره ثابتولوسره اوښائی اوکه نه نو ددې ګستاخئ نه دې توبه اوکړی ، چرته داسې نه چه د قیامت په ورځ څما د آقا په وړاندې د مجرم په حیثیت سره اودرولې شې اود حضور صلی الله علیه وسلم دې حدیث اورولو سره د جهنم په لمبو کښې اوسوزولې شې .

«من کذب علی متعمداً فلیتبوا مقعده من النار» یعنی چا چه په ما باندې قصدا دروغ اوتړل هغه دې خپله خپل ځان ته په جهنم کښې ځای جوړه کړی .

## د قیصراو کسری هلاکت

« قرن اولی کښې دکسری د هلاکت پیشن ګوئی حضرت عمررضی الله عنه سره پوره شوه اود

قیصر د هلاکت پیشن گوئی دیارلس نیم سوه کاله پس د حضرت صدیق په ذریعې سره پوره شوه ، هغه داسې چه انگریز قوم چه قیصرِ هند ورته وئیلې گیدلو ، د دوی په حجت سره هغوی خپل مشرقی جزائر بیلودلو ، نن خو نه بلکه سبا راتلونکی نسلونه به ضرور دې ښکاره حقیقت لره د تسلیمولو نه بغیر پاتې نه شی څنگه چه په یوم الجمعه کښې د ټولو انبیاء اجتماع د حضور په دربار کښې شوې وه ، هغه د اسلام د اعادې په صورت کښې د یوم الجمعه په وخت د وارث انبیاء د جمعت سره واپس راغله» «شمس الضحی ص ۴۱»

عفوه غواړم ! ابوالکلام صاحب ! ستاسو نظر د تاریخ نه ناواقفه دې ، قیصرِ هند بل دې او قیصرروم بل دې دا قیصرِ هند ستا اصطلاح ده ، د حضورصلی الله علیه وسلم نه ، هغه قیصر خو دچن بسویشور د مرداریدلو نه وړاندې جهنم رسیدلې دې ، لږ د چانه د تاریخ «الف، ب، ت» اووایه نو ډیره به ښه وی دې دپاره چه د شیطان په الهاماتو باندې صحیح پوهه شې .

## سخته نا انصافی

د دیندار انجمن مفتری کذاب (عبدالغنی) ته پکاروو چه هغه د څه دروغو او دهوکې خبرې باقی پریخودلې وې دې دپاره چه دهغه نه پس چه نور مدعی نبوت راشی دهغوی په کار راشی اوکه نه نو هغوی به ډیر پریشانه وی داسې ناانصافی صحیح نه ده .

## د قیامت تصور

دقیامت متعلق هم دهغه دیندارو نظرونه واورئ :

« قیامتِ صغری د مسیح محمدی (مرزاغلام احمد) ظهور دې ، چه هغې ته نفخ اول وئیلې شوې ده ، نفخ ثانی قیامتِ کبری لره مختص دې ، چه د حضور ذات لره مختص کوی ، هم دیته نشأة آخری وئیلې شوی دی «**وان علیه النشاة الاخری** » دویم بعثت لازمی اوگرځولې شو ، لکه څنگه چه په اول کښې اوشو ، په آخر کښې به هم کیږی » «شمس الضحی ص ۱۹»

د قیامت ، حشر اونشراود جزاوسزا اهمیت لره د مسلمانانو د زړونو نه دختمولو دپاره داسې قسم بې هوده خبرې وئیلې کیږی دې دپاره چه مسلمانان دا گمان وکړی چه د کوم قیامت نه مونږ ویریږو چه د کوم د خوف نه د نوی گناهونونه مونږ بچ کیږو هغه قیامت دادې چه په هغې کښې مونږ تیریږو ، په دې کښې نه جنت شته اونه دوزخ .

## رحمة للعالمین

ټول خطابات پیرصاحب په خپله خپل ځان ته ورکړی وو لیکن هغه خپل ځان ته د رحمة للعالمین لقب وئیل هیر شو ، ددې وجه نه مرید دا کسرهم پوره کړو او فرمائی :

«ږمبی خلي دوی مخلوق باندې رحم کولوسره رحمة للعالمین جوړیدلوسره تشریف راوړو او مخلوق لره ئې د هر مصیبت نه بچ کړو ، اوس دوباره هم دوی تشریف راوړې .» «شمس الضحی ص ۷۴»

دوی د مخلوق دپاره څه رحمت راوړو ، او د کفراو ضلالت ، د الحاد اود زندیق توب سیلاب راوړلوسره ئې دخدائ مخلوق لره د گمراه کولو شیطانی کردار اداکړواو دې په خپله نامراده فساد خوروُلو سره لاړو .

## د شفاعت او قیامت مالک

د شرافت ، ظرافت په پرده کښې ئې د ظلم انتها اوکړه چه د شفاعت ټیکدار جوړ شو او د دې نه علاوه داچه هم دا مهاراج چن بسویشور د قیامت مالک هم جوړشو ، لیکی :

«د قرآن کریم او احادیثو نه ثابتیږی چه د قیامت په ورځ به الله تعالی د قاضی په حیثیت سره راځی اود سزا اود جزا فیصلې به اوروی ، د مسلمانانو ایمان دې چه د قیامت په ورځ به حضوراکرم صلی الله علیه وسلم د امت شفاعت کوی ، دا بعثت ثانی طرف ته اشاره ده ، اسلام کښې د ختم نبوت مسئله مسلمه ده ددې وجه نه یو سړې هم د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس د نبوت دعوی نه شی کولې ، ددې وجه نه به د امت شفاعت هم دوی کوی ، هغه به په یوه بله جامه کښې وی ، هم هغه بعثت ته بروزمحمد وئیلې کیږی ، هغه د قیامت نښه به د مسیح موعود نه پس وی ، دوی د قیامت مالک جوړیدلوسره راځی ، هغه وجود د مولانا صدیق دیندارچن بسویشور دې ، «شمس الضحی ص ۷۴»

د شفاعت مسئله خو جدا ده ، دلته خو دا وئیل روان دی چه دوی به دقیامت مالک جوړیدلو سره راځی ، په دې کښې یو مسلمان ته هم شک نشته چه د قیامت مالک بهالله تعالی وی ، اوس که چرته چن بسویشور د قیامت مالک وی ، نومعلومه شوه چه هغه پخپله خدائ دې او د هغه مرید عبدالغنی مصنف شمس الضحی دهغه د خدائ کیدلو سند ورکوی ، دا مغالطه هم قابل د فکر ده چه اسلام کښې د ختم نبوت مسئله مسلمه ده ، عجیبه امردې چه ختم نبوت مسلم دې ، ددې وجه نه اوس د بروزنبی په حیثیت سره راتلل کوه او یا خدائ جوړیدلوسره راتگ کوه .

## د فلاح او کامیابی لاره

چن بسویشور خپل ځان کښې دننه د خلقو د فناکیدلو لره یو لازمی شرط گرځوی او لیکی :

«وروستو د حمد او نعت نه زه ټولو بنی نوع انسانانو خصوصاً مسلمانانو ته دچا په مرئ باندې چه د تبلیغ چاره ده ، هغه په یو صورت کښې هم نه شی وتلې ددې کتاب «دعوة الی الله» په ذریعې

خبردرکوم چه هیڅ یو ډله یا یو فردواحدهم موجوده زمانه کښې الله پورې رسیدلې نه شي ترڅو پورې چه هغه په ما کښې فنا نه وي ، دا ځما د څلې خبره نه ده ، داخود حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې لاکهه لاکهه درود هغه ذات باندې ،شپاړس کاله وړاندې دوی ددې فقیر په حضور کښې تشریف راوړلوسره دې فقیرته دا مرتبه عطا کړه ، خندیدونکو باندې به دا خبره ډیره درنه لګیدلې وي ، دخفګان څه خبره نشته ، دا حقیقت دې څه فخر نه دې ، څه خودغرضی نه ده ، ددا سې مقام خاوند هم د انسان وجود وي » «دعوة الی الله ص ۲»

الله ته د رسیدلو دپاره چن بسویشورکښې د فناکیدلو نمبربه وروستو راځی مګر دا اووایه چه دحضورصلی الله علیه وسلم کوم ارشاد دې نقل کړې دې هغه چرته دې ؟ حضورصلی الله علیه وسلم تاکښې د دننه فناکیدلو څه فرمائیل تاسو خو خپل ځان کښې د دننه د فناکیدلو هم حکم نه دې کړې ، هم دا فنائیت دې چه هغې د دیندارانجمن والو ایمان فناکړو ، مګر اوس هم هغه بې حسو ته هوش رانه غلو .

## د الله مظهر او خدائی اختیارات

تراوسه پورې چن بسویشور دنبوت اودهغې ګیرچاپیره تاویدلو ، مګر اوس په پوره خدائې باندې د قبضه کولو په خوبونوکښې مست دې ، وایی چه :

« دا ټول بې نوره اود خدائ نه لرې ، ددې وجه نه دی چه د انفرادیت اود انتشار د حالت والا تقسیم نعمت زمانه ختمه شوه ، هغه د جامع الناس ، د دین مالک ، قیامت قائمولو والا ، حشرراپورته کولو ، دریم څلې د «لاتثریب علیکم الیوم» وئیلو دپاره د یوسف په جامه کښې جیل تیرولووالا ، بیرپانې په لاس ، د ثور د خیتې نه د صدیق او عنموائیل په نوم باندې د زمکې او آسمان د ۹۲ شهاداتو سره جسمانی او اخلاقی ۵۲ نشاناتو سره دغیرپه صورت کښې ښکاره شوې دې ،دا کامل متبع رسول الثقلین صلی الله علیه وسلم د الله تعالی نه د هم کلامئ شرف حاصلولوسره د «**ان الذین یبایعونک انما یبایعون الله یدالله فوق ایدیهم**» بشارت سره دوباره شانِ اسلام لره د دنیا تر کنجونو پورې د روښانه کولو دپاره کامل بشارتونوسره د الله مظهر صدیق دیندار جن بسویشور راغلې دې اوس دهغه په صحبت کښې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پورې ورسیږئ » **«دعوة الی الله ص ۲»**

جیل او بیرو سره دې طرف ته اشاره ده چه دهغه په قول چونکه بدنامی دهغه مقدر ده ، ددې وجه نه ځنګه چه هغه په دنیاکښې سزاوار دې ، هم دغه شان په آخرت کښې به هم هغه سزاواروی

چن بسویشور د الله مظهر خو جوړشو ، لیکن د انصاف خبره داده چه دهغه پیر غلام احمد قادیانی په دې وصف کښې دهغه نه وړاندې دې چنانچه هغه خپل د خلیفه میا محمود صاحب

قادیان په شان کښې لیکی .

„ فرزند دل بند گرامی ارجمند مظهر الاول والآخر مظهر الحق والعلا له ان الله نزل من السماء „ تبلیغ رسالت ص ۵۹ ج ۱، چن بسویشور که زرخلي د خپل پیر نقلونه اوباسی „ مگر هغه خبره چرته دمولوی مدن په شان ده „

## العیاذ بالله

„ د رؤیت الله په حدیث کښې راغلی دی چه الله به د محشر په ورځ د فیصلې کولو دپاره راځی او هغه به دغیرپه صورت کښې وی . ددې نه مراد دا چه الله تعالی به د غیرمسلم په نوم اولباس سره راځی یعنې د چن بسویشور په نوم سره به راځی .مسلمانان به نعوذبالله منک „ اووائی .واقعی ځما دعوې چن بسویشورباندې . مسلمانانو بد عقیده او گمراه گڼلوسره „نعوذبالله منک „ اووئیل . پنځلس کاله پس اوس دهغوی د امام اود احمدیانو د موعودیوسف په صورت کښې ښکاره کیږی . په دې سره خوشحاله دی اوس به ضرور انت ربنا وائی . „دعوة الی الله ص ۱۴„

## الله پاک د چن بسویشور „علیه ما علیه„ په بصورت کښې

که دا جمله په تاسو باندې خومره هم درنده تیره شی مگر وې وائې چرته داسې نه شی چه د قیامت په ورځ د قاضی حشر د مغفرت نه محرومه پاتې شئ . ابوالکلام عبدالغنی دخپل پیرجی چن بسویشوریو خوب نقل کولوسره فرمائی :

„ ما په خوب کښې اولیدل چه ځنګر لګیدلی دې . الله د قاضی په حیثیت سره راغلې دې . په یو اوچت تخت باندې ناست دې . د جزا اوسزا فیصلې ورکوی ما اوکتل چه هغه ځما په صورت کښې دې„ „شمس الضحی ص ۷۲„

## ناپاک عزائم

زاهد صدیقی صاحب چه وړاندې دهغه انجمن یو سرگرم مبلغ وو . بیا وروسته دهغه حقیقت دروښانه کیدلو نه توبه گارشو لیکی :

„ اے د عظمت انبیاء او د ختم نبوت دعویدارو! واورئ! که چرته تاسو اوس هم وانه وریدل او ونه منل او مخالفت مو وکړو نو وعید دې . دا چه څه لیکم په هغې کښې دخپل طرف نه د یولفظ هم اضافه نشته . زه په قسم سره وایم چه د مخالفینو په باره کښې دهغه جماعت عزائم انتهائی خطرناک او ظالمانه دی ځکه چه د صدیق دیندار چن بسویشور وصیت دې . „ مخالفت کولو والا مولیانو لره اووژنئ مخالفت به ختم شی . „فاران کراچی . فروری ۱۹۵۷ء„

## د الله پاک دیدار اصف نگر حیدرآباد دکن کښې

د خدایٔ دا دښمنان د خدائي دعوی کولوسره خلقو لره دخپل دیدار دپاره رابلي . چنانچه د «**صراط الذين انعمت عليهم**» متعلق لیکي :

د «**صراط الذين انعمت عليهم**» دعا دلته اوریدلې کیږي کومو خلقو چه نبیانو لره نه دي لیدلي هغه راشئ دلته اوګورئ . دهرې خبرې آرام او اطمینان دلته کښې دې . جنت دلته دې . مقربان دلته دي . ګلشنِ اولیاء دلته دي . دلته د ټولو نه لوئ نعمت د الله دیدار دې . اې د حق طالبانو ! راشئ اې عاشقانِ رسول ! راشئ . اے محبانِ علي راشئ د ډیر انتظار نه پس دا روحاني دربار خلاص دې . پخپل وختِ مقرره باندې خلاص شوې دې ننیو کتلوسره د برکاتو او د دورِ آخرین نه فیضیابه شئ .وماعلینا الا البلاغ » **صدیق دیندار (دعوة الى الله ص ۹۴)**

یوسف موعود چه اوس خدایٔ جوړ شوې دې او خپل دیدار لره دیدارِ خداوندی ګرځولوسره خلق رابلي. دهغه حسن دا عالم وو چه کتلوسره « بهنګی ته د سردار» وئیلو اصطلاح په یاد راځي

## الله د چن بسویشور په شکل کښې

چن بسویشور صاحب چه کله د خدائي دعوی کولوسره د رسول استولو اود قیامت قائمولو کاروبارشروع کړو نو خیال یې راغلو چه انسان څومره بې وقوفه وی مګر داسې بدیهي البطلان دعوې لره څنګه قبلولې شی ؟ ددې وجه نه چن بسویشور من کل الوجوه الله جوړ نه شو بلکه پخپل ځان کښې د خدائي صفاتو په ضمن کښې د خدایٔ کیدلو دعوی اوکړه د الله جل شانه ذات سره متعلق ټولو انبیاء علیهم السلام چه دکوم عقیدې تبلیغ کړې دې چه هغه د ازل نه دې او ابد پورې به وی دې سره متعلق د عوامو په سترګو باندې پټئ تړلوسره د سترګو پټولو لوبه کوی . د ذاتِ باری تعالی ئې چه کومه تشریح کړې ده هغه لره اوګورئ :

«**لم یکن شیئا مذکوراً**» ښکاره کوی چه یو وخت د انسان داسې هم تیرشوې دې چه دهغې بیان د انساني طاقت نه بهر دې . یعنې ذات واجب الوجود د احدیت په مقام باندې وو چه کله هغه ذاتِ مذکوره پخپل ذات واجب الوجود سره یوځایٔ شهادت کښې د راتللو اراده وکړه عقلِ کل کښې راتللو سره اودریدلو . د عقلِ کل نه یې د عالم ارواح شکل ئې واخستلو . بیا هم هغه ذات عالم امثال کښې راغلو . بیا عالم اجسام یائې د شهادت جامه واغوستله . د رحمة للعالمین صورت ئې اختیارکړو » (معراج المؤمنین ص ۴۱)

دا فلسفه د یونان د نکته بازو ده چه دهغوی د اسلام سره د یو ځایٔ کولو کوشش کیږي . ګویا الله چه څنګه قدیم دې .عقلِ کل هم هغسې قدیم دې . او الله تعالی عالم شهادت یعنې د چن بسویشور په صورت کښې د عقلِ کل محتاج شو

## د آخرینو سردار

مرزا غلام احمد قادیانی لره آخری خلیفه منلو سره لیکی:

« د اسلام آخری خلیفه آخری فرقه جوړه کړه . په دې سره دین اسلام ټکړې ټکړې شو چونکه میوه دخپلو شاخونو تصدق کونکې وی لهذا هغه د آخرینو سردار (چن بسویشور) د اسلام د ټولو فرقو تصدیق کولو والا ضروری دې . چه هغه لره د اولینو سردار حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د آخری فرقې سردار د مسیح ناصری په تصدیق کولو باندې د دوی قوم دوی باندې لاسونه پرقولی وو . او وئیلی وو چه دې عیسائی شوې دې . هم دغه شان د آخرینو د سردار دپاره هم دا ضروری وو چه هغه د آخری فرقې سردار دمسیح موعود په تصدیق کولو باندې دهغه د قوم لاسونه اوپرکوی او اووائی چه دا احمدی (قادیانی) شوې دې . » (دعوة الی الله ص ۴)

د استدلال دا بهترین چل شاید بل چاته معلومه نه وی چه پخپله واقعات جوړولو سره چاطرف ته منسوب کړی . بیا د وجه نسبت تعیین اوکړی . دخپل ځان نه جوړکړئ شوی علم کلام نه دخپل ځان نه د جوړکړې شوو واقعاتو په رڼا کښې پخپلو دعوؤ باندې دې استدلال اوکړی بس هم دا خبره ده چه شعر

*خود کوزه وخود کوزه گر وخود گل کوزه*

علاوه د دې نه دا چه په دې باندې واه واه هم پخپله اوکړی . په آخر کښې به دا نه وائی چه د آخرینو سردار اود آخری فرقې سردار مسیح ناصری کښې چه د جدت فرق راویستلې دې هغه قابل د شاباشی دې عجیبه لاره ئې راوباسله .

## د قادیانیانو سره زاړه تعلقات

نن سبا دیندار انجمن والا دخپلې پوزې جوړولو دپاره دا وائی چه زمونږه د قادیانیانو سره هیڅ تعلق نشته دې . دا خبره قابلِ التفات خو ځکه نه ده چه د انجمن بانی باربار د غلام احمد قادیانی په ادب او احترام سره ذکر کړې دې بلکه پخپلو اساتذو او شیوخو کښې شمیرکړې دې . تردې پورې چه هغه ملعون لره ئې د مسیح موعود منلو هم اعتراف کړې دې . ددې ناقابلِ تردید حقائقو په موجودګئ کښې مزید دهغوی په خپل مینځ کښې د تعلقاتو دپاره د دلائلو څه ضرورت نشته دې . خوبیاهم دهغه مقصد دپاره دهغوی دا لاندینې عبارت هم پیش کولې شی .

« غرض داچه یوسفِ موعود (چن بسویشور) هغه وخت موجود وو کوم وخت چه د جماعت قادیان اود جماعتِ لاهور د مخالفت بازارګرم وو . چه هغه مانی ۱۹۱۴ء نه تر ۱۹۲۲ء پورې یعنې تقریباً اته کاله بهترین مبلغ جوړیدلو سره د مرزاصاحب (قادیانی) په محبت کښې کار اوکړو .

تقریباً د پنجاب د ټولو ضلعو د احمدي جماعتونو دوره اوکړه په هغه زمانه کښې چاته خبر نه وو چه دومره جوش په صديق کښې ولې دې . دهغه راز علم پخپله صديق ته هم نه وو . چه کله د صديق عمر څلویښتو کالو پورې اورسیدلو یعني ۱۹۲۴ء کښې الله تعالی پخپله کلام سره بشارت ورکړو چه (( اے یوسف )) ته چن بسویشور ئې (( بیا الهام اوشو )) ((یوسف دې باباصدیق )) غرض باربار د یوسف او صدیق نوم په الهاماتو کښې شروع شو )) (دعوة الی الله ص ۴۴)

سوچ اوکړئ . هغه ساده مسلمانان چه هغوی لره په دهوکه کښې اچولو دپاره دا وئیلې کیږی چه د دیندار انجمن د قادیانیانو اودهغوی د عقائدو سره هیڅ تعلق نشته دې . آیا ستاسو په نظر کښې دچا په محبت کښې د کار کولو معنی مخالفت کیدلې شی فشتان بینهما؟

حقیقت دادې چه دهغه دوو شیطانانو پخپل مینځ کښې ډیرنزدې مراسم او تعلقات موندلې کیږی . خصوصاً صدیق دیندار خو پخپله هره دعوی کښې د غلام احمد قادیانی د مسیح موعود وغیره کیدلو تصدیق هم ملاویږی بیا دا بې ربطی د څرنه نه ده .شعر :

ربط بے ربطی حسن وعشق کیا کہے بیان　　　بام لے زینہ ہے وہ یہ زینہ بے بام ہے

## قادیانی اختلافات

قادیانی او لاهوری د دوو جماعتونو د اختلافاتو په باره کښې خپل ځان لره فیصله کونکې مقرر کړو او لیکی :

((دعیسائیانو پخپل مینځ کښې د اختلافاتو فیصله آسمانی محکمې سره اوشوه د احمدیانو په مینځ کښې د اختلافاتو فیصله به هم آسمانی حکم یوسف موعود (چن بسویشور ) سره کیږی . چه دهغه راتللو لره قرآن کریم او احادیثو او د بشارات مسیح موعود (مرزاغلام احمد قادیانی ) او او بشارات اولیائې دکن (هندوسادهو) او پخپله د یوسف موعود په الهاماتو کښې د الله راتلل وئیلې شوی دی . ((**ما اختلفتم فیه من شیء فحکمه الی الله**)) (دعوة الی الله ص ۵۳)

ښه اصلاح ئې اوکړه . په کوم څیز باندې چه پخپل مینځ کښې په جنګ وو . په هغې باندې ئې پخپله قبضه اوکړه .آیا اسمانی فیصله هم دا اوشوه چه د غلام احمد قادیانی د نبوت په باره کښې په خپل مینځ کښې په جنګ دی . ددې وجه نه تاسو پخپله ټللو سره نبی جوړشئ دهغوی اختلاف به ختم شی . همدارنګه د چن بسویشور دمرداریدلو څه موده اوشوه مګر د قادیانیانو او لاهوریانو په خپل مینځ کښې اختلاف خو لا تراوسه پورې باقی دې . بیاڅه فیصله اوکړه حضرت والا ؟ صرف ئې دومره مهربانی اوکړه چه دهغوی په خباثت کښې ئې نور خباثت ور زیات کړو او د ((فزادتهم رجسا الی رجسهم)) مصداق جوړ شو

پخپله د پیرصاحب خو د مرداریدلو موده تیرشوې ده لیکن د هغه متبعین اود دیندارانجمن

معزز افراد هم ژوندي دی هغه ټولو ته مونږ دا چیلنج ورکوچه په یو قرآني آیت کښې د یوسف موعود د راتللو خبر اوښائي ورنه صفا اووائي چه پیرصاحب دروغ وئیلي دی . هم دا معامله د احادیثو هم ده

همدارنګه یاد دې وی چه په دې کښې چرته د دکن د اولیاؤ د بشاراتو د مصداق کیدلو دعوی کړې دې دهغه اولیاؤ نه پخپله د هغه مراد د دکن هندوسادهؤ دی . په هغې سره دا عقیده هم حل شوه چه دهغوی په نزد هندوان خلق پاخه دیندار دی بلکه په اولیاء الله کښې دهغوی شمیر دې . د یوسف موعود په الهاماتو کښې د الله راتلل وئیلې شوی دی ددې مطلب هم هغه دې چه لږ غونډې وروستو ذکرکړې شو چه الله تعالی به دیو غیرمسلم یعنې چن بسویشور په شکل راځی

## د خلیفهٔ قادیان اصلاح

خلیفه قادیان د میامحمود د عقائدو په باره کښې لیکی:

« د دکن اولیاؤ (هندوسادهؤ) د نن نه تقریباً اته سوه کاله مخکښې فیصله کړې وه چه د خلیفهٔ قادیان عقائد غلط دی . هغه داسې چه میامحمود صاحب ته «دیربسنت» وئیلې شوی دی او د «دیربسنت» متعلق لیکلی دی چه هغه به غلطې عقیدې خوروی دهغه د عقائدو د اصلاح دپاره به چن بسویشور راځی . (دعوة الله ص ۵۴)

د عقائدو دا اصلاح چه دهغه پیر غلام احمد ته د آخری فرقې سردار اوویلو او خپل خان ته ئې د آخرین سردار ، بله څه اصلاح په سمجهه کښې نه راتلله ، ددې وجه نه چه چن بسویشور خو پخپله د اصلاح دپاره د خلیفهٔ قادیان میامحمود نه بیعت شوې وو . البته دا کیدلې شو چه دهغه خلقو په نزد مرید د پیر اصلاح کوی نه پیر د مرید .

## لنګایت

«یک نه شد دوشد» وړاندې خو صرف د احمدیانو موعود وو . اوس د لنګایت هم د موعود کیدلو تیاریانې په زور اوشور سره جاری دی . لیکی:

« په دې وخت کښې دخپل موعود د جماعتونو یعنې «لنګایت» او «احمدیانو» کښې په پوره طاقت سره پیش کیږم . هغه هم د یو بشارت په بناء باندې دې . په هغې کښې کامیابی ښودلې شوې ده . په هغې کښې دا حقیقت په نظر راځی چه «لنګایت» هندوانو کښې او «احمدیت» په مسلمانانو کښې دا دواړه په هرحیثیت سره زبردست جماعتونه دی . دهغوی توجه په ډیر زور سره خصوصی د هندوستان مختلفو مذهبونو طرف ته کیدل پکار دی . (دعوة الی الله ص ۴۵)

دیربنه : تاسو د لنګایتانو اوتار یئ . ددې راز ثابتیدل اوس ښکاره شو چه تاسو په

هندوانو کښې پيئ ښه ده .....مسلمانان چه په کومه مغالطه کښې وو جناب محترم هغه رفع کړو

## مسيح گر اود هغه خانقاه

محترمو لوستونکو ! تير شوی تفاصيلو ښه په ذهن کښې ونيسئ اوهغه ياد ساتئ . ددې ځائ نه څه نور انکشافات کيدلو والا دی٠ . د نن سبا حافظې کمزورې شوی دی ددې وجه نه مختصراً ورروستو سبق سردوباره کولوسره مخکښې څو صديق چن بسويشور ږومبې عام انسان وو . بيا قاديانی مغضوب ته لاړو . بيا د خليفۀ قاديان نه بيعت شو . بيامهدی آخرالزمان . پهر يوسف موعود ، بيا د ډيرو انبياؤ مثيل بروزِ محمد او عين محمدصلی الله عليه وسلم . دا ټول مدارج په آسانئ سره پوره کولو نه پس مظهرِ خدئ . مالک حشر . د انبياؤ حاکم . قاضئ حشر . په شان د خدائی صفاتو مالک شو. تردې چه دا شيخ چيلئ خود خدائ جوړ شو .

ښه جنابِ عالی ! دا ټولې عهدې دې مبارک وی . مګر آيا د يو خواهش بنده اود حب جاه د اوږی خيته صرف په دې دعوی گانو او ددې برابر په نورو دعوی گانو سره ډکيدلې شی ؟ هيچرې نه . چن بسويشور خدائ خو جوړ شوې وو اوس د رسولانو په راستولو کښې څه وخت لګيدلو . او هسې خو هم دا د خدائ ذمه داری ده . چن بسويشور د خدائ جوړيدلو باوجود د رسولانو د راستولو بندوبست اونه کړی نو د مخلوق د ګمراه کيدلو خطره ده . ددې وجه نه د رسول جوړولو دپاره ئې يو «تربيتی کورس » شروع کړو . دهغه مرکز (چرته نه چه د مکمل رسول جوړيدلو سرټيفيکټ ملاويدلو ) نوم دمسلمان نبی جوړيدلو دپاره « خانقاهِ سرورعالم » اود هندو نبی جوړيدلو دپاره ئې «جګت ګروآشرم » کيخودلو . د ديندارو په يو وخت پيغمبر او خدائ دا اعلان هم اوکړو چه اوس بل چاته دا اختيار نشته چه د پيغمبر او رسول استولو تکليف اوکړی

واوری : د چن بسويشور عبارت اوګوری:

« حسبِ بشارت د ګمنام مقام نه په امپانو کښې يو داسې طاقت (چن بسويشور) لره اودرولې شو چه مسيح ګر دې (مسيح جوړولووالا) او هغه وجود رسولانو لره جمع کولو والا دې . چه دهغه په خانقاه کښې د انبياؤ وارثان پيدا کيږی . مريم جوړيدلوسره کينی مسيح جوړيدلو سره راؤځی . د څلورم آسمان نه اووم آسمانه پورې سير کولې کيمی . څوک نوح عليه السلام . څوک ابراهيم عليه السلام دې . څوک يحيی او څوک نارو دې څوک موسی عليه السلام او څوک

.... موندلې شوې دې . او څوک هرليا او څوک بسويشور او څوک نرسهيودې . چونکه اولين کښې دا روحانيت وو . آخرين کښې هم هغه روحانيت دې دې دپاره چه مماثلت پوره وی . آيا په دنياکښې داسې سړې شته چه دهغه د خانقاه دا حال وی « العياذبالله ، الله دې نورو لره ددې نه محفوظه اوساتی آيا يود روحانيت دعويدار ته د «مسيح ګر» کيدلو دعوی شته . آيا دهغوی په

خانقاه ګانو کښې مثیلِ انبیاء پیدا کیږی . په خلاف ددې چه د هرې ګدئ او خانقاه رخ اومخه زمکې طرف ته ده . » «دعوة الی الله ص ۳»

## پیغمبر جوړونکې پوهنتون

محترمو لوستونکو ! د « مسیح ګر» په ترکیب باندې غوراوکړئ . هغه د زرګر په معنی دې . دلوهار په معنی دې د اوسپنې کاروبار کولو والا . اود مسیح ګر معنی ده مسیح جوړلو والا . دا نوې عهده دې مبارک وی . لیکن دا عجیب اتفاق دې چه دهغه مسیح ګر «خدای» رسول تراوسه پورې په دنیا کښې ژوندې دې او پخپله خدائ صاحب یې مردار شوې دې . د څوارلسمې صدئ مکار انګریزانو ته څه د داسې خدایانو ضرورت هم وو چه د نبی اود رسول کورس ښودلو قابل وی دې دپاره چه پخپله بیچاره ګانو انګریزانو ته دهغې زحمت پیښ نه شی . یو عدد داسې جامع جمیع کمالات پروفیسر هغوئ ته ملاؤ شو مګر اول خو دومره لویه « پیغمبر جوړونکی پوهنتون » لره چلولو دپاره د داسې ډیرو پروفیسرانو ضرورت وو دویم دا بل مصیبت راغلو چه هغه یو نبی ساز پروفیسر هم زر مړشو . د اکبراله آبادی مرحوم دا شعر د انګریز په دې هندی «پیغمبر جوړونکی پوهنتون» باندې پوره پوره صادق کیږی . شعر

دفترِ تدبیر تو کھولا گیا ہے ہند میں

فیصلہ قسمت کا اے اکبر مگر لندن میں ہے

په دې عبارت کښې ئې دا هم لیکلی دی چه دهغه انجمن انبیاؤ باندې د څلورم آسمان نه واخله تر اووم آسمانه پورې سیر کولې کیږی . رومبې د دریو آسمانونو سیر ولې نه کولې کیږی ؟ شاید په هغې کښې به څه مصلحت وی او یا به په هغې کښې د سیر ځائ نه وی .

## د مثال په طور مساوات

دهغه پوهنتون نه چه کوم انبیاء فارغیږی دهغوی یو څو مثالونه یې هم ذکرکړی دی او دخپلې انصاف پسندئ ئې هم ښه مظاهره کړې ده . دا نبی ساز پوهنتون چه په هغې کښې په یو وخت کښې هندوان او مسلمانان انبیاء جوړیږی په هغې کښې د جوړیدلو والا انبیاؤ په مثال کښې یې د څلورو مسلمانانو انبیاؤ نومونه ذکر کړی دی او څلور ئې د هندوانو نومونه پیش کړی دی او شان ئې د انبیاؤ په مثال کښې مساوات کولوسره د هندو مسلم د اتحاد شاباشې ئې حاصل کړې دې . یاد دې وی چه په هغه پوهنتون کښې مهدی او ماموروفت نه واخله بسویشور عهدی پورې انبیاء او رجال پیدا کیدل . صرف یو عهده چه د چن بسویشور ده دهغې تیاریانې دلته نه کیدلې

ځکه دا منصب خود حضرت والا دې او په پورتني عبارت کښې يې دې دعوې باندې صراحة بنديز لګولې دې . ((الا عنداشدالضرورة)) چه دهغې فيصله به براه راست د لندن د پوهنتون نه دهغه مقصد دپاره مقرر شوی ماهرين امور شيطنت کوی

## د انبياؤ ۳۱۸ زړونه

د ديندار انجمن د بانی په مجموعه چالبازيانو کښې يو د ۳۱۸ چکر هم دې . دې لره په غور سره اووائې :

((حديثونو کښې بشارت دې چه هر دور او نسل انسانی مسلمان کښې درې سوه اتلس زړونه د تير شوو انبياؤ موجود وی . قرن اولی کښې دهغې مجموعه وه . د فيج اعوج په زمانه کښې د فرقه بازئ په وجه قلوب منتشروو . قرن آخری چونکه د حشر زمانه ده ددې وجه نه هغه ټول قلوب د انبياء ماسبق د آخری امیین په صورت کښې خانقاه سرورعالم حيدرآباد دکن کښې جمع شو . ځکه دهغوی د سردار صديق (چن بسويشور) د پيدائش مقام په دې رياست کښې دې . دا ښاز ټولو کمالاتو لره جمع کوونکې دې اود جلال او جمال کافی سامان دلته دې)) (دعوة الی الله ص ۴)

## د مړو ژوندی کوونکې

د خپل شان په باره کښې ليکی :

(( دآخرين سردار صديق ديندار په صحبت سره ډير خلق مثيل انبياء جوړشو او جوړيږی خانقاه کښې چه ژوند وقف کولو سره کينی هغه مريم جوړيږی . چه کله هغه ميدان کښې راوځی نومسيح جوړيږی . هم دغه شان مړو لره ژوندی کولو والا زمونږ د خانقاه نه اوځی ګونګيان خبرې کوی . کومو ته چه الله تعالی په يحیٰ ، نوح او موسیٰ سره اواز اوکړو هغه هم ځما بيعت کړې دې . او قاسم صاحب چه دهغه مماثلت د نوح دې هغه هم ځما په بيعت کښې دې ـ الخ ))

(دعوة الی الله ص ۹۱)

د ديندار د صحبت نه څه ډير خلق د انبياؤ په شان جوړشو او څه جوړيږی . د نبی پيدا کولو دا صنعت څه ډير ښه دې . د يو طبی کالج د چانسلر صاحب سره ملاقات اوشو . هغه اووئيل چه زمونږ کالج ماشاء الله ډير ښه روان دې دلته ډير خلق ښه ښه ډاکټران جوړ شو او څه ډاکټران جوړيږی . څه خيال دې . په دواړو خبرو کښې ښه يو والې دې . مونږ چه کوم ((د نبيانو جوړولو پوهنتون)) ليکلې وه دهغې به اوس يقين کيږی ګويا نبی جوړيدل يوه تماشه ده. يا په به عبارت سره داسې اووائې چه په دنيا کښې چه څنګه صنعت يوه پيشه ده چه سړې په هغې کښې محنت کوی دهغې سندونه حاصلوی هغه ته دخپل لين څه نا څه منصب حاصليږی چه په هغې سره هغه

خپل کسب معاش کوی . هم داسې نبی او رسول لره هم اوګڼئ چه هغوی کسب معاش یا د وخت تیرولو طریقې دی . د قادیان ټولو انبیاؤ نه فقط ددې مقصد لاندې خپل نبوت استعمال کړو بلکه پخپلو اقوالو او افعالو سره یې خلقو لره په دې باندې پوهه کړه چه نبوت د داسې قسم کاروبار دې

«هم دغه شان مړو لره ژوندی کولو والا زمونږ د خانقاه نه اوځی »

په دې عبارت ته په غور سره اوګورئ او بیا دیندارانجمن والو نه پوښتنه اوکړئ چه ای مړو لره ژوندکولو والا خلکو ! نور خو به څه کوئ دا خپل نبی او خدائ خو دوباره ژوندی کړئ اوهغوئ راولئ دې دپاره چه ستاسو اصلاح وکړی او د امت هم اصلاح وشی .

## د مشورې مجلس

چن بسویشور دیو اهم راز انکشاف کړې دې . لیکی :

« دا (اهل الله) په اهم معاملاتو کښې قرآن اوحدیث کښې د غور کولو نه پس د خداوندِ کریم په دربار کښې مشوره کوی » (معراج المؤمنین ص ۳۳)

دا اصطلاح مه هیروئ چه د چن بسویشور په نزد اهل الله او اولیاء الله هندو سادهؤ ته وئیلې کیږی . او بالفرض که مسلمان اولیاء الله مراد وی نو بیاهم په قرآن اوحدیث کښې چرته راغلی دی چه اهل الله د الله په دربار کښې مجلسِ شوریٰ منعقد کوی؟ . البته که چرته د الله تعالی د دربار نه د چن بسویشور دربار مراد وی نو دګوم خائ نه چه نبی او رسول جوړولوسره لیږلې کیږی نو صحیح ده مګر دا اهل الله ډیر خطرناک وی . الله تعالی دې مسلمانانو لره دهغه اهل الله نه پخپل حفاظت کښې اوساتی . حقیقت کښې دا د ابلیس د مشورې مجلس دې او دوی داولیاء الله په صورت کښې اولیاء الشیطان دی .

## علومِ شرعی کښې صفر

چن بسویشور خود د مامورِ وقت په عهدې باندې له اول نه قابض شو او علومِ دینیه نه ماشاء الله خبر هم نه شو . ددې وجه نه ددې شبه ازاله کوی او لیکی :

« معلومیږی چه مامورِ وقت یعنې فنافی الرسول ظاهری علوموکښې مشهور اومعروف نه وی » (معراج المؤمنین ص ۳۲)

## مامورِ وقت څوک وؤ؟

پاسنی عبارت کښې د مامورِ وقت ذکر وو . مګر ددې نې تشریح اونه کړه چه هغه څوک دې . راروان عبارت کښې دهغه یو څه معلومات هم درکوو . لیکی

« فقیرګاندهی جی او محمدعلی مرحوم ته بې وئیلی وو چه تاسو ټول خما اطاعت اوکړئ .

انشاء الله په لسو کالو کښې دننه ثمر درکوم » (معراج المؤمنین ص ۳۷)

د امتی جوړولو دپاره ماشاء الله نظرِ انتخاب په اوچت شخصیتونو باندې پریوتلې دې دیر ښه اوشو چه ستاسو تجویز لره هغه خلقو ونه منلو . فرمائی چه تاسو ځما اطاعت اوکړئ ځنګه چه اطیعوا الله واطیعوا الرسول کښې د الله د اطاعت او د رسول د اطاعت حکم دې.

## په پرده کښې ئې پرېږده

د مامورِ وقت حقیقت بیانوی او لیکی:

معلومیږی چه مامورِ وقت یعني فنا في الرسول انسان ظاهری علومو کښې نه مشهور کیږی او هغه سرکاری ملازمتونو او عهدو باندې نه مامور کیږی هغه د خدائ مقررشوې انسان وی د حکومت په دربار کښې دهغه عزت نه وی ، هغه په یو پرده کښې وی دې دپاره چه د الله د کار خلق ده ته نزدې راشی » (معراج المؤمنین ص ۳۲)

خپل مبلغ علم چه څه غواړی بیان دې کړی مګر دا دروغ دې نه وائی چه د الله مامور خلق په پرده کښې اوسیږی . په پرده کښې خو ښځه اوسیږی . د خدائ پیغمبر میدان ته راځی . چرته چه د اعلاء کلمة الحق اوستا په شان د دروغژن مدعی نبوت د ختمولو ضرورت وی هغلته ځی . البته د « نبی ساز پوهنتون آصف نګر» نه چه کوم نبیان او ماموروقت جوړولوسره راوځی هغه ضرور پرده نشین وی . ددې وجه نه چه هم ستا په قول « هغه مریم جوړیدلوسره کیښی » (دعوة الی الله ص ۳)

دا یو داسې انذارِ فکر او غورزیدلې طبعیت دې چه ذهنونو لره په ابهام بلکه خطرناک حالاتو طرف ته بوځی .

## دا مبهم حل کړئ

د چن بسویشور د طرفه یو پیچیده معامله ستاسو په خدمت کښې وړاندې کیږی . دا مبهم حل کړئ . فرمائی « دا خلق ژوندی دی . دوی جسم کشیف هم نه دی . لطیف هم نه دی . اراده اوعقل ئې هم نشته . اطمینان ئې هم نشته . دا ټول د یو بل ماتحت دی . دې د چا ماتحت نه دې . دا ټول ضائع کیدلو والا دی . دې د فنا نه خالی دې . خدائ لره غائبولو سره مظهرِ خدا جوړ شو . » (معراج المؤمنین ص ۳۲)

## مبهمات ...... مهملات ...... واهیات

دچن بسویشور چه دکوم کتاب نه دا حوالې ورکړئ شوی دی دهغه نوم دې (معراج المؤمنین) ددې کتاب پیش لفظ یو بل دیوانه مولا ابو احمد دستګیر لیکلې دې . په هغې کښې ډیر عبارتونه

داسې مهمل دی چه مونږ ته یقین دې چه نه هغه پخپله پرې پوهیږي چه دهغې نه دهغه مطلب څه دې اونه د هغه گرو «پیر» ته دهغې مطالب معلوم دی عام انسان به خاورې په هغې پوهه شي یو دوه داسې عبارتونه ستاسو د پوهې دپاره لیکم:

« ځنگه چه جهاد په سړو باندې فرض دې هم هغه شان قرآن کریم ذات وحدة الوجود رحمة للعالمین باندې فرض دې »

اوبیا ارشاد دې:

«هم ددې حقیقت په اظهارکښې الله تعالی چه کله د روح د نزول ذکرکوی نود وحدت اظهارکوی »

اوچه کله د روح د اظهار اراده نه کوی نو آیا د « کثرت » اظهارکوی ؟ ددې مبهماتو حل مطلوب دې . او بیا فرمائی:

«داسې زمانه کښې د حضورمنبع انوار صلی الله علیه وسلم اوسیدل ضروری دی. دې دپاره چه خپل دربارگرم کری . دهغه دربارِ مبارک شان هم فرضیتِ قرآن نه ښکاره دې »

د فرضیتِ قرآن اود وحدت اوکثرت دا اصطلاحات زمونږ د فکر نه اوچت دی ځکه چه دا شیطانی الهامات دی چه دهغې نه مونږ په الله سره پناه غواړو . «اللهم لا ملجأ ولا منجاء منک الا الیک ».

## دریو لره ځلورو کولو والا نبی

‹۱› «زه د ورونو په لحاظ سره هم ځلورم نبی یم اود خوریانو په لحاظ سره هم ځلورم په وړوکو کښې هم ځلورم او په لویو کښې هم ځلورم یم . »

‹۲› « ځما د پیدائش ساعت ځلورم دې . ورځ ځلورمه ده تاریخ مې ځلورم دې . پیړۍ وروستو د زرو نه ځلورمه ده . کال ځلورم دې یعنې ۴ رمضان د پیرپه ورځ په ۱۳۰۳هجری کښې پیدا شوم . » ‹خادم خاتم النبیین ص ۵۹›

دا دوه دلیلونه واقعی ډیراهمیت لری . نبوت باندې ئې د استدلال دپاره د روند ړنده چلولې ده.

## قادیانی نشان

خپل نبوت باندې استدلال کښې لیکی:

« د ۱۹۲۵ء په جولائی میاشت کښې قادیان ته تللې ووم . هغلته هم الله تعالی د نشانې په طور بې موسمه بارانونه وکړه هغه داسې چه یوشپه کښې دننه د قادیان اطراف تالابونه شول . موټرسائیکلې او ټانگې بندې شوې او کم نه کم اوبه په لارو کښې ترپنډو پورې ولاړې وی .

: خلقو نه مې واوريدل چه شايد په يوه زمانه کښې په يو شپه کښې دومره باران راغلې نه وی او په دې باران کښې يوه بله نشانی دا وشوه چه د قاديان مشهوره کتب خانه چه په هغې کښې د زرگونو روپو کتابونه وو . يوه حصه د يوال سره د چهت نه را گذار شو او د شپې وخت وو . باران ډير په زورکښې وو . هيچا خبر وانه خستلو آخر سحره پورې ټولې الماريانې په ختوکښې لړلې ټول کتابونه لامده شوی وو . سحر دې نظارې دحال په ژبه چغې وهلې چه کومه کتب خانه د قاديان د علميت د فخر باعث وو . د چن بسويشور تصرفاتو هغه علم باندې اوبه واچولې . دخوند خبره دا چه هغه ټول کتابونه د گرمئ په وخت چه کله نمر ته خلاصولو سره کيخودلې شو نو هغلته کيخودلې شو چرته چه فقير ډډه وهلې وه . فقيرپه ناسته دا نظاره کتله اود خدائې قديرد احسان مزه ئې اخستله . داسې معلوميدل چه دا کتب خانه پخپلې ژبې سره وائی ای صديق! قاديان والو زمونږ د الفاظو غلطه معنی کولوسره په دنيا کښې شور جوړکړې دې مونږ تاته فرياد راوړې دې . فاعتبروا يا اولی الابصار لهم البشریٰ فی الحياة الدنيا والآخرة »

(خادم خاتم النبيين ص ۳۵)

په ټولو خبرو کښې يو خبره واخلئ . تاسو ته به اندازه اوشی چه په هغې سره خپل نبوت باندې استدلال کولو والا په څومره اوبو کښې دې . په هرډليل سره د چن بسويشور د يو نوې بې وقوفئ علم حاصليږی .

چن بسويشور د قاديان د کتب خانې په لونديدلو سره چه په کومه خوش فهمئ کښې مبتلاء دې دا د هغه قصورِ فهم دې د قاديان د کتابونو لونديدل او هغه هم داسې وخت کښې چه جناب چن بسويشور هغلته موجود وی . دا بې معنی نه دی ، ليکن هغه ددې په مطلب باندې غلط پوهه شوې وو . حقيقت کښې مطلب داووچه : « ای چن بسويشور! چه کومو کتابونو لره ته دخپل مرکز او ماخذ په خيال سره راغلې ئې . دکومو حوالې چه شپه او ورځ پخپلو تقاريرو او کتابونو کښې ليکې . دکومو نه چه خپل نبوت . چن بسويشور . يوسفِ موعود او ماموروقت کيدلو باندې استدلال کوې وغيره وغيره . نن په هغه ټولو کتابونو او دلائلو باندې اوبه توئ شوې . دا ټول دلائل او کتابونه په ردی ټوکرئ کښې د اچولو قابل دی . څه بې وقوفه جوړ شوې ئې چه ددې نه استدلال کوې . دا وو دهغه کتابونو آواز چه دهغوئ دحال د ژبې نه وتلو . فاعتبروا يا اولی الابصار لهم خزی الدنيا وعذاب الاخرة »

## چن بسويشور او د قاديان خليفه

د قاديانيت سره د عشق ابتدا داسې کيږی :

« مختصرحال دادې چه هسې خو ۱۹۱۰ء کښې فقير هم قاديان ته تللې وو . هغه وخت دې سلسلې طرف ته توجه ونه شوه » (خادم خاتم النبيين ص ۵)

بلی صیب ! هغه وخت به دنبوت پټ راز نه وو ښکاره شوی . ارشاد دي :

« خما نیکه اراده او خلوص اوګورئ . ما د حق په لټون کښې پخپله د میا محمود صاحب خلیفۀ قادیان خلافت منلو سره دهغه په لاس باندې بیعت کړې وو او قادیان ته ورسیدلم او په نیکه اراده سره مې تحقیقات کول اودهغوی په عقائدو کښې مې غلو کول خوښ را نغلل. دعاګانې مې وکړې . آخر الله تعالی خپل بنده لره بچ کول غوښتل دهغه خائ نه را اووتلم بیعت مې فسخ کړو او لګاتارمې دهغه عقیدې په تردید کښې دولس کاله کار وکړو او په ډیرشد اومد سره مې کار وکړو . آخر الله تعالی د فقیر دعا قبوله کړه اود هغوی (قادیانیانو ) د جماعت منتظرموعود یې جوړکړم (درین چه شک ۱۲ مؤلف ) دده نه هم هغه کارمحض دخپل رحمانی تقاضې لاندې اخلی چه ددې نه وړاندې ئې د (غلام احمد قادیانی او هندو ساد هو وغیره ـ مؤلف ) نه کار اخستلې وو او ډیرې ښې ئې ښکاره کړې او قدرت لره ئې کمال درجه باندې زمونږ سره کړو »

( خادم خاتم النبیین ص ۲۵ )

واقعی د نیکې ارادې او د اخلاص دا انتهاده چه رومبئ ئې بیعت اوکړو او وروسته یې د عقائدو د صحت اود بطلان تحقیق کولو . بیا ئې د نبوت په ګدئ باندې پخپله قبضه وکړه او بالآخرخدائ جوړ شو . اوبیا وایی چه :

« زه دهغه فاضلِ اجل (چه په حقیقت کښې فاضلِ اجهل دې ـ مؤلف ) هرلعنت او ملامتیا لره مې په اطمینان سره اوریدله . چه کله هغه زه دنیادار ګڼلو سره یې د ریاست محبوب مخې ته راوړم نو زه فوراً نیغ شوم ( رومبې کوږ وو ـ مؤلف ) او وې وئیل قلم او درنګ بوتل راوړئ زه اوس لیکم زر خلې لیکم چه زه پوخ قادیانی یم » (بلاشک اوشبه ـ از مؤلف ) او کاغذ اخستلو سره ئې دا لاندې خط ولیکلو :

«صدیق دیندار پوخ احمدی دې . قادیانی سلسله چه د قادیان نه میامحمود جاری کړې ده دهغې سخت دښمن یم . او عقائد چه میا محمود جاری کړی دی دهغې بیخ کنی به خامخا کوم . (صدیق دیندار چن بسویشور (خادم خاتم النبیین ص ۲۹ )

اوبیا نور وضاحت کولو سره خپل اودهغه دنښانو ذکر فرمائی :

« ددې خبرې ګواهان تقریباً د ټول دکن اقوام دی . دهغه په عبارتونو کښې دا خبره راروانه ده چه رومبې به دیربسنت (اولوالعزم محمود) ښکاره کیږی دهغه په خیالاتو سره به په عالم کښې پریشانی وی خلق به ګمراه شی . دهغه د لرې کولو دپاره به چن بسویشور ښکاره کیږی . دې بزرګانو دهغه دواړو د وجود تاریخ ظهوراو نشانات ښودلی دی ددې که څوک تردید اوکړی نوزه هر شرط منظورولو دپاره تیاریم . ګویا پیشن ګوئیانو زمونږ د دواړو لاس نیوئ سره او ښودل چه دا چن بسویشور دې او دا دیر بسنت . د چن بسویشور په حالاتو سره به تاسو ته څه حده پورې علم

شوې وی . اوس صرف د دیربسنت نښانات بطور حجت دوباره پیش کولو سره چیلنج درکوم چه که چرته نښاناتو والا د دیربسنت میا محمود احمد صاحب خلیفه قادیان نه سوا بل څوک دې نو ثابته کړئ نو په داسې صورت کښې هر شرط منظور دې .

د دیربسنت (اولو العزم محمود) والا یو جدا کتاب تیار دې په هغې کښې تفصیل وار بیان دې ، ددې نښاناتو نه علاوه نور هم ډیر نښانات دی ، مګر اوس زه د جماعتِ قادیان او د تمام عالم نه سوال کوم چه دلته قدیم کتبِ اولیاء کښې دا پیشن ګوئیانې موجود او هغلته موعود انسان (یعني میا محمود خلیفه قادیان ) موجود دې . بیاتاسو لره په شک کښې اچولو والا هغه کوم څیز دې . دهغه پیشن ګوئیانو سره ئې لیکلی دی دا دیربسنت مسلمانانو ته د قرآن کریم د الفاظو غلطې معنې ښائی ، او ایشوراوتار چه هغه ته رحمة للعالمین وائی دهغه هتک او سپکاوې به کوی »
(خادم خاتم النبیین ص ۸)

او بیا لیکی :

«او ورسره ئې دا هم لیکلی دی چه داسې سرې عقائدو کښې غلطئ باندې وی . دهغه اصلاح به صدیق چن بسویشور سره کیږی او صفائې لیکلی دی چه دیر بسنت (اولو العزم محمود) د قرآن د الفاظو به غلطه معنی بیانوی . او لیکلی ئې دی چه د چن بسویشور عقائد په صحیح وی اود چن بسویشور په ذریعې سره د یربسنت د عقائدو به اصلاح کیږی (خادم خاتم النبیین ص ۱۰)

مونږ پخپله د بسویشور د عبارتونو نه ثابته کړې ده چه د اولیاء الله نه مراد دهغه هندو سادهو دی او اوس دا حضرات هم دهغوی د زړو کتابونو په حوالو سره دخپل خان اود میامحمود علامات پیش کوی ، په هغې کښې د یوڅو کتابونو نومونه دادی :

څلورمشهورویدیعنې رګوید ،سام وید ، یجروید ، اتهروید ، داس ګپتا اومیتاپوراد هندوانو په نوو کتابونوکښې هندوازم ، ستیارتهه پرکاش سوامی او دیدارتهه پرکاش وغیره داسې کتابونه دی چه په هغې سره بسویشورته دخپل نبوت دپاره نورې نښانیانې ملاویدلې ، که چرته دا کتابونه هغه ته ملاؤ شوې وې نو پته نشته چه دهغه خباثتونه به دکوم ځائ نه کوم ځائ پورې رسیدل .

منجمله د نورو خبرو سره ئې دا خبره هم لیکلې ده چه د چن بسویشور په ذریعې د میا محمود د غلطو عقائدو اصلاح به کیږی ، نورې خبرې کوم حده پورې رښتینې رااوتلې زمونږ فی الحال دهغې سره بحث نشته لیکن قارئین حضرات بلکه پخپله د دیندارانجمن حضرات دې په ایماندارئ سره اووائی چه د میا محمود کوم عقائد هغه وخت وو آیا دهغې اصلاح اوشوه یا هم داسې پاتې شو بلکه دهغه په عقائدو کښې ورځ تررورځه نور زیات خباثتونه شامل کړې شو تردې پورې چه مردار شو

## د میا محمود نور تقدیس اوصفات

د میا محمود نور تقدیس اوصفاتو بیانولوسره لیکی :

« فقیر (چن بسویشور) پوهیږی چه هغه (میا محمود دیربسنت خلیفه قادیان) یو متقی سړي دي او ډیرو زیرو ورکولو والا دي ، دهغه سره زمونږه جهګړا صرف په یوڅو فروعاتو کښي ده چه دهغي د غفلت نه اصولی کیدلو اندیښنه ده ، هم ددې وجه نه ما مخالفت وکړو .

اوس مخالف نه یم ځکه چه الله تعالی ما ته علم راکړې دې چه هغه به زر زمونږ د عقیدې والا شی چه دهغې آثار دیوڅو میاشتو نه ښکاره کیږی .

(خادم خاتم النبیین دیباچه ص ز یکم جون ۱۹۲۷ء)

ذکر شوی عبارت کښې میا محمود سره متعلق ئې لیکلی دی چه :

« هغه سره زمونږه جګړه صرف په یوڅو مذهبی فروعاتو کښې ده »

یاد دې وی چه دا کتاب « خادم خاتم النبیین » چن بسویشور په ۱۹۳۲ء کښې لیکلې دې او ددې تصریح هغوی پخپله د تولو نه په رومبنی کتاب د « دعوة الله » په ص ۴۴ کښې کړې ده .

## ۴۲۵۷ دروغ

دخپل کتاب خادم خاتم النبیین ذکرکولوسره یې د دروغو ریکارډ مات کړې دې :

« ددې نه پس ۱۹۲۲ء کښې ما یو کتاب « خادم خاتم النبیین » اولیکلو چه دهغه کتاب مقدمه وه چه دهغې ذکر دهغه کتاب په ص ۵۸ ، ۵۹ باندې دې . دهغه زمانې نه تراوسه پورې ۴۲۵۷ الفاظو کښې الله تعالی خما سره کلام کړې دې ، د قرآن کریم او احادیثو نه هم ددې دعوې تاریخی ، قدرتی او شهادتی ثبوت ملاؤ شو . دا کتاب « دعوة الله » د سنت انبیاء مطابق د « انی مغلوب فانتصر » په زمانه کښې لیکلې کیږی » (دعوة الله ص ۴۴)

## د دروغو ریکارډ ئې مات کړو

۴۲۵۷ دروغو وئیلو سره چپ نه شو بلکه نور ئې دا ظلم اوکړو چه وې ویل چه دا ټول دروغ قرآن او احادیثو کښې تاریخی ، قدرتی او شهادتی طورباندې ثابت دی . دهغه ټولو د لټولو تاسو نه چرته فرصت دې او نور دروغ یې هم وئیلی دی مګر څه فرصت ویستلوسره په هغې کښې یو دروغ د قرآن یا حدیثونه اوښائې نومهروبانی به وی . شعر :

جھوٹ کا بازار تھوڑے روز ہے
بعد اس کے حسرت دل سوز ہے

## د چن بسویشور منلو والا دجالانو مختصرفهرست

په دې سلسله کښې پخپل كتاب دعوة الى الله ص ۵۴. ص ۵۷ کښې د ډيرو قاديانيانو دجالانو نومونه ئې ذکر کړی دی چا چه د دوی سره دخپل عقيدې اظهار يا ئې بيعت کولوسره منلې دې . يومختصرفهرست ديوڅو مشهورو عالمانو دجالانو د نومونو پخپل عبارت کښې درج دی:

«د اهلِ بصيرت دپاره ځما دعوىٰ د نمر په شان روښانه ده . سعيده ارواحو ته چه کله ځما خبر رسيږی نو سر تسليمولو ته ايږدی . آمنا وصدقنا وائی . حسبِ ارشاد مسيح موعود (مرزا غلام احمد قادياني د سلسلهٔ احمديه په لويو عمرونو موندلو والا کښې کومو خلقو چه ځما تصديق کړې دې په هغوی کښې مشهور اود ذی اثر اشخاصو يو څو نومونه لاندې ذکر کيږی:

(۱) زبدة الحكماء مرزاخدابخش صاحب مصنف عسل مصفٰی ځما تصديق اوکړو (دعوة الله الله ص ۵۲) (۲) د سلسلهٔ احمديه نورو مشهورو کسانو کښې مشهورانسان ډاکټر امين حسين شاه صاحب جنرل سکريټری جماعتِ احمديه لاهور . شاه صاحب اووئيل چه «ما اوريدلی دی چه ستاسو دعوىٰ د مصلح موعود ده» ما اووئيل (او) زه ستا تصديق کوم . که چرته تاسو غواړئ نوزه ستاسو په لاس باندې بيعت کولو ته تياريم . زه ستاسو اصول اوعقائدو لره د امتِ مرحومه دپاره باعثِ برکت گنم . ما مولوی محمدعلی صاحب (اميرقادياني جماعتِ لاهور) لره هم ستاسو په نسبت ځما هم عقيده اوموندلو» (دعوة الى الله ص ۵۷)

په دې باندې که څوک تبصره کوی نونه څه به اووائی . بس دومره ونيلې شی چه:

شعر : عيسىٰ نتواں گشت بتصديقِ خرے چند

## د ا فتنه بيا راپورته کولې کيږی

**محترمو کتونکو** : تاسو په دې باندې پوهه نه شوئ چه د ديندار انجمن بانی چن بسويشوراو نورلوئ کسان جهنم ته ورسيدل . نو اوس فتنه ختمه شوې ده . بلکه دا فتنه هم هغه زور اوشورسره بيا سر اوچتوی ځنگه چه د انجمن بانی شروع کړې وه . بلکه دا فتنه خو په شروع کښې د کفراو ارتداد ښکاره دعوت سره خوريدله چه په هغې سره عامو مسلمانانو ته هم اکثر او زيات دهغوی حالت معلوميدلو . مگر اوس خو دا د کفر او ارتداد سره سره نفاق . دهوکې او نهايتِ خفيه عزائمو سره ميدان ته راغلې ده . خلاصه داده چه دعوام الناس وراندې دا نه ښکاره کيږی چه مونږ ددې عقائدو حامل يو . د چن بسويشور مريدان يو . بلکه ونيلې کيږی چه مونږ پاخه ديندار د سرکارِ دوعالم صلى الله عليه وسلم عاشقان يو . د مسلمانانو بدحالت کتلوسره مونږه د هغوی اصلاح دپاره راوتلی يو . په دې باندې زيات داچه ساده مسلمانانو نه د دين په نوم باندې چاندې اخستلو سره د انسانيت سوزولو کتابونو په نشر اواشاعت کښې لگوی .

## شوګرکوتید تیلبتهس

صورت زاہد سے اسکو نظر سمجھا تھا مگر
جب اٹھا پردہ تو ابلیس لعین آیا نظر

دیندارانجمن والا عام طور باندې مسلمانانوته د اتحاد، جوش جهاد ، د مکتبونو او لجونو د اصلاح وغیره سره متعلق تبلیغ کوی او دا تاثر ورکوی چه مونږ مبلغین اسلام یو ، ونږ د تبلیغی دعوت دا ابتدائی مقدمې دی ، په دې طریقه جاهل عوام خصوصاً نوجوانان چه وی نه د دین صحیح علم نشته دې ډیر زر دهغوی په دوکه کښې راځی ، هغوی د نشر اواشاعت ظم کار شروع کړې ، عام طور باندې کتابونه هغه منافقانه انداز کښې لیکلوسره چاپ کوی چه ام دهغې نه بداثروانخلی ، چنانچه چه یوکتاب کښې لیکی نود اخوا دیخوا نه ناصحانه خبرې کلولیکلوسره په مینځ کښې کربښه نیمه دخپل بانی انجمن یوخبره ذکرکوی یا هغه طرف ته اشاره وی ، چه دهغې دا اثر اوشی چه عوام او دنوجوانانو طبقه هغه دجالانو نه په هغه انداز سره تعارف شی چه هغه کافرانو دجالانو سره دهغوی حسنِ ظن پیدا شی بیا رو رو جماعت کښې اخل شو او بیا هغوی سره یوځائ د ایمان سره د غیرت هم عادی شی نو بیا هغوی ته اصل کتابونه نوم چه مقصود دی بالترتیب وشیلو دپاره ورکولې کیږی او خبیث ترین مضمون چه د اصل بانی نجمن دې د تولو په آخرکښې ورکولې کیږی ، چنانچه بعضې خلق چه د دیندارانجمن د فریب او بې دینئ نه خبرشی دهغوی نه جدا شوی دی دهغوی وینا داده چه مونږ د هغوی په انجمن کښې په حیثیت د مبلغ کار کړې دې لیکن ډرې خلورو کالو پورې دهغوی اصل کتابونه مونږ ته رانه کړئ شو ، دهغې نه پس چه کله په مونږ باندې ئې پوره اعتماد وشو چه دوی به په هر قسمه زمونږ بې غیرتی برداشت کړې شی نو بیا ئې د انجمن د بانی کتابونه مونږ ته راکړې شول چه دهغه خباثتونو لره کتلوسره مونږ دهغه نه متنفر شو او د هغه نه مود براءت او د توبې اعلان وکړو .

## نشر اواشاعت کښې د دیندار انجمن د مکر یو مثال

سعیدبن وحید چه دهغه ذکر په دې کتاب کښې وروستو ډیرخلې راغلې دې ، په دې سلسله کښې د تولو نه اول دې ، کراچئ کښې د دیندارانجمن د نګران په حیثیت سره داخباثتونه د تصنیف او تالیف په صورت کښې خوروی چنانچه په دې سلسله کښې هغه ډیر کتابونه لیکلی دی چه په هغې کښې اکثر د احقر د نظر نه تیرشوی دی . د مثال په طور باندې دهغه کتاب « ملی مسائل کا قرآنی حل» لره واخلئ ، په دې کښې هغه لوئ دردوونکی او زړه وره لهجې کښې د نظریهٔ پاکستان وغیره نه بحث کړې دې او ډیرو خامیانو طرف ته ئې توجه ورکړې ده ، دا کتاب په ۲۴ صفحاتو باندې مشتمل دې ، د کتاب ۵۸ صفحاتو لیکلو نه پس اوس ئې مقصد طرف ته لطیفې

اشارې شروع کړی دی او په ډیرې چالاکۍ سره مقصودِ اصلی چن بسویشور طرف ته راغلې دې ، چونکه دیندار انجمن والا چن بسویشور لره نبی منلو سره سره «مامورِ وخت» ورته هم وائی ، ددې وجه نه ئې د «تدبیرامر» او د «تعیینِ شخصیت» دوه مختصرعنوانه قائمولوسره په هغې کښې یو څو مثالونه ورکړی دی ، دهغې نه پس یې مقصدطرف ته داسې لطیفه اشاره کړې ده ، «غرض قرآن پاک کښې داسې ډیر مثالونه موجود دی چه منجانب الله د«تدبیرِامر» اود «تعین شخصیت» معلومات ورکوی . (ملی مسائل کا قرآنی حل ص ۶۰)

ددې نه پس ئې د «ماورائ عقل» عنوان قائمولوسره دا ظاهره کړې ده چه خلق اگرچه داسې شخصیتونو ته پاگل وائی مگر دوی الله والا دی ، بیا وړاندې تللو سره انتهائی چالاکۍ سره دهغه مامورشخصیت نوم ئې په دې انداز سره ذکرکړې دې چه خلق دا محسوسه نه کړی چه مصنف دهغه یقینی فیصله اوروی چنانچه د «بشریٰ للمؤمنین» عنوان لیکلوسره دا عبارت ئې لیکلې دې :

هندوستان مسلمان کیدونکې دې «الهام بانی دیندارانجمن» (ملی مسائل کا قرآنی حل ص ۶۱) د بانی انجمن دا الهام دوی جلی او خط کشیده څه داسې لیکلې دې چه د راروان عبارت دپاره د عنوان هم کارورکړی ، د مامورشخصیت دا الهام «بشری للمؤمنین» دې .

چن بسویشور چه هغه د نبوت اوخدائې پورې دعوې کړی دی دهغه نوم کتاب «ملی مسائل کا قرآنی حل» کښې داسې اعزاز اواکرام او تعظیم سره ذکرکړې دې ، «بانی دیندارانجمن حضرت مولانا صدیق دیندارچن بسویشورقدس سره العزیز» (ملی مسائل کا قرآنی حل ص ۳)

د دنیا دهغه بدترین کافر نوم داسې اعزاز سره اخستلې کیږی چه هغه د یوسف موعود ، مهدی آخرالزمان ، نبی ، بروزمحمد بلکه خدائې پورې دعوې کړی دی ، ددې باوجود دیندار انجمن والا عوامو لره ددې باور ورکولو کوشش کوی چه دې مسلمان دې .

مسلمان خو د ختمِ نبوت دا تشریح کوی چه د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس به هیڅ قسمه نبی نه راځی خواه که هغه نبی مستقل وی یا ظلی د بروزی ، لیکن سعیدبن وحید د ختمِ نبوت تشریح کولوسره لیکلی دی : «څکه چه د اعلانِ ختمِ نبوت منشاهم داده چه اسلام اوصرف اسلام د دنیا واحد دین وی» (ملی مسائل کا قرآنی حل ص ۱۳)

دې عبارت سره عوام الناس ته په آسانۍ سره دوکه ورکولې شی چه خبره خو ئې ډیره ښه لیکلې ده مگر په دې نه پوهیږی چه د ختمِ نبوت تشریح چه بالکل واضحه ده چه د حضورصلی الله علیه سلم نه پس به هیڅ قسمه نبی نه راځی ، دې لره پریخودلوسره دهغه تشریح ضرورت ولې راغلو؟ چه داده چه دهغه تشریح په رڼا کښې که چرته څوک د مستقل نبوت دعویٰ ونه کړی بلک د ظلی نبی د بروزی نبی کیدلو دعویٰ وکړی او دا اووائی چه دهغه مذهب هم اسلام دې نو هغه چونکه اسلام

## د حکومت نه درخواست

مونږ تیرو شوو کرښو کښې ورکړې شوو حوالو طرف ته خپل عوامی حکومت لره توجه ورکولوسره ټولو مسلمانانو ته دا درخواست کوو چه چونکه د حضورصلی الله علیه وسلم نه پس چن بسویشور د نبوت مدعی دې ، او همدارنګه د یوسفِ موعود او د مامورِ وخت او د نورو انبیاءِ کرامو علیهم السلام هم مثل کیدلو او ددې نه هم زیات خپل ځان کښې دننه د حلولِ خدائ مدعی دې ددې وجه نه چن بسویشور کافر اومرتد دې اود اسلام د دائرې نه خارج دې او هغه لره نبی یا بزرګ بلکه مسلمان ګڼلووالا هم کافر دی ، دیندارانجمن والا چه خپل ځان لره هغه طرف ته منسوب کوی او هغه لره خپل دینی پیشوا منی هغوی هم مرتد او د اسلام د دائرې نه خارج دی.

څنګه چه حکومتِ پاکستان قادیانیانو لره کافر او مرتد ګرځولوسره غیرمسلم اقلیت ګرځولی دی او دا د موجوده حکومت دومره غټه کارنامه ده چه وجودِ پاکستان نه ترننه پورې حکومتِ پاکستان کښې دومره اهمه کارنامه سرته نه ده رسیدلې ، هم دغه شان باید دیندارانجمن والالره هم کافر او مرتد ګرځولوسره دهغوی د غیرمسلم اقلیت کیدلو اعلان وکړئ.

په اصل کښې دا د قادیانیانو یو شاخ دې چه هغې لره مونږ وروستو ډیرځلې ثابت کړې دي مګر قادیانیانو لره غیرمسلم اقلیت ګرځولو نه پس دوی په چالاکئ سره خپل ځان لره د قادیانیانو نه جدا ښکاره کوی دې دپاره چه کوم حکم په قادیانیانو باندې شوې وو دوی دهغې نه خارج وی.

مونږ ته امید دې چه حکومت به په دې معامله کښې غوراوکړی اود ناموس خاتم النبیین سیدالمرسلین صلی الله علیه وسلم د حفاظت کولو دا دویم اعزاز به حاصلوی.

## د عوامو په خدمت کښې درخواست

څنګه چه مونږ ډیر ځلې بیان کړی دی چه دیندارانجمن والا اودهغوی پیشوا کافر اومرتد دی او دوی د اسلام دپاره زهرِقاتل دی ددې وجه نه د سرکاردوعالم صلی الله علیه وسلم دناموسِ مبارک د حفاظت په خاطر په دې معامله کښې د هرممکن کوشش نه انکار اونه کړئ ، دې مسئلې لره چه څومره کیدلې شی عامه کړئ ، د عوامو یو مجمع هم بلکه دا سې کور پریږ نه دئ چه هغلته دا آواز اونه رسی ، په دې سلسله کښې هرقسمه تعاون اوکړئ ، ددې انتظار مه کوئ چه تاسو نه څوک ددې اپیل اوکړی ، د دوی په خلاف کتابچې او رسالې چاپ کولوسره تقسیم کړئ چه د حضورصلی الله علیه وسلم په وړاندې د قیامت په ورځ شرمندګی پیښه نه شی ، چه ,, ستاسو وړاندې خما نبوت بلکه الله تعالی پورې مسخرې کیدلې هغه وخت تاسو ولې خاموشه وئ

## زبردست شهادت

د زاهد صديقي صاحب سابق مبلغ ديندارانجمن كتاب د « هندو اوتان» په آخر كښې يو زبردست شهادت زمونږ دنظر نه تيرشو چه هغه دلته ليكل كيږي :

د ۱۷مارچ ۱۹۵۷ء په سحر ماته يولفافه ملاو شوه « بې نقاب » او « يک نه شد دوشد» وثيلوسره دحيدرآباد دكن سابق پوليس افسر د « انجمن ديندارانِ مسلک » د عنوان لاندې يې د يو څو اهمو رازونو انكشاف كړې دې .

د ذكر شوي صاحب د خط ذكر شوي اشارې نهايتِ اهم او قابلِ غور دي ، (۱) صديق چن بسويشور دمدراس د يو سابق شيعه خاندان فرد ، د ميسور اوسيدونكې د حيدرآباد په رياستي پوليس كښې ملازم شو ، د هيډكانستبل كيدلو نه پس د يو جرم په سزا كښې برطرفه كړې شو ، د ملازمت په دوران كښې دهغه قيام په گلبرگه شريف «دكن» كښې وو ،ددې نه پس يې د گذارې وخت تيرولوپه خاطر پيرې مريدي شروع كړه او محله آصف نگر حيدرآباد «دكن » كښې بې سكونت كول ، لنگايت د هندو فرقې د اوتار د فريب جال خوركړو ، بهگوت گيتا، رامائن او مها بهارت لره ئې الهامى كتابونه ثابتولو باندې ټول زور صرف كړو ، د مذاهبِ عالم كانفرنس په رنګ كښې ئې هر كال خپل ځاى باندې جلسې كولې چرته چه د قاديانى عقائدو شهرت كيدلو او هرمذهبي مسئلې لره غلط انداز كښې پيش كولې كيدله.

(۲) صديق ديندارچن بسويشور صاحب يوڅو ورځې پس خپل ځان ته « خاتم النبيين » وئيل شروع كړه ، او ما دا هم واوريدل چه هغه پخپله ملا باندې يونشان ښودلوسره هغې ته «مهرنبوت» وائي ، دهغه فرقې سره تعلق نه لرلو والا صحيح العقيده مسلمانانو لره هغه د قاديان د «اربابِ نبوت» په اتباع كښې كافروگرځول ، په هغوى كښې ئې د تفرقې اچولو خطرناک سازشونه وكړل ، دخپلو مريدانو په ذريعې ئې هغوى لوټ كړه ، د نسل زياتولو اود وينځو د جواز لاندې ئې دهر كمزورى مخالف زنانوو او د جينكو ئې بې عزتي وكړه ، دنامې جامې د ديندارئ اود فقيرانه لباس په رنګ كښې ئې عيش پرستئ جارى وساتله ، د مخالفينو سره د داسې قسم خلافِ تهذيب حركاتو نوم ئې « غزوات او جهاد فى سبيل الله» كيښودلو .

(۳) د تقسيم هند اود آزاد رياست حيدرآباد نه پس دهغه تباه كاريانې لامحدودې پاتې شوې ، دهغه د ټولو نه لويه كارنامه هغه غلا كول دى چه په هغې كښې د صديق چن بسويشور مريدانو د حيدرآباد محله بيگم پيټهه په اطرافو كښې ديو صراف په كور كښې د ورځې لوټ مارشروع كړو او يو تيلئ چه په هغې كښې د پنځولاكهونقدى زيورات او جواهرات وو اخستلوسره وتښتيدل.

چه كله دهغوى بې حيائې د حد نه تجاوز وكړو نو هغوى د رياست په ملحقه علاقو كښې لوټ مارشروع كړو په دې سره په دومره اندازه دهوكه وشوه چه غيرمسلم هغوى لره رضاكاران

اتحاد المسلمین ګټلو سره اخباراتو کښې د استیټ مسلیم لیګ په خلاف بیانات ورکول.

(۴) د قاسم رضوی صاحب د دور نه وړاندې حکومت وخت هغوی نظر بند کړی وو ځکه چه د هغوی فتنه په ټولو باندې ښکاره وه، دهغوی د ژبه بندئ احکامات د ډیرې مودې نه جاری وو. د سقوط حیدرآباد نه پس دهغوی مریدان پټ شول آن تر دې چه هغوی خپلې جامې هم پریښودلې او بلاخر په تښتیدلو سره پاکستان ته راروان دی.

یو ریاست تباه کولو سره اوس هغوی بل سلطنت لره په تاک کښې نیولې دې، الله تعالی دې ټولو لره دهغوی د شر نه محفوظه وساتی.

د پولیس صاحب د اقتباساتو نقل کولو نه پس زاهد صدیقی صاحب لیکی: د صاحب موصوف د مراسلې آخری جمله د ارباب حکومت دپاره زبردست خبرداری دې، زه بیا عرض کوم چه: د حیدرآباد دکن ذمه دار مهاجرینو نه د دیندارانجمن اودهغوی د هلاکت مرحبا وئیلو والا کارنامې دې حکومت ضرور طلب کړی، داسې نه وی چه زمونږ حکومت د خارجی فتنو په ختمولو کښې لګیدلی وی او د ملك په داخل کښې بله فتنه را پورته شی. وماعلینا الا البلاغ.

## دیندار انجمن والو ته همدردانه پیشنهاد

مونږ ته دا ښه معلومه ده چه په دې انجمن کښې چه چرته بعضې بدبخت کسان د اسلام ختمولو دپاره کوششونه کوی، هغلته څه داسې ساده زړه والا بندګان هم دی چه محض د اسلام په نوم سره دهغوی په تیز بیانی سره متاثرکیږی د خدمت دین دپاره په دې انجمن کښې داخل شوی دی. په دې کړینو کښې مونږ خپلو وروڼو ته همدردانه نصیحت کوو چه د الله دپاره هغه عقائدو او مکر اوفریب باندې پوهه شئ او د هغوی په دوکه کښې رانه شئ، دوی خپل عاقبت برباد کړې دې او ستاسو هم د عاقبت بربادولو په فکر کښې دی.

## څما بې لارې شوو ملګرو!

آیا د اسلام هغه طریقه ستاسو دپاره ناکافی ده کومې لره چه حضورصلی الله علیه وسلم د نن نه څوارلس کاله وړاندې پیش کړې ده، چه هغه صحابه کرامو، محدثینو او ائمه عظامو په حفاظت سره مونږ ته رارسولې ده، هغې پریخودلو سره تاسو د چن بسویشور اود دیندار انجمن په غیږه کښې پناه اخلئ؟، د الله دپاره پخپلو ځانونو باندې رحم وکړئ، اوس هم وخت دې د اسلام په رحمت کښې اوس تاسو ته سورې ملاویدلې شی خپلو تیرشوو ګناهونو نه توبه ویستلو سره د اسلام حلقې لره مضبوطه ونیسئ او خپلو نورو وروڼو لره هم د ارتداد د هغه جال نه د ویستلو کوشش وکړئ. «واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمین»

رشیداحمد ۲۳ ربیع الاول ... هجری یوم الخمیس

بسم الله الرحمن الرحیم

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ

# سنان القنا علی مُحل الربا

## ربا (سود) سره متعلق د متجددینو د نظریاتو تردید

**سوال:-** جنوری ۱۹۵۸ء کښې ادارهٔ ثقافتِ اسلامیه لاهور د تجارتي انټرسټ د فهقي حیثیت په نوم سره یو رساله شائع کړې ده چه په هغې کښې ددې ثابتولو کوشش کړې شوي دې چه تجارتي سود شرعاً حرام نه دې بلکه دهغې لین دین ضروري دې ، په علماءِ کرامو باندې فرض دی چه امت لره دهغه اباحیت د فتنې نه بچ کړی ، لهذا ستاسو نه درخواست دې چه د سود تعریف اوده‌غې اقسام اودهغې په شرعی احکامو باندې بالتفصیل مدلل رڼا واچوئ او په مذکوره رساله کښې د جواز د دلائلو تسلی بخش جواب لیکلو سره ددې تیرو په دورکښې د امت رهبری وکړئ. والاجر عند الله الکریم.

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

### د ربا (سود) تعریف

د ربا (سود) لغوی معنی مطلقاً زیاتوالې او د شریعت په اصطلاح کښې د مال هرداسې زیاتوالی ته ربا وئیلې کیږی چه مبادلة المال بالمال کښې بدونِ عوض مشروط کړې شوی وی.

### د ربا اقسام

د ربا دوه قسمونه دی : (۱) ربا الفضل (۲) ربا النسیئه : ربا الفضل بیع بالجنس کښې زیاتوالی ته وائی، ددې حرمت په احادیثو سره ثابت شوې دې له همدې وجه نه دې ته ربا الحدیث هم وئیلې کیږی ربا النسیئه «الزیادة المشروطة علی القرض» ته وئیلې کیږی، چونکه قرآن کریم کښې هم ددې قسم ربا حرمت منصوص دې، ددې وجه نه دې ته ربا القرآن هم وئیلې کیږی ، د متجددینو بحث چونکه صرف هم دې ربا النسیئه سره متعلق دې لهذا دلته صرف هم ددې په تفصیل باندې اکتفا کیږی.

### د متجددینو نظریات

ربا النسیئه سره متعلق د متجددینو د دوو ډلو دوه مختلف نظریات دی:

(۱) فقط وختي او شخصي ضرورت دپاره د سودي قرض لين دين حرام دي اوديو نفع بخش تجارت دپاره د سودي قرض معامله حرامه نه ده ، اول قسم لره صرفي سود او دويم قسم لره په تجارتي سود سره نوموي.

(۲) سودمرکب يعنې سود در سود حرام دې او سودِ مفردچه د راس المال نه دوه چند نه وي حلال دي.

**د اول فريق دليل** : داول فريق دليل دادې چه د حضورصلی الله عليه وسلم په زمانه کښې محض صرفي سود مروج وو دتجارتي سود بالکل رواج نه وو لهذا د حرمت نصوص تجارتي سود ته شامل نه دي او تجارتي سود لره په صرفي سود باندې قياس کولوسره په هغې باندې د حرمت حکم لګول هم صحيح نه دي ، ددې وجه نه چه د حرمتِ ربا علت ظلم دې چه په تجارتي سود کښې موجود نه دې ، تجارتي سود کښې خو د ظلم په ځائ احسان دې چه مقروض د هغې په ذريعې سره تجارتي منافع حاصلوي.

**جواب**: د ذکر شوي دليل تجزيه کولوسره دهغې څلور اجزاء مخې ته راځي :

(۱) د حضورصلی الله عليه وسلم په زمانه کښې د تجارتي سود رواج نه وو ، (۲) کومه معامله چه د حضورصلی الله عليه وسلم په زمانه کښې مروج نه وي هغه د حرمت په نصوص کښې نه داخليږي ، (۳) د حرمتِ ربا علت ظلم دې (۴) دا علت په تجارتي سود کښې نه مونډلې کيږي.

دا څلور واړه مقدمات ګوياچه د دليل څلور عناصر دي په دې کښې که يو مقدمه هم نوي نو دليل به باطليږي حال داچه حقيقت دادې چه په دې څلوروارو مقدماتو کښې هره مقدمه باطله ده.

**د اولې مقدمې ابطال**: دا دعوي بالکل غلطه ده چه د حضورصلی الله عليه وسلم په زمانه کښې تجارتي سود رائج نه وو ، په لاندينو دلائلو سره ددې دعوې بطلان صفابښکاره کيږي :

(۱) د ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَذَرُواْ مَا بَقِيَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓاْ﴾ لاندې د تفسير په کتابونو کښې ذکر دي چه بنومغيره قبيلې د ثقيف قبيلې نه سودي قرض اخستلو (لباب النقول ص ۴۲، روح المعاني ص ۴۲ج ۳)

(۲) دا ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأۡكُلُواْ ٱلرِّبَوٰٓاْ﴾ په شانِ نزول کښې يې د مجاهد نه نقل کړي دي چه ثقيف قبيلې به د بنو نضيرقبيلې نه قرض اخستلو ، چه کله به د قرض د واپسۍ وخت راغلو نو ثقيف به بنونضيرته وئيل چه مونږ ته نور مهلت راکړه په هغې باندې به تاسو ته زيات سود درکړو (لباب النقول ص ۵۲)

ظاهره ده چه دهغه قبائلو په مينځ کښې دا معامله صرفي سود نه وو بلکه وسيع پيمانه باندې تجارتي سود وو دا قبائلې د تجارتي کمپنيانو حيثيت لرلو ، د قبيلې کسانو به سرمايه جمع کوله

هغې سره به ئې اجتماعی تجارت کولو لکه چه دابوسفیان رضی الله عنه دتجارتی قافلې سره متعلق زرقانی شرح المواهب او تفسیرِ مظهری کښې دی ((لم یبق قرشی ولا قرشیة له مثقال فصاعدا الا بعث به فی العیر))

(۳) صحیح بخاری باب برکة الغازی فی ماله کښې د حضرت زبیررضی الله عنه معامله ذکر ده چه خلقو به دوی ته د امانت اینبودلودپاره ډیررقم راوړلو مگر دوی به فرمائیل چه د امانت په ځائې ماته قرض راکوئ بیا به هغه رقم لره دوی په تجارت کښې لګولو چه هغې سره به یې یو طرف ته پخپله فائده حاصلوله او بل جانب ته د مالک دا فائده وه چه دهغه رقم محفوظه کیدلو ځکه چه د امانت په صورت کښې د ضائع کیدلو خطره وه . ((قال الحافظ رحمه الله تعالی وکان غرضه بذلک انه کان یخشی علی المال ان یضیع فیظن به التقصیر فی حفظه فرای ان یجعله مضمونا فیکون اوثق لصاحب المال وابقی ـــ ابن بطال ولیطیب له ربح ذلک المال)). (فتح الباری ص ج)

(۴) موطا امام مالک رحمه الله تعالی عنه کتاب القراض کښې روایت دې چه د حضرت عمررضی الله عنه ځامن عبدالله او عبیدالله رضی الله عنهما په یو لښکر کښې عراق طرف ته تشریف یوړو ، واپسئ باندې حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه ته تشریف راوړو چه په هغه وخت کښې د بصرې امیروو ، حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه اوفرمائیل چه ځما په خیال کښې ستاسو د نفعې یوصورت راغلې دې هغه دا چه ځما نه د بیت المال رقم په قرضو واخلئ ، په هغې سره د تجارت په غرض څه مال اخستلو سره یوسئ ، مدینې ته رسیدلوسره هغه خرڅ کړئ دهغې منفعت هیځارکړئ او اصل رقم په بیت المال کښې داخل کړئ ، په دې معاملې سره د حضرت ابوموسی اشعری رضی الله عنه اصل مقصد دوی ته تجارتی منفعت رسول وو ، دې سره د بیت المال د مال د حفاظت فائده پخپله اوشوه ، ددې وجه نه دامکروهه کښې داخل نه دی .

(۵) سیرتِ ابن هشام کښې دی چه خلیفه ولید دخپل مرګ په وخت خپلو ځامنو ته وصیت کړې ووچه بنی ثقیف باندې چه ځما د سود کوم رقم دې هغې لره هم ضرور واخلئ .

په دې کښې یو قبیلې باندې د قرض قصه ده چه د شخصی او وقتی ضرورت دپاره نه شو کیدلې دا قرض یقیناً تجارتی غرض سره وو او ددې حیثیت بعینه د بینک د قرضونو په شان دې ،

(۶) علامه قرطبی د «فله ماسلف» لاندې فرمائی . ((هذا حکم من الله لمن اسلم من کفار قریش وثقیف ومن کان یتجر هنالک)) (تفسیر قرطبی ص ج)

(۷) علامه طبری د ۲۳هجری په واقعاتو کښې لیکلی دی ((ان هند ابنة عتبة قامت الی عمر ابن الخطاب رضی الله عنه فاستقرضته من بیت المال اربعة الاف تتجر فیها وتضمنها فاقرضها فخرجت الی بلاد کلب فاشترت وباعت)).

(۸) امام بغوی رحمه الله د عکرمه او عطا نه روایت کړې دې چه د حضرت عباس اود حضرت عثمان رضی الله عنهما په یو تاجر باندې سودی رقم وو چه حرمت ربا نازلیدلو باندې یې پرېښودلو ، د تفسیر په کتابونو کښې او په حدیثو کښې تجارتی قرضونو او په هغې باندې د سود نور هم ډېر مثالونه موجود دی .

د تاریخ په مطالعې سره داخبره ډیره واضحه کیږی چه نزول قرآن نه وړاندې په عربو کښې د تجارتی سود یقیناً رواج وو ، د اسلام نه وړاندې د عربو معاشی بنیاد د تجارت په ګرم بازار اود تجارتی قرضونو په لین دین باندې وو ، دهغه دور تجارتی مراکز مکه او طائف کښې سودی اداري موجودې وې ، د اسلام نه وړاندې د عربو معاشی او تجارتی تعلقات چه کومو ملکونو او کومو قومونو سره وو مثلاً بابل ، یونان روم ، شام او بازنطینی حکومت وغیره په هغې کښې د تجارتی سودی قرضونو رواج وو او داسې اداري موجودې وې ، ددې وجه نه دا دعویٰ غلط ده چه عرب د قرآن د نزول په زمانه کښې د سود نه ناخبره وو ، تاریخی حقائقو لره وړاندې کیښودلو سره ثابتیږی چه عرب تجارتی سود نه صرف واقف نه بلکه تجارتی قرضونه او په هغې باندې سود دهغوی د نظم معیشت بنیادی ګاڼې وو ، په دې باندې د تاریخی شواهدو دپاره د مولانا فضل الرحمن صاحب علیګړه دمسلم پوهنتون استاذ مضامین ډیر قیمتی دی چه د ماهنامه (برهان) په ډیرو اقساطو کښې شائع شوی وو ، او یو مقاله «اسلامک تهاټ» علیګړه کښې چاپ شوې وه ، غرض دادچه د قرآن د نزول په زمانه کښې د سود دواړه قسمونه (صرفی وتجارتی) رائج وو ، او دواړو ته سود وئیلې کیدلو په هغې کښې څه تقسیم او تفریق نه وو ، د ټولو نه وړاندې اوولسمه صدئ عیسوی کښې د بینکاری نظام د وجود سره سره دوه نوې اصطلاح ګاڼې راپورته شوئ اود سود دوه قسمونه کړئ شو یوزری (صرفی) او انټرسټ (تجارتی) چه د مغرب نه د مرعوب ذهنونود حلت ربا د نظرئې بنګ بنیاد دې .

**د دویمې مقدمې ابطال** : دا دعویٰ هم بالکل لغوه او بدیهی البطلان ده چه قرآن کومو څیزونو ته حرام وئیلی دی دهغې هغه صورتونه حرام نه دی چه د قرآن د نزول په وخت کښې مروج نه وو ، چه هر کله د یو څیز حرمت منصوص دې نو دهغې په ټول افراد ، ټول صورتونه او ټولې طریقې حرامې وی خواه که هغه د قرآن د نزول په زمانه کښې موجود وی یا بعد کښې پیدا شوی وی ، مثلاً د شرابو حرمت منصوص دې نو ددې ترقی یافته صورتونه او صفتونه چه د قرآن د نزول په وخت کښې نه وو حلال کیدلې نه شی ، هم دغه شان د قمار نوو طریقو ته حلال وئیلې کیدلې نه شی ، هم دغه شان د تصویرویستلو ترقی یافته صورتونو لره د حرمت د نصوصو نه خارجولې نه شی ، که چرته د صورت او طریقې په بدلولو سره د احکامو د بدلولو منطق صحیح تسلیم کړئ شی نو ددې ترقئ په دور کښې د شریعت یو حکم هم محفوظ نه شی پاتې کیدلې ، رشوت ، شراب ،

جواري ، زنا ، غلا ، داكه او قتل وغيره ټول په ټوله جرائم اود محرماتو صورتونه او طريقې ټولې نوي دي چه د قرآن د نزول په زمانه کښې نه وو .

قرآن كريم كښې د مطلق ربا حرمت منصوص دې په هغې كښې شخصي او تجارتي سود كښې هيڅ فرق نه دې کړئ شوي ، د سود په تعريف اودهغې په حقيقت کښې مذكوره پاسني دواړه قسمونه داخل دي ، لهذا حرمت به هم دواړو ته شامل وي ، د حضور صلى الله عليه وسلم ارشاد «**كل قرض جر منفعة فهو ربا**» هم عام دې ، دې روايت لره علامه سيوطي رحمه الله جامع صغيركښې نقل کړې دې او زيلعي هم په متعددطرق سره روايت کړې دې ، علامه عزيزي رحمه الله په السراج المنيرشرح الجامع الصغيركښې فرمائي چه دا حديث د تعددِطرق د وجه نه حسن لغيره دې ، د قرآن او حديثو دهغه نصوصِ صريحه د وجه نه د جميع امتِ مسلمه اجماعي فيصله ده چه «**كل قرض جر نفعاً فهو رباً**» .

اوجزالمسالک کښې ليکلي دي چه ((**قال الموفق كل قرض شرط فيه ان يزيده فهو حرام بغير خلاف**)) (اوجزالمسالك ص"ج") نصِ قرآني لره صرفي سود سره خاص كول او تجارتي سود لره دهغې نه خارجول د قرآن ښکاره تحريف دې ، صرفي سود او تجارتي سود کښې صرف د نيت او قصد فرق دې كه چرته ذاتي او شخصي مقصد دپاره قرض اخلي نو دا صرفي سود دې او مقصد استقراضِ تجارت وي نو دې ته تجارتي سود وئيلې كيږي ، د دواړو حقيقت متحد دې لهذا يو قسم ته حرام او بل ته د حلال گرځولو حاصل به دا راۋځي چه سود بذاتِ خود حرام نه دې صرف د مستقرض په نيت سره په هغې کښې حرمت راځي ، صرف مقصداستقراض لره د ربا په حقيقت کښې دومره مؤثرگڼول د قرآن ، حديث ، اجماع او قياس خلاف ده .

د حضرت ابوهريره رضى الله عنه نه روايت دې ((**ليأتين على الناس زمان لا يبقى احد الا اكل الربا فان لم ياكله اصابه من بخاره ويروى من غباره**)) رواه احمد وابوداؤد والنسائي وابن ماجة (مشكوة ص") د دې پيشنگوئي مصداق صرف هم تجارتي سود کيدلې شي ، د فقهاؤ حضراتو رحمهم الله په دې باندې اجماع ده چه مضاربت كښې د رب المال خپل ځان دپاره دمنافع څه مقدار معين كول جائز نه دي حالانكه بعينه هم داتجارتي سود دې .

**د دريمي مقدمې ابطال** : مونږ پورته ثابته کړې ده چه د صرفي سود په شان تجارتي سود هم د نصِ قرآني براهِ راست مدلول دې دهغه حرمت ثابت بالقياس نه دې ، لهذا په هغه کښې د حرمت د علت وجود او د عدم وجود اړو سوال نه پيدا کيږي ، ثانياً ظلم لره د ربا علت گرځول غلط دې دا علت او حكمت كښې د فرق نه پوهيدلو د وجه نه په هغې کښې دخلط نتيجه ده .

علت باندې د حکم مدار وي يعنې د حکم وجود اوعدم د علت په وجود او عدم باندې موقوف

وي ددې وجه نه علت دحکم علامت وي او حکمت هغه فائدې ته وئیلې کیږي چه امتثالِ حکم باندې مرتب وي ، په هغې باندې د حکم مدار نه وي ، د حکم علت یو وي او حکمتونه متعدد هم کیدلې شي . انسان د احکامو د عللو معلومولو مکلف دې دې دپاره چه علاماتو سره د احکامو علم حاصل کړئ شي ، د حکمت معلومولو مکلف نه دې او نه حکمت پورې د انسان رسیدل ضروري دي ، که چرته د بعضې احکامو بعضې حکمتونه معلومه هم شي نو ضروري نه دي چه د حکمتونو هم په هغې کښې انحصار وي او نور هم ډیر حکمتونه کیدلې شي ، مثلاً د حرمت جمع بن الاختین علت د دوو ښځو په مینځ کښې داسې رشته ده چه په هغوی کښې چالره هم سړې فرض کړئ شي په هغوی کښې تناکح حرام وي او ددې حکمت دا بیانولې کیږي چه په نکاح کښې اختینو لره جمع کول د قطع رحم سبب دې ، او ښکاره ده چه د حکم مدار په دې حکمت باندې کیښودلې شي نو بعضې مخصوصو حالاتوکښې که چرته د قطع رحم څه ویره نه وي نو جمع بین الاختین حلالیدل پکار دي حالانکه ددې هیڅوک هم قائل نه دی ، «الامن اعمی الله قلبه» احکام دنیویه کښې ددې مثال لارو باندې نصب کرده شینې او سرې لیټونه دي چه د ټریفک د اودریدلو او د تللو دحکم علت دې یعنې دحکم مظهردي اودهغې دپاره د علامت کارورکوي اودهغه حکم حکمت د تصادم نه حفاظت دې ، پس که چرته د تصادم قطعاً څه خطره نه وي نو بیابه هم سره باتئ د بلیدلو په حالت کښې دحصاریدلوحکم موجودوي اودهغې خلاف ورزی کولو والابه مجرم شمیرلې کیږي

که چرته د ظلم علت حرمت کیدل تسلیم کړې شي نو دې به د ربا الفضل حلت بلکه دهغې فرضیت لره به مستلزم شي ځکه چه د مبادلة الجنس بالجنس معامله دیو خاص صفتِ مرغوبه د وجه نه کولې کیږي ، پس جید او ردي کښې د وزناً مساواة شرط لګول به ظلم وي او د رفع ظلم دپاره تفاضل به فرض شي .

**د څلورمې مقدمې ابطال** : دا وئیل چه تجارتي سود د ظلم نه پاک دې بالکل غلطه ده او دا دعوی د دنیا په سترګو کښې د خاورو اچولو مترادف دې ، تجارتي سود کښې خو د صرفي سود نه هم زیات ظلم دې ، د صرفي سود ظلم خو یوڅو افرادو پورې محدود وي مګر د تجارتي سود موجوده بینکاري نظام د ظلم په پل کښې ټوله دنیا داسې راګیره ده چه د غوښې سره هډوکې هم میده کیږي ، سود خواره چه په حقیقت کښې انسان خور بلکه د انسانیت خوړلو والا درندګان دي هغوی د بینکاري نظام په ذریعې د انساني وینې نچوړولو داسې جالونه نصب کړي دي چه په هغې کښې راتللو والا انسانیت ته د چغې وهلو موقع هم نه ملاویږي ، د سخت حیرت او تعجب سره څو ګډو ښائسته والي لره کتلوسره دهغوی په خله کښې اوبه راځي اودهغوی په زړونو کښې د یلیت لنا مثل ما اوتي قارون په شان امیدونه راپورته کیږي ، د عقل او هوښیارتوب مدعیان دا

سوځ نه کوي چه دهغه یو څو شرمخانو په پرورش او سربوالي باندې څومره انساني روحونه قرباني کړې شوي دي او څومره انساني دهانچې دهغوي په وړاندې سا ورکوي ، دهغه خونخواردرندګانو په وجه دا دنیا دخپلو ټولو وسعتونو باوجود د انسانیت دپاره تنګه شوې ده.

دهغه مهذب درندګانو دخونخوارۍ دفن تفصیل ډیر اوږد دې ددې وجه نه مونږ د رسالې په آخرکښې « دبینکاري نظام بربادیانې » په عنوان سره لیکو انشاء الله تعالی.

**دویم دلیل** : قرض باندې د منفعت اخستلو مثال د اجارې په شان دې څنګه چه په اجاره کښې د مستاجرڅیز اجرت اخستل جائز دي هم دغه شان چه کوم رقم بطورِ قرض ورکړې شوې دې دهغې اجرت به هم جائز وي.

**جواب** : (۱) چه هرکله د هرقسمه سود حرمت په نص سره ثابت دې نو دهغې د حلت دپاره د قیاس کولو نوعیت بالکل هم داسې دې څنګه چه «**اناخیرمنه خلقتنی من نار وخلقته من طین**» او «**انما البیع مثل الربا**» کښې د ابلیس او کفارو منطق.

(۲) بعینه همدا قیاس په صرفي سود کښې هم جاري کیږي بلکه اجارې سره د صرفي سود زیات مشابهت دې څکه چه بالعموم د ذاتي اغراضو او ضروریاتو دپاره څیزونو لره اجارې باندې اخستلې کیږي.

(۳) معاملاتوکښې عرفاً اوشرعاً د نقودو په تعیین کولو سره هم هغه نه متعین کیږي ، پس د مقروض د قبض نه پس د قرض هغه متعین رقم سره د قرض دارانو هیڅ تعلق باقي نه پاتې کیږي ، نو هغوي دهغې د منافعو د اجرت اخستلو څنګه مستحق کیدلې شي ؟ بالفرض که د نقودو تعیین صحیح هم وې یا استقراض د مکیل یا د موزون وي نو بیا هم بعد القبض دا مال د قرض دارانو د ملک نه وتلو سره د مقروض په ملک کښې داخلیږي ، پس مقروض دهغې نه چه څه منافع حاصلوي هغه دده دخپل ملک نه دي نه چه د قرض دارانو د ملک نه.

(۴) کوم څیز چه په کرایه باندې ورکولې کیږي هغه بعینه برقرار پاتې وي مستاجر دهغې نه صرف منافع حاصلوي او اصل څیز بعینه واپس کوي ددې په عکس قرض کښې بعینه هغه رقم باقي ساتلو سره دهغې نه څه نفع حاصل کړې وې بلکه هغه رقم لره خرچ کولې کیږي اودهغې په عوض کښې مقروض خپل ملک نه هم هغومره رقم واپس کوي لهذا د قرض د اجارې سره قطعاً مشابهت نشته دې ، بلکه دا ابتداء تبرع او انتهاءً د بیع سره مشابه دې.

**دریم دلیل** : بیع سلم کښې خریدار ته د اجل د وجه نه نفع کیږي هم دغه شان د اجل د وجه نه ثمن کښې زیاتوالی لره فقهاؤ جائز کړې دې ، قرض باندې د سود هم دا نوعیت دې.

**جواب** : دا صحیح ده چه د اجل د وجه نه قیمت کښې اضافه کیږي مګر د قیمت فضل بیع خلاف الجنس کښې معتبرده ، بیع بالجنس کښې دهغې اعتبارجائز نه دې لکه چه صفت جودة

مبادله بغیرالجنس کښې معتبردي مګر مبادله بالجنس کښې معتبر نه دي ، قرض کښې چونکه مبادله بالجنس دي ددې وجه نه تفاضل حرام دي.

**څلورم دلیل** : حدیث کښې دی چه حضورصلی الله علیه وسلم د حضرت جابر رضی الله عنه نه قرض واخستلو اودهغې نه ئې زیاتې واپس کړې.

**جواب** : (۱) دا واقعه خو دصرفی سود ده چه هغې ته مغرب زده ذهنیت هم حرام وائی.

(۲) ربا هغه زیاتوالی ته وئیلې کیږی چه په عقد کښې مشروط وی ، که چرته په عقد کښې د زیاتوالی شرط نه وی لګولې شوې نو د اداء کولو په وخت کښې زیات ورکول ربا نه ده بلکه دا بلاشبهه جائز او مستحسن دی ، په یو روایت سره دا ثابت نه دی چه حضور صلی الله علیه وسلم چه کوم زیات مال ورکړو د معاملې په وخت دهغې شرط لګولې شوې وو.

په ذکر شوی دلائلو کښې د اول دلیل نه سوا باقی ټول دلائل د سود دواړو قسمونو ته شامل دی ، مګر دا خلق یو قسم ته حرام وائی او بل ته حلال ، ((**افتؤمنون ببعض الکتاب وتکفرون ببعض**))

**د دویم فریق دلیل** :

دویم فریق چه مفرد سود ته حلال او مرکب ته حرام وائی د ﴿ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ﴾ نه داسې استدلال کوی چه ربا سره د (( **اضعافاً مضاعفه** )) قید دې او قاعده ده چه مقید باندې نهی داخله وی نود قید نهی مقصود وی ، دا خلق وائی چه دعهدِرسالت سود هم داسې قسم وو ، سود مفرد نه ،نه په قرآن کښې ممانعت دې او نه په عهدِرسالت کښې ددې وجود وو.

**جواب** : (۱) د فقه حنفی د اصولو مطابق مفهوم مخالف معتبر نه وی لهذا دا آیت د سودِ مفرد د حکم نه ساکت دې دهغه په حرمت باندې نور دلائل موجود دی اودکومو حضراتو په نزد چه مفهوم مخالف معتبردې دهغوی په نزد هم دا شرط دې چه دهغه مفهوم په خلاف باندې یو قرینه نه وی ، د اصولو په کتابونوکښې د مفهوم مخالف د اعتبار دپاره یو څو شرائط مذکوردی چه په هغې کښې یو شرط داهم دې چه د منطوق شانِ ورود یو خاص واقعه نه وی ((**الشرط الخامس ان لایکون المنطوق لبیان حکم حادثة کقوله تعالی لا تاکلوا الربوا اضعافا مضاعفة فلا مفهوم للاضعاف**)) (التسهیل الوصول طبع مصر ص۳) معلومه شوه چه دلته بالاجماع مفهوم مخالف مراد نه دې.

(۲) د سود خورو په اصطلاح کښې اګرچه مفرد سود ته اضعافامضاعفه نه وئیلې کیږی مګر حقیقت دادې چه کله د مفرد سود رقم بیا په سود باندې ورکوی نو لامحاله دا به اضعافا مضاعفه کیږی بلکه که چرته هم اصل سرمایی لره مفرد سود باندې روانه کړې نوڅه موده پس به دهغې سود د اصل رقم نه اضعافا مضاعفه شي.

**مغالطه** : د نوی ظلمت والا خلق وائی چه د حضرت عمررضی الله عنه د قول نه ثابتیږی چه شریعت د ربا یو واضحه مفهوم نه دې متعین کړې ، د ربا آیت مجمل دې ددې وجه نه دهغه د مفهوم په تعیین کښې د رائې گنجائش شته .

لیکن دا محض تلبیس او دهوکه ده مونږ پورته په تفصیل سره لیکلی دی چه عرب بلکه دهغوی نه گیرچاپیره ممالکو کښې هم د قرآن د نزول په زمانه اودهغې نه وړاندې زمانه جاهلیت کښې سودی لین دین رائج وو اودهغې مفهوم عام معروف ،واضح اومتعین وو ، د قرآن کریم نه ثابتیږی چه د تورات په زمانه کښې هم سود رائج وو ، چه کله د ربا د حرمت آیت نازل شو نو چاته هم دهغې په معنی او مفهوم کښې څه اشتباه اونه شوه اودهغې د تفسیراوتوضیح قطعاً څه ضرورت چا محسوس نه کړو بلکه د حرمت د نزول نه پس تولو فوراً بلاتامل رائج او معروف سود لره پریخودلو ، هغه وخته پورې چه کوم سود معروف وو دکوم نه چه قرآن منع اوفرمائیله هغه د سودی قرض «رباالنسیئه» معامله وه ، دهغې نه پس حضورصلی الله علیه وسلم د بیع بعضې صورتونو «رباالفضل» لره هم سود کښې داخل گرځولوسره دهغې نه ممانعت اوفرمائیلو ، د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد د سود دې قسم سره متعلق دې او هم ددې د علت راویستلو کښې د ائمه مجتهدینو په مینځ کښې اختلاف واقع شوې دې ، د ذکر شوی تفصیل دپاره اوګورئ :احکام القرآن للجصاص ، تفسیرکبیرللرازی ، شرح معانی الاثار للطحاوی ،بدایة المجتهد لابن رشد ، حجة الله البالغه للشاه ولی الله .

غرض داچه د اجمال حدیث ربا «رباالفضل» ده ، د قرآن ربا «رباالنسیئه» کښې څه اجمال نشته دې بلکه دا پخپل متعین مفهوم باندې قطعی الدلالة دې .

ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائی : ((ان من زعم ان هذه الاية مجملة فلم يفهم مقاطع الشريعة فان الله تعالى ارسل رسوله الى قوم هو منهم بلغتهم وانزل عليه كتابه تيسيراً منه بلسانه ولسانهم والربا فى اللغة الزيادة والمراد به فى اللغة كل زيادة لا يقابلها عوض))

## د بانکی نظام د تباهی کارونه

«۱» د بانکی نظام په ذریعې د یو څو سرمایه دارانو په خوله کښې د سود یو تکې ورکولوسره د قوم په ټوله سرمایه باندې خپل تسلط قائموی او هغې لره زیات شرح سود باندې ورکولوسره یا تجارت باندې لگولوسره منافع حاصلوی یعنې د ټول قوم د سرمایه منافع په ټول قوم باندې د تقسیمولو په ځائې صرف یو څو اشخاصو ته ورکول کیږی ، بیا که چرته بانک دیوالیه شی نودقوم سرمایه غائب کیږی ، ددې ظلم څه انتهاده چه د ټول قوم د سرمایه منافع خو پخپله اخلی او خپل نقصان هم په قوم باندې واچوی ، بانک کښې روپئ جمع کولو والا افراد که چرته پخپلې سرمایې

سره پخپله تجارت کولو نودهغې منافع به پخپله هغه ته ملاویدلې ، اود ارتکاز دولت نه به په حفاظت کښې وي ، بیا اسلامی نظام زکوٰة هرمسلمان لره مجبورکړې دي چه هغه خپل دولت لره د خزانې په شکل کښې د کینبودلو په ځای تجارت کښې ولګوي اوکه نه نو دا ټول دولت به په یوڅو کلونوکښې دصدقې اوزکواة نذر شي .

(۲) کمه سرمایه دارانو دپاره د تجارت دپاره بانک قرض نه ورکوی ، لوئ سرمایه داران د بینک نه د قوم د سرمایه نه قرض اخستلوسره تجارت یاصنعت کښې هغه لګوی او د ټول قوم د سرمایه منافع یوڅو افراد حاصلوی ، بیا که چرته کله هم اصل سرمایه ډوبه شوه اود بینک قرض وصول نه کړئ شو نوهغه نقصان د قوم وشو .

(۳) لوئ سرمایه داران خپلې ذاتی سرمایی سره د بینک نه د زیاتی قرض سرمایه حاصلولو سره د تجارت داسې ماحول پیدا کوی چه دکمې سرمایی والا دپاره په هغه میدان کښې قدم کینبودل دهغه د مرګ مترادف کیږی .

(۴) چه کله د بانک نه قرض اخستلوسره د درآمد برآمد په ټول تجارت اوپه دروند صنعتونو باندې صرف یو څو سرمایه داران قابض شي نودقوم جانداد دولت لوټکولو اودهغوی وینه سکلو دپاره د مارکیټ نرخ زیاتوی ، یو طرف ته قوم لره د تجارت او صنعت نه محرومولوسره دهغوی لاسونه کټکولې کیږی او بل طرف ته د ضرورت د څیزونو قیمت زیاتولوسره دهغوی په جیبونو باندې ډاکه اچولې کیږی .

(۵) تجارت او صنعت صرف په یو څو سرمایه دارانو افرادوکښې منحصرکیدلو د وجه نه د قوم دپاره د ملازمت اود مزدورئ په ذریعې د کسبِ معاش مواقع محدود کیږی .

(۶) بعضې اوقاتو کښې په خپله سرمایه داران د سود په عذاب کښې مبتلاکیږی او په دنیا کښې دهغې مزوڅکی ، مثلاً تجارت یا صنعت کښې دومره زیات نقصان وشی چه خپله سرمایه او منافعو سره د بانک نه اخستلې شوې سرمایه هم تباه شی ، بیا د راتللو ذریعه هیڅ نوی او د بانک دروند قرض یې په سرباندې وی ، غیرسودی تجارت کښې که چرته ټول رقم هم ډوب شی نو کم ازکم د قرض بارخو به په سرباندې نه وی ، بانکی نظام ته نن سبا د معاشی نظام د ملا هډوکې وئیلې کیږی ، مګر ددې ذکر شوو تباه کاریانو مشاهده کولوسره په خپله مغربی مفکرین هغې لره د ملا د هډوکې چینجې ګرخول شروع کړی دی .

## د سرمایه دارئ دویم ګذار

مونږ پورته واضحه کړې ده چه دسودی نظام تجارت کښې هره فائده سرمایه دارته ملاویږی او هرنقصان قوم ته برداشت کول وی مګر قومی رقم سره برائ نام څه رقم د سرمایه دار خپل هم وی ، دا انسان خور درنده خپل لږ غوندې نقصان هم څنګه برداشت کړی ؟ هغې لره هم د قوم د کمزورې

شوې اسکلیټ نه د تجوړولو کوشش کوی ددې عمل دپاره هغوی د بیمې او د جوارئ آلې ایجاد کړې ، یو قدرتی آفت راشی نود بیمې مشین ئې چالان کړو ، اود قیمت خرید نه د نرخ غورځیدلو خطره وی نود سټې د مشین بټن دباؤ کړی او په ټولو منډیانو باندې قابض کیدلوسره حسب منشا نرخ اوچتوی ، یا د مال د راټللو نه وړاندې خرخولوسره خپل آفت په بل چاباندې واچوی ، بیا دې سره سره بیمه چه په حقیقت کښې د قوم مرګ دې ددې په باره کښې ددې باورکوشش کولې کیږی چه دا د قوم د معیاری ژوند ضامن دې ، حالانکه د بیمه کمپنیانو منافع هم لوئ سرمایه دار خلق حاصلوی ، که چرته یو قدرتی آفت رانه شی نوموقع موندلوسره پخپله خپلې کارخانې ته اور لګولوسره د بیمه کمپنئ نه د قوم سرمایه حاصله کړی ، بینک ، د بیمې او سټې په ذریعې د ټول قوم دولت په یو څو لاسونوکښې پرې وتلو ، اود عدم توازن نقشه داسې په نظرراغله ، شعر

اس طرف بھی آدمی اواس طرف بھی آدمی ۔ اس کے بوٹوں پرچمک ہے اسکے چہرے پر نہیں

دهغې په رد عمل کښې اشتراکیت راپورته شو اوهغه خپلې سندرې شروع کړې، شعر:

گیا دور سرمایہ داری گیا ۔ تماشہ دکھاکر مداری گیا

## د سرمایه دارئ آخری هلاکونکې ګذار

مونږ به انشاء الله تعالی په یو بله موقع باندې اووایو چه اشتراکیت هم د سرمایه دارئ یو قسم دې چه د مشهورې سرمایه دارئ نه په ډیر اوچت معیار دې ، انسان خورو لیوانو کښې یو مکار لیوه دخپل هم جنس شرلیوه دبدن په خوړوالی باندې هم لیارې شیندی ، هغوی د سرمایه دارئ د پنجې نه د خلاصولو مدعی جوړیدلوسره مزدورانو او زمیندارانو ته د اشتراکیت ښائسته خوبونه ښائی مزدور هغه لره دخپل قسمت مالک ګڼلوسره او سترګې بندولوسره هغه پسې شی ، او دا سوچ نه کوی چه « تماشه ښودلوسره مداری لاړو» نه بلکه مداری هغوی لره بیزوګانو جوړولوسره ګډوی او دوی د مداری په ادا او دوی د ډولکی په آواز باندې مست ، دخپل نفع او نقصان نه بې پروا کیدلوسره ګډا کوی ، چه کله اشتراکیت د مزدور په بدن کښې لاندې ښته شی نو هغه ته هوش راځی او اوس هغه د کمزورئ په عالم کښې چغې وهل شروع کړی ، شعر

کہ از چنگال گرگم در ربودی ۔ چو دیدم عاقبت گرگم تو بودی

کله هغه دهغه خیرخواه شرمخ د ظلمونو نه تنګ راتللوسره دا حسرت ښکاره کوی، شعر:

مرا اے کاشکے مادر نہ زاد ۔ اگر مے زاد کس شیرم نے داد

مګر اوس نه څو په هغه کښې د کوشش یوه سلګئ باقی پاتې وی او نه څه حسرت کول سودمند کېږی .

د بهارِ اشتراکیت نه د دوکې خورونکو بې قراره فریاد، شعر:

بلا سے قزاق آکے لوٹیں یہ پاسبانوں کی لوٹ جائے

ستم بھی ہوگا تو دیکھ لیں گے کرم کا بھانڈا تو پھوٹ جائے

اچک لے شاہیں تو غم نہیں یہ قفس تو کمبخت ٹوٹ جائے

چمن کو لوٹا تو باغباں نے اب آگے گلچیں بھی لوٹ جائے

د عوام کالانعام به څه وائې، تعجب او افسوس خو په بعضې مذهبی رهنماگانو باندې دې چه هغوی د اشتراکیت په زانګو باندې زنګیدل شروع کړه او داسې مست شو چه هغوی ته د شریعت عادلانه نظامِ معیشت ناقص په نظر راغلو او په هغې کښې ئې د اشتراکیت د پیوند لګولو کوشش شروع کړو د اشتراکیت عشق هغوی ته د اشتراکی ممالکو د عوامو د بدحالئ نه عبرت حاصلولو مهلت نه ورکوی، دهغه رهبرانِ قوم دماغ کله هم ددې سوچ کولو دپاره هیڅرې تیاریږی نه چه دولت کښې توازن پیدا کولو دپاره د سرمایه دارئ دروازې بندے کړئ شی او د تقسیم دولت شرعی اصول رائج کړئ شی دهغوی په نزد د ارتکازِ دولت واحد علاج صرف هم دادې چه کارخانې قبضه کولو سره مزدورانو ته ورکړئ شی او زمکو لره قبضه کولو سره زمیندارانو ته ورکړئ شی، صرف هم دا سوچ کوی او صرف هم دا وینا کوی.

## د شریعت عادلانه نظام

د شریعت عادلانه نظام چه دنیا او آخرت کښې د فلاح ضامن دې دادې چه یوطرف ته د سرمایه دارئ دروازې (بانک، بیمه، سټه، د تجارت اوصنعت پابندیانې، د کبانو نیولو والا، د شکار اود نورو قدرتی وسائلو ټیکې) بندې کړئ شی او بل طرف ته د تقسیم دولت دپاره د زکاة، عشراو د تقسیمِ وراثت شرعی نظام جاری کړې شی، د صنعت او تجارت اود نورو ذرائعو په آزادئ سره به هرسړی ته د کسبِ معاش مواقع مهیا کیدلو نه علاوه د تسابق د وجه نه د ضرورت په څیزونو کښې سهولت اوارزانی پیدا شی، اود زکواة، عشراود تقسیم وراثت په وجه سره به ددولت مرکزونه په لړه مده کښې په قوم کښې خواره شی، الله تعالی دې مونږ ټولو لره د ژوند په هره شعبه کښې د باطل د افراط او تفریط نه محفوظه وساتی او صراطِ مستقیم باندې دې قائم وساتی آمین.

رشید احمد

۱۸ ربیع الاخر ۸۸ هجری

بسم الله الرحمن الرحیم

وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا

# مودودی صاحب او د اسلام تخریب

**سوالونه :**

(۱) آیا د مودودی صاحب او دهغه ډله په اهلِ سنت کښې شمیر کیږی ؟

(۲) آیا دهغوی سره تعاون جائز دے ؟

(۳) آیا له هغوی سره یا له هغوئ نه نکاح کول جائز دی ؟

(۴) د داسې سړی د امامت څه حکم دے ؟

**عنوانات :**

چرته بې لارې روان ئې ؟

معیارِحق

آیاتِ بینات

احادیثِ مبارکه

عقلِ سلیم

د افهام او تفهیم دپاره ضروری امور

د اهلِ حق جماعت

هیڅ یو فن بغیر له استاذ نه حاصلیدلې نه شی

دجماعتِ اسلامی دجالیت او فریب .

تخریبی کارکردگی

د صحابه کرامو رضی الله عنهم توهین

د انبیاء کرامو علیهم السلام توهین

قرآن غائب

اصولِ حدیث بیهوده دی

نَحْنُ رِجَالٌ وَهُمْ رِجَالٌ

د جماعتِ اسلامی نه بغیر تولې طریقې غلطې

جماعتِ اسلامی څه غواړی ؟ تخریب در تخریب

د مودودی مذهب

تقلید د ګناه نه بدتر دي

د نوی اسلام تعمیر

د امیرمقام او حیثیت

په تقلید او غلامئ کښې فرق

حکمتِ عملی

مودودی صاحب او د اسلام ارکان

مودودی صاحب او د اسلام مرکز

مودودی صاحب او ږیره

مودودی صاحب او زکوٰة

مودودی صاحب او جمع بین الاختین

مودودی صاحب او متعه

مودودی صاحب او دجّال

مودودی صاحب او تقیه

قابل توجه : (مودودی صاحب کښې د شیعه ګانو ټول شعائر موجود دی)

مودودی صاحب د شیعه ګانو رهنماؤ په نظر کښې

مودودی صاحب او اعتزال

د مودودی صاحب د خط عکس

آیا مودودی صاحب مذهبِ اهلِ سنت باندې دې ؟

له مودودی صاحب نه صرف دوه پوښتنې

د جماعت اسلامی د کسانو د پاره دفکر او سوچ خبره

## جماعت اسلامی

**سوال :-** مودودی صاحب او دهغه جماعت د شفاخانو او نورو د خیرکارونو او د منظم تحریک په ذریعې سره په عوامو کښې جاذبیت پیدا کوی او اکثرې تعلیمه خلق صرف هم دې خوبیانو ته کتلو سره هغه صحیح اسلامی جماعت ګنی او هغوی طرف ته مائل کیږی لهذا مفصل بیان فرمائیلو سره د امت مسلمه رهبری وکړئ چه آیا جماعت اسلامی واقعةً هم هغه اسلام پیش کوی کوم اسلام چه صحابه کرامو رضی الله عنهم د حضورصلی الله علیه وسلم نه زده کړې وو او آیا صرف ذکر شوو خوبیانو لره د حقانیت دلیل ګرځولې کیدلې شی ؟ که چرته جماعت اسلامی په

صحیح لاره باندې نه وی نو هغې سره متعلق بیا دا لاندې سوالونه پیدا کیږی :

(۱) آیا دهغوی شمیر په اهلِ سنت کښې دې ؟ (۲) دهغوی سره تعاون جائز دې ؟ (۳) په هغوی کښې نکاح کول جائز دی ؟ (۴) د داسې سړی د امامت څه حکم دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب : الحمدلله وکفی وسلام علی عباده الذین اصطفی.**

**اما بعد : فاعوذبالله من الشیطان الرجیم بسم الله الرحمن الرحیم : اهدنا الصراط المستقیم صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین ، آمین**

نن سبا خلقو حسنِ نظم ، حسنِ اخلاق ، همدردئ ، د اعمالو اهتمام او بهادرئ او همت لره معیارِ حق ګڼلې دې چنانچه چه په کومو کسانو یا په کومو جماعتونوکښې دا صفات موجود شی خلق هغوی لره اهلِ حق ګڼلوسره هغوی طرف ته مائل کیږی لهذا ښه پوهه شئ چه په هغه څیزونوکښې یو څیز هم معیارِ حق نه شی جوړیدلې دا امراګرچه داسې بدیهی دې چه د هر انسان عقل دهغې فیصله کولې شی خوبیا هم زه یو مختصرعرض کوم :

## د معیارِ حق په تعیین کښې مغالطه

که چرته حسنِ نظم لره معیارحق وګرځولې شی نو د لندن او امریکې وغیره خلق به د ټولو نه زیات اهلِ حق وی هم دغه شان عیسائی ماشینونو او قادیانی جماعت چه کوم حسنِ نظم سره کار کوی یو مسلمان جماعت هم داسې منظم نه دې ، هم دغه شان حسنِ اخلاق او همدردی چه کوم حده پورې په عیسائی ماشینونو او قادیانیانو کښې ده په یو مسلمان جماعت کښې نشته ، عیسائی ماشینونه ، شفاخانې او د غوړو او د شودو د ډبو او د مختلفو څیزونو تقسیم ، د روپو او د ملازمت په لالچ کښې خلقو لره عیسائیان جوړوی نو ددې وجه نه وروسته پاتې قومونو عیسائی مذهب اختیارکړې دې ،هم داطریقه د عیسائیانو نه قادیانیانو زده کړه ، ډیرو قادیانیانو ډاکټرانو خپل خدمت وقف کړی دی ، دوکانونو باندې ئې لوحې لګیدلی دی چه د مریض کورته په تللو سره هغه بغیر له فیس نه معائنه کوی ، د تقسیم په ورځو کښې بعضې قادیانیانو لره مې ولیدل چه د منونو په مقدارکښې روزانه مهاجرینو کښې تازه شوده تقسیموی ، دا د یو دوو ورځو واقعه نه ده بلکه ډیرو میاشتو پورې دهغوی دا معمول ولیدلې شو ، عیسائی ماشینونه د ډبیو پئ تقسیموی مګر قادیانیان د دوی نه هم زیات تازه پئ تقسیموی ، نو آیا دا قادیانیان او عیسائیان اهلِ حق کیدلې شی ؟ هم ددې عیسائی ماشینونو اود قادیانیانو طریقې بعضې مسلمانانو جماعتونو هم شروع کړې دا خلق د شفاخانو او مختلفو مواقعو باندې د امدادی سرمایو او د تعاون په ذریعې سره دخلقو متاثره کولو کوش کوی ، شرعی نظر سره نه صرف دا چه دا څیزونه معیارِ حق نه دی

بلکه دل طریقه د تبلیغ له سره غلطه ده ، که تاسې کوم احسان یا طمع ورکولو سره څوک خپل طرف ته مائل کړل نو داسې سړی څه اعتبار ؟ سبا به یو بل جماعت هغه ته څه طمع ورکولو سره خپل ځان طرف ته مائل کولې شی ، هم داسې د اعمالو اهتمام هم معیارِ حق نه دې ، د خوارجو په باره کښې حضورکریم صلی الله علیه وسلم پیشګوئ فرمائیلې ده چه دهغې صداقت دنیا وکتلو وې فرمائیل چه دا خلق به داسې عابد او زاهد وی چه تاسو به د هغوی د عبادت په وړاندې خپل عبادتونو لره سپک وګڼې ، او وې فرمائیل چه دا خلق په هروخت د قرآن مجید د تلاوت رطب اللسان وی مګر «لا یجاوز حناجرهم » یعنې د قرآن اثر به دهغوی زړونو طرف ته تجاوز نه کوی . یا دا چه دهغوی تلاوت به قبلولو طرف ته نه پورته ، هم دهغوی په خوله کښې به پاتې شی .

جارالله زمخشری ته جارالله ددې وجه نه وئیلې کیږی چه دې همیشه دپاره د دنیا او د مافیها نه جدا کیدلوسره په بیت الله کښې معتکف شوې وو نو آیا معتزله او خوارج به د اعمالو د اهتمام د وجه نه هغوی ته اهل حق وئیلې شی ؟ د جرات اوهمت متعلق فکروکړئ چه کفار همیشه څنګه د جرات اوهمت مظاهرې کوی ، د ښځو ، خورګانو او د لوګانو وینځې جوړول ئې برداشت کړه ، ماشومانو لره ئې غلامان جوړکړه او پخپله ئې د غلامئ امیل واچولو ، سلطنتونه ئې قربان کړه ، املاک ئې پریښودل اوخپل ځانونه ئې قربان کړه د لوئ نه لوئ آفت هغوی لره دهغوی د نظرئې نه اخوا نه کړه ، د ابوطالب جرات ته وګورئ دمرګ په وخت کښې هم دا وائی چه «اخترت النار علی العار » زه د آبائی دین د پریښودلو په عار باندې د جهنم اور لره ترجیح ورکوم ، غوروکړئ چه څومره لویه بهادری ده ، معلومه شوه چه جرات او همت او استقلال لره معیارحق ګرځول غلط دی ، حقیقت دادې چه چه ایثار اوهمدردی ، خدمتِ خلق ، حسن اخلاق ، حسن نظم اوهمت اوجرات داهلِ حق صفات دی چه هغه غیراهل حق خپل کړی دی لکه څنګه چه دغیراهل حق ډیرو صفاتو لره اهل حق اختیارکړی دی ، ذکر شوی صفات بیشکه صفاتِ محموده دې اود اهل حق صفات دی مګر د حق معیار نه دی چه په چا کښې هم دا صفات وی هغه لره دې اهل وګڼلې شی ، څنې خلق ددې وجه نه هم د داسې جماعتونو سره وابسته کیږی چه دهغوی په نزد دین ډیر آسان دې ، اود مولیانو دین مشکل اوسخت دې ، د غیرشرعی لباس اود وضع قطع او تشبه بالنصاری کیدلوسره اود سنیماکتونکوپه شان جرائمو کښې مبتلاکیدلوسره مولوی چاته دیندار نه شی وئیلې . مګربعضې جماعتونو دین دومره آسان کړې دې چه تاسو ډیره ګیګوئ سریاندې انګریزی ویختان وی ، انګریزی لباس مو اغوستلې وی ، پیښځې د ګیټونه لاندې ځوړندې وی ، سنیما هم ګورئ ، دا ټول هرڅه کولوسره هم تاسو دیندارمسلمانان بلکه د ټولې دنیا نیګان او متقی مسلمانان جوړیدلې شئ ، شعر:

حج بھی کعبہ اور گنگا کا اشنان بھی    خوش رہے شیطان بھی ، راضی رہ

ترخوبورې چه کوم سرې زکوٰۃ اود قربانۍ څرمن او صدقة الفطر په صحیح مصرف کښې ونه لګوی هغه وخته پورې هغه د مولا په نظر کښې دیندار نه دې ، مګر د هغه جماعت نظریه داده چه تاسو جماعت ته زکوٰۃ ورکړئ مخکښې جماعت خواه که په هغې سره کورونه تعمیروی یا ډاکټرانو ته تنخواه ورکړی ، شفاخانې وچلوی یا انتخاباتو ته ودریږی ، اوګورئ څومره آسان دین دې چه ستاسو زکوٰۃ هم ادا شو اود انتخاباتو وغیره ضروریات هم پوره شو .

## کووم طرف ته بې لارې روان يئ ؟

محترمو ! په هوش کښې راشئ ، کم خوا بې لارې روان يئ ، که چرته هم آسانی او سهولت ستاسو په نزد معیارحق وی نوتاسو اسلام لره ولې نه پرېږدئ دې دپاره چه د هرقید نه آزاد شئ او که چرته د اسلام نوم باقی پرېښودلو سره آزادیدل وی نو په پرویزی مذهب کښې هم ډیره آسانی او سهولت دې نه هغلته مونځ شته، نه د روژې پابندی شته اونه د محرماتو نه د بچ کیدلو قید شته (اعاذناالله منه)

## معیارحق

تول واورئ چه حقیقت کښې معیارِ حق څه څیز دې ؟ ارشاد دې :

## آیات بینات

(۱) ﴿ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ﴾ الله تعالی د صراط مستقیم تفسیر په صراط القرآن یا په صراط الله یا په صراط الرسول سره ونه کړو ددې وجه نه چه خلقو به دهغې په تعیین کښې اختلاف کولو ، لهذا فرمائی ﴿ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ﴾ چه دا د منعم علیهم جماعت لاره ده ،دا جماعت به د صراط مستقیم تعیین کوی ، بلکه د عربیت قاعده ده چه بدل مقصود بالنسبت وی او مبدل منه لره صرف د مشهورنوم کیدلو د وجه نه ذکر کولې کیږی نو معلومه شوه چه طلبِ هدایت کښې اصلْ مقصود د منعم علیهم جماعت لاره ده ، صراطِ مستقیم ددے دویم نوم دے ، نو ثابته شوه چه کتاب الله پخپل تفهیم کښې څنګه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته محتاج دې هم دغه شان کتاب الله او سنتِ رسول صلی الله علیه وسلم پخپل تفهیم کښې د رجال الله (منعم علیهم جماعت ) ته محتاج دې ، مونږ دهغه جماعت نه مستغنی کیدلوسره په قرآن اوحدیث باندې د پوهیدلو مجاز نه یو، غرض داچه د جماعت صحابه رضی الله علیهم اسوهٔ حسنه صراطِ مستقیم دې ، بیا د هغوی نه بلاواسطه دې طریقې لره د پیژندلو والا د تابعینو

جماعت، بیا د هغوی نه د نقل کولو والا جماعت، هم دغه شان د یو بل نه ترقیامته پورې بالمشافهه صحیح طریقې لره د حاصلولو والا د رجال الله جماعت طریقې به صراطِ مستقیم وی، او دهغې نه خلاف ټولې طریقې به د ضلالت او ګمراهۍ لارې وی، د رجال الله جماعت به د قرآن اوحدیثو ژوندې تصویراو تفسیر وی.

(۲) ﴿بَلْ هُوَ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ فِى صُدُورِ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ ۚ وَمَا يَجْحَدُ بِـَٔايَٰتِنَآ إِلَّا ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ (۴۹، ۲۹)
په دې سره معلومه شوه چه د هدایت دپاره د قرآن صحیفې کافی نه دی بلکه دهغه مطلب او د هغه تفسیر چه د رجال الله په سینو کښې دې هغه واجب القبول دې.

(۳) ﴿وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ ٱلْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِۦ جَهَنَّمَ ۖ وَسَآءَتْ مَصِيرًا﴾ (۴، ۱۱۵)
«**يشاقق الرسول**» باندې د «**يتبع غيرسبيل المؤمنين**» عطف تفسیری دې، یعنې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سبیل تعیین به د مؤمنانو یو جماعت پخپل قول او عمل سره کوی دهغوی د لارې نه انحراف به د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لارې نه انحراف وی او موجبِ جهنم به وی، (اعاذنا الله منها)

(۴) ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ﴾ (۳، ۱۱۰)
په دې آیت کښې «**اخرجت للناس**» فرمائیلو سره د صحابه کرامو رضی الله عنهم اتباع لره واجب او دهغوی طریقو لره ئې حجت وګرځولو.

(۵) ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا۟ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ﴾ (۲، ۱۴۳)
په دې کښې هم دا امر مصرح دې چه د منعم علیهم جماعت لاره معیارِ حق دې

(۶) ﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ ءَامِنُوا۟ كَمَآ ءَامَنَ ٱلنَّاسُ﴾ (۲، ۱۳)

(۷) ﴿فَإِنْ ءَامَنُوا۟ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَوا۟ ۖ وَّإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّمَا هُمْ فِى شِقَاقٍ﴾ (۲، ۱۳۷)
په دې دواړو آیتونو کښې ددې تصریح ده چه ایمان به هغه معتبر وی چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم د ایمان په شان وی، یعنې د صحیح ایمان معیار د صحابه کرامو رضی الله عنهم طریقه ده، که ددې نه خلاف یو سړې براهِ راست قرآن او حدیثو باندې د ایمان راوړلو دعوی وکړی نو دا ایمان به قبول نه وی.

## احادیث مبارکه

(۱) حضورصلی الله علیه وسلم فرمائی چه په امت کښې به ډیرې فرقې جوړې شی، په هغې

كښې به صرف يو فرقه كامیابه وي باقي به ټولې جهنمي وي ، عرض وكړې شو هغه به كوم يو جماعت وي ؟ وې فرمائيل ((ما انا عليه واصحابي)) په ظاهره « ما انا عليه » فرمائيل كافي وو مگر حضورصلى الله عليه وسلم ته ددې علم وو چه آئنده به بعضې خلق خما د اصحابو نه مستغني كيدلو سره خما لاره لټوي بلكه خما نه به مستغني كيدلو سره د صراطِ مستقيم تعيين كوي ددې وجه نه « ما اناعليه » نه پس د « واصحابي » اضافه فرمائيلو سره دخپلې لارې تفسير ئې اوفرمائيلو چه خما لاره به هم هغه وي كومه چه خما اصحاب بيان كړي ، د ((ما ورد به القرآن)) يا ((ما انزل الله)) په ځائ ((ما انا عليه واصحابي)) فرمائيل او بيا صرف « ما انا عليه » لره كافي نه ګڼل صريح دليل دې چه مونږ ته قرآن او حديثو لره د براهِ راست زده كولو اجازت نشته.

(۲) ((عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين ، تمسكوا بها وعضوا عليها بالنواجذ)) ، په دې حديث كښې د «سنتي» نه پس « وسنة الخلفاء » عطفِ تفسيري راوړلو سره يې وضاحت وكړو چه خما سنت به صرف هم هغه وي د كوم تعيين به چه خلفاء راشدين رضى الله عنهم كوي.

(۳) ((يحمل هذا العلم من كل خلف عدوله ينفون عنه تحريف الغالين وانتحال المبطلين وتأويل الجاهلين)) (مشكوة ص ٣٦) يعنې امت كښې به د سلف نه خلف د علم صحيح حامل وي او بلاواسطه د يو بل نه صحيح طريقې باندې تعليم موندلو والا جماعت به په هره زمانه كښې موجود وي ، څوک چه د رجال الله نه مستغني كيدلو سره براهِ راست د قرآن او حديثو نه د استنباط او اجتهاد شوقي وي او د خانه تاويلات او تحريفات كوي دهغوى انهدام به كوي.

(۴) ((عن حذيفة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اني ما ادري ما بقائي فيكم فاقتدوا باللذين من بعدي ابي بكر وعمر وزاد الحافظ ابو نصر القصار فانهما حبل الله الممدود فمن تمسك بهما تمسك بالعروة الوثقى لا انفصام لها)) (رواه الترمذي وحسنه وقال وفي الباب عن ابن مسعود والطبراني عن ابي الدرداء معه واحمد وابن ماجة وصححه ابن حبان والحاكم) حضورصلى الله عليه وسلم دخپل ځان نه پس د قرآن او حديثو د اتباع په ځائ د صحابه كرامو رضى الله عنهم اقتداء لره فرض ګرځولو سره دهغوى په معيارِ حق كيدلو باندې مهر اووهلو ، ((فبأي حديث بعده يؤمنون)).

(۵) ((النجوم امنة للسماء واصحابي امنة لامتي)) (رواه مسلم) په دې كښې ئې هم د صحابه كرامو رضى الله عنهم د اقتداء حكم فرمائيلې دې.

## عقلِ سليم

عقلي لحاظ سره كه هم وكتلې شي نو دا امر ښكاره دې چه د حق معيار يو جماعت پكار دې چه

په هره زمانه کښې بلاواسطه دیو بل نه استفاده او افاده کولوسره راروان وی ددې وجه نه چه افهام او تفهیم کښې د یو څو امورو موجودیدل ضروری دی.

## د افهام او تفهیم دپاره ضروری امور

(۱) مخاطب او متکلم همژبه وی، غیرِ اهل لسان که ډیر مهارت هم پیدا کړی مگر اهلِ لسان چه کومه حده پورې د کلام په مفهوم باندې پوهیږی غیر په هغې باندې نه شی پوهیدلې.

(۲) د متکلم لهجه اوریدل، چنانچه استفهام او اخبارکښې فرق صرف د لهجې په اعتبارسره کیدلې شی الفاظ د دوارو یوشان وی.

(۳) د متکلم مخ، دهغه رنګ، هیئت، آثار، لاسونو اود سترګو اشاراتو لره لیدل چه آیا دا امر داستعجاز یا تهدید دپاره دې، یا د طلبِ ماموربه دپاره، او په کلام غضب باندې مبنی دې، یا حقیقت باندې، دا جمله د امورِ متکلم په لهجه اودهغه په رؤیت باندې موقوف کیږی، یو ځلې حضورصلی الله علیه وسلم د غصې په حالت کښې اوفرمائیل، «سلونی ماشئتم» خلقو بی ځایه پوښتنې شروع کړې، چا سوال وکړو چه ځما پلار څوک دې؟ چا پوښتنه وکړه چه ځما اوښه ورکه شوې ده هغه چرته ده؟ حضرت عمررضی الله عنه فرمائی چه ما د حضور صلی الله علیه وسلم چهرې مبارکې طرف ته وکتل نو دغصې نه سورکیدلو، ما د التحیاتو په شکل کښې کیناستلو سره عرض وکړو «اعوذبالله من غضب الله وغضب رسوله» نو بیا د دوی صلی الله علیه وسلم غصه سړه شوه.

(۴) د کلام د محلِ وقوع مشاهده، حقیقتِ لغویه، اصطلاحیه، مجاز یا استعاره، کنایه یا توریه، د مفهوم عموم اوخصوص وغیره هم د کلام د محلِ ورود نه معلومیږی.

(۵) قربِ ظاهری اوباطنی (قربِ باطنی نه مراد دې تعلق او محبت) او خیالاتو او نظریاتو کښې اتحاد او یوځائ والې، لکه چه هرسړې دخپلو احبابو او هم مجلسو او هم مشربو خبرو باندې د نورو په نسبت زیات پوهیږی.

هم ددې معقول او مسلم اصولو په بناء باندې چه کله یو صحابی کوم یو روایت لره په تاکید سره بیانول غواړی نو فرمائی ((ابصر ته عیدای وسمعه اذنای ووعاه قلبی))، یعنې کله به چه حضورصلی الله علیه وسلم کلام فرمائیلو هغه وخت ځما دواړه سترګې دهغوی صلی الله علیه وسلم چهره انور او دهغې الوانو، آثارو، تغیراتو اودچشم او ابرو اشاراتو او د لاسونو تعبیر ته ما کتل اود کلام د محلِ ورود مشاهده مې کوله، او ځما دواړو غوږونو د دوی صلی الله علیه وسلم د لهجې او آواز طرز او انداز لره اوریدلو دائې ونه فرمائیل چه پخپلو سترګو سره کتل او خپلو غوږونوسره اوریدل بلکه فرمائی چه زه پخپله سترګې او غوږونه جوړیدلم او بیا یو سترګه او غوږ نه بلکه زه

تول په تولـه دوا ړه سترګې او دوا ړه غوږونه جوړيدلوسره متوجه وو م ، دې سره سره چونکه اهلِ لسان کيدلو اود قربِ ظاهری او باطني شرف هم حاصل وودې تولو خصوصياتو په وجه د دوی صلی الله عليه وسلم ارشاداتو لره خما زړه ښه ياد کړه او الفاظ او معانيو لره تغيراوتبديل نه مې ښه محفوظه کړه .

اوس غوروکړئ چه صحابه کرام رضی الله عنهم تول په تولـه اهلِ لسان هم وو براهِ راست د حضورصلی الله عليه وسلم لهجې لره اوريدلو والا د تکلم په وخت کښې د کيفياتو او ارشاداتو مشاهده کولو والا اود قرآن د آيتونو شانِ نزول اود احاديثو مواقعِ ورود لره ښه پيژندلووالا وو ، د حضورصلی الله عليه وسلم سره د قربِ ظاهری او باطني په اعلیٰ مقاماتو باندې وو چه دهغوی درجهٔ قرب پورې د چا هم رسيدل ممکن نه دی ، مقربينِ بارګاهِ الهی کيدلو د وجه نه د دربارِی اشاراتو پيژندلو پوره استعداد ئې لرلو ، لهذا دې جماعت چه د صراطِ مستقيم تعين کړې دې دهغې نه برطرفه کيدلوسره د صراطِ مستقيم د هدايت هيڅ امکان نشته دې ، هم دغه شان د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه بلاواسطه استفاده کولو والا جماعت د تابعينو رحمهم الله دې ، هغوی د صحابه کرامو رضی الله عنهم قول اوفعل لره بلاواسطه واوريدل او اوليدل او مشافههٔ ئې د صراطِ مستقيم هدايت حاصل کړو ، دهغوی نه پس تبع تابعينو علی هذا القياس بالمشافهه د تعليم او تعلم ذريعه د صراطِ مستقيم حفاظت کولو والا جماعت راروان دې او انشاء الله قيامته پورې به وی ، دا سلسله کله هم په کومه زمانه کښې هم منقطع شوې نه ده .

## د اهلِ حق جماعت

اسلام کښې داسې وخت راتللې نه شی چه قرآن او حديث صرف د صحائفو په شکل کښې پاتې شی اود هغوی د الفاظو او معنو حامل يو جماعت هم نه وی ، دحضوراکرم صلی الله عليه وسلم ارشاد دې چه يو جماعت به ترقيامته پورې په حقِ باندې قائم وی او د دينِ قويم او د صراطِ مستقيم به حفاظت کوی .

پس معلومه شوه چه معيارِ حق دا د رجال الله جماعت دې ، کوم خلق چه دهغوی سره وابسته شی هغوی به اهلِ حق وی . اوکوم سری يا جماعت دهغوی لمنه پريخودله هغوی خواه که هرڅومره دعوې د اتباعِ قرآن او حديثو کوی اهلِ حق هيچرې نه شی کيدلې ، د اهلِ حق لقب اهلِ سنت والجماعت ځکه شو چه دا خلق قرآن لره سنتو نه او قرآن او سنت دواړو لره د رجال الله د جماعت نه پيژنی .

## يو فن هم بغير د استاذ نه حاصليدلې نه شی

دنيا کښې يو فن هم د يو ماهر استاد د تربيت نه بغير حاصليدلې نه شی ، يو سړې د ټولې دنيا د طب قديم وجديد د تمامو کتابونو مطالعه اوکړی مګر ترڅوپورې چه هغه د فن د ماهرينو نه تربيت

حاصل نه کړي ، هغه ته د علاج اجازت نه ورکولې کیږي کورکښې په ناصحه د وکالت ځناب وئیلوسره څوک وکیل نه شي جوړیدلې ، صرف د کتابونو په مطالعې سره کله هم څوک انجنير جوړ نه شو ، نه څوک خوانِ نعمت وئیلو سره باورچي یا حلواتي جوړ شو . د هرعلم او فن دپاره د ماهر استاد ضرورت دې هم دغه شان قرآن او حدیثو باندې د پوهې دپاره د رجال الله دهغه جماعت د کتابونو مطالعه کافي نه ده بلکه دهغوی نه بالمشافهه باقاعده تعلیم حاصلولو بغیر د قرآن او حدیثو علم حاصلیدلې نه شي، صحابه کرامو رضي الله عنهم د حضورصلی الله علیه وسلم نه بالمشافهه علم حاصل کړو بیا د هغوی نه تابعینو بالمشافهه تعلیم حاصل کړو اودهغوی نه تبع تابعینو ، هم دغه شان بالمشافهه د تعلیم او تعلم دا سلسله راروانه ده ، د یو ماهر استاد نه بالمشافهه تعلیم کولو نه بغیر قرآن او حدیثو باندې د پوهیدلو دعوی بالکل باطله ده . که چرته د کتاب پیژندلو دپاره د معلم ضرورت نشته نو الله تعالی آسماني کتابونو باندې پوهولودپاره رسولانو لره معلمان ولې جوړکړه ؟ هم داسې به ئې کتاب نازل کړې وې ، خلقوبه خپله هغې باندې پوهیدلوسره هغې باندې عمل کولو .

صحیح بخاری کښې حدیث دې چه علم د چا نه زده کولو نه بغیر نه شي حاصلیدلې . د حدیث الفاظ دادی ((وقال النبي صلی الله علیه وسلم من یرد الله به خیراً یفقهه في الدین وانما العلم بالتعلم (صحیح بخاری باب العلم قبل القول والعمل) قال الحافظ رحمه الله تعالی علیه هو حدیث مرفوع ایضاً اورده ابن ابي عاصم والطبراني من حدیث معاویة ایضاً بلفظ یا ایها الناس تعلموا انما العلم بالتعلم والفقه بالتفقه ومن یرد الله به خیراً یفقهه في الدین اسناده حسن لان فیه مبهما اعتضد بمجیئه من وجه اخر وروی البزار نحوه من حدیث ابن مسعود موقوفا ورواه ابو نعیم الاصبهاني مرفوعا وفي الباب عن ابي الدرداء وغیره فلا یغتر بقول من جعله من کلام البخاري والمعنی لیس العلم المعتبر الا الماخوذ من الانبیاء وورثتهم علی سبیل التعلم)) (فتح الباری ص ج)

## د جماعت اسلامي چل او فریب

اوس هغه خلقو لره لپ د حق او باطل په دې معیار باندې راولئ چه دهغوی د حسنِ نظم وغیره نه متاثره کیدلو سره دوی هغوی لره اهلِ حق گڼل شروع کړې دی ، داسې معلومیږي چه د دې جماعت تمام ترکوششونو سره هم مقصد دهغه رجال الله د جماعت نه اِنحراف اود هغوی د متعین شوي صراطِ مستقیم مکمل تخریب اودهغې نه پس دخپل جدید اسلام تعمیر دې او دا زه دهغوی د اقوالو او طرزِ عمل نه صرف د استنباط په بناء باندې نه وایم بلکه دې باندې دهغوی صریح عبارات موجود دی چه مونږ مکمل طور باندې د تخریب نه پس جدید تعمیر کول غواړو

حوالجات به انشاء الله لږ وروسته راشي

## تخريبي کار کردګي

اوس تخريبي کار کردګي واورئ . دهغوی په خيال کښې دين لره د پيژندلودپاره مسلسل راروان رجال الله او د فن ماهرينو نه د استفادې کولو قطعاً څه ضرورت نشته بلکه قرآن او حديثو لره براهِ راست پيژندل ضروري دي ، فرمائي :

« ما دين لره د حال يا د ماضي اشخاصو نه د زده کولو په ځائ هميشه د قرآن او سنتو نه د پوهيدلو کوشش کړې دي ، ددې وجه نه زه کله دا معلومولو دپاره چه د الله دين څما نه او هر مؤمن نه څه غواړي ددې کتلو کوشش نه کوُوم چه فلانکي او فلانکي بزرګ څه وائي بلکه صرف ددې کتلو کوشش کوم چه قرآن څه وائي او رسول الله صلى الله عليه وسلم څه اوونيل » «روئيداد جماعت اسلامي حصه سوم ص ۳۷»

غوروکړئ چه کوم سړی ديو ديني ادارې نه علم حاصل نه کړو دکوم يو معروف استاد نه يې يو سبق ونه وئيلو چه هغه ته نور علوم خو څرته صرف د عربي ژبې سره هم پوره واقفيت نه وي او د خپل تصنيف د عربي ترجمې نورو نه کولو باندې مجبوره وی هغه به د حضورصلى الله عليه وسلم نه بلاواسطه دين لره پوهيدلو والا صحابه کرامو رضي الله عنهم اود هغوی نه پس دهغوی نه بلاواسطه استفاده کولووالا لوئ لوئ ائمه دين او جليل القدر محدثين اوفقهاء او مستند ديني ادارو کښې د مشهور د فن ماهرينو نه باقاعده علم دين حاصلولو والا او خدمتِ دين کښې خپل عمرونه صرف کولو والا علماؤ په مقابله کښې څومره جرات سره خپلې رائې قرآن پيژندلو ته ترجيح ورکوی .

## د صحابه کرامو رضي الله تعالى عنهم توهين

دهغوی عقيده ده چه صحابه کرام رضي الله عنهم معيارِ حق نه دی ، قرآن او حديثو باندې د پوهيدلو دپاره نه صرف داچه د صحابه کرامو رضي الله تعالى عنهم ضرورت نشته بلکه «معاذالله» دهغوی بيخي جواز نشته دې ، مونږه خو قرآن او حديث براهِ راست پخپل علم او فهم سره اوپيژندل دهغې نه پس مو د صحابه کرامو رضي الله عنهم د سوانحو مطالعه وکړه نو هغوی لره مو د قرآن او حديثو مطابق ومونډل .

غور وکړئ چه د قرآن او حديثو پورته د نصوصِ مذکوره اود عقلي دلائلو فيصله خو داده چه تاسو خپل علم او نظرياتو لره د صحابه کرامو رضي الله عنهم د طريقې سره موازنه وکړئ ، مګر دا خلق بالکل برعکس داسې وائي چه مونږ د صراطِ مستقيم تعين خو پخپله براهِ راست د قرآن او حديثو نه دخپل علم او فهم په ذريعې سره کړو ، بيا مونږ د صحابه کرامو رضي الله عنهم ژوند او

د طريقو صحت او سقم لره دخپلې نظرئې سره موازنه كړو ،مونږ د خپلې نظرئې په امتحان كښې چه د صحابه كرامو رضى الله عنهم مطابق دې يا نه ؟ ددې په ځائې مونږ د صراطِ مستقيم تعيين پخپله كولوسره د صحابه كرامو رضي الله عنهم امتحان اخلو چه هغوى په دې باندې وو يا نه (اعاذناالله منه) فرمائى :

د رسولِ خدا نه سوا يو انسان لره هم معيارِحق مه جوړوئ ، چالره هم د تنقيد نه بالاتر مه ګنړئ ، د چا په ذهنى غلامئ كښې مبتلاء مه شئ ، هريولره د الله تعالى د ښودلې شوى هم دې معيارِكامل سره موازنه كړئ او څوک چه ددې معيارپه لحاظ سره په كومه درجه كښې وى هغه لره هم په هغه درجه كښې وساتئ ، (دستورجماعت اسلامى پاكستان ص ۱۴)

اوبيا وايى چه : معيارِ حق خو صرف د الله كلام اودهغه د رسول صلى الله عليه وسلم سنت دې ، صحابه معيارِ حق نه دى بلكه دې معيارباندې پوره عمل كوى ، ددې مثال دادې چه پيمانه (تله) سره زر نه دى ليكن د سونې سوئا كيدل تله باندې په تللوسره ثابتيږى ، (ترجمان القرآن اګست سنه ۱۹۷۲، ص ۲۸۰ ج ۴۰)

مودودى صاحب قرآن اوحديثو لره پخپله بلاواسطه پيژندلوسره چه كوم معيارِحق قائم كړې دې هغې باندې د صحابه كرامو رضى الله عنهم پوره عمل كولو اعتراف د حكمتِ عملئ (تقيه) لاندې څه دې ، اوكه نه نو حقيقت دادې چه په امتحان كښې صحابه كرام رضى الله عنهم (معاذالله) د مودودى صاحب د علم او فهم په پيمانه او د انتقاد كوونكى په معيارباندې پوره عمل ونه كړې شو ، لكه چه فرمائى : ((بعضې وختونوكښې صحابه (رضى الله عنهم) باندې هم د بشرى كمزوريانو غلبه كيدله))
(تفهيمات طبع چهارم ص ۲۹۴)

ددې نه پس يو څو واقعات ليكلوسره يى د دې ثابتولو كوشش كړې دې چه صحابه كرامو رضى الله عنهم يو بل ته دروغژن وئيل ، په دې كښې لفظ (بعضې وختونوكښې) قابل د توجه دې يعنې شاذاو نادر نه بلكه معاذالله اكثر اوبيشترصحابه كرامو رضى الله عنهم باندې د بشرى كمزوريانو غلبه كيدله .

د دې نه علاوه صحابه كرامو رضى الله عنهم د بشرى كمزوريانو ثابتولودپاره ديوغيرمعتبر كتاب بې سنده روايات پيش كوى ، تعجب دې چه د صحيح بخارى د صحيح او صريح حديث نه انكار كوى او چه كومو صحيحو حديثونو لره تسليموى دهغې متعلق هم دا عقيده لرى چه هغې سره زيات نه زيات د صحت ګمان حاصليدلې شى نه چه علم يقين ( ددې حواله انشاء الله عنقريب راځى ) ، مګرد صحابه كرامو رضى الله عنهم توهين اود هغوى بشرى كمزوريانو لره ښكاره كولو دپاره د قرآن اوحديث نصوصِ صريحه اود تمام امت د اجماعى عقيدې خلاف د بې سندو رواياتو

لفظ نسی . د قرآن فیصله ده ﴿وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ﴾ (سورة الحدید ج۱) بل ځای فرمائی الخ ﴿وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ﴾ (۴۹، ۲۹)

معلومه شوه چه کتبِ سابقه کښې هم د صحابه کرامو رضی الله عنهم مناقب ذکر دی ، تعدیلِ صحابه رضی الله عنهم سره متعلق نصوص دومره په کثرت سره دی چه د ټولو شمیر مشکل دې د امت اجماعی عقیده ده « **الصحابة کلهم عدول** » مگر ددې ټولو په مقابله کښې بې سنده روایات راوړلوسره د صحابه کرامو رضی الله عنهم کمزوریانې محض د تخریبی کاروائې په غرض سره بیانیږی ، ثانیاً داچه لفظِ کذب عربی ژبه کښې او احادیثو کښې په ډیرو معنو کښې استعمال شوې دې، دا ددرغو نه علاوه خطا او د یو کارنه د تخلف په معنی کښې هم استعمالیږی ، که چرته یو صحابه دیوبل صحابی په باره کښې دا لفظ استعمال کړې وی نودهغې معنی خطا اجتهادی ده . یا دا مطلب دې چه هغه به کوم کار کول غوښتل په هغې باندې د قدرت نه موندلو د وجه نه متخلف وو مگر دهغوی تخریب مکملیږی نه ترڅوپورې چه کذب په معنیِ د درغو نسبت صحابه کرامو رضی الله عنهم طرف ته نه کولو (د بنده ددې تحریرنه پس مودودی صاحب کتاب (خلافت وملوکیت » لیکلې دې چه په هغې کښې ئې د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره د بغض زهرو لره علانیه تیرکړی دی هغه کتاب لره کتلو نه پس هم که چرته چاته د مودودی صاحب په بغضِ صحابه رضی الله عنهم باندې یقین نه راځی نو دا ددې دلیل دې چه پخپله دهغه په زړه کښې د صحابه کرامورضی الله عنهم سره بغض اوعداوت دې ، حقیقت دادې چه د مسلمانانو د زړونو نه د صحابه کرامو رضی الله عنهم عظمت ختمولو او هغه مقدس جماعت سره متعلق په زړونو کښې شکوک او شبهات او بغض او نفرت پیدا کولو چه کومې کارنامې ځانله مودودی صاحب سرته رسولی دی د شیعه پوره جماعت پخپل ټول عمر کښې دهغې عشرِعشیر هم اونه کړې شو ، (نظرثانی)

د مودودی صاحب نه وړاندې یو مسلمان هم داسې په نظر نه راځی چه د یو صحابی سره بغض لری . مگر نن مودودی صاحب د مسلمانانو یو جماعت لره په دې مهلکو زهرو سره مکمل طور باندې مسموم کړی دی .

## د انبیاء کرامو علیهم السلام توهین

ددې نه هم زیاته دهغوی تخریبی کاروائی د انبیاء کرامو علیهم السلام نه شروع کیږی فرمائی « عصمت د انبیاء کرامو علیهم السلام د ذات د لوازمو سره نه دې ، او یو لطیفه نکته داده چه الله په ارادې سره دهرنبی نه بعضې اوقاتو کښې خپل حفاظت اوچتولوسره دیو دوو گناهونو

اختيارئې ورکړې دي (تفهيمات ج۲ص۵۷ طبع ششم پاکستان)

آيا د نبي يو حکم يا فيصله قابلِ اعتماد کيدلې شي چه هرکله دهرامراونهي په وخت دا احتمال موجود وي چه شاهد په دې وخت کښې عصمت اوچت کړئ شوي وي ، حقيقت دادې چه د انبياء کرامو عليهم السلام نه بعضې اجتهادی غلطيانې اوشوئ چه هغې باندې وروستو خبردارکړئ شو او خطااجتهادی باندې هم ثواب ملاويږی څه ګناه نه ده چه د عصمت منافی وی ، د مودودی صاحب عصمتِ انبياء عليهم السلام باندې لاس اوږدولو سره چه کله په مسلمانانو کښې جذبه د جوش راپورته شوه نودخپلې دعوې د اثبات دپاره هغه بدبخت د انبياء کرامو عليهم السلام دګناهونو يو فهرست مرتب کولوسره شائع کړو ، ماته خو په هغې کښې ديوګستاخئ نقل کولو هم همت نشته دې ، که يو صاحب بطورِنمونه کتل غواړی نو تفهيم القرآن کښې دحضرت آدم ، نوح ، ابراهيم ، داؤد ، يونس ، يوسف عليهم السلام په شان کښې او ترجمان القرآن ج۲۹عدد۴ص ۵ او رسائل ومسائل ص ۳۱ج ۱طبع دوم کښې د حضرت موسیٰ عليه السلام په شان کښې ګستاخی اوګورئ،مګر دمودودی ددې مکارئ نه خبردار اوسئ چه هغه هرنوی چاپ سره داسې ګستاخئ لره ديرزر پټوی چه د مسلمانانو دپاره قابل د تحمل نه وی مګر دهغې نه د توبې اعلان نه کوی .

## قرآن غائب

تحريف قرآن سره متعلق د شيعه ګانو روايات مختلف دی ، پوره قرآن غائب ، ۲۱۳ غائب ۳۱۴ غائب ، د شيعه ګانو دپاره دا زهر د مسلمانانو په حلق کښې کوزول ډير مشکل وو مګر وګورئ مودودی صاحب قرآن د ۳۱۴ نه زيات بلکه د پوره غائبيدلو عقيدې لره څنګه په تلوارې او فريب سره د مکارئ په ذريعې حلوا جوړولو سره دمسلمانانو يو جماعت ته تيرولو کښې څومره په آسانئ سره کاميابه شول ، فرمائی :

«په وروسته پيړيو کښې ورو ورو ددې ټولو الفاظو (اله ، رب ، دين ، عبادت ) هغه اصلی معنی چه د قرآن د نزول په وخت کښې ګڼلې کيدلې بدلې ئې کړې تردې پورې چه هريو په پوره کوششونوسره برطرفه کيدلوسره نهايت محدود بلکه د مبهم مفهوماتو دپاره خاص شو نتيجه دا شوه چه د قرآن د اصلِ مدعا پيژندل د خلقو دپاره مشکل شو ..... پس دا حقيقت دې چه محض ددې څلورو بنيادی اصطلاحګانو په مفهوم باندې د پردې پريوتلو په وجه د قرآن د دريمې حصې نه زيات تعليم بلکه دهغه حقيقی روح د نظرونونه پټ شوې دې»

«د قرآن څلور بنيادی اصلاحګانې ص ۴تا ص ۲»

الله تعالی د قرآن کريم د الفاظو او مفهوم دواړو د حفاظت ذمه اخستلې ده . ارشاد دې «انا نحن نزلنا الذکر وانا له لحافظون» بل ځائ ارشاد دې «ان علينا جمعه وقرانه فاذا قراناه فاتبع قرانه ثم ان علينا

بیانه»، ددې نصوصو صریحه خلاف د مودودی صاحب عقیده داده چه د قرآن د دریمې حصې نه زیات تعلیم بلکه د قرآن روح خو تول په توله غائب دې.

لږ غوروکړئ چه د ذکر شوی خط وئیلو والو باندې به څه اثروی ؟ هغوی به ددې نه څه نتیجې اخذ کوی ، او قرآن او اسلام سره متعلق دهغوی په زړونوکښې به څه څه شکوک او شبهات پیدا کیږی؟ آیا دې تحریرلره کتلو والا به په لاندې امورو باندې غورکولو دپاره نه مجبوره کیږی ؟

(۱) د الله تعالی د طرف نه د حفاظت قرآن وعده غلطه او دروغژنه ده ، نعوذبالله من ذلک .

(۲) چه هر کله د قرآن صحیح تعلیم او حقیقی روح د ډیرو زمانونه غائب دې ، نو اوس څوارلس کاله پس مودودی صاحب ته د قرآن صحیح علم اودهغه حقیقی روح دکوم ځائ نه ملاؤ شو ؟ چه هرکله څوارلسو کالو پورې لویو لویو مشهورمفسرینو ، محدثینو او ائمه دین قرآن باندې پوهه نه شو نو نن د مودودی صاحب یاد بل چا په قرآن پیژندلو باندې څنګه اعتماد اوکړئ شی ؟ نتیجه داچه د قرآن او د اسلام په صحیح ترجمانئ باندې د چا رایه هم قابل د اعتماد نه ده ، لهذا داسې قرآن او اسلام ته سلام ، نعوذبالله من ذلک .

(۳) چه هر کله ترننه پورې امتِ مسلمه د مفهومِ قرآن د حفاظت نه مجرمانه غفلت کښې مبتلاوو یا عمداً د مفهومِ قرآن په تحریف کښې مصروف وو نو د داسې مجرم ، بددیانت او دښمنانِ قرآن په ذریعې سره د رارسیدلی شوی الفاظ د قرآن صحت څنګه قابلِ اعتماد کیدلې شی ؟ پس د قرآن مفهوم سره متعلق د مودودی صاحب عقیده عدمِ حفاظت باندې لازم راځی چه معاذالله د قرآن الفاظ هم محفوظ نه دی .

هم دغه شان هم هغه وسائطو سره رارسیدلی احادیث او پوره اسلام به مشکوک ناقابلِ اعتماد وګرځی ، الله تعالی دې د شوقِ اجتهاد د فتنو نه د امتِ مسلمه حفاظت وکړی ، آمین .

## اصول حدیث (د دوئ په نیزد) یوه افواه ده او بې فائدې دی

اوس د حدیثو تخریب په زړه مضبوطولو سره واورئ ، فرمائی :

«اصولِ روایت لره خو پریږدئ چه دې دورِ جدید کښې مخکینو وختونو افواه او بیهوده خبرې ښوک اوری» (ترجمان القرآن جلد ۱۴ عدد ۲ ص ۱۱۱)

او واورئ : «ستاسو په نیز هرهغه روایت لره حدیثِ رسول پیژندل ضروری دې چه هغې لره محدثین د سند په لحاظ سره صحیح وګرځوی لیکن زمونږ په نیز دا ضروری نه دې»

او بیا فرمائی : «د دین فهم چه مونږ ته حاصل شوې دې دهغې لحاظ هم وکړئ شی اود حدیث هغه مخصوص روایت چه کومې معاملې سره متعلق دې هغه معامله کښې قوی ترذرائعو سره چه کوم سنت ستره ثابت وی مونږ ته معلوم وی په هغې باندې دې هم نظر واچولې شی.» علاوه ددې نه

نور هم زیات ډیر اړخونه دي چه دهغې لحاظ کولو نه بغیر مونږ د یو حدیث نسبت نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته کول صحیح نه گڼو» «رسائل ومسائل ص ۲۹۰ ج ۱»

لږ د تخریب د جذبې اندازه ولګوئ چه جلیل القدر محدثین او ائمه حدیث چاچه د حدیثو په تنقیح اوتنقید، صحیح اوسقیم په تمیزکښې عمرونه صرف کړه دچا د حافظې چه دا حال وو چه تر اسونو پورې ورته نسب نامې یادې وې، دهرراوی د ولادت نه واخله ترمرګه پورې مفصل حالات نه صرف هغوی سره محفوظ وو بلکه ژبنی ورته یاد وو. هغوی اصول روایت او رواة حدیث باندې بې شمیره غټ کتابونه لیکلي دي اوډ ډیرو کلونو نه پس دهغوی د ځوانئ یا د بوډهاوالي په ورځوکښې صرف د هغه څپو کتلوسره اوپیژندلو، امام ترمذی په آخری عمر کښې نابینا شوې وو په اوښ باندې سوریدلوسره ئې تشریف وړو، لاره کښې یوځائ باندې یې سرټیټ کړو، خادم د سرټیټولو د وجه پوښتنه وکړه نو وې فرمائیل چه دلته یو داسې ونه ده چه د هغې ځانګې را زوړنده دی او په سورلئ باندې سپور تن سره لګی، عرض ئې وکړو چه دلته خو داسې څه ونه نشته، وې فرمائیل چه اوښ دلته ودروه اود نژدې خلقو نه پوښتنه وکړه. که چرته داسې ونه دلته نه وه نو ثابته به شی چه ځما ذهن کمزورې شوې ده آئنده به حدیث بیانول پریږدم، چنانچه تحقیق کولو باندې معلومه شوه چه واقعةً یوزمانه کښې دلته ونه وه نو بیا وراندې روان شو، دهغه حضراتو د محیرالعقول واقعاتو شمیرل معتذره دی، بیا د حدیثو په معرفت کښې یو اهم امر یعنې فراست ایمانی او قرب بارګاه الهی په هغوی کښې دکومې درجې وو؟ دا حضرات د تدیّن او د تقوی مجسمې وې دهغوی عبادات د ملائکو دپاره باعث د پسنبیدلو وو. دهغوی تمامتر کوششونه او د قربانیاتو د قلم په خوزیدلوسره ختم کړه اودهغوی په مقابله کښې ئې خپل نفس لره اودرولو. فرمائی زمونږ په نیز د محدثینو تصحیح لره قبلول ضروری نه دی. بلکه مکتب کښې وئیلو سره چه مونږ د دین فهم حاصل کړې دې هغه به د حدیثو د صحت او سقم معیار وی، نورهم ډیر اړخونه دی چه دهغې اظهار به وخت په وخت کیږی یعنې د کوم حدیث زد چه دهغوی په نظریاتو باندې اوغورځیږی دهغې رد کولو دپاره فوراً څه وصول وضع کولې شی. اوس اوفرمائې چه په دوی کښې اومنکرین حدیث کښې څه فرق دې؟ منکرین حدیث هم د هرحدیث انکار نه کوی بلکه هغوی د خانه وضع کړې شوې اصولوسره حدیث لره تلی دهغې مطابق وی نو قبلوی اوکه نه نه یې قبلوی. د مودودی صاحب په نظر کښې چه کوم حدیثونه صحیح دي لږ دهغې مقام هم واورئ:

## نحن رجال وهم رجال

فرمائي: احادیث د یوځوانسانانو نه یو څو انسانانو پورې رارسیدلی راروان دی دهغې نه زیات نه زیات که چرته یو څیز حاصلیږی نوهغه گمان صحت دې نه علم یقین» «ترجمان القران جلد ۲۶

ده ۳ ص ۲۶۷)

مطلب داچه اول خو حدیث نه څه خاص خبره نه ثابتیږي، زیات نه زیات که چرته څه ثابتیږي نو څه گمانِ صحت کیدلې شي یعنې څه خیال کیدلې شي چه شاید دا حدیث صحیح وی هغه هم هله چه حدیث نه د څه ثابتولو څه زیات کوشش وکړې شي ، الفاظ « زیات نه زیات » قابلِ توجه دی . که چرته په یو بې سنده روایت کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم باندې د نصوصِ صریحه اود اجماعِ امت خلاف الزام لگولې شوې وی اودهغوی توهین کړې شوې وی نو دا روایت ضرور واجب القبول او واجب التشهیردې ، لږ وړاندې لاړ شئ ، د صحیح بخاری دیو صحیح مرفوع متصل حدیث باره کښې فرمائی : « دا مهمل افسانه دې » (رسائل ومسائل ج۲ ص ۳۲ طبع سوم)

حالانکه د امت اجماعي فیصله ده چه ((اصح الکتب بعد کتاب الله صحیح البخاری)) د امام بخاری د قوتِ حافظې ، تدیّن اوتقوىٰ او فنِ حدیث کښې د مهارت تفصیل بیانولو نه موقع ده نه ضرورت . ددې وجه نه چه هغه ټوله دنیا پیژنی چه دوی د قبولِ روایت دپاره ډیر سخت شرائط لگولی دی . د راوی د مروی عنه نه چه ترکومه پورې لقاء وسماع دهغه په نیز ثابته نه شی هغه وخته پورې روایت قبلوی نه اگرچه د دواړو زمانه یو وی اود لقاء او سماع امکان هم وی د امام مسلم په شان امام بخاری باندې ددې وجه نه ناراضه دې چه هغوی قبولِ روایت کښې دومره سخت قیود ولې لگولی دی ؟ بیا قوتِ ضبط اود عدالت د اعلىٰ مقام اود تنقید اوتنقیح د اعلىٰ معیارسره دا معمول وو چه د هرحدیث لیکلو نه وړاندې ئې غسل کولوسره دوه رکعته د استخارې مونځ ادا کولو . په هر حال دا خو امام بخاری دې د مودودی صاحب تخریبی منجنیق خو انبیاءِ کرامو علیهم السلام او صحابو رضی الله عنهم پورې ونه بنبل .

## د جماعتِ اسلامی نه سوا باقی ټولې طریقې غلطې دی

« حنفی ، سنی ، دیوبندی ، اهلحدیث ، بریلوی ، شیعه وغیره د جهالت پیداوار دی »
(خطباتِ مودودی ص ۱۲۸)

یوځائې د ټول امت تخریب کولوسره فرمائی :

« زمونږ ایمان دې چه ددې یو دعوت او طریقِ کار نه سوا نور ټول دعوتونه او طریقې سراسر باطلې دی » (ترجمان القرآن جلد ۲۲ عدد ۳ ص ۱۱۱)

یعنې د جماعتِ اسلامی د طریقې نه سوا باقی ټولې طریقې باطلې او غلطې دی

## جماعت اسلامی څه غواړی ؟

**تخریب خو تخریب دې :** دخپلې طریقه کار خپله وضاحت کوی او وایي :

« د تخریبي تنقید نه بغیر هغه الفت نه شي لرې کولې چه خلقو ته رائج الوقت تخیلات او د عمل په طریقو سره طبعي طور باندې کولې کیږي ، لهذا د تخریب نه بغیر یاناکافي تخریب سره د نوي تعمیرنقشه پیش کول سراسرناداني ده . » (ترجمان القرآن جلد ۱۴ عدد ۲ ص ۱۳۴)

آیا د دومره واضحه او صریح عبارت نه پس چاته په دې کښې څه شبهه باقي پاتې کیدلې شي چه جماعتِ اسلامي څه غواړي ؟ ما وړاندې عرض کړې دی چه دهغوی تمام ترکوششونه او هلو ځلو مطلب دادې چه د ټول امت د تخریب نه پس دخپل جدیدِ اسلام نوې تعمیر وکړي .

## د مودودي مذهب

یو بل مقام باندې فرمائي :

« زه نه مسلکِ اهلِ حدیث لره دهغې ټولو تفصیلاتو سره صحیح پیژنم اونه د حنفیت یا شافعیت پابندیم » (رسائل ومسائل جلد ۱ ص ۲۳۵)

اوس د پوښتنې قابل خبره داده چه بیا نو ته څه ئې ؟ تقریباً دویمه دریمه صدئ هجری کښې اهلِ حق کښې د فروعي او جزئي مسائلو په حل کولو کښې د اختلافِ انظار پیشِ نظر پنځه مکاتبِ فکر قائم شو یعنې مذاهبِ اربعه او اهلِ حدیث ، دهغه زمانې نه واخله ترننه پورې هم هغه پنځو طریقو کښې حق لره منحصرګڼلې کیدلو ، مګراوس د څوارلسو کالو نه پس دا جدیدحق په معرضِ وجود کښې راغلو چه په هغه پنځو کښې دچاسره هم وابسته نه دې بلکه دهغه پنځو تخریب کوي . دخپل ځان نه سوا تمام ترنظریات او د مسلمانانو د جمله جماعتونو خیالات او طریقهٔ کار لره باطل ګڼي . اوس سوال داکیږي چه ددې جدیدِ اسلام اصول ، فروع ، قواعد ، ضوابط ، آئین ، دستور ، کتابونه ، مصنفین ، دتعلیم اوتعلم مدارس ومکاتب او ددې اسلام حامل او محافظ کسان څوارلسو کالو پورې چرته وو ؟ ددې نه وړاندې دنیا کښې مکاتب ومدارس ، تصانیف او اصول وضوابط او پوره نظام اسلام خو دهغه خلقو په لاس کښې وو چه (معاذالله) سراسرغلطئ باندې وو ، نوداسې اسلام باندې څنګه اعتماد کیدلې شي ؟ چه دهغې څوارلسو کالو پورې یو صحیح محافظ پیدا نه شو اود هغې اصول ، ضوابط ، مدارس ومکاتب ، تصانیف وعلماء په وجود کښې رانه غلل . اوس د جدیدِ اسلام د تدوین صرف هم دوه لارې کیدلې شي ، یو داچه دا جدیدِ اسلام په حقیقت کښې تجدید دې دهغه قدیم اسلام چه څوارلس کاله وړاندې دې دنیا ته راغلې وو نو دې باندې به دا اشکال کیږي چه مودودي صاحب ته د څوارلسوکالو وړاندې اسلام علم څنګه اوشو ؟ چه هرکله هغې باندې پوهیدلو والا څوک په دنیا کښې تیرشوي نه دې ، دویمه لاره دا کیدلې شي چه بالکل هم جدیدِ اسلام مدون کړئ شي چه مخکښې اړو په وجود کښې راغلې نه وي نو په دې کښې څه اشکال نشته دې مګر یاد ساتئ چه د داسې جدیداسلام څومره عالیشان

تعمیراتو لره د قدیم اسلام معمارانو په کنډرونو کښې بدل کړی دی . شعر:

چراغے راکه ایزد بر فروزد    هر آنکس تف زند ریشش بسوزد

## تقلید د ګناه نه هم بدتر دی

یوه بله تخریبی فتویٰ واورئ:

«خما په نزد صاحبِ علم سړی دپاره تقلید ناجائز او ګناه بلکه ددې نه هم سخت ځیز دې»

(رسائل ومسائل جلد ۱ ص ۲۴۴)

ددې نه وړاندې ص ۲۴۰ باندې ئې وضاحت کړې دې چه اهلحدیث هم مقلد دی . غور وکړئ چه د ټول امت محدثین ، ائمه دین ،مصنفین ، فقهاء ، علماء ، صوفیاء او بزرګانِ دین چه په هغوی کښې اهلحدیث هم داخل دی دا ټول په ټوله د ګناه نه بدترځیز کښې مبتلاء دی بلکه صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې هم کم علم والو حضراتو د زیات علم والو تقلید کولونو د دوی په نزد (معاذالله) هغوی هم مسلمانان نه دی دګناه نه سخت خو صرف کفر کیدلې شی تعجب دې چه دلته د صراحةً کفر فتویٰ لګولو جرات ولې اونه شو ؟ حالانکه په نورو مواضعو کښې ددې تصریح کوی چه د دوی نه سوا په دنیا کښې څوک مسلمان نشته .

## د نوی اسلام جوړول

د ټول امتِ مسلمهٔ د تخریب نه پس اوس د نوی اسلام تعمیر پیش کیږی :

«اسلام بغیر د جماعت نه نشته او جماعت بغیر د امیر نه نشته» (دجماعتِ اسلامی رومبنئ اجتماع ص ۱۴)

لهذا ترڅوپورې چه تاسو په جماعتِ اسلامی کښې داخل شوی نه ئې مسلمان کیدلې نه شئ ، اسلام بغیر د جماعت نه نشته او جماعت بغیر د امیر نه نشته ، دریمه مقدمه محذوف منوی ده چه هغې لره د بیرونی خلقو په نسبت ارکانِ دولت زیاته پیژنی . اوس د امیر مقام واورئ:

## د امیر مقام

فرمائی : «د بعضې مقامی جماعتونو ارکان مقامی امیر ته د صدرِ انجمن نه زیات څه اهمیت نه ورکوی هغوی ته پیژندل پکار دی چه هر کله هغوی پخپل مینځ کښې یو کس لره غوره ګڼلو سره صاحبِ امر منتخب کړو نو هغوی باندې واجب ده چه په معروف کښې دهغه اطاعت وکړی او دهغه نافرمانئ لره ګناه وګنی .» (ترجمان القرآن جلد ۲۲ عدد ۳ ص ۱۲۵)

د جماعتِ اسلامی په دستور کښې هم دا ماده موجود ده چه «امورِ شرعیه کښې د امیر رائې

واجب القبول ده » خیال وکړئ چه د یو صحابی یا د امام تقلید خو ګناهِ کبیره بلکه کفر دي اود جماعت اسلامی د امیر تقلید فرض دي دهغوی په دستور کښې یوه ماده دا هم ده چه «د حضور صلی الله علیه وسلم نه سوا چا لره هم د تنقید نه اوچت مه ګنئ او د چا هم په ذهنی غلامئ کښې مبتلا مه شئ . » اولاً خو د توهین په غرض سره تقلید لره ذهنی غلامئ سره تعبیرورکوی حالانکه غلامئ او تقلید کښې د زمکې او آسمان فرق دي . ثانیاً صحابه کرامو رضی الله عنهم لره د تنقید نه اوچت ګڼل او د هغوی تقلید جائز نه دي مګر امیرِ جماعت باندې د تنقید اجازت نشته دي . دهغه اطاعت ضروری . تقلید فرض او نافرمانی ګناه ده ددې جواب اود جواب الجواب ددې تحریر په آخرکښې اوګورئ :

## تقلید او غلامئ کښې فرق

غلامئ کښې د اطاعت تعلق د مالک د ذات سره متعلق کیږی برابره خبره ده که په هغه کښې یو صفت هم د کمال نه وی بهرحال دهغه هرحکم د غلام دپاره واجب العمل وی ددې په عکس تقلید د کمالِ علم اودفضل په بناء باندې کیږی . نیز غلامئ کښې د امراونهی صدور د مالک د طرف نه ګڼلې کیږی په خلاف د تقلید چه په هغې کښې د حکم صدور د الله تعالی اود رسول صلی الله علیه وسلم نه اودهغې ظهور د مجتهدینو نه کیږی یعنې مجتهد پخپله حکم نه ورکوی بلکه د شریعت د حکم ناقل دې .

## حکمت عملی

رسول الله صلی الله علیه وسلم خو دیو مصلحت په بناء باندې محض خپلې رائې سره د حکمِ خداوندی بدلولو مجاز نه دي مګر امیرصاحب د حکمتِ عملئ په عنوان سره دین کښې د مستقل باب اضافه کولو سره د قرآن اوحدیثو چه کوم حکم لره غواړی بدلولې شی ، حرام لره حلال او حلال لره حرامولې شی چنانچه د یو مقدس شخصیت یا مقدس ځائ سره د ملابست د وجه نه کوم یو څیز لره مقدس ګڼل دهغوی په نزد شرک دې مګر پاکستان کښې جوړیدلو والا غلافِ کعبه چه هغې ته تراوسه پورې د ملابست شرف حاصل شوې نه وو هغې ته د حکمتِ عملئ لاندې د جماعتِ اسلامی ذمه دارانو په نګرانئ کښې خلقو سجدې وکړې حکمتِ عملئ د شرک په شان جرم لره هم جائز جوړکړو ، دهغې بدله هم په دنیا کښې ملاؤ شوه چه هغه غلاف د ملابستِ کعبې نه محرومه پاتې شو . حکومتِ سعودیه ته چه د دین سره ددې استهزاء علم اوشو نوخانه کعبه باندې دې غلاف اچولو نه بند کړه ، د مودودی صاحب په ټولو کوششونو باندې اوبه توئ شوئ او خوشحالی په غم سره بدله شوه ، هم دغه شان مودودی صاحب « انتخابی کوشش » ص ۳۲ فرمائی .

«صدرمملکت سرې کیدل پکار دي ځکه چه قرآن وائي «الرجال قوامون علی النساء» او ترجمان القرآن کښې فرمائي :

«د احادیثِ نبوي له مخې ، سیاست او ملک داري د ښځې د دائرهٔ عمل نه خارج دي»

«ترجمان القرآن ص ۱۱بابت ستمبرسنه ۱۹۵۲ء»

مودودي صاحب د ښځې صدرِ مملکت نه کیدلو سره متعلق د قرآن او حدیثو پخپله صراحت نقل کولو سره د ۱۹۶۵ء په صدارتي انتخاباتو کښې د فاطمه جناح حمایت وکړو اود حکمت عملئ د خانه جورشوي قانون لاندې ئې د قرآن اود حدیث قانون صریح مخالفت وکړو ، پورته مونږ د ټول امت د تخریب عزائمو سره متعلق صریح عبارات پیش کړي دي ، اوس دهغې یو څو مثالونه پیش کوو :

## (۱) مودودي صاحب او ارکانِ اسلام

د ټول امت په دې باندې اجماع ده چه مونځ ، روژه ، حج ، زکوٰة وغیره عبادات دین کښې اصلِ مقصود دي ،او حکومتِ اسلامیه ددې مقصود د تحصیل ذریعه دې مګر مودودي صاحب ددې اجماعي عقیدې بالکل برعکس ددې قائل دې چه د دین اصل مقصد حکومت اسلامي قائمول دي او عبادات ټول په ټوله ددې مقصد د حصول ذریعې دي «خطبات ص ۲۲۷» ددې نا آشنا تحقیق نتیجه ښکاره ده چه اسلامي حکومت قائمیدلو نه پس د مونځ ، روژې وغیره عباداتو هیڅ ضرورت نشته دې ، چه هرکله مقصد پوره شو نود ذرائعو څه حاجت دې ؟

## (۲) مودودي صاحب او مرکزِ اسلام

مودودي صاحب د کعبة الله خادمانو لره د بنارس اود هردوار پنډت ګڼي ،

«خطبات مودودي ص ۳۰۲»

## (۳) مودودي صاحب او ږیره

ږیرې سره متعلق د حضور صلی الله علیه وسلم حکم دې چه « ږیره لويه وئ » او د ټول امت په دې باندې اجماع ده چه ږیره د یو موټي نه کمول حرام دي مګر مودودي صاحب د ږیرې کټکولو د جواز فتویٰ ورکولوسره د ټول امت تخریب وکړو ددې نه هم زیات ددې وئیلو جرات کوي چه په حدیث کښې صرف د ږیرې ساتلو حکم دې ، څومره چه هم وساتلې شي حدیث باندې عمل کیږي ، دا قصداً د حضورصلی الله علیه وسلم په ذات ګرامي باندې ښکاره بهتان دې ، په یو حدیث کښې هم دانشته چه ږیره ساتئ چه هرڅومره وي ، بلکه احادیثو کښې « ږیره لويه وئ ، پریږدئ ، زياته کړئ» په شان الفاظ دي ، څومره جرات دې چه د «من کذب علی متعمداً فلیتبوا مقعده من النار» «یعنی چاچه په مابانډې دروغ وتړل دهغه ځائ جهنم دې» ئې هم پروا ونه کړه

## (۴) مودودی صاحب او زکواة

د زکواة او صدقاتو په باره کښې قرآن مجید کښې حکم دې چه فقراء او مساکینو له مالکان جوړکړئ او په دې باندې د ټول امت اجماع ده چه بغیرد فقیر د تملیک نه زکواة او صدقاتِ واجبه نه ادا کیږی گر مودودی صاحب د ټول امت خلاف فرمائی چه زکواة . صدقهٔ فطر اود قربانئ د څرمنو رقم زمونږ په قبضه کښې راتلل کافی دی . بیا خواه په هغې سره مونږ شفاخانې چلاؤو یا ډاکټرانو ته تنخواگانې ورکړو یا موټرې واخلو یا تعمیراتو باندې صرف کړو یا یې په انتخاباتو ولګوو . مگر واضحه دې وی چه داسې نه صدقهٔ فطر ادا کیږی نه د چا زکواة ادا کیږی نه د قربانئ د څرمنو د رقم تصدقِ واجب ادا کیږی.

## (۵) مودودی صاحب او جمع بین الاختین

دوو خویندو له نکاح کښې د جمع کولو حرمت په قرآن کریم کښې صریح دې او په هغه منصوصِ قرآنی باندې د ټول امت اجماع ده مگر مودودی صاحب اودهغه مقلدین چه د تخریبِ امت بهانې لټولوکښې مهارت لری هغوی ته په دې مسئله کښې یو بهانه هم په لاس رانغله نو یو مفروضه ئې پخپله جوړولوسره په صورت د استفتاء پیش کړه چه بهاولپور کښې دوه خوریانې دی چه یوبل سره نښتې دی دهغوی د نکاح څه صورت کیدلې شی ؟ دهغې په جواب کښې مودودی صاحب د قران کریم د صریح حکم اود اجماع امت خلاف دهغه دواړو خوریانو هم د یو سړی سره د نکاح د جواز فتوی ورکړې ده . (ترجمان القرآن نومبر ۱۹۵۴ء ص ۱۲۲) حالانکه په تحقیق سره معلومه شوه چه بهاولپور کښې داسې جیلکئ نشته دې.

## (۶) مودودی صاحب او متعه

د متعې په حرمت باندې د قرآن حکیم نصوصِ صریحه موجود دی اود امت اجماع ده بلکه د محققینو نظریه خو داده چه اسلام کښې متعه مروجه دیو ساعت دپاره هم حلاله شوې نه ده مکه کښې د نازل شوی صریح آیات خلاف مدینې ته رسیدلوسره اجازت څنګه ملاؤ شو ؟ د کومو احادیثو نه چه عارضی طور دیوڅو ورځو دپاره جواز مفهومیږی دهغې نه متعه مروجه مراد نه ده بلکه نکاح بمهرِقلیل باضمارنیت فرقت مراد دې . دا اجازت هم وروستو منسوخ شو . بهرکیف ټول امت اود قرآن د نصوصو خلاف مودودی صاحب ترجمان القرآن بابت اگست سنه ۱۹۵۵ء کښې د ضرورت په وخت کښې د متعی د جواز فتوی شائع کړه . بیا چه کله په دې باندې د څلورو طرفونو نه د ملامته کولو رومبنئ مضمون کتلوسره دا فیصله کولې شی چه هغوی دا مضمون د

اهلِ سنتو او شیعه گانو په مینځ کښې د محاکمې په طور باندې تحریرکړې دې ، د راقم الحروف په علم کښې د جماعتِ اسلامی داسې خلق دی چه د مودودی صاحب پانه بدلولو نه وړاندې بالاجماع د حرامې متعې بعضې اثمو نه جواز ثابتولوکښې مصروفه وو .

## ﴿۷﴾ مودودی صاحب او دجال

حضورصلی الله علیه وسلم د قیامت نه وړاندې د خروجِ دجال پیشن گوئی ورکړې ده دهغه پیشن گوئ په صدق باندې د پوره امت اجماع ده ، یو مسلمان ته هم د حضورصلی الله علیه وسلم په صدق کښې شبهه خو څه کوې هغه ددې وسوسه راوړلولره هم کفر گنې مگر د مودودی صاحب شوقِ تخریب کښې گستاخی وگورئ :

رسائل ومسائل صفحه ۵۵ تا ۵۷ کښې مزاحیه انداز کښې یې د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دهغه پیشن گوئ تکذیب کړې دې ، لږ ددې مجددِ اسلام د قوتِ استدلال هم اندازه ولگوئ رسائل ومسائل کښې فرمائی چه : «دیارلس نیم سوه کاله تیریدلو باندې هم دجال ښکاره نه شو» په دې دهغه حقیقت ښکاره شو ، سبحان الله ، څنگه دلیل دې ، که چرته شیطان هم دا دلیل انکارِ قیامت سره متعلق هم القاء کړو نو مودودی صاحب به وائی چه وموکتل چه څوارلس کاله تیریدلو باندې هم قیامت رانغلو ، په دې سره ثابته شوه چه د قیامت خیال محض افسانه ده او آیت «**اقتربت الساعة**» هم دهغه افسانه ویونکواختراع ده .

## ﴿۸﴾ مودودی صاحب او تقیه

مودودی صاحب تقیه کښې د حیرانتیا نه ډک کردار ادا کړو چه لفظ تقیه کښې هم د تقیه نه کار اخستلوسره دهغې دپاره ئې د « حکمت عملی » جدید اصطلاح وضع کړه بیا جوازِ تقیه باندې ئې د استدلال دپاره حضور صلی الله علیه وسلم باندې افتراء تړلوسره دحضورصلی الله علیه وسلم توهین وکړو ، ترجمان القرآن بابت دسمبر سنه ۱۹۵۲ ء کښې د حکمت عملی ﴿تقیه﴾ ثبوت داسې پیش کړو ، حضورصلی الله علیه وسلم د حکمتِ عملئ لاندې د قرآنی مساواتو خلاف د « الائمه من القریش » فیصله اوفرمائیله :

## قابل غور او فکر

لاندینی عقائد د د شیعه گانو د مذهب شعار او مابه الامتیاز دی :

﴿۱﴾ تخریبِ قرآن

﴿۲﴾ بغضِ صحابه رضی الله عنهم

﴿۳﴾ سلف صالحینو لره گمراه گرځول او هغوی لره دملامته کولو هدف جوړول .

(۴) متعه

(۵) تقیه

مودودی صاحب په دې پنځو عقیدوکښې د شیعه ګانو سره متفق دې ، د مودودی صاحب د عبارت نه دهغه عقیدهٔ تحریف قرآن معنوی صراحةً او تحریفِ لفظی لزوماً مونږ پورته ثابته کړې ده ، د متعې په مسئلې باندې د خلورو طرفونو نه د اعتراضونو باران وشو نو تقیهٔ ئې هغه تاو راتاو کړه او تقیه کښې ئې هم داسې تقیه وکړه چه دهغې نوم ئې بدلولوسره حکمتِ عملی کېښودلو . شیعه مذهب کښې تقیه د اسلام دومره ضروری رکن دې چه بدونِ تقیه اسلام قبول نه دې ، هم ددې وجه نه مسلمان د امام شاته صفِ اول کښې د شیعه مونځ کول ثواب کښې د حضورصلی الله علیه وسلم شاته د مونځ کولو برابر دې چه هرکله هم ددې قسم پاخه تقیه باز شیعه ګانو تعداد ۳۱۳ شی نو امام مهدی به د غار نه راؤځی . (حوالجات د بنده رساله حقیقتِ شیعه کښې اوګورئ)

دمودودی صاحب پاسنو عقیدو لره کتلوسره دا شبهه کیږی چه چرته تاسو هم هغه ۳۱۳ کښې خو نه ئې؟ . بعض قابلِ اعتماد ذرائعو سره انکشاف شوې دې چه د مودودی صاحب کتاب «خلافت وملوکیت » د مشهورشیعه مطهرعلی د عربی کتاب « منهاج الکرامه ومعرفة الامامه » ترجمه ده .

## مودودی صاحب د شیعه ګانو د پیشوایانو په نظرکښې

(۱) شیعه ماهنامه پیام عمل لاهور دسمبر ۱۹۷۳ء کښې د عنوان « آیا صحابه معیارِ حق دی » لاندې د دستورجماعتِ اسلامی هغه ماده چه په هغې کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم معیارِحق نه کیدلو بیان دې پیش کولوسره لیکلی دی :

« داخومونږ هم وایو اوهم دا زمونږه د تولو نه لوئ جرم ګڼلې کیږی » (پیام عمل ص ۱۱)

بیا د عنوان « صحابه مرجع نه دی » لاندې صحابه کرامورضی الله عنهم سره متعلق د مودودی صاحب یو عبارت ترجمان القرآن نومبرسنه ۱۹۷۳ء نه نقل کولوسره لیکلی دی :

« بیا شیعه ولې قابل د وژلو ګڼلې کیږی» . (پیام عمل)

(۲) تهران کښې شیعه اداري د مودودی صاحب دکتابونو فارسی ترجمې چهاپ کړی

(۳) د خمینی علانیه کفر ، د صحابه کرامو رضی الله عنهم سره انتهائی بغض اوعداوت اودهغوی په شان کښې ډیرې سختې ګستاخیانې چا باندې پټې نه دی . هغوی خپلو کفریاتو لره د تقیې په ذریعې نه پټوی بلکه دخپلو کتابونو په ذریعه یې توله دنیا کښې شائع کړی

د داسې زندیق سره د مودودی صاحب د زړه مینه ، ژوره دوستانه او ډیر مستحکم روابط اوتعلقات هم څه پټه خبره نه ده . پخپله دهغه خوئ اود جماعت نور رهنماء دهغوی پخپل مینځ

كښې ژوره دوستانه ډيرپه فخرسره بيانوي ، د اخبارو او د مستقل كتابونو په ذريعې ښه ښكاره كوی ، دا حقيقت د روښانه ورځې په شان ښكاره او ټوله دنيا كښې داسې مسلم او مشهوردې چه دهغې د اثبات دپاره شواهدپيش كولو هيڅ حاجت نشته دې ، خوبيا هم عالم دنيا نه بې خبره حضراتو دپاره د مودودی صاحب د صاحبزاده ډاكټراحمد فاروق شهادت نقل كولې كيږی :

« د ټولو نه وړاندې ماته د ايران د سفير ټليفون را رسيدلې وو ، هغه پيشنهاد كړې وو چه هغه مرى لره لاهور ته د رسولو ټولو انتظاماتو كولو ته تيار دې ، مونږ د علامه خمينی اود ايرانی سفير او د ايرانی عوامو شكرگزار يو ، د علامه خمينی سره د مودودی صاحب جور تعلقات وو . علامه خمينی په ۱۹۵۰ء كښې دمولانا مرحوم د ډيرو كتابونو فارسی ترجمه كولوسره هغې لره دخپلې مدرسې په نصاب كښې شامل كړی وو ، ۱۹۵۳ء كښې هغوی د حج په موقع باندې مكه كښې د مولانا مرحوم سره ملاقات وكړو ، كه چرته د ايرانی سفير تعاون حاصل كړې وې نو په تهران كښې دجنازې مونځ شوې وو چه په هغې كښې علامه خمينی هم شركت كړې وې » «روزنامه جنگ ، ۲۸ستمبر ۱۹۷۹ء»

نور زيات جوش را وستلو والا انكشافات لاندې كتابونو كښې وگورئ :

(۱) الشقيقان ، المودودی والخمينی ، المجلس العالمی لصيانة الاسلام كراتشی الباكستان .

(۲) دوه ورونه ، ابوالاعلی مودودی او امام خمينی ، عالمی مجلس تحفظ اسلام كراچی پاكستان .

(۳) سفرنامه ايران ، سيداسعد گيلانی مكتبه اردو ډائجست .

(۴) انقلاب ايران ، سيداسعد گيلانی .

## مودودی صاحب او اعتزال

د اهلِ سنتو ټول مسلكونه په دې باندې متفق دی چه د ايمان او كفر په مينځ كښې هيڅ درجه نشته ، هرانسان يابه مسلمان وی يا به كافر ، د اهلِ سنت خلاف صرف معتزله ددې قائل دی چه انسان د ايمان او كفر په مينځ كښې معلق كيدلې هم شی بعينه هم دا عقيده د مودودی صاحب ده لكه چه دوی لاهوری مرزائيانو لره هم د ايمان او كفر په مينځ كښې زوړنده كړی دی حالانكه د ټولو اهلِ سنتو نه علاوه اهلِ بدعت او شيعه پورې هم د دوی په كفر باندې متفق دی .

د مودودی صاحب د تحريرعكس په اننده صفحه باندې وگورئ

د مودودي صاحب لاندې خط ويلو سره فيصله وکړئ چه دې اهل سنت دي اوکه معتزلي دي

## مودودی صاحب کی مندرجہ ذیل تحریر پڑھ کر فیصلہ کیجئے
## کہ یہ اہل سنت ہیں یا معتزلی

بسم اللہ الرحمن الرحیم

فون نمبر ۷۰۰۳۵

**جماعت اسلامی پاکستان**

۵-اے ذیلدار پارک اچھرہ لاہور

حوالہ 227

تاریخ 9-1-68

محترمی و مکرمی السلام علیکم ورحمۃ اللہ

آپ کا خط ملا۔ مرزائیوں کی لاہوری جماعت کفر و اسلام کے درمیان معلق ہے۔ یہ نہ ایک مدعی نبوت سے بالکل براءت ہی ظاہر کرتی ہے کہ اس کے افراد کو مسلمان قرار دیا جا سکے۔ نہ اس کی نبوت کا صاف اقرار ہی کرتی ہے کہ اس کی تکفیر کی جا سکے۔

خاکسار

نعیم علی

معاون خصوصی مولانا سید ابوالاعلی مودودی

یہ جواب میری ہدایات کے مطابق ہے

ابوالاعلی

## آیا مودودي صاحب مذهبِ اهلِ سنت باندې دی ؟

الله تعالی سورهٔ حشرکښې دمهاجرینو او انصارو رضی الله عنهم د خیر د ذکر نه وروسته آئنده قیامته پورې د راتللو والا مسلمانانو حال بیانوی چه : « هغوی د خپلو اسلافو دپاره د مغفرت دعاء اودهغوی سره د بغض نه د حفاظت دعاکوی » اود حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه «خما د صحابو په باره کښې د الله نه وه ویریږئ ، الله نه وه ویریږئ . خما نه پس په هغوی باندې طعن مه کوئ . ځکه چه چا د هغوی سره محبت وکړو ځماد محبت د وجه نه ئې وکړو ، اوچاچه دهغوی سره بغض وساتلو ځما سره د بغض د وجه نه ئې وساتلو . اوچاچه هغوی ته تکلیف ورسولو هغه ماته تکلیف را ورسولو هغه الله تعالی ته تکلیف ورسولو هغه دهغه د گرفت نه ځه لرې نه دې» . (جمع الفوائد ص ۴۹۱ ج ۲)

حضرت عبدالله بن عمررضی الله عنه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چه کله تاسو ځما صحابه کرامو ته بد وردو وئیلو والا وګورئ نو تاسو داسې وه وایئ چه ستاسو په بدو باندې دې د الله تعالی لعنت وی» . (ترمذی ص ۵۴۹ ج ۲)

تفسیرِقرطبی سورهٔ فتح کښې داحدیث منقول دې چه چا صحابو رضی الله عنهم ته بدې ردې اووئیلې په هغې باندې د الله تعالی اود ملائکو او دټولو خلقو لعنت . الله تعالی به د قیامت په ورځ باندې نه دهغه توبه قبلوی او نه فدیه . اهـ . ددې اراشاداتو او ددې مضمون د ډیرو آیتونو او احادیثو په بناء باندې د ټولو اهلِ سنتو اجماع ده چه د ټولو صحابو رضی الله عنهم سره مینه فرض ده . او په هغوی کښې یو ته هم د بدو ردو وئیلو والا ایمان په خطره کښې دې ، یوڅو تصریحات نور هم وګورئ :

(۱) شرح عقائد نسفی کښې د اسلام یو عقیده دا هم لیکلې ده چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم ذکر بغیر له خیرنه په بل څه سره مه کوئ .

(۲) علامه سیدجرجانی فرمائی چه د ټولو صحابو رضی الله عنهم تعظیم او هغوی باندې د اعتراض نه احتراز واجب دې . ددې وجه چه الله تعالی په قرآن کریم کښې په ډیرو ځایونو کښې دهغوی مدح او ثناء کړې ده ، او حضورصلی الله علیه وسلم د هغوی سره محبت لرلو . او دوی صلی الله علیه وسلم په ډیرو احادیثو کښې دهغوی تعریف کړې دې . (شرح مواقف مقصد سابع)

(۳) علامه سفارینی رحمه الله په « الدرة المضیئة» او ددې شرح « لوامع الانوارالبهیة » کښې فرمائی چه د اهلِ سنتو اجماعی عقیده ده چه هرسړی باندې ټولو صحابو رضی الله عنه لره پاک صاف گڼل او هغوی باندې د اعتراض نه بچ کیدل اودهغوی تعریف کول فرض دی . او دا د پوره امت مذهب دې

(شرح عقیده سفارینی ص ۲۳۸ ج ۲)

(۴) علامه سفارینی رحمه الله ددې کتاب په یو بل مقام کښې فرمائی ، د اهلِ حق په دې باندې

اتفاق دي چه د ټولو صحابو رضی الله عنهم سره محبت ساتل اودهغوی چه پخپل مینځ کښې کوم واقعات پیش راغلی دی هغې لره د لیکلو . وئیلو ، ښودلو . اوریدلو . اورولونه احتراز کول . اود هغوی د محاسنو ذکر . هغوی سره د رضامندئ اظهار . دهغوی سره محبت ساتل او هغوی باندې د اعتراض نه بچ کیدل فرض دي . ‹شرح عقیده سفارینی ص ۳۸۲ ج ۲›

‹۵› امام ابن همام رحمه الله فرمائی . د اهلِ سنتو عقیده ټولو صحابو رضی الله عنهم لره وجوباً پاک صاف ګڼل . هغوی باندې د اعتراض نه بچ کیدل اودهغوی تعریف کول دی ‹مسایره ص ۱۳۲›

‹۶› د امام مسلم استاذ امام ابوذرعه عراقی رحمه الله تعالی فرمائی . چه کله هم یو سړی لره دکوم یو صحابی تنقیص کولوسره وګورئ نویقین وکړئ چه دا زندیق دي . ددې وجه چه قرآن . حدیث او پوره دین مونږ پورې د صحابه کرامورضی الله عنهم په واسطه سره رارسیدلې دې . پس چه څوک په صحابو رضی الله عنهم باندې تنقید کوی هغه پوره دین لره باطلول غواړی . لهذا هغه باندې د ګمراهئ او د زندقیت حکم لګول عین حق دې . ‹شرح عقیده سفارینی ص ۳۸۹ج ۲›

‹۷› امام ابن صلاح رحمه الله فرمائی . قرآن . حدیث او اجماعِ امت نه دا امر ثابته شوې دې چه د یو صحابی د پاکیزګئ په باره کښې دسوال هم ګنجائش نشته دې . ‹علوم الحدیث ص ۲۲۴›

‹۸› حافظ ابن تیمیه رحمه الله فرمائی . د اهلِ سنتو په بنیادی عقائدو کښې خپل زړه او ژبه لره د صحابه کرامورضی الله عنهم په باره کښې صفاساتل دی . ‹شرح عقیده واسطیه ص ۴۰۳›

‹۹› حافظ ابن تیمیه امام احمد رحمه الله فرمائی د چا دپاره هم جائز نه دی چه هغه د صحابه رضی الله عنهم یوبدی بیان کړی . یا په یو باندې دکوم یو عیب الزام اولګوی . څوک چه داسې اوکړي هغه ته سزا ورکول واجب ده . خلقو باندې څه چل اوشو چه هغوی د حضرت معاویه رضی الله عنه بدی وائی . کوم سړی چه د صحابه کرامو رضی الله عنهم بدی وائی د هغه اسلام لره مشکوک وګڼئ . ‹الصارم المسلول›

‹۱۰› امام مالک رحمه الله فرمائی چه د چا په زړه کښې دیو صحابی رضی الله عنه سره بغض وی هغه د حکم الهی « **والذین معه ‹الی قوله› لیغیظ بهم الکفار** » په ضد دې . او وې فرمائیل چه دهغه خلقو اصل مقصد دحضورصلی الله علیه وسلم تنقیص او توهین دې مګر دهغې جراء ت اونه شو نو د دوی صلی الله علیه وسلم د صحابو رضی الله عنهم تنقیص کولوسره داثابتول غواړی چه دچا صحابه داسې دی هغه به پخپله هم داسې وی . ‹ الصارم المسلول›

‹۱۱› ابراهیم بن میسره فرمائی چه ما عمربن عبدالعزیز رحمه الله لره کله هم چالره پخپله وهلوسره نه دي کتلي . مګر یو سړی حضرت معاویه رضی الله عنه ته بد اووئیل نو هغه ته ئې پخپله کوړې ورکړې . ‹الصارم المسلول›

‹۱۲› حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمائی . څوک چه د صحابو رضی الله عنه بغض لری یا په

هغوی کښې دیو بدی وائی دهغه دپاره عذاب الیم دې ، څوک چه هغه حضراتو ته بدې وائی چا سره چه الله تعالی د راضی کیدلو اعلان کړې دې هغوی ته په قرآن باندې د ایمان سره څه واسطه نشته؟ (تفسیر ابن کثیر)

(۱۳) امام مالک رحمه الله فرمائی چاچه د یو صحابی هم بد اووئیل خواه هغه ابوبکر، عمر ،عثمان وی یا معاویه او عمروبن العاص رضی الله عنهم ، نو که چرته هغه دا اووائی چه دا حضرات گمراهئ یا کفر باندې وو نوهغه لره دې اووژلې شی ، اوکه چرته ددې نه سوا ئې څه بله بدی وکړه نو هغه ته به سخته سزا ورکولې کیږی. (مکتوبات امام ربانی ص ۲۵۱. ۴۱۵ دفتر اول)

(۱۴) امام نووی رحمه الله فرمائی .یقین اوکړئ چه د صحابو رضی الله عنهم بدی وئیل حرام دی . او لویه گناه ده او زمونږه اود جمهورو مذهب دادې چه هغه لره دې قتل نه کړئ شی بلکه سزا دې ورکړئ شی . او بعضې مالکیه فرمائی چه قتل دې کړئ شی (نووی علی مسلم ،ص، ۳۱ج ۲) د شیخینو رضی الله عنهما په حق کښې د یو بدی وئیلو والا دپاره احناف هم د قتل حکم ورکوی.

د ذکر شوو تصریحاتو نه پس یوانصاف پسندته هم په دې فیصله کښې څه تردد شک نه شی پاتې کیدلې چه مودودی صاحب د اهلِ سنت نه خارج دې، همدارنگه دا هم فیصله کولې شی چه شرعی عدالت کښې دهغه سزا څه ده ؟

## له مودودی صاحب نه صرف یو دوه سوالونه

مونږ په آخرکښې مودودی صاحب نه صرف د دوو سوالونو جوابونه غواړو :

(۱) ستاسو د طریقِ فکر ، اصولِ روایت اود جدید اسلام قواعد اوضوابط اودهغې طریقې د محافظو اوحاملو کسانو سلسله حضورصلی الله علیه وسلم پورې رسیږی اوکه نه ؟ که چرته جواب په اثبات سره وی نودهغې نشاندهی وکړئ چه کوم کوم کتابونه ، علماؤ ، مدارس او کومه فقه ستاسو د خیالاتو ترجمانی کوی ؟ که چرته دا دعویٰ وکړئ چه مونږ دا نظریات د کتابونونه راخستلی دی نو دا اصول مشاهد اومسلم او متفق علیه دې چه د دنیا یو فن هم د فن دماهرینو د صحبت او تربیت نه بغیر صرف د کتابونو په مطالعې سره نه شی حاصلیدلې نو د دین فهم ددې اصولو نه ولې مستثنیٰ دې ؟ او که چرته جواب په نفی سره وی او یقیناً په نفی کښې دې نو د کوم اسلام د قواعدو او ضوابطو تدوین او تشریح چه څوارلسو کالو پورې ونه شوه هغه څنگه قابل د اعتماد کیدلې شی ؟

(۲) چه هرکله د یوصحابی رضی الله عنه هم تقلید جائز نه دې بلکه د گناه نه بدتر دې نو تاسو خپل اطاعت او تقلید ولې واجب گرځوئ ؟

ممکنه ده چه یو صاحب دا اووائی چه صرف امورِ اِنتظامیه کښې د امیر اطاعت لازمي دې

وجه نه چه دهغه نه سوا نظم چلیدلې نه شی نو ددې جواب دادې چه هم دا علت تقلید کښې هم موجود دې ـ ددې هواپرستې په دور کښې هرمدعی علم ته که چرته د اجتهاد اجازت ورکړې شی نو ټول دین به ختم شی اوس اوس د سوالونو جوابونه په ترتیب سره پیش کولې شی :

(۱) جماعت اسلامی د اهلِ سنتو نه خارج دی او دخپلو مخصوصو عقائدو د و چه نه د عامو مسلمانانو نه جدا یو مستقله فرقه ده ـ

(۲) دهغوی سره هیڅ قسمه تعاون جائز نه دې ـ

(۳) په هغوی کښې رشتې کول جائز نه دی ، اگرچه نکاح صحیح شی ـ

(۴) داسې سړی لره امام جوړول جائز نه دی ـ که چرته په یو مسجد کښې ددې عقیدې امام وی نو با اثرحضراتو باندې هغه لره د لرې کولو کوشش کول فرض دی ، که چرته د مسجد انتظامیه امام بدلولو باندې تیارنه وی نو اهلِ محله باندې فرض دی چه داسې انتظامیه برطرفه کولو سره بله صحیح العقیده انتظامیه منتخب کړی ـ

آخرکښې دعا ده چه الله تعالی دې مونږ ټول په صراطِ مستقیم باندې قائم وساتی اودهرقسمه فتنونه مو دې په امان کښې وساتی ـ

اللهم اهدنا الصراط المستقیم صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین آمین

(۲۸ صفر سنه ۱۳۹۱ هجری)

## معذرت

ما په دې مضمون باندې د نظرِ ثانئ په وخت کښې وغوښتل چه د مودودی صاحب تصنیفات نور هم زیت وکتل شی ـ لیکن ځنگه مې چه کتل شروع کړه نود خرافاتو دومره لوئ انبارپه نظر راغې چه په هریو کښې بطورنمونه هم که لږه شان حصه نقل کړې شی نودهغې دپاره د غټوجلدونو ضرورت پیښیږی ـ ددې وجه نه مې د نورو کتلو همت ونه شو ـ

## د جماعت اسلامی د کسانو دپاره دفکر کولو وقت

(۱) آیاجماعت کښې دداخلیدلو نه وړاندې هم صحابه کرامو رضی الله عنهم بالخصوص حضرت عثمان او حضرت معاویه رضی الله عنهما سره متعلق تاسو ته دا بدگمانی وه چه کومه اوس ده؟

(۲) د امت د علماؤ په باره کښې چه کومه بدگمانی تاسو ته اوس ده آیا هغه جماعت کښې د داخلیدلو نه وړاندې هم وه ؟

(۳) آیا تاسو د جماعتِ اسلامی نه سوا دمسلمانانو ټولو مسالکو لره وړاندې هم غلط گڼل ؟ که چرته جواب په نفی کښې وی او یقیناً په نفی کښې به وی نو انصاف سره وه وایئ چه آیا

جماعت اسلامي دعامو مسلمانانو نه جدا يو مستقل نوي مذهب نه دې چه دهغې وړاندې د سره وجود نه وو ؟ او آيا تاسو پخپله هم خپل خان لره د عامو مسلمانانو نه جدا نه ګڼئ ؟ الله تعالى دې مونږ ټول دهرنوي مذهب د فتنې نه محفوظ وساتي اوپخپل قديم دين باندې دې مونږ قائم او دائم وساتي . آمين . ثم آمين. رشيد احمد ، ۶ذى قعده سنه ۹۶ هجرى





بسم الله الرحمن الرحيم

وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ

# نيل الفضيلة بسؤال الوسيلة

## د وسيلې ثبوت

**سوال** :- آيا توسل بالانبياء والاولياء جائز دې اوكه نه ؟ همدارنګه توسل بالاحياء والاموات او توسل بالذوات والاعمال كښې څه فرق شته اوكه نه ؟ داخبره سره له دلائلو بيان كړئ . والاجر عند الله الكريم.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : توسل كه په ژوندو سره وى يا مړو سره ، ذواتو سره وى يا اعمالو سره ، خپلو اعمالو سره وى يا د غير اعمالو سره ، په هرحال دهغې حقيقت اودهغه ټولو صورتونو مرجع توسل برحمة الله تعالى ده ، په دې طريقه چه فلانكى مقبول بنده باندې چه رحمت دې دهغې په توسل سره دعا كوم يا فلانكې نيک عمل خپل يا د بل چا چه محض ستاسو عطا او رحمت دې په هغې سره توسل كوم ، چونكه دتوسل بالرحمة جواز بلكه ارجى للقبول كيدلوكښې هيڅ شبهه نشته دې او دا ټولو ذكر شوو صورتونو ته شامل دې لهذا د توسل مذكوره فى السؤال ټول صورتونه جائز دى .

په «هنا لک دعا ذکريا ربه» كښې د حضرت زكريا عليه السلام حضرت مريم عليها السلام باندې رحمت سره توسل او د دوى د دعا قبليدل ذكر دى ، اصحاب غار دخپلو اعمالو په توسل سره دعا وكړه او د غارنه ئې نجات وموندلو ، ددې حقيقت هم هغه دې چه ياالله ، ستاسو چه كوم رحمت مونږ ته د فلانكى فلانكى صالح عمل توفيق راكړو دهغه رحمت په توسل سره له تا نه دعا

کړو ، د توسل حقیقت پیژندلو نه پس دهغې فضیلت ثابتولو دپاره دیو دلیل هم حاجت نشته ، سره دې نه یو څو دلائل وړاندې کوو :

(۱) د حضور صلی الله علیه وسلم د بعثت نه وړاندې یهودو د دوی په توسل سره مشرکانو باندې د فتحې اونصرت دعاګانې کولې . ((ولما جاءهم کتب من عند الله مصدق لما معهم وکانوا من قبل یستفتحون علی الذین کفروا)) په تفسیر کښې علامه آلوسی رحمه الله فرمائی ، ((نزلت فی بنی قریظة والنضیر کانوا یستفتحون علی الاوس والخزرج برسول الله صلی الله علیه وسلم قبل مبعثه قاله ابن عباس رضی الله تعالی عنهما وقتادة والمعنی یطلبون من الله تعالی ان ینصرهم به علی المشرکین کما روی السدی انهم کانوا اذا اشتد الحرب بینهم وبین المشرکین اخرجوا التوراة ووضعوا ایدیهم علی موضع ذکر النبی صلی الله تعالی علیه وسلم وقالوا اللهم انا نسألك بحق نبیك الذی وعدتنا ان تبعثه فی آخر الزمان ان تنصرنا الیوم علی عدونا فینصرون)) (روح المعانی ص [illegible] ج) ، ((واخرجه السیوطی رحمه الله تعالی علیه عن ابی نعیم والحاکم والبیهقی عن ابن عباس رضی الله عنهما)) (الدر المنثور ص [illegible] ج)

(۲) عن عثمان بن حنیف ان رجلا ضریر البصر اتی النبی صلی الله علیه وسلم فقال ادع الله لی ان یعافینی فقال ان شئت اخرت لك وهو خیر وان شئت دعوت فقال ادعه فامره ان یتوضأ فیحسن وضوءه ویصلی رکعتین ویدعو بهذا الدعاء اللهم انی اسألك واتوجه الیك بمحمد نبی الرحمة یا محمد انی قد توجهت بك الی ربی فی حاجتی هذه لتقضی اللهم فشفعه فی قال ابو اسحاق هذا حدیث صحیح . (ابن ماجه ص ۱۰۰)

قال فی انجاح الحاجة هذا الحدیث اخرجه النسائی والترمذی فی الدعوات مع اختلاف یسیر وقال الترمذی حسن صحیح وصححه البیهقی وزاد فقام وقد ابصر وفی روایة ففعل الرجل فبریء ذکر شیخنا عابد السندی فی رسالته والحدیث یدل علی جواز التوسل والاستشفاع بذاته المکرم فی حیاته.

(۳) واما بعد مماته فقد روی الطبرانی فی الکبیر عن عثمان بن حنیف المقدم ان رجلا کان یختلف الی عثمان بن عفان رضی الله عنه فی حاجة له فکان لا یلتفت الیه ولا ینظر فی حاجته فلقی ابن حنیف فشکی الیه ذلك فقال له ابن حنیف ائت المیضأة فتوضأ ثم ائت المسجد فصل رکعتین ثم قل اللهم انی اسألك واتوجه الیك بنبینا محمد صلی الله علیه وسلم نبی الرحمة یا محمد انی اتوجه الیك الی ربك فتقضی حاجتی وتذکر حاجتك فانطلق الرجل فصنع ما قال ثم اتی باب عثمان فجاء البواب حتی اخذ بیده فادخله علی عثمان فاجلسه معه علی الطنفسة فقال حاجتك فذکر حاجته فقضاها له ثم قال ما ذکرت حاجتك حتی کان الساعة وقال ما کانت لك من حاجة فاذکرها ثم ان الرجل خرج من عنده فلقی ابن حنیف فقال له جزاك الله خیرا ما کان ینظر فی حاجتی ولا یلتفت الی حتی کلمته فی فقال ابن حنیف والله ما کلمته ولکن شهدت رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیس لی قائد وقد شق علی فقال له النبی صلی الله علیه وسلم ائت المیضأة فتوضأ ثم صل رکعتین ثم ادع

ابن حنيف فوالله ما تفرقنا والاطال بنا الحديث حتى دخل علينا الرجل كان لم يكن به ضرر قط ورواه البيهقي من طريقين نحوه واخرج الطبراني في الكبير والمتوسط بسند فيه روح بن صلاح وثقه ابن حبان والحاكم وفيه ضعف وبقية رجاله رجال الصحيح (انجاح الحاجة على سنن ابن ماجة ص٩٩)

(٣) وقد كتب شيخنا المذكور رسالة مستقلة فيها التفصيل من اراد فليراجع اليها وذكر فيها حديث البيهقي وابن ابي شيبة عن مالك الدار قال اصاب الناس قحط في زمان عمر بن الخطاب رضي الله عنهما رجل الى قبر النبي صلى الله عليه وسلم استسق الله لامتك فانهم قد هلكوا فاتاه رسول الله صلى الله عليه وسلم في منامه فقال ائت عمر فاقراه السلام واخبره والقصة مذكور في الاستيعاب لابن عبد البر (انجاح الحاجة حاشية ابن ماجة ص٩٩)

(٥) عن مصعب بن سعد قال راى سعد ان له فضلا على من دونه فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم هل تنصرون وترزقون الا بضعفائكم رواه البخاري (مشكوة ص٤٤٧) وعند النسائي انما نصر الله هذه الامة بضعفائها ودعوتهم واخلاصهم،

(٦) عن ابي الدرداء رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال ابغوني في ضعفائكم فانما ترزقون اوتنصرون بضعفائكم رواه ابوداؤد (مشكوة ص٤٤٧)

(٧) عن امية بن خالد بن عبدالله بن اسيد رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم انه كان يستفتح بصعاليك المهاجرين رواه في شرح السنة (مشكوة ص٤٤٧)

چه كله د رحمت د مواقعو صرف مجاورة بغير د دعا اوتوسل نه جالبِ رحمت دي نودعا او توسل بالرحمة به ولې جالب نه وي ؟

(٨) عن انس رضي الله عنه ان عمر بن الخطاب كان اذا قحطوا استسقى بالعباس بن عبد المطلب فقال اللهم انا كنا نتوسل اليك بنبينا فتسقينا وانا نتوسل اليك بعم نبينا فاسقنا فيسقوا، رواه البخاري (مشكوة ص١٣٢)

## د غيرمقلدينو امامِ شوكاني

غيرمقلدين د وسيلې منكردى مګر دهغوى امام شوكانى په هغه حديثِ مذكور باندې باب الاستسقاء بذوى الصلاح قائم كړې دې ، اود حديث په شرح كښې فرمائى ((ويستفاد من قصة العباس استحباب الاستشفاع باهل الخير والصلاح واهل بيت النبوة)) (نيل الاوطار ص ج) وكذا في (عمدة القاري ص ج وفتح الباري ص ج)

دحضرت عمررضى الله عنه فعل نه بعضې حضراتو د جوازِ توسل د تخصيص بالاحياء دعوى كړې ده چه صحيح نه ده ، چه كله توسل ثابت شو نو احياء اواموات كښې مابه الفرق څه دي ؟ كه چرته څه فرق تسليم كړې شى نو مسئله برعكس كيدل پكار دى ځكه چه ژوندې انسان د احوالو د

تغیر نه محفوظ نه دي ، هم ددې وجه نه په حدیث کښې راغلی دی که دچا اقتداء کول غواړئ نو د مړی اقتداء وکړئ . ((عن ابن مسعود رضی الله عنه من کان مستنا فلیستن بمن قد مات فان الحی لا تؤمن علیه الفتنة الحدیث رواه رزین (مشکوٰة ص ۳۲)

پس چه کله د صحابو رضی الله عنهم په اجماع سره د توسل بالحی استحباب ثابت شو نو توسل بالمیت به په طریقې اولی مستحب وی ، علاوه ددې نه دلیل اول ، دریم او څلورم د توسل بالمیت په باب کښې صریح دي .

باقی پاتې شو دا اشکال چه عمررضی الله عنه د حضورصلی الله علیه وسلم په ځائ په حضرت عباس رضی الله عنه سره توسل ولې وکړو ؟ نو ددې یو څو توجیهات کیدلې شی .

(۱) حضرت عباس رضی الله عنه باندې توسل سره د دوی دعا هم مقصود وه .

(۲) په دې باندې تنبیه مقصود وه چه د توسل بالنبی صلی الله علیه وسلم دوه صورتونه دی ، یوتوسل بذاته او دویم توسل باهلِ قرابته صلی الله علیه وسلم دي .

(۳) دا ښودل مقصود وو چه توسل بغیرالانبیاء علیهم السلام من الاولیاء والصلحاء هم باعث برکت اوجالب رحمت دي .

(۴) طبع انسانی پخپل ځان کښې دننه موجود محسوس مبصر انسان باندې زیات مطمئن کیږی لکه چه د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې سلام استولو اود دعا درخواست لیږلو کښې د انسانی وسائطو اهتمام کیږی حالانکه د ملائکو واسطه انتهائی سریع کیدلو سره انتهائی قوی هم ده ، نه د امانت په ادا کولو کښې د غفلت خطره شته او نه د هیرې اندیښنه شته .

وفقنا الله الجمیع لما یحب ویرضی بنبی الرحمة صلی الله علیه وسلم آمین

منتصف شعبان ۱۳ هجری

## الحاق

په دې مسئله کښې جانبین د دومره غلو ښکار دی چه د یو بل تکفیر اوتجهیل ، دخپلو دلائلو په تحریراو د نورو دلائلو په تردید کښې ئې ډیرې پاڼې تورې کړی دی . ما چه کوم دلائل لیکلی دی دهغوی په تائید او تردید کښې هم څه ډیر لیکلې شوی دی حالانکه مختصرغوندې حقیقت دادې چه ځما د لیکل شوی صورت مطابق توسل برحمة الله بالاتفاق جائز بلکه مستحب دې اود مشرکانو په شان د غیرالله نه د استعانت په صورت کښې توسل بالاتفاق شرک دې ، غالباً ددې حقیقت د وضاحت نه پس اختلاف به صرف لفظی پاتې شی ، والله الهادی الی سبیل الرشاد .

۲۴ رجب ۱۴۲۰ هجری

# باب ردالبدعات

## د بدعاتو رد

### د جنازې د مونځ نه پس دعا

**سوال** : د جنازې مونځ نه پس دعا غوښتل څنګه دی ؟ بينوابالدليل

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د جنازې مونځ نه پس دعا غوښتل چونکه دحضورصلی الله عليه وسلم او صحابو او تابعينو نه ثابت نه دی ، ددې وجه نه فقهاء هغه ناجائز او مکروه فرمائی چنانچه د دريمې صدئ هجری فقيه امام ابوبکربن حامد فرمائی ، ((ان الدعاء بعد صلوة الجنازة مکروه)) (قوائد بهيه ص ج۱) ، شمس الائمه حلوانی متوفی سنه ۴۵۴ هجری او شيخ الاسلام علامه سغدی متوفی سنه ۴۲۱ هجری فرمائی ، ((لايقوم الرجل بالدعاء بعد صلوة الجنازة)) (قنيه ص ج)

وفی الفتاوی السراجية اذا فرغ من الصلوة لايقوم داعيا له (فتاوی سراجيه مع قاضيخان ج ص)

ولايقوم داعيا له (جامع الرموز ج ص) لايدعو بعد التسليم (البحر الرائق ج ص)

ولايدعو للميت بعد الجنازة لانه يشبه الزيادة فی صلوة الجنازة (مرقاة شرح مشکوة ج ص)

ولايقوم بالدعاء بعد صلوة الجنازة لانه دعا مرة لان اکثرها دعاء (بزازيه مع هنديه ج ص)

د ذکر شوو کتابونو نه علاوه خلاصة الفتاویٰ ج۱ ص ۲۲۵، فتاویٰ برجندی ج۱ ص ۱۸۰، فتاویٰ برهنه ص ۳۲، مظاهرالحق شرح مشکوة ج۲ ص ۵۷، نفع المفتی والسائل ص ۱۴۳، وغيره کښې هم ددې ممانعت او کراهت نقل دی . فقط والله تعالی اعلم

۱۷شوال سنه ۱۳۷۱ هجری

### د جمعې د اذان نه پس الصلوة سنتِ رسول الله ويل

**سوال** :- دلته عام دستور دې چه د جمعې په مانځه کښې د اذان نه پس الصلوة د سنتِ رسول الله لفظ په زوره سره وائی ، شرعاً ددې څه حکم دې ؟ بينواتوجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : دا فعل بې بنياد او بدعت دې هيڅ ثبوت ئې نشته ، چه هرکله په تثويب للفرض کښې اختلاف دې حالانکه دا د ائمو نه ثابت هم دې نو تثويب للسنة به د عدم ثبوت د وجه نه يقيناً ناجائز وی ، روی ان عليا رای مؤذنا يثوب فی العشاء فقال اخرجوا هذا المبتدع من المسجد وروی مجاهد قال دخلت مع ابن عمر مسجدا يصلی فيه الظهر فسمع مؤذنا يثوب فغضب وقال قم حتی نخرج من عند هذا المبتدع الخ (الفتح) وابويوسف خصهم بذلك لزيادة اشتغالهم بامور المسلمين کيلا تفوتهم

الجماعة وعلی هذا القاضی والمفتی (قوله وابو یوسف خصهم) اخرذکروجه ابی یوسف لافادة اختیاره وکذا یظهر من کلام قاضی خان وغیره اختیار قول ابی یوسف فتح (قوله للکل) ای کل احد وخصه ابو یوسف بمن یشتغل بمصالح العامة کالقاضی والمفتی والمدرس واختاره قاضی خان وغیره نهر (رد المحتار) فقط والله تعالی اعلم

شوال سنه ۱۳۰۰ هجری

## په قبر باندې اذان کول

**سوال:-** څه فرمائی علمائې دین چه مُرده ته د دفن کولو نه پس قبرباندې اذان وئیل (څنګه چه زمونږ په ښارونو کښې عام مروج دې)، شرعاً څه حکم لری؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب:** اذان په قبر یو شرعی دلیل سره هم ثابت نه دې، ددې وجه نه بدعت دې. قال فی الشامیة وفی الاقتصار علی ما ذکره من الوارد اشارة الی انه لا یسن الاذان عند ادخال المیت فی قبره کما هو المعتاد الان وقد صرح ابن حجر فی فتاواه بانه بدعة (رد المحتار ج ۱) من المبدع التی شاعت فی الهند الاذان علی القبر (درر البحار) توشیح شرح تنقیح لمحمود البلخی کښې هم اذان علی القبرله یی «لیس بشیء» لیکلی دې، فقط والله تعالی اعلم.

۳ ذی قعده سنه ۱۳۷۱ هجری

## جنازې سره په زوره کلمه وئیل

**سوال:** دلته دستور دې چه د مړی جنازه کله وړی نو ورسره په اوچت آواز د کلمې طیبې ورد ضروری ګنی، آیا شرع کښې ددې څه اصل شته؟ بینوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب:** جنازې سره په زوره باندې کلمه وئیل بدعت دې. کما کره فیها رفع صوت بذکر او قراءة فتح (الدر المختار) وفی الشامیة (قوله کما کره) قیل تحریما وقیل تنزیها کما فی البحر عن الغایة وفیه عنها وینبغی لمن تبع الجنازة ان یطیل الصمت وفیه عن الظهیریة فان اراد ان یذکر الله تعالی یذکره فی نفسه لقوله تعالی انه لا یحب المعتدین ای الجاهرین بالدعاء وعن ابراهیم انه کان یکره ان یقول الرجل وهو یمشی معها استغفروا له غفر الله لکم اه قلت واذا کان هذا فی الدعاء والذکر فما ظنک بالغناء الحادث فی هذا الزمان (رد المحتار باب الجنائز ج) فقط والله تعالی اعلم

ذی قعده سنه ۱۳۰۰ هجری

## دعا کښې په زوره درود شریف او ایت «ان الله وملائکته — الخ» لره ضروری ګڼل

**سوال:-** څه فرمائی علمائې دین چه د مونځ نه پس درود شریف په زوره وئیل او آیت «ان الله

وملائکته ـ الخ» لره لازم گڼل او درود شریف وئیلو لره ضروري گڼل څنګه دی ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د مونځ نه پس درود شریف یا آیت «ان الله وملائکته ـ الخ» لره ضروري گڼل گناه ده ، درود شریف وئیلو کښې اګرچه بلاشبه ډیر لوئ ثواب دې مګر هغه ضروري گڼل ناجائز دی ، یو مباح یا مستحب کار لره ضروري او واجب گرځول گناه ده ، وکل مباح یؤدی الیه (الی الوجوب) فمکروه (الدر المختار ج آخر باب سجود التلاوة) واما اذا سجد بغیر سبب فلیس بقربة ولا مکروه وما یفعل عقیب الصلوة مکروه هکذا فی الزاهدی (عالمگیریه ج۱ اخر باب سجود التلاوة) وقال الطیبی فی شرح المشکوة تحت حدیث ابن مسعود رضی الله عنه فی التزام الانصراف عن الیمین بعد الصلوة ان من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان (مرقاة ص ۳۰۳ ج ۲) فقط والله تعالی اعلم

۲ ذی القعده سنه ۱۳۹۱ هجری

## د تیر شوي په شان بل سوال

**سوال** : څه فرمائی علمائې دین او مفتیانِ شرع متین دې مسئله کښې چه دعا ثانیه چه په عامو په مساجدو کښې مروج ده ددې په باره کښې داحنافو فقهاؤ څه فتوی ده ، یو فتوی کښې چه په دې سلسله کښې اظهارِ خیال کړې شوې دې دهغې عبارت بعینه د دې استفتا سره یوځائې دې ، مهربانی وکړئ هغې لره وئیلوسره دمبینه دلائلو متعلق ارشاد اوفرمائې چه هغه صحیح دی اوکه نه؟ ، او که چرته صحیح نه وی نو په کومه وجه باندې صحیح نه دی ، وضاحت سره بحکم شریعت اطلاع وکړئ ، بینوا توجروا .

**سوال** :- د مونځونو نه پس چه کومه دویمه دعا کیږي چه دهغې په آخر کښې سورۂ فاتحه وائی ، بیا آیتِ درود شریف وئیلو سره درود وائی ، آیا دا طریقه جائز ده اوکه نه ، اکثرخلق دې لره ناجائز او بدعت وایي اوخلقو له دې نه بندوی ، جواب یې په تفصیل سره ولیکئ :

**الجواب** [1] : مونځ په دوه قسمه دې ، (۱) یو هغه دې چه دهغه د فرض نه پس سنت نشته لکه فجر اوعصر ، مسئله داده چه د فرض نه پس چه کوم سنت دی هغې لره ډیرزیات مؤخر کول مکروه دی که دفرض نه پس دعا غوښتل ډیره مختصر او بیا فوراً سنت شروع کړئ شی نو دا به ښه وی ، د فقه حنفی کتاب درمختارکښې دی ، ((ویکره تأخیر السنة الابقدر ، اللهم انت السلام الخ)) فتاوی عالمگیریه کښې دی ((وفی الحجة الامام اذا فرغ من الظهر والمغرب والعشاء یشرع فی السنة ولا یشتغل

---

۱ - دا جواب د بل چا دې ، د حضرت مفتی صاحب جواب راروان دې ، (مرتب).

بادعية طويلة كذا في العتار عانيه))، منيه المصلى اودهغې په شرح کښې دی ((فان كان بعدها اى بعد مكتوبة تطوع يقوم الى التطوع بلا فصل الامقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام. الخ)) بيا سنت شروع کړی ، البته د سنتو ادا کولو نه پس دې اوږده دعا وغواړی . چنانچه صاحب درمختار د اوږدې دعا او ذکر نه د فرض اوسنتو په مينځ کښې فرق نه کولو د مسئلې نه پس فرمائی ، ((ويستحب ان يستغفر ثلاثاً ويقرء اية الكرسى والمعوذات ويسبح ويحمد ويكبر ثلاثاً وثلاثين ويهلل تمام المائة ويدعو ويختم بسبحان ربك رب العزة عما يصفون - الخ)) يعنې د سنتو نه پس درې ځلې استغفرالله العلى العظيم او آية الكرسى او قل اعوذبرب الفلق او قل اعوذبرب الناس - الخ ، اووائې بيا ۳۳، ۳۳ ځلې سبحان الله ، الحمدلله ، الله اكبر اووائې او يو ځلې لا اله الاالله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو على كل شیء قديراووائې بيا دعا وغواړئ او دعا لره په سبحان ربک رب العزة عما يصفون وسلام على المرسلين والحمدلله رب العالمين سره ختمه کړئ .

په دې سره معلومه شوه چه څه اوږد ذکر او دعا غواړې هغه د سنتو نه پس پکار ده ، د فرضو نه پس خو دعا نشته صرف د حمد وثنامختصرکلمات دی او هغه هم د فرض او سنت په مينځ کښې د فرق ښکاره کولو دپاره دی ، حقيقةً دعا خو د سنتو نه پس ده ، نو دا دعا دعاثانی نه بلکه دا هم هغه دعا ده چه دهغې متعلق په احاديثو کښې ليکلی دی چه د مونځ نه پس دعا غوختل پکار دی چه دعا د عبادت مغز دې ، ((رواه الترمذی)) ، حضورصلی الله عليه وسلم اوفرمائيل : ((الدعاء مخ العبادة)) ، لهذا امام او مقتدی چه کومه دعا د سنتو کولو نه پس غواړی دا دعا بالکل جائز ده احاديثو سره ثابته ده مشکوة شريف باب الذکر بعد الصلوة کښې د داسې قسم دعاګانو ذکر موجود دې . اوس چونکه دا مقام مقام د دعا دې . چه کله د دنيا او آخرت او د جان اومال اود مصائبو دفع کولو وغيره دعا غواړې نو دحضور صلى الله عليه وسلم دپاره هم دعا غوښتل پکار دی اودهغې مختصرطريقه داده چه دخپل ځان دپاره د دعا غوښتلو نه پس د سورة فاتحې تلاوت وکړې اودهغې ثواب حضور صلى الله عليه وسلم پسې اوبښې نو په دې کښې څه قباحت پيدا شو؟ چه دهغې نه انکار کولې کيږی ، تفسيرروح البيان کښې علامه اسماعيل حنفی د آيت ((ومن يشفع شفاعةً حسنة - الاية)) په تفسير کښې فرمائی ((والصلوة على النبى صلى الله عليه وسلم فى الصلوع وغيرها دعاء من العبد المصلى لمحمد صلى الله عليه وسلم عن ظهر الغيب))، حضورصلی الله عليه وسلم باندې مونځ کښې اود مونځ نه علاوه درود ليږل دا د حضورصلی الله عليه وسلم دپاره غائبانه دعا ده ، بيا فرمائی ((ولهذا جوز الحنفية قراءة الفاتحة للروح المطهرة عليها السلام)) هم ددې وجه نه حنفيه د حضورصلی

الله عليه وسلم دپاره د سورۀ فاتحې تلاوت لره جائز گرځولې دي.

دا دعا تلاوتِ سورۀ فاتحه شو او ددې دپاره د ایصالِ ثواب دعا حضرت عمر رضي الله عنه فرمائیلې ده ((ان الدعاء موقوف بين السماء والارض لا يصعد منها شيء حتى تصلي على نبيك)) رواه الترمذی (مشکوة) دعا د آسمان اود زمکې په مینځ کښې وی تردې پورې چه حضورصلی الله علیه وسلم باندې درود ولوستلې شی ، لهذا درود اووئیلې شو او مقام درود یادولو دپاره ځنګه چه په اردو کښې وئیلې کیږی درود شریف اووائې ، د قرآن آیت ئې تلاوت کړو «**ان الله وملائکته یصلون علی النبی یا ایها الذین امنوا صلوا علیه وسلموا تسلیما**» او آخر کښې ئې «سبحان ربک رب العزة عما یصفون ـ الایة» وئیلو سره ختم کړې شو چه دهغې متعلق پورته فقه حنفی سره اووئیلې شو چه دعا هم دې آیت سره ختمه کړئ ، دا ده هغه طریقه چه دلته رائج ده ، ددې یو یو جزء د احادیثو او فقه حنفی نه ثابت دې ددې نه انکار کول او بدعت ګرځول سخته غلطی ده او احادیثو او فقه حنفی نه د لاعلمئ دلیل دې.

دې ځائ پورې دهغه مونځونو متعلق وئیلې شوی دی چه د هغې نه پس سنتونه دی ، دکومو نه پس چه سنتونه نشته هغلته خو د دویمې دعا سوال پیدا کیدلې نه شی ، هم ږومبنئ دعا کافی ده . اګرچه په نورو مونځونو کښې هم هغه ږومبنئ دعا ده ، د فرضو نه پس د ذکرِ الهی الفاظ دی ، والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : په دې کښې هیڅ شک نشته دې چه د نوافلو نه پس دعا غوښتل احادیثو نه ثابت دی او کله اتفاقاً چا د امام سره دعا وغوښتله نو په هغې کښې هم څه مضائقه نشته ، کلام خو په دې کښې دې چه تول جماعت د امام فارغیدلو پورې منتظر ناست وی او ددې دومره التزام کولې کیږی چه وړاندې پاسیدلو لره معیوب ګنړلې کیږی او په دې باندې انکار او لعن طعن کولې کیږی ، که چرته امام ډیروخته پورې په نوافلو کښې مشغول وی نو بیا هم کافی وخته پورې د انتظار تکلیف زغملې کیږی ، امام هم دومره التزام کوی چه که چرته زیات وخته پورې نوافل او اوابین وغیره کول غواړی نو وړاندې دعا غوښتلو سره مقتدیانو لره فارغولو سره په نورو نوافلو کښې مشغوله کیږی غرض داچه د امام اومقتدی دواړو طرفو نه د واجبو په شان ددې اهتمام کولې کیږی ، بیا دعا کښې هم د مخصوصو طریقو ( چه په سوال کښې مذکور دی ) التزام کولې کیږی ، امام سره بهیئتِ اجتماعیه دعا غوښتل حضورکریم صلی الله علیه وسلم ، صحابه ، تابعین ، تبع تابعین او ائمه مجتهدینو کښې دچا نه هم ثابت نه دی چه د یو څیز وجود ثابت نه وی هغه ته د وجوب درجه ورکول څنګه صحیح کیدلې شی ؟ کوم امرچه د حضورصلی الله علیه وسلم او قرون مشهود لها بالخیر نه ثابت نه وی هغه ثواب تصورکول ددې ګنړلو مترادف دې چه

نعوذبالله حضورصلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو دین ه ونه پیژندلو یا مکمل ئې را ونه رسولو ددې وجه نه دین ناقصه پاتې شو چه دهغې تکمیل ئن مونږ کړو ، حالانکه ارشاد دې ، ((الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتي ورضیت لکم الاسلام دینا)) دا خلق په خپل عمل سره ددې آیتِ کریمه تکذیب کوی چونکه اکمالِ دین او اتمام نعمت پوره شوې دې ، ددې وجه نه حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ((من احدث فی امرنا هذا فهورد)) او وې فرمائیل ((علیکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین عضوا علیها بالنواجذ)) او وې فرمائیل ((کل محدثة بدعة وکل بدعة ضلالة وکل ضلالة فی النار)) دوه خبرې داسې دی چه دهغې دوجه نه مباح بلکه مندوب امورهم ناجائز کیږي:

(۱) التزام که د نفسِ فعل وی یا د یو خاص زمان یا مکان یا هیئت وکیفیت وی ، قال النبی صلی الله علیه وسلم لا تختصوا لیلة الجمعة بالقیام ولا یوم الجمعة بالصیام وقال فی شرح التنویر کل مباح یؤدی الیه (الی الوجوب) فمکروه (الدر المختار آخر باب سجود التلاوة) وقال الطیبی فی شرح المشکوة فی التزام الانصراف عن الیمین بعد الصلوة ان من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان (مرقاة ص ۳۰ ج ۲)

(۲) یو مباح یا مندوب فعل داسې کیفیت سره وکړې شی چه عبادتِ منصوصه باندې د زیاتوالی موهم وی مثلاً سجده عبادت دې مگر د مونځ نه پس د موهم زیاتوالی د وجه نه مکروه ده . قال فی الهندیة واما اذا سجد بغیر سبب فلیس بقربة ولا مکروه وما یفعل عقیب الصلوة مکروه هکذا فی الزاهدی (عالمگیریه آخر باب سجود التلاوة)

هم دغه شان د مړی دپاره دعا غوښتل ثواب دې مگر د جنازې د مونځ نه پس مکروه ده ، ((ولا یدعو للمیت بعد صلوة الجنازة لانه یشبه الزیادة فی صلوة الجنازة)) (مرقاة المفاتیح شرح مشکوة المصابیح لعلی القاری)

دعاء مبحوث عنها کښې د عدم جواز دواړه سببه موجود دی التزام هم اوموهمِ زیاتوالې هم ، که چرته دا دعا ثابته هم وې او مندوب هم وې نو بیا هم ناجائزه وی چه لا ددې ثبوت او وجود هم نشته . ددې نه پس د جواز ورکونکو د تحریر متعلق څه عرض کول ضروری دی :

**قوله** : هو ! د سنتو ادا کولو نه پس اوږده دعا اوغواړئ ـ الخ .

**اقول** : ددې نه خوك انکار کوی ؟ ستاسو دعوی خو داده چه امام سره بهیئت اجتماعیه دعا غوښتل مسنون دی په دې باندې څه دلیل راوړئ ، د شرح التنویرچه کوم عبارت پیش کړې دې په هغې کښې هم حالتِ اجتماع باندې څه دلیل نشته بلکه لاندې دلائلو سره د اوږدو دعاګانو ثبوت په حالت انفرادی سره کیږی .

(۱) د نوافلو نه پس نوری دعاګانې د حدیثونو نه ثابت دی ، که چرته بحالتِ اجتماعیه دهغې

وجود چرته هم شوي وي نو ضرور به منقول وي ، صحابه کرامو د حضورصلی الله علیه وسلم اخلاق ، عادات او حلیې پورې په تفصیل سره بیان فرمائیلی دی کوم کار چه حضورصلی الله علیه وسلم د عبادت په باب کښې کړې دې او بیا پنځه کرته روزانه واقع شوې وی ، راس العبادات او مجمع عام کښې دهغې وقوع راروانه وی ،هغې لره یو متنفس هم روایت نه کړو ؟

(۲) د نوافلو په کور کښې کول زیات ثواب دې ، دحضورصلی الله علیه وسلم هم په دې باندې عمل وو . په دې حالت کښې ښکاره دی چه دِعا دنوافلو نه پس هم انفرادی کیدلې شی ، ((قال فی الشامية ان الاحسن من ذلك كله ما في منزله لما في سنن ابي داود باسناد صحيح صلوة المرء في بيته افضل من صلوته في مسجدي هذا الا المكتوبة)) (ردالمحتار ج ص )

چه هرکله په کورکښې نوافل کول مسجدنبوی بلکه بتصریح فقهاء مسجدحرام کښې د کولو نه زیات افضل دی نو د نورو مساجدو نه خو به په طریقِ اولی سره افضل وی .

(۳) که چرته ددې څه ثبوت وې نو فقهاء کرامو به ضرور دهغې تصریح کوله ، مگر داد فقهې په یو کتاب کښې هم نشته دې ، داسې مواقعو باندې د فقهاؤ نه ذکر کول د عدم ثبوت دلیل دې ، ځنگه چه د فقهاؤ مفهومِ مخالف بالاتفاق حجت دې .

**قوله** : لهذا امام او مقتدی۔ الخ .

**اقول** مطلقاً دهغې دعا په جواز کښې کلام نشته دې ، بحث د بهیئت اجتماعیه په جواز کښې دې چه د یو حدیث نه هم ثابته نه ده .

**قوله** : اوس چونکه۔ الخ .

**اقول** . په دې کښې هیڅ شک نشته دې چه په دعا کښې سورة الحمد او درود شریف وئیل موجبِ خیراوبرکت دې مگر دهغې التزام بهیئت مخصوصه بدعت دې .

**قوله** : ددې یویو جزء د احادیثو او فقهې حنفی نه ثابت دې .

**اقول** مطلق دعا د انفرادی صورتونو نه سوا یو څیز هم دکوم یو حدیث یا دکومې فقهیه جزئیه نه ثابت نه شو .

**قوله** : ددې نه انکار کول او بدعت گرځول سخته قسمه غلطی اود احادیثو او فقه حنفی نه د لاعلمئ دلیل دې .

**اقول** د مجوزینو حضراتو نه استدعا ده چه یو ضعیف نه ضعیف صریح حدیث یا یو مرجوع نه مرجوع جزئیه فقهیه تحریرکړی چه په هغې کښې بحالتِ اجتماعیه د دعا صراحت وی . د حدیث اود فقهې ذخیرې نه یو صریحه جزئیه پیش کولوسره د علمیت اظهاروکړئ . ودونه خرط القتاد

فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد ۱۲ذی قعدة الحرام سنه ۱۳۷۲ هجری

## درې خلې د دعا غوښتلو التزام

**سوال** - هغه علاقه کښې په دعا کښې درې خلې د لاس اوچتولو التزام کولې کیږی او استدلال کښې د مسلم شریف د کتاب الجنائز حدیث پیش کوی چه حضورصلی الله علیه وسلم په بقیع کښې درې خلې لاس اوچتولوسره دعا وغوښتله ، دهغه حدیث توجیه بیان کړئ ستاسو به ډیره ډیره مننه وی ، بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د بقیع والا دحدیث نه لاندې ذکر شوی جوابونه ورکولې کیدلې شی .

(۱) یو اتفاقی واقعې سره التزام باندې استدلال صحیح نه دې ، زیات نه زیات جواز بلا التزام په ثابت شی التزام په هرحال ناجائز دې .

(۲) ممکنه ده چه مختلفو قبرونو باندې دیرکرته د لاس اوچتول شوی وی .

(۳) دا هم احتمال دې چه یو خلې دعا ختمیدلو نه پس دیو نوې دعا یو خاص داعیه (مثلاً مزید د زړه نرموالې او شانِ رحمت) پیدا شوې وی ، هم دغه شان دویمه دعا ختمیدلو نه پس دریم خلې دلاس اوچتول دیو خاص داعیه لاندې وی .

(۴) ممکنه ده چه په دې کښې د حضورصلی الله علیه وسلم خصوصیت وی په دې طریقه چه اول بی د خصوصی شفاعت په طور باندې دعا کړی وی ختمولو باندې بیا د دعا کولو امرِ الهی شوې وی ، ددې توجیهاتو ضرورت ددې وجه نه دې چه په اصل کښې د حدیث په مفهوم باندې د پوهیدلواو په هغې باندې د عمل کولو دپاره د صحابو ، تابعینو اود ائمو قول اوعمل کتل ضروری دې ، کوم کار چه عبادت گڼلوسره حضور صلی الله علیه وسلم د زرگونو صحابو په وړاندې کړې وی ، بیا د دعا واقعه په ټول عمرکښې څه نیمه نه بلکه په ورځ کښې د ډیرو کراتو ده ، پس که چرته د تثلیث څه ثبوت وې او صحابو هغه ثواب گڼلې نو ضرور به ئې هغه نقل کولې او پخپله به ئې هم په هغې عمل کولو ، حالانکه امت کښې نه چا هغې له نقل کړې ده او نه ئې په هغې عمل کړې دې ، فقط والله تعالی اعلم .

۱۳ رجب المرجب سنه ۷۵ هجری

## د نوافلو نه پس اجتماعی دعا

**سوال** - دویمه دعا وروسته له نفلو نه دمقتدیانو امام سره یوځائ کول ، د نورالایضاح په دې عبارت سره ثابتیږی ((ویستحب للامام بعد سلامه ان یتحول الی یسار للتطوع بعد الفرض وان یستقبل بعده الناس (الی قوله) ثم یدعون لانفسهم - الخ)) ددې څه جواب دې ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د نورالایضاح په عبارت کښې صرف د دعا بعد النوافل ذکر دې

دائې نه دی لیکلی چه امام او مقتدی دې په یوځائ دعا وکړی ، یعنې ټول خلق دې دعا وکړی مګر امام سره د مقتدیانو تعلق وی اوکه نه نو ددې څه ثبوت نشته دې . مثلاً د سحر مونځ نه پس ډیرخلق په یو وخت د قرآن په تلاوت کښې مشغولیږی . په ظاهره داتلاوت اجتماعی وی مګر په حقیقت کښې هرکس پخپله طریقه پخپل تلاوت کښې مشغوله وی دیو د بل سره څه تعلق نه وی ، نه د ابتدا کولو یو ځائ اهتمام وی او نه د انتها ، بلکه هرکس دخپل فرصت اوهمت مطابق تلاوت کولوسره فارغیږی . هم دغه شان د فرض نه پس والا دعا هم د امام سره په یوځائ ثابته نه ده که چرته اتفاقاً د امام سره اوشی نوڅه حرج نشته دې . د التزام د وجه نه دا فعل بدعت جوړیږی ، قاعده فقهیه ده چه دیو مباح یا مندوب فعل خلق التزام شروع کړی نو هغه ناجائز کیږی فرض او نوافلو کښې دومره فرق دې چه د نوافلو نه پس امام سره یوځائ دعا کولو کښې د التزام چه کومه مظاهره او نور قبائح موندلې کیږی هغه د فرائضو نه پس دعا کښې نشته مثلاً

(۱) د نوافلو په رکعتونو او په هغې کښې مقدارِ تلاوت کښې مختلف خلق د همت او فرصت په لحاظ سره مختلف وی مګر د اجتماعی دعا التزام ټولو لره هم په یوه کونټ باندې شړی چنانچه څوک وړاندې فارغ شی نو هغه د دعا په انتظار کښې ناست وی او که چرته امام یا یو مقتدی زیات نوافل کول اوغواړی نو هغه د اجتماعی دعا نه پس کوی ددې وجه نه د نوافلو نه پس دعا امام سره یوځائ کول خصوصاً دهغې مروج التزام بالاتفاق بدعت دې ترڅو پورې چه اهلِ بدعت هم دهغې قائل نه دی . د احمد رضا خان صاحب بریلوی فتوی اوګورئ .

**سوال** : څه فرمائی علماء دین دې مسئله کښې چه د فرضو نه پس امام او مقتدی چه کومه دعا غواړی دا دعا جائز ده اوکه نه . بعضې اطرافو کښې امام د فرضو د سلام نه پس صرف اللهم انت السلام وتیلوسره ودریږی او بیا د سنتو نه پس ټول په یوځائ دعا غواړی ، مؤخرالذکر فریق والا رومبنی فریق باندې دا اعتراضونه کوی :

(۱) د فرضو نه پس لاس اوچتولوسره دعا غوښتل د حضورصلی الله علیه وسلم نه ثابت نه دی

(۲) فقهاؤ د فرضو نه پس اللهم انت السلام الخ نه زیات تاخیرکولو لره مکروه لیکلی دی . سوال دادې چه په دې دواړو طریقو کښې صحیح طریقه کومه یوه ده ؟ اود فقهې او حدیث مطابق څوک دی ؟ همدارنګه دا هم ارشاد کړئ چه آیا د نوافلو او سنتو نه پس په جماعت سره دعا غوښتل د حضورصلی الله علیه وسلم نه ثابت دی او که نه ؟

**مستفتی خاکسارخلیفه عبدالغنی کارخانه دار دبګئ محله سورنګران دهلی**

**الجواب** : د فرائضو نه پس دعا د حضورصلی الله علیه وسلم نه ثابته ده اوفقه کښې ددې جواب صریح دې . فقط فرق دادې چه دکومو فرائضو نه پس سنت دی دهغې نه پس دعا اوږده غوښتل نه دی پکار . اللهم انت السلام ـ الخ . یا ددې په مثل باندې اقتصار مناسب دې او دومره اوږده چه

مقتدیانو باندې مشقت وی کله هم نه ده پکار اود سننو او نوافلو نه فارغیدلو سره د امام جماعت سره دعا غوښتل چرته هم منقول ندی ، او په دې کښې دا هم تکلیف دې چه بعضې خلق صرف سنت کوی او څه نوافل هم او کولو والا بعضې زرفارغیږی او بعضې څه وخت پس ، نو څوک چه وړاندې فارغ شو هغوی باندې به بې سببه انتظار کول وی لهذا دا طریقه د ترک لائقه ده ، اوکه چرته متقدیان تول راضی وی او چا باندې تکلیف نه وی نو حرج په دې کښې هم نشته ، والله تعالی اعلم

فقیراحمد رضا قادری عفی عنه

ابوالمظفر محمد اسماعیل

محمدامجدعلی اعظمی رضوی

(نفائس مرغوبه تالیف حضرت مفتی کفایت الله صاحب ، دهلوی ص ۵۴)

د مذکورې فتوی مطابق د اهلِ بدعتو اکثریت د نوافلو نه پس اجتماعی دعا باندې عمل نه کوی صرف کلو وغیره کښې څنې بدعتی خلق ددې التزام کوی فقط ، والله تعالی اعلم

۱۱ ربیع الآخر سنه ۱۳۹۲هجری

## د مونځ نه پس په اوچت آواز سره اوږده دعا

**سوال** :- د جمات د امامانو داسې دعا کول چه ړومبۍ خو د فرضو نه پس په اوچت آواز سره الحمدلله رب العالمين والعاقبة للمتقين والصلوة والسلام على سيد المرسلين اووائی ددې نه پس اللهم انت السلام ـ الخ ، بیا قرآن دعاګانې بیا درود شریف نوآیا په دې طریقه دعا جائز ده او که نه؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دعا په دې طریقه کښې لاندې ذکر کیدونکی مفاسد دی :

(۱) اجتماعیت اودهغې التزام

(۲) اتمام بالامام اودهغې التزام ، حالانکه شرعا دا صرف د مونځ سره مختص دې .

(۳) جهرامام اودهغې التزام ، **قال الله تعالی** : ((ادعوا ربکم تضرعا وخفیة انه لا یحب المعتدین ، وقال حکایة عن زکریا علیه السلام : اذ نادی ربه نداء خفیاً))

(۴) د مسبوقینو په مانځه کښې خلل پیدا کیږی

(۵) د کومو فرائضو نه پس چه سنت دی دهغې نه پس اوږده دعا مکروه ده ، قال فی العلائیة : ((ویکره تاخیر السنة الابقدر اللهم انت السلام ـ الخ)) (رد المحتار ص ۴۹۴ ج ۱)

(۶) عوام بلکه خواص هم دې مبتدع طریقې لره مسنون ګنی .

(۷) ددې د فرائضو نه هم زیات اهتمام او التزام کولې کیږی ، والله تعالی اعلم

۷ جمادی الاولی ۱۳۸۹هجری

## د مروج میلاد تحقیق

**سوال** :- میلاد شریف څنګه چه نن سبا کیږی دحضورصلی الله علیه وسلم متعلق دا اعتقاد کول چه دوی د میلاد په مجلس کښې تشریف راوړی او دې ګڼلوسره د تعظیم دپاره اودریدل ددې دپاره څه حکم دې ؟ او څه کول پکار دی او که چرته میلاد وغیره کوی نو په کومه طریقه یې وکړی ، خلاصه بیان وکړئ.

**الجواب ومنه ا لصدق والصواب** : د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سیرت او حالاتو باندې مسلمانانو لره خبرول د اسلام اهم ترین فرض دی اود ټولو تعلیمات اسلامیه خلاصه هم داده او هم په دې کښې د مسلمانانو کامیابی منحصرده ، د حضور صلی الله علیه وسلم ولادت د ډیرې خوشحالئ باعث دې او دا خوشحالی د وخت او محل سره مخصوص نه ده بلکه دهرمسلمان په رګونوکښې نتوتلې ده ، د ابولهب وینځې ثویبه چه کله د حضورصلی الله علیه وسلم د ولادت خبر ابولهت ته راوړو نوهغه په خوشحالئ کښې ثویبه آزاده کړه ، د مرګ نه خلقو ابولهب لره څا په خوب کښې اوکتلو اودهغه نه ئې د حال پوښتنه اوکړه نو هغه اووئیل چه د کله نه مرشوې یم په عذاب کښې ګرفتار یم مګر د دوشنبې د شپې چونکه ما د میلاد النبی خوشحالی کړې وه ددې وجه نه په عذاب کښې تخفیف راځی چه هرکله د ابولهب په شان بدبخت کافر دپاره د میلادنبی دخوشحالئ د وجه نه عذاب کښې تخفیف پیدا شو نوکه یو امتی د دوی صلی الله علیه وسلم د ولادت خوشحالی وکړی او حسبِ وسعت د دوی په محبت کښې خرچ وکړی نوولې به اعلی مرتبې نه حاصلوی ، پس که چرته د ولادت یا معجزاتو یا غزواتو ذکر د وعظ او د درس په طرز بغیرد رسوماتو د پابندئ نه یې وکړی نود زرګونو رحمتونو باعث به وی مګر په دې زمانه کښې محفلِ میلاد کښې دا ذکرشوی وجوه باعث د عدم جواز دی:

(الف) د حضورصلی الله علیه وسلم متعلق دا عقیده وی چه دوی صلی الله علیه وسلم محفلِ میلاد ته تشریف راوړی او دا صریح کفر دې چه ددې حرمت د قرآن کریم په نصوصِ صریحه اود فقهې په عباراتو سره هم ثابت دې ، **من قال ان ارواح المشائخ حاضرة تعلم یکفر (بزازیه) ذکرالحنفیة تصریحا بالتکفیر باعتقاد ان النبی صلی الله علیه وسلم یعلم الغیب لمعارضته قوله تعالی قل لا یعلم من فی السموات والارض الغیب الا الله (شرح فقه اکبر)** دا مسئله د فقهې په کتابونوکښې ذکر ده چه که چرته څا د نکاح کولو په وخت اووئیل چه څما ګواه خدائ او رسول دې نو دا سړې کافر کیږی ، ددې وجه نه چه هغه رسول الله صلی الله علیه وسلم عالم الغیب وګڼلو .

فتاوی قاضی خان البحرالرائق وغیره

غرض دا چه داسې عقیدې ساتلو والا دتکفیرنه قرآن ، احادیث او د فقهې کتابونه ډک دی

(په محفلِ میلاد کښې شیرینی وغیره تقسیمولو لره ضروری ګڼلې کیږي او په خپله میلاد لره هم د واجبو درجه ورکولې کیږي چه هرکله یو جائز کار لره خلق ضروری ګڼل شروع کړي نو دا کار مکروه کیږي ، ((کل مباح یؤدی الیه (الی الوجوب) مکروه)) (الدرالمختار ج ۱)

(ج) معینې میاشتې او مقررتاریخ باندې میلاد کول ضروری ګڼل کیږي حالانکه چه هرکله شریعت یو خاص میاشت او یو خاص تاریخ معین نه کړه نو دخپل طرف نه شریعت کښې زیاتې کول ناجائز دي صحیح مسلم کښې روایت دې لا تختصوا لیلة الجمعة بقیام من بین اللیالی ولا تختصوا یوم الجمعة بصیام من بین الایام.

غرض داچه پاسنو مفسداتو نه احتراز کولو سره که چرته محفلِ میلاد قائم کړې شي نو موجب خیر اوبرکت او کارِ ثواب دې ، فقط والله تعالی اعلم. ۲۲ذی قعده سنه ۷۱هجری

## د اسقاطِ مروجه حکم

**سوال** :- د جنازې د مونځ نه پس مولا قرآن اوچتولو سره مروج طریقې سره چه کومې دعاګانې وغیره وائی لکه د سندھ په عرف کښې قرآن بنبل وائی دا شرعاً څنګه دی ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : دا مروجه طریقه ناجائز او بدعت ده ، قرآن ، حدیث او فقه کښې ددې هیڅ ثبوت نشته دې او نه قرون مشهودلهابالخیرکښې ددې څه وجود شته ، قال الله تعالی ((**الیوم اکملت لکم دینکم واتممت علیکم نعمتی ورضیت لکم الاسلام دینا ، لقدکان لکم فی رسول الله اسوة حسنة**)) کوم کار چه حضورصلی الله علیه وسلم نه دې کړې مونږ هغه ثواب ګڼلو سره شروع کړو نو ددې مطلب داشو چه نعوذبالله حضورصلی الله علیه وسلم دین باندې په پوره شان پوهه نه شو . مونږ د حضورصلی الله علیه وسلم نه د دین په مسائلو باندې زیات پوهیږو او معاذالله آیت (الیوم اکملت لکم ـ الخ) هم غلط دې ، غرض داچه دخپل طرف نه دین کښې زیاتې کول سخته ګناه ده ، قال النبی صلی الله علیه وسلم کل بدعة ضلالة په شان چه د فرائضو په رکعتونو کښې دخپل طرف نه زیاتې حرام دې ، همدارنګه ددې اسقاط قبیح رسم نه دخلقو جرات په ګناه باندې زیاتیږی ((قال فی ردالمحتار ونص علیه فی تبیین المحارم فقال لایجب علی الولی فعل الدور وان اوصی به المیت والواجب علی المیت ان یوصی بما یفی بما علیه ان لم یضق الثلث عنه فان اوصی باقل وامر بالدور وترک بقیة الثلث للورثة اوتبرع به لغیرهم فقد اثم بترک ما وجب علیه فقط والله تعالی اعلم)) ۲محرم الحرام سنه ۷۰هجری

## د تیر شوی سوال په شان بل سوال

**سوال** :- د اسقاط مروج څه حکم دې ؟ نورالایضاح کښې یې جائز لیکلې دې ، بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** جائز نه دي . **قال في الشامية ونص عليه في تبيين المحارم فقال لا يجب على الولي فعل الدور وان اوصى به الميت لانها وصية بالتبرع والواجب على الميت ان يوصي بما يفي بما عليه ان لم يضق الثلث عنه فان اوصى باقل وامر بالدور وترك بقية الثلث للورثة او تبرع به لغيرهم فقد اثم بترك ما وجب عليه انتهى وبه ظهر حال وصايا اهل زماننا فان الواحد منهم يكون في ذمته صلوات كثيرة وغيرها من زكوة واضاح وايمان ويوصي لذلك بدراهم يسيرة ويجعل معظم وصيته لقراءة الختمات والتهاليل التي نص علمائنا على عدم صحة الوصية بها الخ (رد المحتار ج باب قضاء الفوائت)**

شامي يا نورو فقهاؤ چه کوم اجازت ورکړې دې په هغې کښې تصريح ده چه دا حيله په هغه وخت کښې جائز ده چه د ثلث نه فديه نه شي ادا کيدلې او دا صورت کله اتفاقاً مخې ته راځي دې لره د مستقل رسم جوړولو اجازت نشته ، همدارنګه دا هم ضروري دې چه په دې حيلې سره د عوامو عقيده فاسده نه شي ، په دې وخت کښې چه کوم اسقاط مروج دې په هغې کښې اول خو د فقراؤ تمليک په داسې طريقه کيږي چه په هغې سره تمليک متحقق نه کيږي . دويم په هغې سره د عقيدې فساد لازميږي چه عوام په ګناهونو باندې زړه ورکيږي اود صوم او صلوة څه پرواه نه کوي ، دريم دهغې داسې التزام کولې کيږي چه هغه هم د تکفين په اعمالوکښې يومستقل عمل ګڼلې کيږي ، التزام کولوسره مباح بلکه مندوب کار هم ناجائز کيږي كما صرح به في الشامية وغيرها . څلورم ثلث مال کښې فديه نه ادا کوي ،حالانکه اتمام ثلث پورې د فديه وصيت کول اودهغې ادا کول لازمي دي . د اتمام ثلث نه پس هم فديه باقي پاتې شي نو په هغه حالت کښې دفقهاؤ د حيلې اجازت ورکړې دې مګر په دې زمانه کښې د عقيدې د فساد د وجه نه دا هم جائز نه دې . فقط والله تعالى اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب . ۲۲ صفر سنه ۱۳۷۴ هجري

## يو ځاې کيدلو سره جهراً ذکر کول او وجد کښې راتلل

**سوال** نن سبا په عامو پيرانو کښې رواج دې چه خلقو لره جمع کولو سره په اوچت آواز سره ورباندې ذکر کوي او ډير خلق په وجد کښې راتللو سره ډير توپونه وهي . آيا دا فعل شرعاً جائز دې او آيا ددې څه ثبوت شته او که نه ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب** ددې په شرع کښې هيڅ ثبوت نشته دې . جهراً ذکر کول څنګه چه زمونږ په زمانه کښې رواج دې دا مکروه دي ((**لما في شرح التنوير هل يكره رفع الصوت بالذكر والدعاء قيل نعم وقال في الشامية (قوله قيل نعم) يشعر بضعفه مع انه مصرح عليه في المختار والمنتقى فقال وعن النبي صلى الله عليه وسلم انه كره رفع الصوت عند قراءة القرآن والجنازة والزحف والتذكير في نفسه**

عند الغناء الذی یسمونه وجدا ومحبة فانه مکروه لا اصل له فی الدین اه وایضاً فیها قبیل فصل فی اللبس وما یفعله متصوفة زماننا حرام لا یجوز القصد والجلوس الیه الخ (شامیه کتاب الحظر والاباحة ج) بریقه محمودیه جلد ۴ کښې مروج وجد باندې یې زیات رد کړې دې چه قابل د تعریف دې ، فقط والله تعالی اعلم ۲۹ ذی قعده سنه ۱۳۷۲هجری

## د مړی په سینه باندې کلمه د شهادت لیکل

**سوال**:- د مړی په سینه یاتندی باندې کلمه د شهادت لیکل جائز ده او که نه ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: جائز نه دی ، ځکه چه د مړی د شلیدلو د وجه نه بې حرمتی کیږی ، البته که چرته بغیر د سیاهی وغیره نه صرف په ګوتې سره د مړی په سینه باندې ولیکلې شی په داسې طریقه چه د لیکلو نښې ښکاری نه نو دا فی نفسه جائز دی ، مګر د نن سبا خلقو د عقیدې فساد ښکاره دې ، هغه ضروری خیال کوی او داسې امورو سره په ګناه باندې جرأت شروع کوی لهذا په داسې طریقې سره هم لیکل جائز نه دی ، ((قال فی الشامیة وقد افتی ابن الصلاح بانه لا یجوز ان یکتب علی الکفن یسین والکهف ونحوهما خوفا من صدید المیت والقیاس المذکور (علی انه کان مکتوبا علی افخاذ الافراس فی اصطبل الفاروق حبس فی سبیل الله وایضا یقاس علی کتابة الله فی اهل الزکوة) ممنوع لان القصد ثم التمیز وهنا التبرك فالاسماء المعظمة باقیة علی حالها فلا یجوز تعریضها للنجاسة والقول بانه یطلب فعله مردود لان مثل ذلك لا یحتج به الا اذا صح عن النبی صلی الله علیه وسلم طلب ذلك ولیس کذلك وقدمنا قبیل باب المیاه عن الفتح انه تکره کتابة القرآن واسماء الله تعالی علی الدراهم والمحاریب والجدران وما یفرش وما ذلك الا الاحترام وخشیة وطئه ونحوه مما فیه اهانة فالمنع هنا بالاولی مالم یثبت عن المجتهد اوینقل فیه حدیث ثابت فتامل نعم نقل بعض المحشین عن فوائد الشرجی ان مما یکتب علی جهة المیت بغیر مداد بالاصبع المسبحة بسم الله الرحمن الرحیم وعلی الصدر لا اله الا الله محمد رسول الله وذلك بعد الغسل قبل التکفین اه والله اعلم (ردالمحتار ج) فقط والله تعالی اعلم. صفر سنه ۷۳هجری

## د دفن نه پس لازماً درې ځلې دعا غوښتل

**سوال**:- زمونږ په ملک کښې رواج دې چه د دفن کولو نه پس قبرباندې دعا غواړی او بیا یو څو قدمه وروستو کیدلو سره دوباره دعا غواړی ، بیا یو څو قدمه وروستو کیدلو سره دریم ځلې دعا غواړی ددې التزام کولې کیږی ، آیا دا امر شرعاً جائز دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: د دفن نه پس بغیر د لاس اوچتولو نه د مړی دپاره د مغفرت دعا

غوښتل حدیث نه ثابت دی ، کما فی سنن ابی داود کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا فرغ من دفن المیت وقف علی قبره وقال استغفروا لاخیکم واسالوالله له التثبیت فانه الان یسال الخ (ردالمحتار ج) لاس اوچتولوسره درې خلې دعا کول بیا دهغې التزام او هرخلې یوڅو قدمه وروستوکیدل بدعت دي ددې هیڅ ثبوت نشته دې . فقط والله تعالی اعلم ۲۲صفر سنه ۱۳۷۴هجری

## د دفن نه پس لاس اوچتولوسره دعا کول بدعت دی

**سوال** :- د دفن نه پس لاس اوچتولوسره دَ دعا کولو متعلق امدادالفتاوی حصه اول کښې جائز لیکلی دی نو آیا تهانوی رحمه الله د منفرد دپاره لیکلی دی یا اجتماعی طور باندې هم لاس اوچتولوسره دعا کولې شی ؟ بینوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : حضرت تهانوی رحمه الله د قبرونو د زیات په وخت دعاکښې رفع یدین سره متعلق داسې استدلال کړې دې ((قال فی الفتح والسنة زیارتها قائما والدعاء عندها قائما، وبعد اسطر ثم یدعوا قائما طویلا)) (شامیه ج ص) په دې سره دعا ثابته شوه او دعا کښې رفع یدین د حدیثو نه ثابت دی لهذا په دې کښې به هم رفع یدین وی ، همدارنګه صحیح مسلم کښې صریح حدیث دې چه حضورکریم صلی الله علیه وسلم بقیع ته تشریف یوړو او لاس اوچتولوسره ئې دعا وکړه .

د فقهې مذکوره پاسنۍ عبارت او حدیث مذکور او د امدادالفتاوې فتویٰ زیارة القبور سره متعلق ده نه ددفن سره ، د دفن نه پس لاس اوچتولوسره دعا کول، نه د حدیث نه ثابت دی اونه دفقه نه اونه په امدادالفتاوې کښې ددې ذکرشته اونه د اکابرو علماؤ په دې باندې عمل شته لهذا جائز نه ده ، فقط والله تعالی اعلم (ددې جواب نه رجوع جلد ۴ باب الجنائز کښې اوګورئ)

غره ربیع الاول سنه ۱۳۸۸هجری

## د تیر په شان بل سوال

**سوال** :- قبرستان کښې مړی لره د دفن کولو نه پس قبر باندې دخلقو لاس اوچتولو سره دعا کول جائز ده اوکه نه؟ یو عالم دین وائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم د دفن نه پس لاس اوچتولوسره دعا غوښتلې ده پخپل دلیل کښې دا حدیث پیش کوی ((وعن عثمان کان النبی صلی الله علیه وسلم اذا فرغ من دفن المیت وقف علیه وقال استغفروا لاخیکم واسالوا الله له التثبت فانه الآن یسال رواه ابوداود وغیره)) نو آیا دهغه عالم وینا صحیح ده او که نه ؟ جزاکم الله تعالی جزاء حسناً

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د دفن نه پس دعا ثابته ده ، البته په هغه دعا کښې لاس

اوچتول ثابت نه دی ، ددې وجه نه دهغې نه احتراز کول پکار دی . مولوی صاحب په دلیل کښې چه کوم حدیث پیش کړې دې په هغې کښې د لاس اوچتولو ذکرنشته . فقط والله تعالی اعلم .

۲۲ ربیع الآخر سنه ۱۳۹۲ هجری

## د اختر مونځ نه پس مصافحه (ستړی مشی) کول

**سوال** :- د اخترمونځ نه پس مصافحه کول څنګه چه نن سبا مروج دی جائز دی اوکه نه ؟ د طحطاوی مصری صفحه ۳۰۸ کښې د لاندې عبارت نه جواز معلومیږی **وکذا تطلب المصافحة فهی سنة عقیب الصلوات کلها وعند کل لقی، بینوا بالبرهان توجروا من الرحمان**.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : شامیه کښې د بعضې نورو کتابونو نه هم جواز نقل کولو سره په دې باندې یی رد فرمائیلې دې . د مجوزینو دلیل دادې چه مصافحه بعدالصلوة هم چونکه مطلق مصافحه مسنونه کښې داخل ده لهذا جائز ده اګرچه خصوصیت سره منقول من القرون المشهودلها بالخیر نه ده . دا استدلال بین البطلان دې څکه چه د اوقاتو تخصیص زیادت فی الدین دې ، چنانچه علامه ابن عابدین د جواز عبارات نقل کولو نه پس دهغوی په رد کښې فرمائی . ((نقل فی تبیین المحارم عن الملتقط انه تکره المصافحة بعد اداء الصلوة بکل حال لان الصحابة رضی الله تعالی عنهم ما صافحوا بعد اداء الصلوة ولانها من سنن الروافض اه..... ثم نقل عن ابن حجر من الشوافع انها بدعة مکروهة لا اصل لها فی الشرع وانه ینبه فاعلها اولا ویعزر ثانیا ثم قال وقال ابن الحاج من المالکیة فی المدخل انها من البدع وموضع المصافحة فی الشرع انما هی عند لقاء المسلم لاخیه لا فی ادبار الصلوة فحیث وضعها الشرع یضعها فینهی عن ذلک ویزجر فاعله لما اتی به من خلاف السنة اه ثم اطال فی ذلک فراجعه))

(ردالمحتار ج۵ ص۳۳) فقط والله تعالی اعلم ۳ رمضان المبارک سنه ۹۳ هجری

## د اختر مونځ نه پس مصافحه اومعانقه

**سوال** - څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه د اخترونو مونځ نه پس مصافحه کول څنګه چه نن سبا مروج دی جائز دی اوکه نه . او که چرته ناجائز وی نو عوام الناس لره د دې نه بندول ضروری دی اوکه نه ؟

(۱) په دې کښې ممانعت څنګه دې اود کومې درجې دې ؟

(۲) دا ممانعت آیا د مونځ ادا کولو نه فوراً د مصافحې نه دې اوکه د اختر پوره ورځ په دې کښې داخله ده ؟

(۳) آیا معانقه خو په دې کښې شامله نه ده ؟ په دې مسئله کښې په خلقو کښې اختلاف دې براه کرم جواب سره تسلی راکړئ . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: (۱) دا طریقه اختیارول بدعت او مکروه ده .

(۲) دا ممانعت فوراً پس د مونځ دپاره دې . ځکه دا فعل د شارع علیه السلام نه ثابت نه دې

(۳) معانقه هم په دې کښې شامله ده یعنې د مونځ نه پس فوراً معانقه هم جائز نه ده . هسې خو د اختر په ورځ دملاقات په وخت مصافحه او معانقه صحیح ده **وموضع المصافحة فی الشرع انما هی عند لقاء المسلم لاخیه لا فی ادبار الصلوات (شامیه ص ۲۰۰ ج ۵)**

د بدعت یا د یو ګناه ارتکاب دکوم یو مصلحت پیشِ نظر هیچرې جائز نه دې البته نورو لره منع کول هغه وخت ضروری دې چه کله د قبول امید وی او که نه نو نهی عن المنکر ضروری نه دې . غرض داچه پخپله د اختر مونځ نه پس د چا سره مصافحه او معانقه مه کوئ . او که چرته د چا سره ملاقات د مونځ نه پس شوې وی نودهغه سره جائز ده . مګر دتشبیه بالبدعة اود هغې د تائید ذریعه کیدلو د وجه نه ددې نه هم اجتناب کول پکار دی . فقط والله تعالی اعلم

۷ ذی الحجه سنه ۱۳۸۸ هجری

## د مونځونو نه پس مصافحه

**سوال**:- د سحر مونځ نه پس یو څو هلکان او لوئ حضرات صف جوړولو سره ودریږی او مسجد نه وتلو والا مونځ کوونکی دهغوی سره سلسله وار مصافحه کوی دا عمل د څه مودې نه را پدې خوا هره ورځ د سحر مونځ نه پس په التزام سره کولې کیږی . آیا دې عمل لره صحابو رضی الله عنهم کړې دې . دې عمل لره نیکی او باعثِ ثواب ګڼل څنګه دی ؟ د منع کولو نه باوجود دې عمل لره جاری اوساتی نو منع کولو والو باندې مزید څه ذمه داری عائد کیږی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شریعت کښې د مصافحې موقع صرف اول ملاقات دې . د مونځونو نه پس مصافحه د حضوراکرم صلی الله علیه وسلم ، د صحابه کرامو رضی الله عنهم او د ائمه دین رحمهم الله نه ثابته نه ده بلکه دا د روافضو ایجاد او بدعت دې . ددې وجه نه احتراز واجب دې بلکه فقهاؤ حضراتو صراحةً لیکلی دی چه ددې بدعت مرتکب ته دې د زجراو توبیخ په ذریعې د بندولو کوشش وکړې شی . که چرته بیا هم منع نه شو نو بشرط قدرت هغه ته دې سزا ورکړئ شی . البته چرته چه د بندولو قدرت نه وی هغلته بندول ضروری نه دی . **نقل فی تحفة المحارم عن الملتقط انه تکره المصافحة بعد اداء الصلوة بکل حال لان الصحابة رضی الله تعالی عنهم ما صافحوا بعد اداء الصلوة ولانها من سنن الروافض اه ثم نقل عن ابن حجر من الشوافع انها بدعة مکروهة لا اصل**

لها فی الشرع وانه ینبه فاعلها اولاً ویعزر ثانیاً ثم قال وقال ابن الحاج من المالکیة فی المدخل انها من البدع وموضع المصافحة فی الشرع انما هی عند لقاء المسلم لاخیه لا فی ادبار الصلوات فحیث وضعها الشرع یضعها فیهی عن ذلک ویزجر فاعله لما اتی به من خلاف السنة اه ثم اطال فی ذلک فراجعه. (رد المحتار ج٥ ص٢٠٠) فقط والله تعالی اعلم

٢ ربیع الاول سنه ... هجری

## د اهلِ میت د طرف نه د دعوت رسم

**سوال**:- څه فرمائی علماءِ دین دهغه طعام په باره کښې چه هغې لره اهلِ میت تیارولو سره خلقو ته دعوت کوی ، د واده په شان هغه موقع باندې هم دخپلو خپلوانو اود دوستانو اجتماع کیږی او هغه رسم لره ضروری ګڼلې کیږی بینوا بیاناً شافیاً ، توجروا اجرا وافیاً .

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: دا دعوت مروجه ناجائز او بدعت دې په یوڅو وجوه سره :

(١) دا په حقیقت کښې د هندوانو رسم دې پس په دې کښې تشبیه ده هندوانو سره .

(٢) شریعت کښې د غم په موقع باندې دعوت مشروع نه دې . دفقهې په کتابونو کښې تصریح ده چه . ((ان الدعوة شرعت فی السرور ولا فی الشرور)).

(٣) دې دعوت لره لازم ګڼلې کیږی او التزام مالایلزم ناجائز دې .

(۴) دعوت باندې چه کومې پیسې خرچ کیږی په هغې کښې عموماً د نابالغه یتیم حصه وی «والذین یاکلون اموال الیتامی ظلماً انما یاکلون فی بطونهم ناراً وسیصلون سعیرا» د نابالغه مال صدقه اوخیرات کول په یو صورت کښې هم جائز نه دې .

(۵) په دې دعوت سره مقصود ایصالِ ثواب نه وی بلکه ریا او نمودنه مطلوب وی . یا د خلقو د ملامتیا او طعنونو د ویرې نه دعوت کولې کیږی چه شرکِ اصغر دې . په ایصالِ ثواب مقصود نه کیدلو باندې یو څو قرائن دی .

(الف) د صدقې اخفاء افضله ده ، ددې باوجود که چرته د اخفاء ترغیب هغه خلقو ته ورکړې شی نو هیچرې قبلولو دپاره نه تیاریږی .

(ب) صدقه په نقدی شکل زیاته بهتره ده ځکه چه په هغې کښې اخفاء هم آسانه ده اود فقراؤ دپاره فائده مندو هم زیاته ده چه ځکه یې ضرورت وی دهغه نقد رقم نه به یې پوره کړې شی ، او که چرته حالاً ضرورت نه وی نو نقد رقم د ضرورت وخت دپاره محفوظه کیدلې هم شی. دا فوائد په دعوت کښې نشته بلکه بعضې اوقاتو کښې خوراک ضرری هم وی سره ددې نه نقد صدقې سره ایصالِ ثواب باندې څوک راضی نه دی .

په دویمه وجه کښې د صدقې بهتر صورت دادې چه د حاجت مند د ضرورت په نظر کښې نیولو سره هغه ته صدقه ورکړې شي ، یعنې مریض ته دوا ، مسافرته کرایه ، ټکټ وغیره ، وږی ته خوراک او بربنډ ته جامې ، څپلۍ ، د یخنۍ په موسم کښې بې سروسامان ته کمبل ، برستن وغیره ، غرض داچه د دفع ضرورت خیال وساتلې شي ، مګر دلته خو په هر حال هم خوراک ورکول دی ، برابره خبره ده که مریض بغیر له دوائی نه کریږي ، بربنډ بدن د یخنۍ نه رپیږي یا د سختې ګرمۍ د وجه نه سوزیږي ، مسافرمنزلِ مقصود پورې د رسیدلو نه ناچاره وی اود مجبورۍ د وجه نه پریشانه وی ، که چرته هغه خلقو ته د دعوت په ځای د صحیح طریقې مشوره ورکولې کیږي چه د فقراؤ دپاره هم نافع وی او د مړی دپاره هم او پخپله د صدقې ورکوونکو دپاره هم نوجواب ملاویږي چه د دعوت نه کولو په صورت کښې به خپل خپلوان ناراضه شي ، مونږ خو به وشرمیږو ، خلق به وائي « مړ شو مردود نه ختم نه درود »

(ج) که چرته د ایصالِ ثواب نیت وې نو فقراء او مساکین به مقدم ګڼلې کیدل ، حالانکه داسې کیږي چه دخپل خپلوان او ملګری راغونډیږي یا اصحابِ اقتدار او غټو خلقو ته دعوت ورکولې کیږي فقراء خو صرف برائ نام وی بلکه ډیرو ځایونو باندې خو برائ نام هم یو فقیر نه وی ، په دې حالاتو کښې دې دعوت لره څوک ددې وئیلو جرات کولې شي چه دا د ایصالِ ثواب دپاره دې

قال فی الشامیة معزیا الی الفتح ویکره اتخاذ الضیافة من الطعام من اهل المیت لانه شرع فی السرور لا فی الشرور وهی بدعة مستقبحة روی الامام احمد وابن ماجة باسناد صحیح عن جریر بن عبدالله قال کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة اه وفی البزازیه ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقراءة القران (الی قوله) واطال فی ذلک فی المعراج وقال هذه الافعال کلها للسمعة والریاء فیحترز عنها لانهم لا یریدون بها وجه الله تعالی اه (ردالمحتار ج ۱ ص ۶۶۳)

په دې موقع باندې به د « فتاویٰ رشیدیه » نه د یو تحقیق نقل کول مفید وی ، وهو هذا

دا تقریر د مولانا حیدرعلی صاحب ټونکی دې چهد مولانا شاه عبدالعزیز محدث دهلوی رحمه الله شاګرد : د میلمستیا خوراك چه وروسته له مرګ نه تیاریږي او خو دا ناجایز اومکروه تحریمی دې په یوڅو وجوهو سره : یوه وجه داده چه په بحر الرائق اونورو کتابونو کښې لیکل شوې ده ضیافت اومهمانی په خوشحالی او واده وغیره کښې جایز ده نه په مصیبتونو او د شر په وقتونو کښې ، د چا په کور کښې چه مړې شوې وی هغوئ ته په اوله ورځ خوراك اوطعام لیږل سنت دی ، دا ندی پکار چه له هغوئ نه څوك خوراك طلب کړي ، د دې نه علاوه که چیرته هغه دا خوراك پوخ

نکړی نو په هغه طعن او عیب لګول کیږی چه دا په حقیقت کښې طلب د طعام دې له هغوئ نه، دغه کور والا یی د همدې طعن له وجهې نه پخوی . دویم دا چه : د جریربن عبدالله بجلی په حدیث کښې دی چه «**کنا نعدالاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة**» یعنی مونږ ټولو اصحاب کراموی د مړی کور ته د خلکو راجمع کیدل بغیر د خدمت اوتکفین او تجهیز نه نوحه ګڼل او دا خبره چه د مړی کور والا خلکو ته طعام تیار کړی دا هم نوحه ګڼلو اونوحه (په مړی ژړا) په خپله حرامه ده نو لهذا د صحابه کرامو اوتابعینو په دور کښې داسې قسم اجتماع منقول ندی ، توهغه څه چه د مسلمانانو په مینځ کښې یی د دویمې ،دریمې ، شلمې، څلویښتی او شپږ میاشتنی اوسالانه رواج پیدا کړې دې دا ټول ناجایز دی، او له هغې نه ځان ساتل ضرور دی. مونږ دوه وړوکې رسالې او دوه لوئ اجزاء او همدارنګه لس دولس جزئونه نور هم د دې خوراك په عدم جواز کښې لیکلی دی ، اوکه بالفرض دا خبیث طعام تیار هم شی نو باید چه بغیر د فقیر او مسکین نه یی بل څوك ونه خوری، ځکه چه دمال خبیث حکم په همدې فقیرانو باندې صدقه کول دی . دا معلومه اوښکاره خبره ده چه صدقې په مړو پسې ډیره فائده لری د اهل سنت والجماعت په مذهب کښې. لیکن په دې شرط مفید دی چه د شریعت مطابق وی لکه د کوهی اوڅا ویستل او یا مسجد جوړول او یا نقدې پیسې فقیر ته ورکول ، همدا رنګه غله دانه له حلال مال نه فقیر ته ورکول چه دا امور ټول په اتفاق سره جائز دی او مړو ته یی فائده رسیږی اوکه پوخ شوی طعام فقیرانو ته ورکړې شی اویا مسجد او خانقاه ته ولیږلې شی د بعضی علماؤ په نزد جائز دې او د بعضی نورو علماؤ په نزد دا هم جائز ندې. خلاصه دا چه دا صورت مختلف فیه دې ، البته د مړی په کور کښې د میلمه په حیث باندې خوراك کول که هغه فقیر وی اوکه غنی د هیڅ چا په نیزد باندې جائز ندی بلکه دا د عربو د جاهلیت رسم دې او د هندوستان د هندوانو رسم دې او په دې کار کښې تشبیه ده له کفارو سره اومونږ دا حدیث ذکر کړې دې چه «**من تشبه بقوم فهو منهم ـ الحدیث**»

آیا دا فتوی صحیح ده اوکه نه ؟ مهربانی وکړئ ددې جواب راکړئ :

**جواب** : د بنده په نزد صحیح ده او تشبیه په هغې کښې حاصله ده اګرچه قلیل وی ، فقط

رشید احمد ۱۳۰۱هجری

فتاوی رشیدیه ص ۱۴۲ مطبوعه قرآن محل کراچی ، فقط والله تعالی اعلم ۱۷ شوال سنه ۷۱هجری

## د مړی له طعام سره متعلق دیو حدیث جواب

**سوال** : مشکوة کتاب الفتن باب المعجزات فصل ثالث کښې حدیث دې چه حضور صلی الله علیه وسلم د جنازې د مونځ نه فارغ شو نو د مړی ښځې حضور صلی الله علیه وسلم ته دعوت وکړو

. په دي سره د دعوت جواز براۓ ایصالِ ثواب ثبوت ملاویږی .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : فقهاؤ رحمهم الله ددي حديث مختلف جوابونه ورکړی دی .
چنانچه علامه شامی رحمه الله فرمائی : ((**وفیه نظر فانه واقعة حال لاعموم لها مع احتمال سبب خاص بخلاف ما فی حدیث جریر علی انه بحث فی منقول فی مذهبنا ومذهب غیرنا کالشافعیة والحنابلة استدلالا بحدیث جریر المذکور علی الکراهة ولاسیما اذا کان فی الورثة صغار او غائب مع قطع النظر عما یحصل عند ذلک غالبا من المنکرات الکثیرة کایقاد الشموع والقنادیل التی لاتوجد فی الافراح ـ الخ**)) (ردالمحتار ج ص ۳)

بهترجواب دادي چه د کاتب په غلطئ سره د امراة لفظ په ځائ بغیر د اضافت نه امراته بالاضافت لیکلې شوې دې چنانچه ابوداود جلددوم کتاب البیوع ص ۱۱۷ او طحاوی جلددوم باب لحوم الحمر الاهلیته کتاب الصید والذبائح کښې امراة بلا اضافت دې ، صاحبِ مشکوٰة ناقل دې ابوداود نه لهذا د تعارض په وخت کښ به د ابوداؤد روایت ته اعتبار وی ، پس د استدلال د سره بنا ختمه شوه ، همدارنګه که چرته د ایصالِ ثواب ددې مخصوصې طریقې یو اصل وې نو صحابه کرامو رضی الله عنهم به ضرور په هغې باندې عمل کولې ، حال دا چه د صحابو ، تابعینو او د من بعدهم دچا نه هم ددې رسم هیڅ ثبوت نه ملاویږی ، ددې په عکس ابن جریر فرمائی ، **کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة. فقط والله تعالی اعلم**

**ربیع الاول ۰۰ هجری**

## د مړی طعام سره متعلق د بعضې عباراتو جواب

**سوال** :- د مړی په کورکښې دریو ورځو پورې د اتخاذِ طعام وغیره ممنوع کیدلو باندې فقهاؤ د حضرت جریررضی الله عنه روایت ((**کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة**)) او دویم روایت (**لاعق فی الاسلام**) ، دریم دلیل (**لانه شرع فی السرورلا فی الشرور**) خلورم دلیل دا د جاهلیت د زمانې رسم وو اسلام دهغې نه منع فرمائیلې وه ، پنځم دلیل دا چه مذاهب اربعه کښې دې طعام لره ناجائز ګرځولې شوې دې لهذا یومقلد ته په دې کښې د بحث کولو حق حاصل نه دې چه بل څه پیش کړې .

ددې دلائلو د عمومیت تقاضا داده چه اتخاذالطعام خواه که د فقراؤ دپاره وی یا د غیرِ فقراء دپاره جائز نه دې . لکه څنګه چه فقهاؤ هم په دې باندې تصریح کړیده لیکن صاحبِ بزازیه په کتاب الاستحسان کښې لیکلی دی (**وان اتخذ للفقراء کان حسناً**) ، هم دغه شان د قاضی خان هم یو قول دې . صاحبِ بریقه د قاضی خان ددې قول دا مطلب بیان کړې دې چه فقراؤ ته دې دهغوی

کور ته ورسوي . ددې تاویل ضرورت دا بیان شوې دې چه دا قول د پورتنو روایاتو مخالف دې ځکه چه ظاهره ده اوس پوښتنه دا ده چه بزازیه او قاضي خان په کومه وجه باندې د فقراؤ دپاره د جواز قول نقل کړې دې او دهغې څه جواب دې . همدارنګه دهغه دور بعضې مفتیان صاحبان د عدم جواز فتوی ورکوی نو ورسره ورسره دا هم لیکی چه که چرته د فقراؤ دپاره ئې د خوراک انتظام وکړو نو موجب اجر دې دا وئیل په کومه وجه باندې دی او کوم حده پورې صحیح دې . حالانکه که چرته د فقراؤ دپاره د جواز فتوی ورکړې شی نو د عام حرمت صورتونه به په عمل کښې راوړلې کیږی . همدارنګه اصل مسئله کښې علامه حلبی شارح منیه د جواز قائل دې . او علامه طحطاوی هم د جواز هغه قول لره نقل کړې دې دهغې به څه جواب وی امید دې چه مدلل او مفصل تحریر وکړې . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بزازیه کښې د (**ویکره اتخاذ الضیافة فی ایام المصیبة**) نه پس (**وان اتخذطعاماً للفقراء کان حسناً**) لره ذکر کول واضحه دلیل دې چه دهغې نه مراد د فقراؤ کور ته لیږل دی . حلبی د ابوداؤد چه د کوم حدیث نه په جواز باندې استدلال کړې دې په هغې کښې (امراته) د ناسخ غلطی ده . ابوداؤد کښې (امراة) دې . لهذا په هغې سره استدلال صحیح نه دې . که چرته د دعوت فقراء جواز فی نفسه تسلیم هم کړې شی نو بیا هم د مروج رسم التزام او نورو فساداتو پیش نظر دهغې د جواز هیڅ ګنجائش نشته دې . فقط والله تعالی اعلم .

۱۳ رمضان المبارک ۸۸هجری

## د صفرې په آخری چارشنبه کښې ښائسته خوراک پخول

**سوال**: د صفرې د میاشتې په آخری چارشنبه باندې بهترین خوراک پخول صحیح دی او که نه؟ بعضې خلق وائی چه د صفرې میاشت په آخری چارشنبه باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د مرض نه شفا حاصله شوې وه په هغه خوشحالئ کښې خوراک پخول پکار دی . آیا دا صحیح دې اوکه غلط؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا غلطه اود خانه جوړه کړې شوې عقیده ده ددې وجه نه ناجائزه اوګناه ده . فقط والله تعالی اعلم

۲ ربیع الاول سنه ۹۰هجری

## د دم په غرض اجتماعی ختم

**سوال**: وړاندو ورځو کښې بهارت په پاکستان باندې حمله وکړه . دهغې نه د بچ کولو دپاره اود بهارت د مغلوبه کیدلو اود پاکستان د فتحې او نصرت دپاره خلقو اجتماعی طور باندې قرآن پاک ولوستلو . یو ځلو یښت ځلې ئې سورت یٰسین ولوستلو . داسې کولو باندې یو صاحب

اعتراض وکړو چه اجتماعی طور باندې وثیل ثابت نه دی او د تعداد تعیین هم غلط دې لهذا دې بدعاتو له ختمول پکار دی . په دې مسئلې او دې اعتراض باندې د شریعت مطابق زمونږ اچولو سره رهنمائی وکړئ . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې رسم کښې ډیر مفاسد دی . اصل نسخه خو د ترک سیناتو ((یعنی گناهونه پریښودل)) دی ((د مفاسدو تفصیل په اووم جلد کتاب الاجاره کښې دې)) فقط والله سبحانه وتعالی اعلم ۷ذی قعده سنه ۹۱هجری

## مروجه قرآن خوانی

**سوال** :- که د قرآن خوانئ نه پس خلقو ته خوراک ورکړې شی نو آیا دا به هم په اجرت کښې داخلیدلو سره ممنوع گرځولې شی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اول خو قرآن خوانی یو محض رسم جوړ شوې دې . که چرته ایصال ثواب مقصود وی نو دهغې دپاره هرسړې په خپل خپل ځائ کښې تلاوت کولې شی د اجتماع څه ضرورت دې . دویم دا چه که چرته دا قرآن خوانی د ایصالِ ثواب دپاره وی نو ددې اجرت ممنوع دې او دخوراک ورکولو که هغلته دستور وی هغه به هم په اجرت کښې شمیر کیږی ، همدارنگه ایصالِ ثواب دپاره دعوت بذاتِ خود بدعت او ناجائز دې . فقط والله تعالی اعلم

۷جمادی الاولی سنه ۹۳هجری

## د بیمارئ د شفا نه پس قران خوانی

**سوال** : د بیمارئ د صحت نه پس په دې خوشحالئ کښې چه الله ماته شفا راکړې ده یو څو سړو له رابللِ او قرآن خوانی کول جائز دی او که نه او د قرآن په ختم باندې خوراک ورکول یا متهائیان تقسیمول او بیا دعاء خیر کول شرعاً جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : شریعت کښې د شکر ادا کولو صرف دوه طریقې دی :

((۱)) پخپله عبادت کول او د تولو نه لوئ عبادت ترکِ گناه ده ، دویمې درجې باندې نفل عبادت مثلاً تلاوت ، نوافل صدقه وغیره .

((۲)) د خوشحالئ دپاره دعوت کول یا ماشومانو کښې متهائی وغیره تقسیمول . داسې موقعو باندې قرآن خوانی کول بدعت دې ددې نه پرهیز ضروری دې . فقط والله تعالی اعلم

۲۵ذی قعده سنه ۸۲هجری

## د تقریب په افتتاح کښې د قرآن د ختم رسم

**سوال** : د یو دوکان یا د کور د افتتاح یاد مړی د ایصالِ ثواب دپاره د قرآن ختم کول کیږی په

هغې کښې د محلې هلکان او جینکئ جمع کیږی او ترڅو پورې چه متهانی یا دعوت ونه خوری نو دهغه ځائ نه د تللو اجازت نه وی او هغې له ضروری ګڼل کیږی ددې حکم څه دې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فی نفسه د قرآن کریم تلاوت د ایصالِ ثواب دپاره یا د خیر او برکت دپاره بلاشبهه زیات اهمیت لری مګر نن سبا خلقو هغه رسم جوړ کړې دې. دقرآن کریم د تلاوت دپاره د اجتماع اهتمام او هغه ضروری ګڼل هم دغه شان د دعوت وغیره التزام دا ټول امور د بدعت او ناجائز دی. فقط والله تعالی اعلم.
۱۲ محرم سنه ۹۵ هجری

## د ایصالِ ثواب دپاره د اجتماع اهتمام

**سوال** - زمونږ طرف ته د مړی په دریمه ورځ ګټکو باندې کلمه وغیره وئیلو سره ثواب مړی ته رسول مروج وو اوس څو ورځو نه دې مروجې طریقې له ترک کولو سره د مړی په دویمه ورځ دیو ونې په تخم باندې د کهجورو په ګټکی باندې کلمه وئیلو سره ثواب رسول او بیا اختتام باندې شیرینی مثلاً پتاسې یا ریوړئ وغیره تقسیمول دی، آیا شرعاً دا هم صحیح دی؟ اوکه دا هم د چنو په شان بدعت او واجب الاحتراز دې. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دخپل طرف نه صدقات نافله یا تلاوت یا تسبیح او تهلیل وغیره ثواب مړی ته رسول د حدیث نه ثابت دی البته د ایصالِ ثواب دپاره د اجتماع اهتمام او په هغې کښې قیود او رسوم همدارنګه د مړی والو د طرف نه دعوت کول دا ټول امورِ بدعت او ناجائز دی

ویکره اتخاذ الضیافة من الطعام من اهل المیت لانه شرع فی السرور لا فی الشرور وهی بدعة مستقبحة وفی البزازیة ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقراءة سورة الانعام والاخلاص الخ (رد المحتار ص ۶۳۰ ج ۱) فقط والله تعالی اعلم.
ذی الحجه سنه ۸۰ هجری

## مروج صلوة او سلام

**سوال**:- څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کښې چه په دې وخت د پاکستان په ډیرو علاقو کښې د جمعې مونځ نه پس او په نورو وختونو کښې هم اودریدلو سره سلام وئیل مروج دی چه دهغې د وجه نه په ډیرو مقاماتو باندې جګړې هم کیږی او په هغې سره د مسلمانانو اتحاد ته ډیر نقصان رسیږی لهذا برای کرم ددې مسئلې د قرآن او حدیثو او اجماعِ امت او قیاس نه تشریح حوالې تفصیل سره ولیکئ او دا هم واضحه کړئ چه آیا د حضور صلی الله علیه وسلم د صحابو رضی الله عنهم، د تابعینو، ائمه مجتهدینو وغیره بزرګان دین په زمانه کښې دا ک

مروج وو اوکه نه ، دلائلو او حوالو سره دې مسئلې لره په پوره شان واضحه کړئ دې دپاره چه دمسلمانانو اتحاد او اتفاق ته کوم نقصان رسیږي اوروان دي چه دهغې ازاله وشي ، بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب :** عن عبد الرحمن بن ابی لیلی قال لقینی کعب بن عجرة فقال الا اهدی لک هدیة سمعتها من النبی صلی الله علیه وسلم فقلت بلی فاهدها لی فقال سألنا رسول الله صلی الله علیه وسلم فقلنا یارسول الله کیف الصلوة علیکم اهل البیت فان الله قد علمنا کیف نسلم علیك قال قولوا اللهم صلی علی محمد کما صلیت علی ابراهیم وعلی ال ابراهیم انك حمید مجید (متفق علیه) الا ان مسلما لم یذکر علی ابراهیم فی الموضعین.

په دې روایت سره معلومه شوه چه صحابه کرامو رضی الله عنهم ته د سلام علی الرسول صلی الله علیه وسلم طریقه معلومه وه یعني التحیات لله الخ ، مگر د درود طریقه ورته معلومه نه وه تو هغوی پوښتنه وکړه او په «قولوا» سره بیان کړې شوه ، دا مقام دې د تعلیم ، پس څنګه چه تعلیم ورکړې شو په هغې کښې او مروجه سلام وئیلو کښې هیڅ تعلق نشته ، که چرته هم دا مروجه طریقه د سلام او صلوة وې نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم هم دغه شان تعلیم ورکولو ، معلومه شوه چه دا مروجه طریقه دروغ ده اود ځان نه جوړه شوې ده اود دروغو څیزونو لره دین ګڼل اود ثواب امید ساتل بدعت دی ، ددې مروجه طریقې ثبوت نه خو د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه اونه تابعینو اونه د تبع تابعینو اونه د بزرګانِ سلف صالحینو نه نقل شوې دې شعر:

مپندار سعدی کہ راہ صفا      تواں یافت جز درپئے مصطفےٰ

په مسجد کښې جمع کیدلو سره صلوة او سلام وئیلو والو لره حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه بدعتیان ګرځولې دی ، فی البزازیة وقد صح عن ابن مسعود انه سمع قوما اجتمعوا فی مسجد یهللون ویصلون علیه علیه الصلوة والسلام جهرا فراح الیهم فقال ما عهدنا ذلك علی عهده علیه السلام وما اراکم الا مبتدعین فما زال یذکر ذلك حتی اخرجهم عن المسجد (بزازیة علی هامش العالمگیریة ج۴ص۳۷۸) ونقله عن البزازیة ابن عابدین ایضا تحت (قوله وتمامه فیمل جنایات البزازیة) ونصح عن ابن مسعود انه اخرج جماعة من المسجد یهللون ویصلون علی النبی صلی الله علیه وسلم جهرا وقال لهم ما اراکم الا مبتدعین (ردالمحتار ج۵ص۲۸۲) فقط والله تعالی اعلم .      ذی قعدة ۹۳ هجری

## د تیر شوی په شان بل سوال

**سوال** - څه فرمائي علماءدین د دې مسئلې په باره کښې چه اکثر مسلمانان د حضور صلی الله

علیه وسلم سره محبت او اظهارِ عقیدت ودریدلو سره د سلام وئیلو په صورت کښې کوی چه د بعضې علماؤ په نزد بدعت دی . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا غلطه ده چه اظهارِ محبت او عقیدت قیام عند التسلیم سره کیږی یاد حضور صلی الله علیه وسلم نوم اوریدلو سره اودریدلو سره کیږی . اظهارِ محبت او عقیدت خو اتباع او اطاعت سره کیږی کما قال الله تعالی : ((قل ان کنتم تحبون الله فاتبعونی یحببکم الله)). وما احسن ما قیل : شعر :

تعصی الرسول وانت تظهر حبه — هذا لعمری فی الفعال بدیع
لو کان حبك صادقاً لاطعته — ان المحب لمن یحب مطیع

که چرته اظهارِ عقیدت مقصود وی نو د دوی صلی الله علیه وسلم نوم مبارک اوریدلو سره ودریدل پکار دی حالانکه په زرګونو ځلې د دوی صلی الله علیه وسلم نوم آوری خو ودریږی نه ترڅو پورې چه مخصوص وخت رانه شی او مقام مخصوص پورې ونه رسی همدارنګه که چرته اظهارِ محبت او عقیدت په دې صورت کښې وې نو چه کله هم د دوی صلی الله علیه وسلم نوم واوری یا د دوی تذکره وی یا چه کله هم ځان له درود شریف وائی نو ودریدل پکار دی مګر څوک هم په دې وخت کښې نه ودریږی صرف په جلوت کښې اجتماعی طور باندې د قیام التزام کولې کیږی . معلومه شوه چه دا اظهارِ محبت نه دې بلکه ریا او خواهش پرستی ده ، فقط والله تعالی اعلم

۱۸ صفر سنه ۸۸ هجری .

## د مخکې په شان بل سوال

**سوال** :- بعضې وختونو کښې د مونځ نه پس خلق په مسجدنو کښې ودریدلو سره صلوة وسلام وائی عقیدةً هغه ضروری ګڼی او بعضې نور خلق دې لره بدعت او دین کښې اضافه ګڼی د دې شرعی څه حیثیت دې او آیا داسې خلق د دې کار نه منع کړئ شی او که نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

دا فعل بلاشبهه منکر او بدعت دې بلکه د ډیرو بدعاتو مجموعه ده . مثلاً

(۱) د درود شریف د پاره د وخت تخصیص

(۲) د ځائ تخصیص

(۳) د اجتماعی هیئت تخصیص

(۴) د صورتِ امامت تخصیص

(۵) ودریدلو سره د وئیلو تخصیص

(۶) په اوچت آواز د وئیلو تخصیص

(۷) ددې ټولو امورو التزام

په دې کښې هريو فعل مستقل بدعت دې ددې وجه نه چه شريعتِ مطهره کښې د درود شريف دپاره ددې قيودو او تخصيصاتو هيڅ ثبوت نشته دې ، چه دګوم کار دپاره حضور صلی الله عليه وسلم يوخاص کيفيت او يو خاصه طريقه متعين کړې نه وی دهغې دپاره دځپل طرف نه مخصوصې طريقې جوړول په دين کښې اختراع او زيادت دې چه دهغې حاصل دا را وځی چه معاذالله ، الله تعالی او رسول صلی الله عليه وسلم ته ددې طريقې علم نه وو ، الله تعالی او دهغه په رسول صلی الله عليه وسلم باندې ددې الزام او افتراء د وجه نه بدعت باندې سخت وعيدونه وارد شوی دی . فرمائی «**کل محدثة ضلالة وکل ضلالة فی النار**» يعنې په دين کښې هرنوې پيدا کوونکې څيز ګمراهی ده او هره ګمراهی جهنم ته ليګلو والا ده ، د داسې قسم منکراتو او بدعاتو نه د جماتونو د حفاظت دپاره هرممکن کوشش کول فرض دی ، فقط والله تعالی اعلم . ۳شوال سنه ۹۴هجری

## د خوراک نه پس لاس اوچتولوسره اجتماعی دعا

**سوال** :- زمونږ په علاقه کښې دا دستور دې چه د خوراک نه پس لاس اوچتولوسره ټول مجلس دعا کوی او نه کولو والو لره بد هم ګنی نو د شريعت له نظره دا صحيح دی اوکه نه ؟ همدارنګه د اذان نه پس لاس اوچتولوسره دعا غوارې آيا په دې مواقعو باندې لاس اوچتول د قرآن اوحديث اود فقهاؤ د اقوالو نه ثابت دې اوکه نه. که چرته دې نو دلائلو سره يې وليکئ، بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې باره کښې قاعده کليه داده چه مطلقِ دعا دپاره رفع يدين مستحب دې مګر چرته چه شريعت خاص مواقعو کښې خاص الفاظ سره د دعا تعليم ورکړې دې مثلاً جمات ته د داخليدلو او راوتلو په وخت ، د اوده کيدلو په وخت اود خوب نه د رابيداريدلو په وخت . بيت الخلاء ته د داخليدلو او راوتلوپه وخت . د سوريدلو په وخت اود جماع په وخت وغيره په دې مواضعو کښې د دعا کولو په وخت لاس اوچتول شرعاً ثابت نه دی . د خوراک نه پس اود اذان نه پس هم په دې قسم کښې داخل دې ، مذکوره مواقعو باندې لاس اوچتولوسره دعا کول بدعت دې . بيا نه کولو والو لره بدګڼل نورهم زيات قبيح دی ، التزام سره خو د امرِمستحب هم ترک کول لازميږی . کمافی صحيح البخاری ومسلم وسنن ابی داود والنسائی وابن ماجة عن عبدالله بن مسعود رضی الله عنه لايجعل احدکم للشيطان شيئا من صلاته يری ان حقا عليه ان لاينصرف الا عن يمينه لقد رايت رسول الله صلی الله عليه وسلم کثيرا ينصرف عن يساره. فقط والله اعلم

۲ذی قعده سنه ۸۹هجری

## د تیر شوی په شان یو بل سوال

**سوال**:- یو دعوت کښې دخوراک نه پس اجتماعی طور باندې د کوروالو دپاره دعا کول د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه ثابت دی او که نه؟ ، همدارنګه په دې باره کښې که چرته د یو امام نه یو دلیل ثابت وی نو هغه ولیکئ او که چرته دا دعا ضروری وګڼلې شی نو ددې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حضورصلی الله علیه وسلم نه د اهلِ طعام دپاره دعا کول ثابت دی ، عن عبدالله بن بسر قال نزل رسول الله صلی الله علیه وسلم علی ابی (الی ان قال) فقال ابی واخذ بلجام دابته ادع الله لنا فقال اللهم بارك فیما رزقتهم فاغفرلهم فارحمهم (رواه مسلم) مګر په دې کښې لاس اوچتول او اجتماعی صورت ثابت نه دې لهذا ددې رسم نه اجتناب ضروری دې او هغه ثواب ګڼل او ضروری ګرځول بدعت او ناجائز دی په داسې وخت کښې د مستحب فعل ترک کول هم ضروری کیږی کما فی الحدیث لا یجعل احد کم للشیطان شیئا من صلاته الخ وقال القاری فی المرقاة من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقد اصاب منه الشیطان من الاضلال فکیف من اصر علی بدعة ومنکر انتهی. فقط والله تعالی اعلم

۱۲ محرم سنه ۹۰ هجری

## ټپوسانو ته غوښه غورځول

**سوال**:- د یو بیمار د طرف نه چیلئ صدقه کول اودهغې غوښه ټپوسانو ته غورځول چه زر په آسانئ سره یې روح اوځی یا الله د صدقې په برکت سره شفا ورکړی جائز دی او که نه؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا د جاهلانو په خرافاتو کښې دی ، شریعت کښې ددې هیڅ اصل نشته ، داسې قسم رواجونه د هندوانو نه اخستلې شوی دی ددې ډیره سخته ګناه ده ، البته مطلقِ صدقې سره آفت لرې کیږی او صدقه د نقدو پیسو په صورت کښې زیاته افضل ده ، یعنې څه رقم یومسکین ته ورکړئ شی یا په یو کارِ خیر کښې ولګولې شی ، فقط والله تعالی اعلم

۱۳ محرم سنه ۹۳ هجری

## د بیمارئ نه د شفا دپاره چیلئ ذبح کول

**سوال**:- څه فرمائی علماءِ دین د دې مسئلې باره کښې چه زید سخت بیمار دې که چرته دهغه د طرف نه چیلئ ذبح کولو سره غوښه په فقیرانو باندې تقسیم کړې شی نو جائز ده او که نه ، چه الله تعالی د صدقې د وجه نه هغه بیمار باندې رحم وکړی یا آسانئ یې سره زر روح اوځی ددې شرعاً څه حکم دې؟ که چرته جائز وی نو د څناورعمر اود رنګ هم څه تخصیص شته یاڅنګه چه وی جائز به

وی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** - د آفتونو او بیماریٔ نه د حفاظت دپاره د صدقې او خیرات ترغیب راغلې دې مګر د عوامو اعتقاد ددې په باره کښې دا شوې دې چه د یو څناور ذبح کول ضروری دی روح لره د روح په بدله کښې ګنی . شریعت کښې ددې هیڅ ثبوت نشته دې ، دا د عوامو د څانه جوړ کړې شوې بدعت دې ، که چرته څوک دا عقیده نه لری نو بیا هم په دې کښې چونکه ددې عقیدې او بدعت تائید دې لهذا ناجائز دې ، بل قسمه صدقه او خیرات دې وکړی ، شریعت کښې د قربانۍ او عقیقې نه سوا بل چرته د څناور ذبح کول ثابت نه دی . دا غلطه عقیده په ښو ښو خلقو کښې هم موندلې کیږی ددې وجه نه په علماؤ باندې لازم ده چه دهغې په اصلاح باندې خاص توجو وړکړی او مدارس دینیه کښې چه داسې قسم کومې چیلۍ ورکولې کیږی هغې لره دې هیچرې قبولې نه کړی . د علماؤ سترګې پټول او داسې چیلو لره قبلولو سره ددې ګمراهۍ تائید کیږی .

فقط والله تعالی اعلم ۲۵ذی الحجه سنه ۸۶هجری

## د کونډا حقیقت

**سوال**:- څه فرمائی علماءِ دین د دې مسئلې باره کښې چه په ۲۲رجب باندې د کونډا کولو رسم څه حکم دې ؟ او شریعت کښې ددې څه اصل دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کونډو مروج رسم دښمنانِ صحابه رضی الله عنهم د حضرت معاویه رضی الله عنه په وفات باندې د اظهارِ مسرت دپاره ایجاد کړې دې ، ۲۲رجب د حضرت معاویه رضی الله عنه تاریخِ وفات دې (طبری ، استیعاب) د ۲۲رجب د حضرت جعفرصادق رحمه الله سره هیڅ تعلق نشته دې ،نه په دې کښې دهغه وفات شوې دې اونه ولادت ، د حضرت جعفرصادق رحمه الله ولادت په ۸ رمضان ۸۰ هجری یا په ۸۳ هجری کښې دې او وفات یی د شوال په ۱۴۸ هجری کښې وشو ، په دې سره ثابتیږی چه دې رسم لره د پټولو دپاره حضرت جعفرصادق رحمه الله طرف ته منسوب کولې کیږی ، او که نه نو په حقیقت کښې دا تقریب د حضرت معاویه رضی الله عنه د وفات په خوشحالۍ کښې کولې کیږی .

کوم وخت چه دا رسم ایجاد شو شیعه د مسلمانانو نه مغلوبه او ویریدونکی وو ، ددې وجه نه دا اهتمام وکړې شو چه شیرینی علانیه تقسیم نه کړې شی دې دپاره چه راز ښکاره نه شی بلکه دحضرت معاویه رضی الله عنه دښمنانو په خاموشۍ سره یو بل ته ورتللو سره هغه ځائ دا شیرینی خوری چرته چه ایښودلې شوې ده او په دې طریقه خپله خوشحالی یو بل باندې ظاهره کوی . چه کله د دوی دا راز ښکاره شو نو هغې لره ئې حضرت جعفرصادق طرف ته منسوب کولو سره دا

تهمت ئې په هغه باندې ولګولو چه هغوی پخپله په دې تاریخ دخپلې فاتحې حکم ورکړې دې حالانکه دا ټولې دروغ خبرې دې . مسلمانانو باندې لازمه ده چه هیچرې داسې رسم ونه کړی بلکه نورو له هم ددې د حقیقت نه خبرولو سره دهغوی د بچ کولو کوشش وکړئ ، فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد .

۲۰ رجب سنه ۸۷ هجری

## د اذان نه وړاندې درود شریف وئیل

**سوال** :- زمونږ په مسجد کښې د شلو کالو راهیسې مونځ کیږی الحمدلله هیڅ قسمه جګړه وغیره نه ده شوې لیکن څو ورځو نه بعضې خلق په دې مسئله باندې په بحث کښې مبتلا دی چه په هغې سره په محله کښې پخپل مینځ کښې ډیر جداوالې پیدا شوې دې چه آیا د اذان نه وړاندې مؤذن په اوچت آواز سره درود شریف وئیلو سره اذان شروع کړی او که مؤذن درود شریف په پټه وئیلو سره اذان شروع کړی چه په هغې سره د جدا والې اودا رنج اوغم ختم شی آیا دا خبره صحیح ده ؟ داسې کولې شی او که درود شریف اذان سره په اوچت آواز وئیلو سره آذان ورکول ضروری دې ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د درود شریف موقع شریعت مطهره د اذان نه پس ښودلې ده نه د اذان نه وړاندې ، لهذا د اذان نه وړاندې درود شریف وئیل که په اوچت آواز سره وی یا په آهسته آواز سره به هرحال ناجائز او بدعت دې او په دین کښې دخپل طرفه زیادت دې ، ددې مثال داسې دې لکه څوک د مونځ د آخر په ځائ مونځ شروع کولو سره د سبحانک اللهم ـ الخ ، په ځائ درود شریف شروع کړی او منع کولو والا ته د درود شریف منکر اووائی . فقط والله تعالی اعلم

۱۱ رمضان المبارک سنه ۸۸ هجر

## د اذان نه پس په اوچت اواز سره صلوة اوسلام

**سوال** :- الدرالمختارباب الاذان کښې دا لفظ راغلې دې چه «**التسلیم بعدالاذان ـ الخ**» ددې نه څه مراد دی ؟ آیا هغه سلام چه بریلوی حضرات یې وائی او که بل څه مراد دی ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د الدرالمختار پوره عبارت دادې (**فائده** ، التسلیم بعدالاذان حدث في ربیع الاخر سنة سبع مائة واحدی وثمانین في عشاء لیلة الاثنین ثم یوم الجمعة ثم بعد عشر سنین حدث في الکل الا المغرب ثم فیها مرتین وهو بدعة حسنة قال ابن عابدین (قوله وهو بدعة حسنة) قال في النهر عن السیوطی والصواب من الاقوال انها بدعة حسنة وحکی بعض المالکیة الخلاف ایضا في تسبیح المؤذنین لاثلث الاخیر من اللیل وان بعضهم منع من ذلک وفیه نظر اهـ ملخصا (ردالمحتار ص۳۲۲ ج۱).

ددې تسلیم نه مراد هغه درود شریف دې چه دهغې حکم په حدیث کښې وارد دې

اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما
عن عبدالله بن عمرو بن العاص قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم
يقول ثم صلوا علي فانه من صلى علي صلوة صلى الله عليه وسلم بها عشرا ثم سلوا الله لي الوسيلة فانها منزلة في
الجنة لا ينبغي الا لعبد من عباد الله وارجوا ان اكون انا هو فمن سال لي الوسيلة حلت عليه الشفاعة رواه مسلم
(مشكوة المصابيح ص ج) وفي الصحيح لمسلم عن عبدالله بن عمرو بن العاص انه سمع النبي صلى الله عليه
وسلم الخ (الصحيح لمسلم ص ج) في شرح معاني الاثار بهذه الالفاظ الا انه مكان منزلة منزل ومكان حلت
عليه الشفاعة، حلت له الشفاعة (شرح معاني الاثار ج ص)

په دې حديث كښې د ((ثم صلوا علي)) امر سامعينو سره مؤذن ته هم شامل دې . پس د درود شريف ثبوت خو د حديث نه دې البته د هغې كيفيت مستحدث دې دهغه كيفيت په بدعت كيدلو كښې عبارتونه مختلف دي د تطبيق صورت دادې چه كه چرته هغه خاص كيفيت كښې زيات ثواب وګڼلې شي اودهغې التزام نه وي نو جائز دې اوكه نه نو بلاشبهه بدعت دې . قال سلطان العلماء الملا علي القاري فما يفعله المؤذنون الان عقب الاذان من الاعلان بالصلوة والسلام مرارا اصله سنة والكيفية بدعة لان رفع الصوت في المسجد ولو بالذكر فيه كراهة سيما في المسجد الحرام لتشويشه على الطائفين والمصلين والمعتكفين (مرقات ج ص)

زمونږ د زمانې اهل بدعت هغې لره ضروري ګرځولې دې كه چرته يې څوک نه وائي نو هغه ته بدې ردې وئيلې كيږي چه التزام مالايلزم دې ، امام طحاوي رحمه الله د اذان نه پس مطلقا دعا باندې بحث كولو سره دهغه خلقو ترديد كړې دې چه هغې لره د مستحبو نه زياته درجه وركوي . همدارنګه اكثر اهل بدعت صلوة اوسلام لره اذان باندې مقدم كوي ، او ددې هيڅ ثبوت نشته . همدارنګه مروجه صلوة اوسلام كه د اذان نه وړاندې وي يا وروستو هغه په اوچت آواز سره بلكه لاؤډسپيكر باندې وئيلې كيږي . قطع نظر ددې نه چه په ذكر كښې اخفاء اولى بلكه مطلوب ده ، مسجد كښې دننه يا مسجد ته نزدې په زورسره آواز ويستل كه ذكر بلكه د قرآن تلاوت وي هم ممنوع دې . د ملاعلى قاري عبارت بطورنمونه تيرشوې دې

ددې تمامو تفصيلاتو نه قطع نظر چونكه زمونږ په زمانه كښې بالخصوص برصغير هندوپاک بشمول ايران وافغانستان اوبلوچستان مروجه صلوة اوسلام بالجهر د بريلوي حضراتو شعاردې چه دې مستحب لره د فرض او واجبو مقام وركوي . ددې وجه نه ددې نه ځان ساتل شرعاً ضروري دې . چنانچه فقهاؤ ددې تصريح كړې ده چه كله يو مستحب لره خلق ضروري ګڼل شروع كړي نو په داسې وخت كښې دهغې ترک واجب دی . فقط والله اعلم

۲۲ ربيع الاخر ۹۲ هجرى

## د روژې نيولو رسم

**سوال:-** زمونږ طرف ته دا رواج دې چه کله ماشوم باندې رومبنۍ روژه نیسی نو د روژې ماتولو په وخت دهغه په مرئ کښې هار اچوی او یو یا دوه دیګونه پخوی اوهغه په دوستانو او خپلو خپلوانو باندې خوری او جمات ته د افطار دپاره خوراک استولې کیږی نو آیا د داسې خوراک ثبوت دیو حدیث نه ثابت دې او که نه ؟ او طریقه مذکوره جائز ده اوکه نه؟ خوراک به یې هم صحیح وی یا نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ددې رسم په شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته . دې لره ثواب ګڼلوسره کول دین کښې دخپل طرف نه د زیاتئ کولو د وجه نه بدعت او ناجائز دې بلکه ثواب یې که هم ونه ګڼی نو بیا هم ددې پرینبودل لازم دی ځکه چه دا داسې رسم جوړ شوې دې چه دهغې قباحت په اهلِ عقل والو باندې ښکاره دې ، فقط والله تعالی اعلم ۱۲ رمضان سنه ۸۸ هجری

## په قبر باندې د ګلابو اوبه شیندل

**سوال:-** د مړی د دفن کولو په وخت قبر کښې دننه یا د پاسه د ګلابو اوبه شیندل صحیح دی اوکه نه ؟ وائی چه د خوشبو څیز دې او خوشبو سره مړی ته خوشحالی ملاویږی هم دغه شان اګربتی (دخوشبو تیلې ) ، قبرباندې یا د قبر نه جدا بلول څنګه دی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** قبرکښې دننه خوشبو شیندل مستحب ده . باندې اګربتی (دخوشبو تیلې ) وغیره بلول بدعت دې . والله سبحانه وتعالی اعلم ، ۲۷ رمضان سنه ۸۸هجری

## د رمضان په آخری جمعه باندې وداعی خطبه وئیل

**سوال:-** د ماهِ رمضان د آخری جمعې په خطبه کښې الوداع او الفراق وئیل جائز دی اوکه نه؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

ددې په شرع کښې هیڅ اصل نشته دې . بلکه بدعت دې . فقط والله تعالی اعلم

۹ شوال سنه ۹۵ هجری

## مبارکو شپو کښې په مسجد کښې اجتماع

**سوال:-** څه فرمائی علماءِ دین په دې مسئله کښې چه د عیدین . نصف شعبان . د رمضان المبارک په عشره اخیراو په نورو مبارکو شپو کښې چه عام رواج جوړ شوې دې چه جماتونو کښې د ذکر اوتلاوت وغیره دپاره خلق جمع کیږی او بعضې جماتونوکښې د تقریر هم اهتمام کیږی ددې شرعاً څه حیثیت دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې مبارکو شپو کښې جماتونو ته د تللو د عبادت کولو لپاره درې طريقې دی:

(۱) جمات کښې ته تللو سره د عبادت کولو اهتمام ئې ونه کړو بلکه اتفاقاً جمات ته تللو سره په ذکر اوتلاوت کښې مشغوله شو، دا جائز دی، ليکن دا نوافل او ذکر که چرته ئې په کورکښې کولې نوزيات ثواب به ملاويدلو، بلکه د مسجدحرام اود مسجدنبوی په نسبت هم کورکښې د نفل عبادت زيات ثواب دې، چنانچه حديث کښې دی: ((عن زيد بن ثابت رضی الله عنه ان النبی صلی الله عليه وسلم قال صلوة المرء فی بيته افضل من صلوته فی مسجدی هذا الا المکتوبة)) (رواه ابوداود). ((وايضا عنه ان النبی صلی الله عليه وسلم قال افضل الصلوة صلوة المرء فی بيته الا المکتوبة)). رواه الجماعة الا ابن ماجة (نيل الاوطار)

(۲) جمات ته د تللو اهتمام کړئ شوې وی نو دا بدعت دې، ددې وجه نه چه د نوافلو دپاره د جمات اهتمام کولو مطلب دادې چه جمات کښې نوافلو کولو له زيات ثواب گڼی او دا شريعت مطهره باندې زياتوالې دې بلکه د الله اود رسول صلی الله عليه وسلم مقابله ده ځکه چه احاديثوکښې ددې صراحت دې چه د نوافلو په کورکښې کول زيات افضل دې کما مر

(۳) مبارکو شپوکښې جمات کښې د عبادت اهتمام هيئت اجتماعيه سره وکړې شی مثلاً دنوافلو جماعت وکړې شی يا د تقاريرو اهتمام وکړئ شی، دا صورت هم بدعت دې، د دويم صورت نه زيات قبيح دې، په دې کښې خو يو هغه خرابی ده چه په دويم نمبر کښې ذکر شوه، دويمه دا خرابی هم ده چه د نفلی عبادت دپاره ئې هيئت اجتماعی پيدا کړو چه شرعاًممنوع دې قال ابن عابدين وفی الامداد ويحصل القيام بالصلوة نفلا فرادی من غير عدد مخصوص وبقراءة القرآن والاحاديث وسماعها وبالتسبيح والثناء والصلوة والسلام علی النبی صلی الله عليه وسلم وقال ايضا بعد اسطر (تتمه) اشار بقوله فرادی الی ماذکره بعد فی متنه من قوله ويکره الاجتماع علی احياء ليلة من هذه الليالی فی المساجد وتمامه فی شرحه وصرح بکراهة ذلک فی الحاوی القدسی (الشاميه ص۳۳ ج۱)

بعضې خلق دا وائی چه په کورنو کښې شور وی ماشومان ژاړی چه دهغې د وجه نه خشوع باقی نه پاتې کيږی دا د شيطان دهوکه ده. په اصل کښې خشوع نوم دې د سنت مطابق عبادت کول. که چرته ئې د سنت مطابق عبادت وکړو نوخشوع اوخضوع هم حاصله ده، او که چرته خلاف سنت ډير ژاړی او منت او هيئت خشوع اختيارکړی د شرعې په نظر کښې هغې ته خشوع نه وئيلې کيږی. د فکر خبره ده چه سرورکائنات صلی الله عليه وسلم خو انتهائی د سختې مجبورئ باوجود د تهجد وغيره نوافل کورکښې کوی او هم هغې له زيات ثواب گڼی او نن مونږ دا وينا شروع کړه چه مونږ

حدیث کښې دي چه ته په کور کښې خشوع نه حاصلیږي . ظاهره ده چه د شیطان دهوکه ده ، حضور صلی الله علیه وسلم د شپې پخپله حجره مبارکه کښې نفل کول او حضرت عائشه رضی الله عنها به مخې ته خپې غزولو سره ملاسته وه ، چه کله به دوی صلی الله علیه وسلم سجده کوله نو لاس به ئې دهغې خپو سره اولګولو نو بیا به هغې خپلې خپې راغونډې کړې ، چه کله به حضور صلی الله علیه وسلم د دویم رکعت دپاره اودریدلو نو حضرت عائشې رضی الله عنها به بیا خپلې خپې غزولې . د شپې تیاره . د چراغ وغیره انتظام نه وو . په کور کښې دومره وسعت نه وو چه یو سړې څملی او بل سجده وکړې شي او مسجد نبوی دومره نزدې چه د حجرې نه قدم راویستلو سره به مسجد ته رارسیدلو . بیا مسجد هم مسجدِ نبوی دې چه د هغه افضلیت ښکاره دې . ددې باوجود د محسنِ اعظم صلی الله علیه وسلم عمل مبارک دا وو چه حجره کښې ئې نوافل کول مسجد ته به ئې تشریف نه وړلو .

همدارنګه بعضې خلق دا وائي چه په کور کښې خانله مونځ کولو سره خوب زر راځی او که چرته په مسجد کښې هیئتِ اجتماعیه سره ذکراو نوافلو کښې شروع شی ، تقاریروی اود نوافلو جماعت وغیره نو خوب ختمیږی ، په دې طریقه د ډیر زیات عبادت توفیق ملاویږی که چرته خانله په کورکښې نوافل وغیره کوې نو ددې نیم هم نه شې پوره کولې .

ښه پوهه شئ چه تکثیرِ عبادت یا د هغې کمیت مقصود نه دې بلکه د عبادت په کیفیت باندې د ټول ثواب دارمدار دې ، که چرته لږ عبادت دې وکړو نو دا دهغه عبادت نه ډیر ښه دې چه د سنت خلاف وی ، سنت دادې چه ترڅوپورې په طبیعت کښې خوند وی نوافلو وغیره کښې مشغوله اوسه او چه کله د خوب غلبه وی طبیعت ستړې شی نو آرام اوکړه ، چنانچه حدیث شریف کښې دی

عن انس رضی الله تعالیٰ عنه قال دخل رسول الله صلی الله علیه وسلم المسجد وحبل ممدود بین ساریتین فقال ما هذا قالوا لزینب تصلی فاذا کسلت اوفترت امسکت به فقال حلوه لیصل احدکم نشاطه فاذا کسل اوفتر قعد وفی حدیث زهیر فلیقعد (رواه مسلم) وفیه ایضا عن عائشة قالت دخل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم وعندی امرأة فقال من هذه فقلت امرأة لا تنام تصلی قال علیکم من العمل ما تطیقون فوالله لا یمل الله حتیٰ تملوا وکان احب الدین الیه ما داوم علیه صاحبه وفی حدیث عنها رضی الله عنها خذوا من العمل ما تطیقون فان الله لا یسأم حتی تسأموا (رواه الشیخان) فقط والله تعالیٰ اعلم

جمادی الاولی سنه هجری

## د دعا په اختتام باندې کلمه وئیل

**سوال :-** زمونږه په علاقه کښې دا دستور دې چه د دعا ختمولو نه پس چه کله په مخ باندې لاس راکاږی هغه وخت کلمه طیبه لااله الا الله محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم وائی آیا په شریعت

کنبې ددې څه ثبوت شته دې؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دعا په آخر کښې د دورد شریف او د آمین نه سوا بل څه وئیل ثابت نه دی ، لهذا په مخ باندې د لاس راښکلو په وخت د کلمې طیبې وئیلو دستور بدعت دې څنګه چه د خوراک نه د فارغیدلو نه پس یا د تلاوت نه پس کوم یو سړې د دعاماثوره په ځائ یا دهغې نه پس کلمه طیبه اووائی نو دې لره به هرسړې په دین کښې زیاتوالې او بدعت ګنی ، فقط والله اعلم ۱۴جمادی الاولی ۹۲هجری

## په قبر باندې شنه څانګه یا ګلاب ایښودل

**سوال**:- څه ارشاد فرمائی علماء دین د لاندې مسئلې متعلق آیا قبر باندې شنه څانګه ښخول یا ګلاب اچول مستحب دی ؟ هم یو ځلې یا چه کله په دریمه او څلورمه ورځ قبر ته ځی نو هرځلې به مستحب اوجائز وی یا نه ؟ وائی چه دا په حدیث سره ثابت دی ، بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حضورصلی الله علیه وسلم په دوو قبرونو باندې د کهجورې د څانګې دوه ټکرې کیښودلو سره اوفرمائیل چه ترڅو پورې دا وچې شوې نه وی په عذاب کښې به تخفیف وی دا د حضورصلی الله علیه وسلم د لاس برکت وو . که چرته دا قاعده عام وې نو صحابه کرامو رضی الله عنهم به ضرور ددې اهتمام کولې ځکه چه دا حضرات حریص علی الخیر وو ، د حضورصلی الله علیه وسلم په قول اوفعل باندې د پوهې دپاره د صحابه کرامو رضی الله عنهم تعامل لره کتل لازم دی . یعنې تعامل د حضورصلی الله علیه وسلم د قول اوفعل تفسیردې ، همدارنګه نن سبا چه ددې څومره اهتمام کولې کیږی او دې لره لازم ګڼلې کیږی ددې په بدعت کیدلو کښې هیڅ شبهه نشته ، د دې نه علاوه ددې دپاسه داسې څیزونوسره د خلقو په ګناهونو باندې جراء ت زیاتیږی ددې وجه نه ناجائز دی ، د ګلاب اچولو رسم بدعت دې شریعت کښې ددې هیڅ ثبوت نشته. فقط والله تعالی اعلم . یکم ذی الحجه سنه ۸۲هجری

## ایصالِ ثواب باندې اُجرت اخستل جائز نه دی

**سوال**:- زید بکر ته اووئیل چه څما د خپلو خپلوانو قبرستان ته روزانه څه . قرآن مجید حدشریف او (قُل هو) وایه او څما خپلوخپلوانو ته ئې ببښه او څما نه هره میاشت تنخوا اخله ، بکرته دا عمل کول څنګه دی ؟ د تنخوا رقم دهغه دپاره څنګه دې که چرته هغه ته جائز نه وی نود زیدنه اخستلو سره بل مسکین ته ورکول جائز دی اوکه بالکل د زید نه دې نه اخلی ؟ او د زید خپلوخپلوانو ته داسې فاتحه خوانئ سره ثواب رسی اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال فی ردالمحتار ان القاری اذا قرء لاجل المال فلا ثواب له فای شیء

يهديه الى الميت وانما يصل الى الميت العمل الصالح (رد المحتار ص ج) وفي شرح التنوير في بيان الاجارة الفاسدة (و) لا لاجل الطاعات وقال في رد المحتار تحت (قوله ويفتى اليوم) قال تاج الشريعة في شرح الهداية ان القرآن بالاجرة لا يستحق الثواب لا للميت ولا للقارى وقال العيني في شرح الهداية ويمنع القارى للدنيا والاخذ والمعطى آثمان فالحاصل ان ما شاع في زماننا من قراءة الاجزاء بالاجرة لا يجوز لان فيه الامر القراءة واعطاء الثواب للامر والقراءة لاجل المال فاذا لم يكن للقارى ثواب لعدم النية صحيحة فاين يصل الثواب الى المستاجر ولولا الاجرة ما قرء احد لاحد في هذا الزمان الى جعلوا القران العظيم مكسبا ووسيلة الى جمع الدنيا انا لله وانا اليه راجعون اه (رد المحتار ص ج)

پاسنی عبارت سره ثابته شوه چه د بکر دا عمل جائز نه دي . تلاوتِ قرآن باندې أجرت مقررولو سره تلاوت کولو سره مړی ته ثواب رسیدل خو لرې خبره ده په خپله قاري صاحب ته ثواب نه ملاویږی . پس چه هرکله په خپله قاري مستحق د ثواب نه دې نو مړی ته به څه ثواب ورسیږی ؟ ذکر شوې پیسې دهغه دپاره جائزنه دی او نه یې اخستلو سره بل چاته ورکول جائز دی که چرته ئې کوم وخت اخستې وی نو دهغې واپس کول ضروری دی . فقط والله تعالی اعلم

۱۴ جمادی الاولی سنه ۸۲ هجری

## د سخت باران یا د وبا په وخت اذان کول

**سوال** : په څناوروکښې وبا خوره شوې ده . دهغه وبا لرې کولو دپاره خلك د قرآن تلاوت کوی چه دهغې په برکت سره الله تعالی رحم وکړی او روزانه ترڅوپورې چه وبا باقي وی څلورو گوټونو کښې اذان کول شرعاً جائز دی اوکه نه ؟ هم دغه شان په سخت باران او په سخته سیلئ کښې اذان کول څنگه دی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کچرې علی سبیل التداعی نه وی او دخپل عادت مطابق تلاوت کوی نو جائز دی د تداعی صورت جائز نه دې . فقهاءِ کرامو رحمهم الله په غیرِ صلاة کښې چه د اذان څومره مواقع بیان کړی دی په هغې کښې مواقع مسئوله نشته دې او مفهومِ مخالف یعنی عدم ذکر عدم جواز باندې دال دې . قال في الشامية رايت في كتب الشافعية انه قد يسن الاذان لغير الصلاة كما في اذن المولود والمهموم والمصروع والغضبان ومن ساء خلقه من انسان او بهيمة وعند مزدحم الجيش وعند الحريق (الى قوله) وعند تغول الغيلان (الى قوله) وزاد ابن الحجر في التحفة الاذان والاقامة خلف المسافر قال المدني اقول وزاد في شرعة الاسلام لمن ضل الطريق في ارض قفر اى خالية من الناس اه (رد المحتار ص ج) فقط

جمادی الاولی سنه هجری

## قبرونو باندې څادر غوړول

**سوال** :- قبرونو باندې څادر غوړول څنګه دی ؟ يو سړې وائي چه خانه کعبه باندې غلاف غوړولې کيږی نو په قبرونو باندې څادر غوړولو کښې څه حرج دې ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** :عن عائشة رضي الله عنها ان الله لم يامرنا فيما رزقنا ان نكسوا الحجارة واللبن والطين (مسلم وابوداود) په دې حديث کښې ديوال باندې د څادر غوړولو ممانعت راغلې دې باوجود ددې نه چه په دې کښې په ظاهره څه قباحت او ايهام شرک وغيره نشته دې ، لهذا قبرونو باندې څادر غوړول د ايهام شرک اودغيرالله د تعظيم د وجه نه بطريقِ اولی به ناجائز وی ، قال ابن عابدين رحمه الله يکره الستورعلی القبور (ردالمحتار ص ۸۳۹ج ۱) په خلاف د کعبې د غلاف چه خودِ رسول الله صلی الله عليه وسلم غوړولې دې څکه چه هغې تعظيم مفضی الی الشرک نه دې ددې وجه نه هغې طرف ته په مونځونو کښې استقبال ضروری دې او قبرونو ته مخ کولو سره مونځ کول مکروه دی ، فقط والله تعالی اعلم ۲۵صفرسنه ۹۲هجری

## په تراويحو کښې ختمِ قران باندې متهائی تقسيمول

**سوال** :- نن سبا په ټولو جماتونو کښې ددې اهتمام کولې کيږی چه په رمضان شريف کښې تراويحو کښې د ختمِ قرآن په موقع باندې بالالتزام متهائی تقسيميږی په دې باره کښې وضاحت وکړئ چه ددې شرعی حيثيت څه دې ؟ همدارنګه دا هم اووائې چه د جمات د وقف آمدنئ نه متهائی تقسيمول يا د هغې دپاره جداچنده کول آيا د دواړو حکم برابر دې اوکه په کښې څه فرق شته ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د متهائی د تقسيمولو په مروج رسم کښې ډير قبائح دی مثلاً :

(۱) هغه مستقل ثواب ګنلې کيږی چه په دين باندې د زياتوالی د وجه نه بدعت دې .

(۲) دهغې داسې التزام کولې کيږی چه په يو حال کښې هم هغه رسم لره نه پريښودلې کيږی د التزام د وجه نه خو مستحب کارهم واجب الترک کيږی دهغې به څه وائې چه استحباب ئې هم ثابت نه وی .

(۳) د وقف په پيسو سره په هغې باندې صرف کول ناجائز دی . څکه چه دا خرچ د جمات په مصارفو کښې نه دې ، لهذا منتظمه کميټئ باندې شرعاً دهغه پيسو ضمان به واجب وی

(۴) بلاضرورة شرعيه چنده کول ناجائزدی په هغې کښې ددين اود قرآن کريم تحقيراوتذليل دې

(۵) چنده کښې که چرته خطاب خاص کړې شو يا په داسې مجلس کښې خطاب عام کړې شو چه په هغې کښې څه خاص خلق شريک وی نو په دې دواړو صورتونو کښې د چندې ورکوونکو رضا

متیقن نه ده . بلکه ظن غالب دادي چه د غیرت اود حیاء د وجه نه به ئې رقم ورکړې دی ، لهذا هغه رقم سره اخستلې شوې متهائی به حلاله نه وی ، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا یحل مال امرء مسلم الا بطیب نفسه (مسند الامام احمد)
(۲) عموماً د داسې تقریباتو په چنده کښې حرامې آمدنئ والا زیاته حصه ورکوی .
(۷) که بالفرض قبائح مذکوره هم نه وی نو بیا هم په هغې کښې یولوئ قباحت دادې چه هغې سره د ناجائز رسم اود بدعت شنیعه تائید کیږی ددې وجه نه بهرحال ناجائز او واجب الترک دې .
فقط والله تعالی اعلم ۱۵ جمادی الاولی ۹۲ هجری

## د اذان په جواب کښې د کلمه توحید نه پس محمدرسول الله وئیل

**سوال**:- که د اذان په جواب کښې آخر کښې د لااله الا الله جواب ورکولو سره محمدرسول الله هم اووائې نوجائز به وی یا نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اذان په جواب کښې د لااله الاالله جواب بعینه هم لااله الاالله پکار دې ، د محمدرسول الله اضافه کول په دین کښې زیادت او بدعت دې ، عن عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله تعالی عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما یقول ثم صلوا علی فانه من صلی علی صلوة صلی الله علیه بها عشرا ثم سلوا الله لی الوسیلة فانها منزلة فی الجنة لا ینبغی الا لعبد من عباد الله وارجوان اکون هو فمن سأل لی الوسیلة حلت علیه الشفاعة (رواه مسلم) وقال فی التنویر ویجیب من سمع الاذان بان یقول کمقالته (ردالمحتار ص ۳۶۰ ج۱) که چرته مؤذن د لااله الا الله نه پس هم داسې په اوچت آواز سره محمدرسول الله اووائی نو هغه به هرسړې په اذان باندې زیاتوالې گنلو سره به ورته ناجائز وائی ، هم دغه شان د اذان اوریدلو والا محمدرسول الله وئیل د اذان په جواب باندې خپل طرف نه د زیادت د وجه نه ناجائز دې ، فقط والله تعالی اعلم
۲۲ ذی قعده سنه ......هجری

## جنازه باندې د گلونو څادر اچول

**سوال**:- څه فرمائی علماء دین په دې مسئله کښې چه په مړی باندې د گلونو څادر اچول صحیح دی یا نه، همدارنگه د داسې مړی د جنازې دمونځ کولو نه انکارکول صحیح دی یانه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : جنازه باندې د گلونو څادر اچول بدعت دې لهذا دهغه د جنازې د مونځ کولو نه انکار کول صحیح دی ، فقط والله تعالی اعلم . ۲۳ ذی الحجه سنه ۸۹ هجری

## اذان کښې غټې ګوتې ښکلول او هغه په سترګوباندې راکاږل

**سوال** اذان کښې اشهد ان محمداً رسول الله باندې چه کوم خلق ګوتې ښکلوی هغوی په ثبوت کښې دا ذکر شوې عبارت پیش کوی . هغه ملاحظه کړئ او تصدیق یا تردید یې وکړئ . عبارت دادې حضرت علامه نبهانی په « حجة الله علی العالمین » کښې دا روایت درج کړې دې چه په بنی اسرائیلو کښې یو سړی وو چه هغه دوو کالو پورې د خدائ نافرمانی وکړه . د مرګ نه پس خلقو هغه لره په یو ګنده ځای کښې ګذار کړو . الله تعالی موسی علیه السلام ته دهغه د اوچتولو او دفن کولو او دهغه د پاره د مغفرت غوښتلو حکم وکړو حضرت موسی علیه السلام عرض وکړو چه خلق دهغه د نافرمان کیدلو شهادت ورکوی ارشاد وشو صحیح ده چه هغه ګنهګار وو مګر هغه به چه دشپې سترګې غړولې او ځما د محبوب محمد نوم به ئې لیدلو نو هغه به دهغه نوم ښکلولو او پخپلو سترګو باندې به ئې راکاږلو ددې وجه نه ماته هغه خوښ دې ما دهغه د دوو کالو ګناه معاف کړه . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** فی الشامیة ویستحب ان یقول عند سماع الاولی من الشهادة صلی الله علیك یا رسول الله وعند الثانیة منها قرت عینی بك یارسول الله ثم یقول اللهم متعنی بالسمع والبصر بعد وضع ظفری الابهامین علی العینین فانه علیه السلام یکون قائدا له الی الجنة کذا فی کنز العباد اه قهستانی ونحوه فی الفتاوی الصوفیة (الی ان قال) وذکر ذلك الجراحی واطال ثم قال ولم یصح فی المرفوع من کل هذا شیء اه

علامه شامی د قهستانی وغیره په حوالې سره ددې تقبیل استحباب نقل کولو نه پس د جراحی نه نقل کړی دی چه د یو حدیث نه هم ددې ثبوت نشته لهذا ددې په سنیت باندې یو دلیل هم نشته . او چونکه عوام دې لره د سنتو نه هم څه زیات ضروری ګڼلوسره تارک تقبیل لره ملامته کوی لهذا ددې ترک ضروری شو . عبارت مسئلکه سره متعلق چه دکوم کتاب حواله پیش کړې شوې ده هغه غیرمعروف دې . که چرته صحیح هم وی نو زیات نه زیات به دا ثابته شی چه د حضور صلی الله علیه وسلم نوم چرته لیکلې شوې وی نو هغه ښکلول او سترګو باندې راکاږل باعث د برکت او ثواب دی . او ددې نه چاته هم انکار نشته . دا څنګه ثابت شو چه نوکونو لره ښکلولو سره په سترګوباندې راکاږلې شی خصوصاً د اذان په وخت . فقط والله تعالی اعلم ۲۵ محرم سنه ۹۱ هجری

## د کفن نه پاتې شوې ټکرې نه د امام دپاره جانماز (مصلی) جوړول

**سوال** بعضې خلق د جنازې کولو والا امام دپاره لاندې جانماز (مصلی) د کفن نه پاتې شوې ټکرې نه جوړوی . دا طریقه جائز ده یا نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د کفن پاتې شوې ټکرې نه د امام دپاره جانماز (مصلی) جوړ ن

غلط رسم او ناجائز دي دا د کفن په مصارفو کښې داخل دي . فقط والله تعالی اعلم

۲۹ جمادی الاولی سنه ۹۲ هجری

## اجتماعی طور باندې درود شریف وئیل

**سوال** :- د جمعې مونځ نه پس اجتماعی طور باندې بعضې خلق کیناستلو سره دګومې وتې په تخم باندې هره جمعه په رو آواز سره درود شریف اووائی نو جائز به وی او که نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کله کله بلااهتمام داسې کول اګرچه جائز دی مګر آئنده تللو سره داسې څیزونه د بدعت حده پورې رسیږی . دهغې اهتمام او التزام کول شروع کیږی او رنګ په رنګې د قیودو اضافه شروع کیږی چه دهغې په شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته دي . دا په شریعت باندې زیادت دي چه دهغې چاته هم حق نشته ددې وجه نه د داسې امورو نه اجتناب ضروری دي ، خانله هر سړې چه څومره غواړی درود شریف دې وائی ،باعث د برکت دي . فقط والله تعالی اعلم

۱۲ ذی قعده سنه ۸۲ هجری

## د تعزیت دپاره جمع کیدلو سره کیناستل

**سوال** :- مړی لره د دفن کولو نه پس نزدې رشته دار او میلمانه رشته دار ، او د مړی وارثانو لره خپل ځان سره د خوراک دپاره دمړی کور ته راځی . دا خبره خو مستحسنه ده ، لیکن دهغوی سره د لرې رشته دار . چه دهغوی دپاره هغه ورځ د کوروالو دپاره نغرې بلیږی او د ترېورولې معزز حضرات هم د مړی والو د تسلئ دپاره د أديرې نه واپس د مړی والو کور ته راځی او په خوراک کښې شریک کیږی چه دهغې په وجه کله خو دخپلوخپلوانو نه راغلې شوې خوراک کفایت کوی اوکله مړی والو ته یا دهغه نزدې رشته دارانو ته د بازار نه راوړل پیښیږی دا که چرته جائز نه دی نو ددې ګناه به په چاباندې وی ؟ آیا څوک چه د تسلئ دپاره د خوراک په انتظار کښې وی او شریک طعام وی ، یا مړی والا او دهغوی نزدې رشته دار . چا چه ټولو راتللو والو باندې خوراک ورکول خپل مذهبی . اخلاقی فرض ګنلی وی . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا رسم یقیناً ناجائز دي او انتهائی د بې غیرتئ خبره ده . په دې ګناه کښې خوړلو والا او ورکونکی ټول شریک دی بلکه نزدې رشته دار هم که چرته دې رسم لره لازم ګنی او په دې کښې شریک نه کیدلو لره بدمنی یا دا طعام د مړی والو د طرفه وی نو دهغوی دپاره به هم دا کار ناجائز وی . د اهلِ میت د تعزیت دپاره ځائ مخصوصولو سره کیناستل او دورو خلقو هغلته جمع کیدل دا هم ناجائز دی قال ابن عابدین وفی الامداد قال کثیر من متاخری ائمتنا یکره الاجتماع عند صاحب المیت بل اذا فرغ ورجع الناس من الدفن فلیتفرقوا ویشتغل الناس بامورهم وصاحب المیت بامره (رد المحتار ص [illegible] ج [illegible]) فقط والله تعالی اعلم

۳ ربیع الآخر سنه ۹۳ هجری

## روزانه یو ځای کیدلو سره قبرستان ته تلل

**سوال**:- د مړی د وفات په دویمه او دریمه ورځ خصوصي طور باندې د سحر مونځ نه پس دهغه د ایصالِ ثواب دپاره خپل خپلوان او میلمانه کوم چه په جنازه کښې شریک وو ادیرې ته تللوسره او بیا واپس کیدلوسره راتلل او څه وخت د مړې په ځائ کښې حصاریدل او بیا چائ وغیره سکلوسره دهغه ځائ نه رخصتیدل ، بیا ماسپخین ته او ماښام ته هم دا سلسله جاری وی ، آیا دا شرعاً جائز دی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا ټول خرافات دی شرعاً ددې هیڅ جواز نشته ، دا شریعتِ کامله باندې زیادت دې او واجب الاحتراز دی ، د غم په موقع کښې دعوتونه خوړل بې غیرتی ده . فقط والله تعالی اعلم ۱۲ ربیع الآخر سنه ۹۲هجری

## د خطبې په حالت کښې درود شریف وئیل

**سوال** :- چه کله په خطبه کښې د حضورصلی الله علیه وسلم نوم مبارک راشی یا خطیب دا آیت اووائی «**یاایها الذین امنوا صلوا علیه وسلموا تسلیماً**» نو د اوریدلو والو دپاره درود شریف وئیل جائز دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : چونکه خطبه د مونځ په حکم کښې ده ددې وجه نه په دې حالت کښې په ژبې سره وئیل جائز نه دی زړه کښې یې وئیلې شی ((**قال صلی الله علیه وسلم اذا خرج الامام فلا صلوٰة ولا کلام وفی الشامیة (قوله ولا کلام) ای من جنس کلام الناس وکذلک اذا ذکر النبی صلی الله علیه وسلم لا یجوز ان یصلوا علیه بالجهر بل بالقلب وعلیه الفتوی**)) (ردالمحتار ص۔۔ ج۔) فقط والله تعالی اعلم

۳ شوال سنه ۔۔ هجری

## دخلقو د ویرې نه «ان الله وملائکته ـ الخ» وئیل

**سوال** :- امام د خلقو د ویرې نه «ان الله وملائکته ـ الخ» وائی چه که چرته دا ونه وایم نو مقتدیان به مې د امامت نه اوباسی شرعاً ددې څه حکم دې ، که چرته یې امام وائی نو ددې گنجائش شته اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : **قال الله تعالی** : «**ومن یتق الله یجعل له مخرجاً ویرزقه من حیث لایحتسب**» ، «**ومن یتق الله یجعل له من امره یسرا**» ، «**ومن یتوکل علی الله فهو حسبه**» ، «**ومن یهاجر فی سبیل الله یجد فی الارض مراغما کثیرا وسعة**» ، ((**الا ان نفسا لن تموت حتی تستکمل رزقها الا فاتقوا الله واجملوا فی الطلب وتوکلوا علیه**)). ددې نصوصو په موجودگئ کښې دا خطره چه که چرته د بدعت ارتکاب نه کوی نو

دهغه امامت څی او بیا به د لوړې نه مرشی انتهائی د ضعیف ایمان دلیل دې او د کسب معاش دا ذلیل ترینه طریقه ده ، د حکم شرعی نه علاوه د غیرت هم دا تقاضا ده چه دداسې امامت نه دې فوراً استعفاء ورکړی فقط والله تعالی اعلم ۱۷ ربیع الاخرسنه ۸۸ هجری

## د یولسمې خوراک

**سوال** :- که چرته د خپلوانو یا د ملګرو د کورونو نه د یولسمې خوراک یاد محرم کیر یا د شب براءت حلوه دا خلق کورته درواستوی نواخستل به یې جائز وی اوکه نه، که چرته یې نه اخلې او واپس یې کړې نو د خفه کیدلو خطره ده ، یا دهغوی نه اخستلوسره په ماشومانو باندې ئې اوخوروې یایو غریب له ورکړئ شی نوشرعاً به ددې ګنجائش وی اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چرته داسې قسم خوراک پخولو والا غیرالله لره دنفع اونقصان مالک ګڼی نو دهغه دا کار شرک دې او دا خوراک حرام دې ، ددې قبلول په یو صورت کښې هم جائز نه دې ، او که چرته د نفع او نقصان مالک یې نه ګڼی نو خوراک حرام نه دې مګر دا کار بدعت دې د داسې خوارک اخستلو نه حتی الامکان د بچ کیدلو کوشش دې وکړئ شی دې دپاره چه د بدعت د اشاعت او تائید ګناه نه وی ، فقط والله تعالی اعلم. ۲۲ربیع الاخر سنه ۹۲ هجری

## میلاد کښې قیام کول

**سوال** :- مروجه میلاد النبی صلی الله علیه وسلم کښې قیام کول څنګه دی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : محفلِ میلاد کښې قیام بدعت دې ، حدیث کښې ددې صفا ممانعت راغلې دې ، حضور صلی الله علیه وسلم عین حیات کښې صحابه کرامو رضی الله عنهم ته اوفرمائیل چه تاسو اودریدلوسره ځما تعظیم مه کوئ څنګه چه د عجمو دستور دې چه هغوی بخپل مینځ کښې دیو بل په اودریدلوسره تعظیم کوی ، محفلِ میلاد په یو خاص ورځ کښې کول او هغه ضروری ګڼل ، دشیرینئ وغیره تقسیمولو اهتمام کول ، قیام کول دا امور شرعاً ناجائز دی ، همدارنګه د حضورصلی الله علیه وسلم په مجلس کښې د حاضریدلو اعتقاد ساتل شرک دې ددې امورو نه که چرته مجلس پاک وی نو باعثِ برکت او هدایت دې اوکه نه نو ضلالت اوګمراهی ده ، فقط والله تعالی اعلم ۱۲رجب سنه ۹۱ هجری

## داختر مُبارکی وئیل

**سوال** :- نن سبا چه د اختر په ورځ بالخصوص د اختردمونځ نه پس د «اخترمُبارکئ» وئیلو عام رواج دې آیا په شریعت کښې ددې څه اصل شته ؟ او په دې کښې څه قباحت خو نشته ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : شریعت کښې ددې هیڅ ثبوت نشته دې او په عوامو کښې ددې التزام شروع شوې دې ددې وجه نه مکروه دې او که چرته دې لره ثواب هم ګڼلې کیږی نو په شریعت کښې د زیادت او د بدعت کیدلو د وجه نه سخته ګناه ده قال ابن الحاج فی المدخل قد اختلف علماؤنا رحمهم الله تعالی فی قول الرجل لاخیه یوم العید تقبل الله منا ومنك وغفر لنا ولك علی اربعة اقوال جائز بأنه قول حسن، مکروه لانه من فعل الیهود مندوب الیه لانه دعاء ودعاء المؤمن لاخیه مستحب، الرابع لا یبتدئ به وان قال له احد رد علیه مثله. اذا کان اختلافهم فی هذا الدعاء الحسن مع تقدم حدوثه فما بالك بقول القائل عید مبارك مجردا عن تلك الالفاظ مع انه معاصر الحدوث فمن باب اولی ان یکره وهو مثل قولهم یوم مبارك ولیلة مبارکة وصبحك الله بالخیر ومساك الله بالخیر وقد کره العلماء رحمهم الله تعالی کل ذلك (المدخل ص ج ۲) فقط والله تعالی اعلم

ذی قعده سنه هجری

## د تیر په شان بل سوال

**سوال** :- د اختر په ورځ د «د اختر مبارکی» وئیلو څه حکم دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی والتهنئة بتقبل الله منا ومنکم لا تنکر، وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی وانما کذلك لانه لم یحفظ فیها شیء عن ابی حنیفة واصحابه رحمهم الله تعالی وذکر فی القنیة انه لم ینقل عن اصحابنا کراهة وعن مالك رحمه الله تعالی انه کرهها وعن الاوزاعی انها بدعة وقال المحقق ابن امیر حاج بل الاشبه انها جائزة مستحبة فی الجملة ثم ساق آثارا باسانید صحیحة عن الصحابة رضی الله تعالی عنهم فی فعل ذلك ثم قال والمتعامل فی البلاد الشامیة والمصریة عید مبارك علیك ونحوه وقال یمکن ان یلحق بذلك فی المشروعیة والاستحباب لما بینهما من التلازم فان من قبلت طاعته فی زمان کان ذلك الزمان علیه مبارکا علی انه قد ورد الدعاء بالبرکة فی امور شتی فیؤخذ منه استحباب الدعاء بها هنا ایضا اه (رد المحتار ص ج ۱)

وقال الحافظ رحمه الله تعالی معزیا لابن رشید وقد روی ابن عدی من حدیث واثلة انه لقی رسول الله صلی الله علیه وسلم یوم عید فقال تقبل الله منا ومنك فقال نعم تقبل الله منا ومنك وفی اسناده محمد بن ابراهیم الشامی وهو ضعیف وقد تفرد به مرفوعا وخولف فیه فروی البیهقی من حدیث عبادة بن الصامت رضی الله تعالی عنه انه سال رسول الله صلی الله علیه وسلم عن ذلك فقال ذلك فعل اهل الکتابین واسناده ضعیف

ایضا وکانه اراد انه لم یصح فیه شئ مرفوع وروینا فی المحاملیات باسناد حسن عن جبیر بن نفیر قال کان اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا التقوا یوم العید یقول بعضهم لبعض تقبل الله منا ومنك (فتح الباری ص۲۰ ج۲)

حاصل دادچه د دعاء تقبل الله منا ومنک په ثبوت او جواز کښې اختلاف دي . ثبوت راجع دي . په دي باندې قیاس کولوسره د اخترمبارکئ د جواز قول نقل کړې شوې دې . ددې وجه نه ددې الفاظ مخصوصه تعیین او داسې التزام چه د حکم شرعی کیدلو اشتباه وی مکروه دی . ددې وجه نه د علماء او صلحاء تعامل نشته . مطلق دعاء جائز اومستحسن ده . والله تعالی اعلم

۱۸شعبان ۱۴۱۱هجری

## د رخصتیدلو په وخت خدا حافظ وئیل

**سوال** - په دې دور ترقئ کښې د رخصتئ په وخت د السلام علیکم په ځائ د « خداحافظ » وئیلو عام دستور شوې دې شرعاً ددې څه حکم دې ؟ -

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا رسم ناجائز دې . که چرته د السلام علیکم په ځائ یې خدا حافظ اووئیلو نود شریعت تحریف دې اوکه چرته د السلام علیکم سره ئې اووئیل نو شریعت باندې زیادت دې . البته که چرته سلام وداع نه جدا خداحافظ اوکله څه نور دعائیه کلمات اووئیلې شی نو هیڅ حرج نشته دې . مګر هم ددې الفاظو په التزام سره واضحه ده چه موقعهٔ وداع دپاره خپل طرف نه مخصوص الفاظ متعین کولې کیږی چه دهغې زیادت فی الدین کیدل ظاهره دی . اوکه چرته دا اصطلاح دیوغیرقوم نه اخستلې شوی وی نو نورهم زیات قبیح دی . فقط والله اعلم

۱۵ ربیع الاول ۹۷ هجری

## عید شب براء ت

**سوال** - شب براء ت کښې اخترکول او حلوه پخول څنګه دی ؟ که چرته د ثواب د نیت نه بغیر هسې پخه کړې شی نو آیا په دې کښې څه حرج دې . همدارنګه د چرته نه راغلی حلوه خوړلو کښې څه حرج خونشته ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** شب براء ت کښې د مبارکئ کولو او حلوه پخولو شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته دې لهذا دا امور ناجائز او بدعت دی . که چرته محض د رسم په طور باندې حلوه پخه کړئ شی د ثواب عقیده نه وی نو بیا هم په دې کښې د بدعت تائید کیږی لهذا ددې نه احتراز لازم دې . هم ددې وجه نه د حلوه قبلولو نه هم بچ کیدل پکار دی . سره ددې نه چه حرام نه ده . فقط والله تعالی اعلم

۱۵شعبان ۹۴ هجری

## سیاسی فتنه کښې اذانونه کول

**سوال** :- نن سبا د حکومت او دهغه خلاف متحده محاذ په مینځ کښې د سیاسی بحران د وجه نه چه کومه فتنه راپورته شوې ده دهغې دپاره د شپې په وختونوکښې د اذانونو کولو عامه سلسله شروع شوې ده آیا دا اذانونه کول شرعاً جائز دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دې موقع باندې اذانونه کول شرعاً ثابت نه دی ، لهذا دا بدعت دې ، ددې نه علاوه په دې کښې دوه گناهونه نور هم دی ، یوداچه خلقو ته د مونځ په وختونوکښې اشتباه کیږی ، ماته ډیرو کسانو شکایت وکړو چه هغوی په مغالطه کښې د سحر سنتونه په شپه کښې وکړل ، بعضې زنانو اووئیل چه هغوی د سحر کیدلو په گمان کښې د سحر مونځ ادا کړو

دویمه گناه داچه شپه کښې دخلقو په آرام کښې خلل پیداکیږی ، د تندرسته انسان په آرام کښې هم خلل اچول اوهغه لره شپه کښې خوب ته نه پریښودل گناه ده ، دلته خو مریض ، کمزوری او مزدوران وغیره هم دی ، ماته د داسې مریضانو طرف نه هم شکایتونه راغلی دی چه د اذانونو د شور د وجه نه ویده کیدلې نه شی ددې وجه نه دهغوی په اعصابی تکالیفو کښې اضافه شوې ده .

د الله تعالی د غضب او د عذاب نه د بچ کیدلو طریقه داده چه گناه لره پریښودلې شی د مالک د نافرمانئ نه توبه اواستغفارکولوسره هغه راضی کړې شی مگر نن سبا د گناه پریښودلو په ځائ شپه او ورځ علانیه د فسق اوفجور مجالس قائم دی او محفلونه گرم دی ، غیبت ، افتراء ، بهتان ، بدگمانی ، بدزبهی اوپخپل مینځ کښې لوټ مار ، وژل ، هم دخپلو مسلمانانو وروڼو د جان ،عزت اومال سره د لوبو کولو مشغله شپه او ورځ جاری ده په دې گناهونو کښې د ټولو نه ادنی گناه د غیبت ده چه دهغې متعلق د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه غیبت د زنا نه هم بدتر دې نن سبا څومره ډیر گناهونه اود موجب عذاب د گناهونو په ښکاره مجالسو کښې شپه او ورځ مشغله جاری کیدلو نه ددې اندازه دې وکړې شی نود نن سبا د یوې ورځې گناهونه عامه زمانه کښې د ډیرو کلونو د گناهونو نه هم څه ډیر زیات دی ، بیا هغې سره د اذانونو سلسله شروع کولوسره الله تعالی لره د دهوکه کولو کوششونه جاری دی ، الله تعالی دې مسلمان وئیلو والا اود اسلام په نوم باندې انتخابات کولو والا قول لره د فهم سلیم اود صحیح اسلام د نعمت نه دې منور کړی ، د ترک سیئات اود نافرمانئ نه دې د توبې او استغفار توفیق ورکړی ، پخپل رحمت اود خپل حبیب رحمة للعالمین صلی الله علیه وسلم په طفیل د رحم اوکرم معامله دې وکړی او دهغه عذاب نه دې نجات ورکړی ، آمین ، فقط والله تعالی اعلم

۱۵ ربیع الاخر سنه ۹۷ هجری

## (رساله)

## قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

من رأى منكم منكرا فليغيره بيده فان لم يستطع فبلسانه فان لم يستطع

فبقلبه وذالك اضعف الايمان (رواه مسلم)

په تاسو کښې چه هرڅوک یو بدی وګوری دهغې په لاس باندې د ختمولو کوشش دې وکړي که چرته دهغې طاقت یې نه وی نو په ژبې سره دې منع کړی که چرته په هغې باندې یې هم قدرت نه وی نو په زړه کښې دې (بوقت قدرت) د اصلاح عزم پټ وساتی او دا د ایمان د ټولو نه ادنی درجه ده ،

# د محرم منکرات

په دې کښې داسې ګناهونو باندې تنبیه کړې شوې ده چه په هغې کښې د شیعه ګانو نه متاثر کیدلو سره اکثر مسلمانان هم مبتلا دی.

**ازافادات** : **حضرت مولانا مفتی رشید احمد صاحب دامت برکاتهم**

اقتباس از تقریر بروزجمعه ۲ محرم ۹۲ هجری مطابق ۹ جنوری ۷۲ هجری

الحمدلله وكفى وسلام على عباده الذين اصطفى

**اما بعد** : فاعوذبالله من الشيطان الرجيم ، بسم الله الرحمن الرحيم

﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾

د نن په مجلس کښې ماه محرم سره متعلق اهمې خبرې ذکرکولې کیږی ، چه په هغې کښې د اول نمبر نه سوا باقی ټول منکرات او بدعات دی.

(۱) **روژه نیول** : د ټولو نه وراندې د روژې بیان کوم خکه چه کوم څیز سنت دې هغه رومبې بیانول پکار دی . اګرچه خوندور نور څیزونه دی ، د شیطان په عبادت کښې خوند زیات ملاویږی مګر الله والو ته د الله په عبادت کښې دهغې نه هم زیات خوند ملاویږی ، او بعضې خلق دواړو له جمع کول غواړی ، ګویا داسې ګنی چه شعر :

نج بھی کعبہ کا کیا اور گنگا کا اشنان بھی    خوش رہے رحمن بھی راضی رہے شیطان بھی

مګر دا دهغوی کم فهمی ده ، د دواړو په راضی کولو سره به خو شیطان راضی شی مګر رحمن به راضی نه شی ، هغه خو به هله راضی کیږی چه تاسو لااله الا الله وئیلو سره دهغې په مقتضیاتو باندې عمل وکړئ او چاله هم دهغه په عبادت کښې شریک نه کړئ ، او شیطان د الله تعالی

عبادت پرېښودل نه غواړي ، هغه خو صرف دومره غواړي چه څه دهغه هم عبادت وکړئ شي ، بهرحال په دې ورځو کښې د سنت نه ثابت خو صرف یو عبادت دې ، اوهغه روژه ده حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : د لسم محرم روژه ساتلوکښې دومره لوئ ثواب دې چه په هغې سره د تیرشوی کال گناه معاف کیږی ، محدثین حضرات فرمائی چه د دې صغائر گناهونه مراد دی ، د کبائرو دپاره توبه ضروری ده ، چا عرض وکړو چه یارسول الله ! په دې ورځو کښې خو یهودیان هم روژه نیسی نو وې فرمائیل چه که چرته زه آئنده کال ژوندې پاتې شوم نو یو بله روژه به ورسره هم یوځائ کوم ، ددې وجه نه لسمې سره یو بله روژه هم یوځائ کول پکاردی ، نهمه یا یولسمه .

**(۲) د محرم حقیقت** : دمنکراتو په اصلاح کښې خبره ددې ځائ نه روانیږی چه آیا دا میاشت معظمه اومحترمه ده اوکه منحوسه ده ؟ شیعه گان دې لره منحوسه گنی ، او وجه ددې داده چه دهغوی په نزد شهادت یو ډیر بد څیز اومنحوس دې ، اوچونکه د حضرت حسین رضی الله عنه شهادت په دې کښې وشو ددې وجه نه په دې کښې هغوی څه تقریب اود خوشحالئ کار واده ، نکاح وغیره نه کوی .

ددې برعکس د مسلمانانو په نزد دا میاشت محترمه اومعظمه اوفضیلت والا ده ، د محرم معنی ده محترم ، معظم او مقدس .

عام طور باندې دا خیال کیږی چه دې میاشتې ته ددې وجه نه فضیلت حاصل شو چه د حضرت حسین رضی الله عنه شهادت په دې میاشت کښې وشو دا غلطه ده ، ددې میاشتې فضیلت د اسلام نه وړاندې هم وو ، بنی اسرائیلو ته د حضرت موسی علیه السلام سره د فرعون نه نجات په دې ورځ وشو ، هغه ته نعمت باندې د شکر ادا کولو طور باندې په دې ورځ کښې د روژې نیولو حکم وشو . نورهم د فضیلت څیزونه په دې کښې شوی دی البته داسې به او وایو چه د حضرت حسین رضی الله عنه په شهادت کښې زیات فضیلت ددې وجه نه وشو چه داسې فضیلت والا میاشت کښې واقع شو .

چه کله دا ثابته شوه چه دا میاشت او ورځ افضله ده نو په دې کښې نیک کار زیات کول پکار دی ، د نکاح وغیره خوشحالئ تقریبات هم په دې کښې زیات کول پکار دی ، په دې کښې واده کولو سره برکت پیدا کیږی ، لیکن دا لویه خبره ده ، څکه چه د ډیرو ورځو نه دا غلطې خبرې مې په زړه کښې اوری را اوری ، خو د ډیرو کلونو زړې خبرې دومره زر نه اوځی رو رو به په ویستلو سره ووځی .

**(۳) د حضرت حسین رضی الله عنه شهادت** : د شهادت حسین رضی الله عنه حادثه اگرچه انتهائی دردناکه ده مگر شیعه گانو هغې لره د حدنه څه ډیره زیاته کړې ده ، د عامو مسلمانانو په ذهنونو کښې دا غلطه خبره کینولې شوې ده چه په دنیا کښې د شهادت حسین رضی الله عنه په شان

بله سخته واقعه نه ده واقع شوې ، حالانکه دهغې نه زيات دمظلوميت بې شميره واقعات دی ،
ومثال په طور باندې د حضرت عثمان رضی الله عنه شهادت وګورئ ، مدافعت باندې د پوره
قدرت لرلو باوجود ظلم عظيم باندې څنګه صبراو استقامت سره مرګ ته خان پيش کوی آيا دهغې
مثال به په دنياکښې چرته پيدا شی ؟ مګر مسلمانان دهغه خليفة الرسول صلی الله عليه وسلم د
دومره لوئ مظلوميت نه دومره بې خبره دی چه ګويا دا فرش او عرش لره خوزولو والا واقعه بيخی
تيره شوې نه ده ، آيا تاسو کله د يو سړی نه دهغه مظلوميت داستان بيانولوسره اوريدلې دې ، د
يو غوږ هغه طرف ته التفات ، کوم قلم لره دا دردناکه حادثه ليکلوسره ، د تاريخ په پاڼو باندې
دهغې تفصيل کتلودپاره ديونګاه توجه ، هغه مظلوميت باندې دچا په زړه کښې احساس درد
اوکومې سترګې لره ژړونکې ليدلې ده ؟ ددې نه زيات دحضورصلی الله عليه وسلم قدمونه
مبارک په وينوکښې ليت پيت کيدل ، د غاښونو مبارکو شهيد کيدل ، د چهرهٔ انور زخمی کيدل
اودهغه نه ، نه حصاريدلو والا وينه جاری کيدل ، د ګوتې نه وينه بهيدل او د ډيرو انبياء ګرامو
عليهم السلام شهيد کيدل ، د ټولې دنيا د اولياء الله وينه دنبی د يوې قطرې وينې برابر نه وی ،
مګر دلته خو ژبه ، غوږ ، قلم ، نګاه ، زړه او سترګې ټول هم په يو کرشمه کښې مست دی ، نه د يو
بل صحابی شهادت په شميرکښې ، نه ديو نبی ، غور وکړئ چه دا د شيعيت زهر نه دی نو ټور څه
دی؟

**(۴) حضرت حسين رضی الله عنه ته د امام ويلو څه حيثيت دې :**

د « امام » لفظ د اهلِ حق په نزد هم استعماليږی اود شيعه ګانو په نزد هم ، د اهلِ حق په نزد
دهغې معنی ده پيشوا ، رهبر او مقتدا ، اود اهلِ تشيع په نزد امام عالم الغيب او معصوم وی ،
دهغوی په نزد د امام درجه د نبيانو نه هم اوچته ده ، ظاهره ده چه ددې لفظ په استعمالولو کښې
موږ خو هم دهغه معنې لحاظ ساتو چه د اهلِ حق په نزد ده ، په دې اعتبار سره ټول صحابه ،
تابعين ، اولياء الله او علماء امامان دی ، ددې وجه نه امام ابوبکر صديق رضی الله عنه ، امام
عمرفاروق رضی الله عنه ، امام عثمان رضی الله عنه ، امام علی رضی الله عنه ، امام ابوهريره
رضی الله عنه وغيره ويئيل پکار دی ، حضورصلی الله عليه وسلم اوفرمائيل ، ((النجوم امنة للسماء
واصحابي امنة لامتي)) (رواه مسلم) څما ټول صحابه د ستورو په شان دی ، ټول په ټوله امامان دی ، دچا
چه غوارئ اقتدا وکړئ ، په هرستوری کښې رڼا ده ، دکوم نه چه غوارئ رڼا حاصله کړئ ، ټولو
صحابو رضی الله عنهم ته ئې امام اوويئيل په دې معنی سره ټول صحابه رضی الله عنهم او ټول
تابعين او علماء کرام هم امامان دی

د فکر خبره داده چه خلق امام ابوبکررضی الله عنه نه وائی ، امام عمررضی الله عنه نه وائی ،

امام حسن او امام حسین وائي ، نومعلومه شوه چه دا اثر په مسلمانانو کښې د بل طرف نه راغلې دي ، دا د تشیع اثر دي چه په مسلمانانو کښې ئې سرایت کړې دې ، که چرته اهلِ حق علماؤ کښې چا هغه حضراتو ته امام وئیلي دي نو هغوی په صحیحو معنو کښې هغوی ته امام وئیلي دي مګر په هغې سره مغالطه ضرور کیږي ، ددې وجه نه دهغې نه احتراز ضروري دې ، حضرت مهدي ته امام مهدي علیه السلام وئیل هم د شیعه ګانو اثر دې

(۵) **د علیه السلام اطلاق** : هم دغه شان هغوی ته علیه السلام هم هغه خلق وائي چه هغوی ته د انبیاء علیهم السلام درجه ورکوي ، دهغې نه هم احتراز لازم دې ، څنګه چه دنورو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره د عزت او احترام معامله کولې کیږي هم هغه معامله دهغه حضراتو سره هم پکار ده څنګه چه د حضرت ابوبکررضی الله عنه ، حضرت عمررضی الله عنه او د نورو صحابه کرامو رضی الله عنهم نومونو سره د رضی الله عنه دعائیه کلمات لیکلې او وئیلې کیږي هم دغسې دې دعائیه کلمات دحضرت حسین رضی الله عنه سره هم اووئیلې شي .

(۶) **د مسلمانانو په نومونو کښې د اهلِ تشیع اثر** : د مسلمانانو په نومونو باندې هم د اهلِ تشیع اثرمونډلې کیږي ، مثلاً د اصل نوم سره څنګه چه محض د تبرک دپاره د محمد او احمد یوځائ کولو دستور دې هم دغه شان علي حسن او حسین یوځائ کولې کیږي ، د صدیق ، فاروق ، عثمان یا د بل صحابي نوم بطور تبرک د اصل نوم سره د یوځائ کولو دستور نشته دې ، د غلامی نسبت هم دعلي ، حسن ، حسین طرف ته خو کولې کیږي مګر د بل صحابي غلامئ لره برداشت نه کولې کیږي ، ښځو کښې دکنیزِ فاطمه نوم خو مونډلې کیږي مګر د خدیجه ، عائشه اود نورو ازواجِ مطهراتو کنیز چرته نه اوریدلې کیږي ددې نه زیات مسلمانانو کښې د الطاف حسین ،فضل حسین او د فیض الحسین په شان شرکیه نومونه هم په کثرت سره مونډلې کیږي .

(۷) **محرم کښې د ایصالِ ثواب دپاره خوراک پخول** : د محرم په میاشت کښې بالخصوص نهم ، لسم او یولسم تاریخ کښې خوراک پخولوسره دحضرت حسین رضی الله عنه روح ته ایصالِ ثواب کوي ، دا طریقه غلطه ده ، د ایصالِ ثواب د ټولو نه افضل طریقه دا ده چه دخپل وسعت مطابق نقد رقم په یو کارِ خیر ولګوې یا یو مسکین ته یې ورکړې دا طریقه ځکه افضل ده چه په دې سره به مسکین هر حاجت پوره کړې شي ، او که چرته نن هغه ته څه ضرورت نشته نو د سبا د ضرورت دپاره یې ایښودلې شي ، همدارنګه دا صورت د ریا نه پاک دې ، حدیث کښې د مخفي صدقې ورکولو والا دا فضیلت راغلې دې چه داسې سړی ته به الله تعالی د قیامت په ورځ دخپل رحمت په سوري کښې ځائ ورکوي په هغه وخت به بل سوری نه وي او د ګرمئ په سبب به خلق په خولو کښې غرقیږي، دفضیلت په لحاظ سره دویمه درجه باندې دا صورت دې چه د مسکین د حاجت مطابق دې هغه ته صدقه ورکړې شي ، یعنې د هغه ضرورت لره کتلو سره دې هغه پوره کړئ

شي ، دا د ایصالِ ثواب صحیح طریقې دي اوس د مروجه طریقو قباحتونه واورئ:

(۱) کومو ارواحو ته چه ایصالِ ثواب کولې کیږي که چرته هغوي لره د نفع او نقصان مالک وګڼلې شو نو دا شرک دې او داسې خوراک «**ما اهل لغیرالله به**» کښې د داخلیدلو د وجه نه قطعي حرام دې.

(۲) عموماً دا خیال کولې کیږي چه کوم څیز په صدقه کښې ورکولې کیږي مړي ته بعینه هم هغه ملاویږي دا خیال بالکل باطل او لغو دې مړي ته هغه څیز نه رسي بلکه دهغې ثواب رسي «**لن ینال الله لحومها ولا دماؤها ولکن یناله التقوی منکم**» کښې صراحت دې چه د الله تعالی په نزد د قربانئ د خاروي غوښه او څرمنه نه رسیږي بلکه دهغې ثواب رسیږي.

(۳) ایصالِ ثواب کښې خپل طرف نه دا قیود لګولې شوي دي ، د صدقې متعین صورت یعنې طعام ، میاشت متعینه ، ورځ متعینه ، حالانکه شریعت ددې څیزونو تعیین نه دې فرمائیلې ته چه کله غواړې او څه چه غواړې صدقه کولې یې شې ، د شریعت درکړې شوې آزادی باندې خپل طرف نه پابندیانې لګول سخته ګناه او بدعت دې بلکه د شریعت مقابله ده .

(۸) **د شهادت قصې اوریدل او اورول** : په دې میاشت کښې د نورو خرافاتوسره یو داهم دې چه په دې میاشت کښې مجلسونه او جلسې کولې کیږي چه په هغې کښې د شهادت قصې اورولې کیږي ، په هغې کښې یو ګناه خو داده چه د اهلِ باطل سره مشابهت کیږي چه شرعاً منع دې چنانچه چه کله د لسم محرم د روژې په باره کښې بارګاهِ رسالت کښې دا عرض وکړې شو چه په دې کښې یهود روژه نیسی نو وې فرمائیل چه یوه روژه بله یوځائ کړئ ، نهمه یا یولسمه . عبادت کښې ئې هم د مشابهت اجازت ورنه کړو .

په دې مجالسو کښې بل قباحت دادې چه د شهادت قصې اوریدلوسره بزدلی پیدا کیږي او په مسلمانانو کښې د بزدلۍ پیدا کیدل داسلام د تقاضو خلاف دی اسلام خو دا غواړي چه په مسلمانانو کښې اوچت همت پیدا شي ، هم دا وجه ده چه په قربانئ کښې دا حکم دې چه څناور پخپل لاس سره ذبح کړئ ، اوکه نه نو د ذبحې په وخت کښې موجود اوسئ ، په دې کښې هم دا حکمت دې چه په مسلمانانو کښې اوچت همت اوقوتِ قلب پیدا شي ، ظاهره ده چه کوم سړي پخپلو سترګو سره چیلئ لره د ذبح کولو په وخت نه شي کتلې هغه به دښمن لره څه قتل کړې شي ؟

د اسلامي کال ابتداء دکوم ځائ نه وشوه ؟ د ټولو اتفاق په دې باندې وشو چه دهجرت نه د اسلامي کال ابتداء وکړې شي ،په دې کښې هم داحکمت وو چه هجرت لره اوریدلوسره په مسلمانانو کښې اوچت همت پیدا شي اود دین په خاطر د محنت اومشقت برداشت کولو جذبه پیدا شي ، ددې برعکس میلاد نه ابتدا کولوکښې لهو اولعب کښې د اشتغال او غفلت خطره وه اود وفات نه شروع کیدلو کښې غم او بزدلي پیدا کیدله ، جنګِ بدر کښې دکافرانو اویا سرداران

مردار شو مگر مکه کښې نورو سردارانو اعلان وکړو چه خبردار څوک به نه ژړا کوي اونه به ماتم کوي ، چنانچه په هغې باندې عمل وکړې شو ، دا اعلان ځکه کړې شوې وو چه بزدلي پیدا نه شي.

همدارنګه دا ژړیدونکي واقعات چه په دې میاشتو کښې اورولې کیږي اکثر غلط دي ددې وجه نه دهغې اوریدل هسې خو هم ناجائز دي ، تاریخ باندې د اهلِ تشیع تسلط ، دهغه تقیه بازمنافقینو په مسلمانانو کښې وردننه کیدلو سره د دروغو روایاتو اشاعت کول اود مسلمانانو د آلِ رسول صلی الله علیه وسلم نه دغیرمعمولی محبت او عقیدت د وجه نه د مظلومیت هرداستان باندې صحیح باورکول داسې امور دي چه دهغې د وجه نه د شهادت د واقعې د صحیح حقیقت انکشاف ناممکن دې تردې پورې چه په ظاهره معتبراومستند کتابونوکښې لاندې تفاصیل هم قابلِ اعتماد نه دي اکثرروایات په خپل مینځ کښې د تضاد اود عقل اواصولِ شرع خلاف کیدلو د وجه نه یقیناً غلط دي ، بلکه د نفسِ شهادت نه سوا دهغې د تفصیل شاهد یوجزئیه داسې وی چه دهغې په صحت باندې پوره اعتماد وکړې شی ، د حضور صلی الله علیه وسلم د جګر ټکړو لره شیهد کولو والا پخپل هغه شقاوت باندې پرده اچولو او حقیقت لره د مسخ کولو په غرض سره دروغژن روایات وضع کولوکښې پخپل خاص مهارت سره پوره کار اخستلې دې.

(۹) **د تعزیه جلوس اود ماتم مجلس کتل** : په دې ورځو کښې د مسلمانانو کثیرتعداد د ماتم مجلس اود تعزیه جلوس نظاره کتلو دپاره جمع کیږي ، په هغې کښې ډیر ګناهونه دي ، یو داچه په هغې کښې د دښمنانِ صحابه رضی الله عنهم اود دښمنانِ قرآن سره تشبه ده ، د حضور اکرم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې ((**من تشبه بقوم فهو منهم**)) چا چه دکوم قوم سره مشابهت وکړو هغه به هم په هغوی کښې شمیرلې کیږي ، د «هولی» په ورځو کښې یو بزرګ روان وو هغوی د خندا په طور باندې په یو خرباندې د پان رنګدارې لارې اچولو سره اوفرمائیل چه تاباندې څوک رنګ نه اچوی واخله تاته زه رنګ درکوم ، د مړ کیدلو نه پس دهغه ګرفت وشو چه تا «هولی» کوله او په عذاب کښې ګرفتاره شوې.

دویمه ګناه داده چه په هغې سره دهغه دښمنانِ اسلام مزه زیاتیږي ، د دښمنانو مزه زیاتول لویه ګناه ده . حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ((**من کثرسوادقوم فهو منهم**)) چا چه د یو قوم رونق لره زیات کړو هغه هم په هغوی کښې دې.

دریمه ګناه داده چه څنګه عبادت ته کتل عبادت دې هم دغه شان ګناه ته کتل هم ګناه ده یوځلې خینوصحابو رضی الله عنهم د جهادمشق کولو ، حضرت عائشې رضی الله عنها دهغوی هغه عبادت لره د کتلو خواهش ښکاره کړو ، حضوراکرم صلی الله علیه وسلم دهغې دومره اهتمام اوفرمائیلو چه دوی د پردې په غرض سره پخپله اودریدل ، حضرت عائشه رضی الله عنها د دوی نه وروستو

په پرده کښې اودریدلو سره د دوی صلی الله علیه وسلم په اوږه باندې کتل ، حضرت عائشه رضی الله عنها دهغه عبادت د نظارې نه مړیدلو سره چه کله پخپله اخوا شوه نو بیا حضورصلی الله علیه وسلم اخوا شو ، غرض داچه عبادت ته کتل هم عبادت او گناه ته کتل هم گناه ده .

څلورمه گناه داده چه په هغه مقام باندې د الله تعالی غضب نازلیږی ، داسې غضب والا ځائ ته تلل لویه گناه ده ، یو ځلې حضوراکرم صلی الله علیه وسلم اود صحابه کرامو رضی الله عنهم تیریدل د داسې کلی په کنډراتو باندې وشول چه هغوی باندې عذاب راغلې وو ، حضورصلی الله علیه وسلم پخپل سرمبارک باندې څادر واچولو او سورلئ لره ئې ډیره تیزولو سره دهغه مقام نه په تلوارې سره تیرشو ، چه کله سید الاولین والاخرین رحمة للعالمین حبیب رب العالمین صلی الله علیه وسلم غضب والا ځائ نه د بچ کولو دومره اهتمام کولو نو د عوامو به څه حشر وی ، سوچ کول پکار دی ، که چرته د الله د دښمنانو په په ډغو ځایونو هغه وخت یوعذاب راغلو نو آیا صرف د نظارې کتلو دپاره جمع کیدلو والا مسلمانان به دهغه عذاب نه بچ شی ؟ هیچرې نه بلکه عذاب آخرت کښې به هم دا خلق دهغوی سره وی ، الله تعالی دې مستحق عذاب جوړیدونکی بدعملو نه د بچ کولو توفیق راکړی ، آمین

دا خیال دې هم وی چه څنگه مبارکو ورځو کښې د عبادت زیات ثواب دې هم دغه شان په هغه ورځو کښې معصیت اوگناه باندې زیات عذاب دې .

(۱۰) **د لسم محرم رخصتی کول** په هغه ورځ رخصتی کولو کښې ډیر قباحتونه دی : یو داچه په هغې کښې د اهلِ تشیع سره تشبه ده ، بلکه دهغې نه هم څه زیات دهغوی تائید اوتقویت دې .

دویم قباحت دادې چه هغه ورځ شیعه گان دخپل مذهب دپاره د زیات مشقت اود زیات محنت مظاهره کوی ، دهغې برعکس مسلمانان د ټول دنیاوی او دینی کارونو رخصتی کولو سره دخپل بیکاروالی او بې همتئ مظاهره کوی .

دریم قباحت داچه د رخصتی د وجه نه اکثرمسلمانان د جلوسونو او د ماتم مجلسونوته ځی . چه هغې باندې د ډیرو گناهونو بیان پورته نمبر۹ کښې تیرشو .

(۱۱) **په لسم محرم کښې په اهل اوعیال باندې د رزق فراخی** : دا حدیث وئیلې کیږی چه په دې ورځ اهل اوعیال باندې وسعتِ رزق وکړئ نو پوره کال به وسعتِ رزق وی ، **((من وسع علی عیاله یوم عاشوراء وسع الله علیه السنة کلها))** ، دې لره مشهور محدثینوغیر ثابت گرځولې دې ، بفرضِ ثبوت ددې نه څکه احتراز لازم دې چه خلق دې لره ثواب گنی حالانکه شریعت په دې کښې ثواب نه دې رنیلې ، دې لره ثواب گنلوسره دا بدعت جوړیږی (**کل بدعة ضلالة وکل ضلالة فی النار**) که چرته څوک دا اووائی چه زه خو دا کار صرف د وسعتِ رزق دپاره کوم ، زه هغې لره د ثواب په نیت باندې

نه کوم نوهغه ته به او وئیلې شي چه ستا ددې فعل نه دهغه خلقو تائید کیږی چه د ثواب په نیت سره یی کوی داسې وخت کښې د فقهې د قاعدې مطابق دهغې ترک واجب دې . چنانچه حکم دې ((اذا تردد لحکم بین سنة وبدعة فترکه واجب)) چه کله معامله سنت او بدعت کښې دائره وی نو ترک واجب دې او دلته خو معامله د سنت او بدعت نه ده بلکه د جائز اوبدعت ده دلته خو بطریقِ اولی ترک واجب دې .

دویم قباحت دادې چه په دې ورځ شیعه گان د حسین د نیاز دیگونه پخوی چه شرک دې او دهغې خوراک حرام دې ، ددې وجه نه هغه موقع باندې بناسته خوراک پخولو کښې د شیعه گانو د عقیدې او عمل تائید کیږی .

همدارنگه د وسعتِ رزق نورهم ډیرې نسخې دی چه په هغې کښې د ټولو نه لویه نسخه د گناهونونه بچ کیدل او توبه استغفار دې ، دا نسخهٔ اکسیرد قرآن اود حدیثو د نصوصِ صریحه نه ثابته ده دې لره پرېښودلو سره خوراک څښاک والا نسخه استعمالولې کیږی . وجه داده چه دا خوږه ده او هغه ترخه ده ، مگر یاد ساتئ چه ترڅو پورې د الله تعالی د نافرمانئ اود گناهونو د ژوند نه توبه کولو سره خپل مالک لره راضی نه کړئ یونسخه هم فائده منده نه ده ، شعر :

کسی کو رات دن سرگرم فریاد و فغاں پایا
کسی کو فکر گوناگوں سے ہردم سرگراں پایا
کسی کو ہم نے آسودہ نہ زیرِ آسماں پایا
بس اک مجذوب کو اس غمکدہ میں شادماں پایا
غموں سے بچنا ہو تو آپ کا دیوانہ ہو جائے

الله تعالی دې مونږ ټولو لره د دین صحیح فهم اودکاملې اتباع نعمت راکړی آمین

چونکه ذکر شوو منکراتو کښې داکثرو تعلق د محرم د میاشتې سره دې او عذاب هم په هغې زیات دې ددې وجه دهغې مجموعې نوم تغلیباً «منکراتِ محرم» تجویز کوم .

# كتاب العلم والعلماء

## د يو عالم يا بزرگ لاس ښكلول

**سوال**: د لاسونو اوښپو ښكلولو جواز د احاديثو نه ثابت دي او انحناء (سر ټيټول) ناجائز ده نو دا تقبيل د انحناء نه بغير د عالم او ولی دپاره په كوم كيفيت او طريقې سره وكړې شی چه په هغې كښې د فتنة الناس ويره هم نه وی ، دلائل عقليه اونقليه سره د عربی كتابونو د عباراتو نه وليكئ .بينواتوجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: رومبې د فقه اوحديث عبارات نقل كيږی بيا به هغې باندې احكام مرتب كيږی :

«**القسم الاول**» (۱) وكره تحريما قهستانی تقبيل الرجل فم الرجل اويده (الی قوله) عند لقاء اووداع وهذا لوعن شهوة واما علی وجه البر فجائز عند الكل وفی الاختيار عن بعضهم لاباس به اذا قصد البر وامن الشهوة كتقبيل وجه (در)

(۲) وفی الحقائق لوالقبلة علی وجه المبرة دون الشهوة جاز بالاجماع (در)

(۳) قال الامام العينی بعد كلام فعلم اباحة تقبيل اليد والرجل والراس والكشح كما علم من الاحاديث المتقدمة اباحتها علی الجبهة وبين العينين وعلی الشفتين علی وجه المبرة والاكرام

(۴) قدم عن الخانية والحقائق ان التقبيل علی سبيل البر بلاشهوة جائز بالاجماع (رد)

(۵) وفی المحيط ان لتعظيم اسلامه واكرامه جاز وان لنيل الدنيا كره (رد)

(۶) وسياتی ان قبلة يد المؤمن تحية توفيقا بين كلامهم ولا يقال حالة اللقاء مستثناة لانا نقول حيث ندب ليها الشارع عليه السلام الی المصافحة علم انها تزيد علی غيرها فی التعظيم فكيف لاتساويها .سأتحانی (رد)

(۷) وقبلة التحية للمؤمن من علی اليد (رد)

«**القسم الثانی**» (۱) وفی حديث رواه البزار مسندا عن بريدة سال اعرابی النبی صلی الله عليه وسلم اية فقال له قل لتلك الشجرة رسول الله صلی الله عليه وسلم يدعوك قال فمالت الشجرة عن يمينها وشمالها وبين يديها وخلفها فتقطعت عروقها ثم جاءت تخد الارض تجر عروقها مغبرة حتی وقفت بين يدی رسول الله صلی الله عليه وسلم فقالت السلام عليك يا رسول الله فقال الاعرابی مرها فلترجع الی منبتها فدلت عروقها فاستوت فقال الاعرابی ائذن لی اسجد لك قال لوامرت احدا ان يسجد لاحد لامرت المراة ان تسجد لزوجها قال

فاذن لی اقبل یدیک ورجلیک فاذن له ای فی تقبیل یدیه ورجلیه فقبلهما وفیه دلیل علی جواز تقبیل الید والرجل من الفاضل للمفضول اذا کان لزهده وصلاحه اوعلمه وشرفه ولیس بمکروه بل یستحب اذا کان تعظیمه لامر دینی کما قال النووی فی الاذکار فان کان لامر دنیوی فهو مکروه وقد ورد فی احادیث کثیرة صحیحة تقبیل ید النبی صلی الله علیه وسلم وبهذا رد علی المتولی من ائمة الشافعیة حیث اطلق القول بعدم جوازه (نسیم الریاض شرح الشفا للقاضی عیاض لشهاب الدین الخفاجی ج ص)

(٢) عن زارع وکان فی وفد عبد القیس قال فجعلنا نتبادر من رواحلنا فنقبل ید النبی صلی الله علیه وسلم ورجله الخ (ابو داود باب فی قبلة الجسد ج ص)

(٣) ولا بأس بتقبیل ید الرجل للعالم والمتورع علی سبیل التبرک (الی قوله) وقیل سنة (رد)

(٤) وقوله وقیل (سنة) ای تقبیل ید العالم والسلطان العادل قال الشرنبلالی وعلمت أن مفاد الاحادیث سنیته اوندبه کما اشار الیه العینی (رد)

((**القسم الثالث**)) : (١) المکروه محبة القیام لمن یقام له (ردا قلا عن مشکل الآثار)

(٢) وما ورد من التوعد علیه فی حق من یحب القیام کما یفعله الترک والاعاجم (ردا قلا عن ابن وهبان)

(( **القسم الرابع** )) (١) کذلك ای مثل السجدة الانحناء علی هیئة الرکوع نهیا عنه (الشفاء للقاضی عیاض ج ص)

(٢) کاد الانحناء ان یکون کفرا (حاشیه مکتوبات امام ربانی (فتر اول ص)

(٣) وفی الزاهدی الایماء فی السلام الی قریب الرکوع کالسجود (رد)

(٤) وفی المحیط انه یکره الانحناء للسلطان وغیره اه (رد المحتار)

د اول قسم عباراتو نه معلومه شوه چه د عوامو مسلمانانو د لاسونو ښکلول جائز دی ، په دویم قسم سره ثابته شوه چه د علماؤ اود متورعینو د لاسونو ښکلول مسنون یا مندوب دی ، دریم قسم کښې دی چه د بل چا ودریدل دخان لپاره خوښول مکروه دی ، قیاساً علیه تقبیل الید من الغیر لره خوښول هم مکروه شو ، موجوده دورکښې عموماً محبت تقبیل اوقیام بدرجه اتم موندلې کیږی ، لهذا تعظیم نفس لره محبوب لرلو والا د وعید مستوجب دی.

څلورم قسم سره ثابته شوه چه انحناء (سر ټیټول) مکروه ده ، باقی پاتې شو دا اشکال چه تقبیل بلاانحناء ممکن نه دې نوجواب دادې چه :

(١) تقبیل کښې انحناء مقصود نه ده ، قصداً انحناء للتعظیم ناجائز ده ، مطلقاً انحناء ممنوع نه ده اونه دهغې نه تحرز ممکن دې ، چرته دیو ضرورت د وجه نه انحناء پیښیږی ، مثلاً یو څیز

اوچتولودپاره ، اینښودلو دپاره ، څه کتلودپاره وغیره ، ددې د عدم جواز چاته هم وهم نه شی کیدلی ځکه چه انحناء مقصود نه ده .

(۳) انحناء قریب الی الرکوع ناجائز ده ، معمولی غوندې انحناء ممنوع نه ده څنګه چه د څلورم قسم په عبارت نمبر ۱ او نمبر ۳ کښې ښکاره دی ، فقط والله تعالی اعلم . ۲۵ذی قعده ۷۱ هجری

## د ښځې او والدینو (مور اوپلار) د اجازت نه بغیر د طلب علم دپاره سفر کول

**سوال** :- څه فرمائی علماء دین دې باره کښې چه د یو سړی والدین اودهغه ښځه د طلب علم دپاره هغه ته د سفر کولو اجازت نه ورکوی ،نو آیا هغه صورت کښې دا سړې د طلب علم دپاره سفر وکړی اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د علم شرعی درې قسمونه دی : (۱) فرض عین (۲) فرض کفایه (۳) مندوب .

د مونځ روژې وغیره د مسائلو علم فرض عین دې او د ضروری فرائضو اود روزمره د معاملاتو د علم نه زیات علم حاصلول فرض کفایه دې اوتعمق فی العلم مندوب دې ، پس که چرته د سفر د وجه نه د والدینو یا د اولاد د ضائع کولو ویره وی یعنې هغه پخپله غنی نه وی او دهغوی حفاظت کولو والا څوک نه وی نوپه هغه صورت کښې د طلب علم دپاره مطلقاً (خواه فرض عین وی یا فرض کفایه ) سفر دې نه کوی ، البته که چرته طالب العلم سړې وی او پلار یې د خوف فتنې د وجه نه منع کوی نو بهرحال اطاعت ضروری دې هم داسې که چرته داسې سفر وی چه په هغې کښې د هلاکت ویره وی نو بیا هم د والدینو اطاعت لازم دې .

علم مندوب کښې بهرحال د والدینو اطاعت اولی دې اود ښځې په اطاعت کښې خودمختاره دې . قال فی شرح التنویر واعلم ان تعلم العلم یکون فرض عین وهو بقدر ما یحتاج لدینه وفرض کفایة وهو مازاد علیه لنفع غیره ومندوبا وهو التبحر فی الفقه وعلم القلب الخ (شامیه ج)

وفی حظر شرح التنویر وله الخروج لطلب العلم الشرعی بلا اذن والدیه لو ملتحیا وتمامه فی الدرر وفی الشامیة (قوله وله الخروج الخ ) ای ان لم یخف علی والدیه الضیعة بأن کانا موسرین ولم تکن نفقتهما علیه وفی الخانیة ولو اراد الخروج الی الحج و کرها ذلك قالوا ان استغنی الاب عن خدمته فلا بأس والا فلا یسعه الخروج وان احتاجا الی النفقة ولا یقدر ان یخلف لهما نفقة کاملة او امکنه الاان الغالب علی الطریق الخوف فلا یخرج ولو الغالب السلامة یخرج وفی بعض الروایات لا یخرج الی الجهاد الا باذنهما ولو اذن احدهما فقط لا ینبغی له الخروج

لان مراعاة حقهما فرض عين والجهاد فرض کفایة (الی ان قال) هذا فی سفر الجهاد فلو فی سفر تجارة او حج لا باس به بلا اذن الابوین ان استغنیا عن خدمته اذلیس فیه ابطال حقهما الا اذا کان الطریق مخوفا کالبحر فلا یخرج بلا اذنهما وان استغنیا عن خدمته ولو خرج المتعلم وضیع عیاله یراعی حق العیال اه (شامیه ج٥) فقط والله تعالی اعلم ٢٠ محرم سنه ١٣٩٠هجری

## ښځه خوانه پرېښودل او د طلب علم دپاره سفر کول

**سوال** :- دیو سړی ښځه ځوانه ده ، او هغه ښځه پرېږدی او د طلبِ علم دپاره سفر اختیاروی او په ټول کال کښې کورته نه راځی ، آیا دهغه دپاره دا امر جائز دې او که له ښځې سره اوسیدل واجب دی ، بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د ښځې نفقه او هرو څلورمیاشتو کښې یوځلې جماع کول خاوند باندې واجب دی ، بس که چرته خاوند ددې حقوقو په تکمیل کښې کوتاهی نه کوی نود طلبِ علم دپاره په سفر تلل جائز دی ، البته که چرته ددې باوجود د ښځې دپاره د فتنې مظنه نه وی نو سفر کښې پاتې کیدل جائز نه دی . قال فی شرح التنویر ویسقط حقها بمرة ویجب دیانة احیانا ولا یبلغ مدة الایلاء الا برضاها ، وفی الشامیة تحت (قوله ویسقط حقها بمرة) واما طالبته یجب علیه ویجبر علیه فی الحکم مرة والزیادة تجب دیانة لا فی الحکم عند بعض اصحابنا وعند بعضهم تجب علیه فی الحکم اقول وبه علم انه کان علی الشارح ان یقول ویسقط حقها بمرة فی القضاء ای لانه لو لم یصبها مرة یؤجله القاضی سنة ثم یفسخ العقد اما لو اصابها مرة لم یتعرض له لانه علم انه غیر عنین وقت العقد بل یامره بالزیادة احیانا لوجوبها علیه الا لعذر مرض او عنة عارضة او نحو ذلك وسیاتی فی باب الظهار ان علی القاضی الزام المظاهر بالتکفیر دفعا للضرر عنها بحبس او ضرب الی ان یکفر او یطلق وهذا ربما یؤید القول المار بانه تجب الزیادة علیه فی الحکم فتامل وایضا فیها تحت (قوله ولا یبلغ مدة الایلاء) ان عمر رضی الله عنه لما سمع فی اللیل امراة تقول : شعر :

فوالله لولا الله تخشی عواقبه     لزحزح من هذا السریر جوانبه

فسال عنها فاذا زوجها فی الجهاد فسال بنته حفصة کم تصبر المراة عن الرجل فقالت اربعة اشهر فامر امراء الاجناد ان لا یتخلف المتزوج عن اهله اکثر منها ولم لم یکن فی هذه المدة زیادة مضارة بها لما شرع الله تعالی الفراق بالایلاء فیها (رد المحتار باب القسم ج٢) فقط والله تعالی اعلم جمادی الاولی سنه ١٣٩٠هجری

## متقدمینو او متاخرینو کښې حد فاصل

**سوال**:- د متقدمینو او متاخرینو حضراتو چه یوه مشهوره اومعروفه اصطلاح ده دهغوی حد فاصل څه دي ؟ کوم حده پورې متقدمین وئیلي کیږي او کوم حده پورې متاخرین؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: المراد بالمشائخ فی قولهم هذا قول المشائخ من لم یدرك الامام كذا فی وقف النهر والمراد بالمتقدمین من فقهائنا هم الذین ادركوا الائمة الثلاثة ومن لم یدركهم فهو من المتأخرین هذا هو الظاهر من اطلاقاتهم فی كثیر من المواضع (الی ان قال) وذكر الذهبی فی مفتتح كتابه میزان الاعتدال فی نقد اسماء الرجال الحد الفاصل بین المتقدمین والمتأخرین هو راس ثلاث مائة الخ (مقدمة عمدة الرعایة فی حل شرح الوقایه ص۱۰)

په ظاهره د ((ادركوا الائمة الثلاثة)) نه ((احد الائمة الثلاثة)) مراد دې ، په دې صورت کښې به د ذهبي د قول سره مطابقت پیدا شي څکه چه د صاحبینو رحمهم الله تعالی وفات د دویمې پیړئ په آخرکښې شوې دې ، پس دهغه دویمې صدئ د اختتام پورې چه دکومو حضراتو ولادت شوې وی هغوی به متقدمین وی اود دریمې پیړئ د شروع نه به د متاخرینو دور شروع وی ، فقط والله تعالی اعلم ۲ربیع الاخرسنه ۸۷ هجری

## د خلقو شرمنده کولو دپاره علم زده کول

**سوال**:- که چرته یو سړې علم محض خلقو لره د شرمنده کولو دپاره وائی دهغې څه حکم دې ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حدیث کښې د داسې سړی په باره کښې ډیرسخت وعید دې ، حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: ((من طلب العلم لیجاری به العلماء اولیماری به السفهاء اویصرف به وجوه الناس الیه ادخله الله النار)) (مشكوة ص۳۴) فقط والله تعالی اعلم ۲۰جمادی الاولی ۹۰هجری

## تعلیم پرېښودل او د تبلیغ دپاره وتل

**سوال**:- یو قاری صاحب قرآن کریم خلقوته ښائي اوډیر هلکان ورسره حفظ کوی ، او اکثر ناظره وائی ، د خلوېښتو ورځو دپاره تبلیغی جماعت کښې تلل غواړی زیات ثواب او ضروری ګڼلوسره، دا اوواٸې چه د قرآن په ښودلو کښې زیات ثواب دې اوکه تبلیغی جماعت کښې تلل زیات ثواب دې ، بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مدرسې مهتمم او مدرسین اجرت باندې کار کوی لهذا معروف

تعطیل نه زیات وخت دپاره غائبیدل او کار نه کول ناجائز دي ،د غیر حاضری ورځو تنخوا دهغه دپاره حلاله نه ده دا د عام ملازم حکم دې ، د مدارسِ عربیه ملازمینو لره که شرعی ګنجائش هم وی نو بیا هم دهغوی دپاره د تعلیم کار پریښودلو سره د تبلیغ کار به ښنګه چلیږی ، دتبلیغ کار اګر چه انتهائی ضروری دې لیکن د اسلامی تعلیم سلسله ددې نه هم زیاته اهمه ده بلکه دا هم د تبلیغ یو بنیادی شعبه ده ، د جماعتِ تبلیغی سربراه د تبلیغ دپاره د تدریس اود تعلیم پریښودلو هیچرې اجازت نه ورکوی ، فقط والله تعالی اعلم

۱۳صفر سنه ۹۲ هجری

## د غیرِ عالم دپاره د دلیل طلب جائز نه دې

**سوال** :- چا د قرآن او حدیثو نه غلط استنباط او قیاساتِ فاسده باندې مشتمل یو اوږد مضمون د تصویب لپاره را ولیږلو ، چه په هغې کښې ئې دا هم لیکلی وو :

«زه بی اے یم ترڅنه پورې د یو استاذ نه مې د قرآن ناظره هم ونه وئیله ، دینی تعلیم خو صفر دې» ، ددې جواب لاندې ذکر کیږی

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دنیاکښې دا اصول مسلم او متفق دی چه د هرفن د تحصیل دپاره اهلِ فن سره تر یو معلوم وخت پورې پاتې کیدلو او له هغه نه استفاده کول شرط دی ، مثلاً تاسو خو د ډاکټر نه علاج بهرصورت کولې شئ مګر دهغه د تشخیص او تجویز دلائل معلومولو مجاز نه یئ ، که چرته د ډاکټرنه معلوموئ نو هغه به د علاج نه جوابی شی، البته که چرته هغه فن لره باقاعده حاصلول غواړې نو هیڅ ممانعت نشته مګر دهغې دپاره یوڅو شرائط دی مثلاً په امتحان کښې اعلی نمبرو باندې کامیاب شوې ئې بیا یو مستند میډیکل کالج کښې دې داخله اخستلې وی ، د ماهرینو په نګرانئ کښې دې تمرین کړې وی اود نصاب د تکمیل نه پس امتحان کښې کامیاب شوې ئې ، هم دغه شان تاسو د هروکیل نه د قانون پوښتنه خو کولې شئ مګر د دلائلو د پوښتنې اجازت نشته ، البته که د وکالت نصاب باقاعده وائې نو بیا دلائل په پوهه کښې راتللې شی ، بعینه هم دغه شان علم دین لره هم وګنئ چه عوام مفتیانِ کرام نه د شریعت د قانون پوښتنه کولې شی د طلبِ دلائل مجاز نه دی البته که چرته چاته د علمِ دلائل شوق وی نو رومبې دې پنځلس کاله یو مستند دینی درسګاه کښې داخله اخستلوسره دې د نصابِ عام تکمیل کولوسره اعلی نمبرو باندې کامیابی حاصله کړی بیا د افتاء په درجهٔ تخصص کښې د دوو کالو دپاره دې داخله واخلی په هغې کښې محنت کولوسره دې امتیازی کامیابی حاصله کړی بیا د ماهرینِ فن په نګرانئ کښې دې څه موده کار وکړی دهغې نه پس امید دې چه دلائلو باندې د پوهیدلو صلاحیت پکښې پیدا شی ، فقط والله تعالی اعلم

غره ذیقعده ۹۷ هجری

## (رسائل)

بسم الله الرحمن الرحیم

فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّکْرِ اِنْ کُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ

| | |
|---|---|
| گراز بسیط زمیں عقل منعدم گردد | بخود گمان نبرد ہیچ کس کہ نادانم |
| گر ہمیں اجتہاد خواہی کرد | کارِ ملت تمام خواہد شد |

# السبک الفرید لسلک التقلید

- د تقلید شخصي ضرورت
- بضرورت عمل بمذهب غیر

| | |
|---|---|
| پس رہے راکہ زفتنی تو ہیچ | ہیں مرو تنہا ز رہبر سر مپیچ |
| یار باید راہ را تنہا مرو | از سرِ خود اندریں صحرا مرو |

## د تقلیدِ شخصي ضرورت

**سوال:**- نن سبا بعضې نوی تعلیم یافته ځوانان دا وائی چه د تقلید شخصي څه ضرورت دې؟ چه کله ائمه اربعه برحق دی اود حدیث نه دا معلومیږی چه نبی کریم علیه الصلوة والتسلیم په دوو کارونوکښې به چه کوم کار آسان وو هغه به ئې اختیارولو نو مونږ هم داسې ولې ونه کړو چه په مسائلو کښې ائمه اربعو کښې چه دکوم امام مذهب زیات آسان وی دهغې مطابق به عمل کوُو ، ددې څه ضرورت دې چه مثلاً حنفی هغه مسئله کښې هم په کومې باندې چه عمل ګران وی د امام اعظم رحمه الله په مذهب باندې عمل وکړی اود بل امام په مذهب باندې عمل نه کوی ، چه دهغوی په نزد هغه مسئله کښې آسانی وی ، په دې سلسله کښې هغوی دا هم وائی چه د آخرمفقود الخبر مسئله کښې حضرت حکیم الامت او نورو حنفی علماؤ دحضرت امام مالک رحمه الله په مذهب باندې د عمل کولو اجازت ورکړې دې ، علاوه ددې نه هغوی د حضرت حکیم الامت دا ذکر شوی الفاظ هم پخپل تائید کښې پیش کوی .

"وې فرمائیل چه زما اراده وه چه یوه رساله داسې ولیکم چه عوام په هغې کښې مد-"

چرته هغه په کوم مذهب کښې هم جائز وی نودهغې اجازت ورکړم . دې دپاره چه دمسلمانانو قول په کومه یوه طریقه جائز شی . د مولانا ګنګوهی نه ئې پوښتنه وکړې شوه نو هغوی اجازت ورکړو . مولانا حنفی ډیر سخت وو مګر عوامو باندې ئې شفقت هم ډیر وو . ما خو داسې رساله نه ده لیکلې مګر بعضې بعضې مسائل حوادث الفتاوی کښې داسې راغلی دی » الخ «ماثرحکیم الامت ص ۲۲۹ ملفوظ نمبر ۲۷۰».

په دې سلسله کښې دا لاندینی امور د پوښتنې تقاضا کوی :

«۱» د یو امام مقلد ته د سهولت په غرض سره د دویم امام په مذهب باندې عمل کولو کښې څه مفاسد دی ؟

«۲» آیا د مفقود الخبر په مسئله کښې د بل امام په مذهب باندې د عمل کولو اجازت ورکولو سره «حالانکه ددې جواز فتوی غالباً ډیرو کلونو پورې دعلماء مالکیه نه د طویل مراسلت او مکاتبت نه پس د علماء احنافو پخپل مینځ کښې د صلاح مشورې نه ورکړې شوې وه » عام سړی ته هره مسئله کښې دا اجازت ورکولې کیدلې شی چه دکوم امام مذهب باندې عمل کولو کښې اسانی وګنی په هغې باندې عمل وکړئ ؟

«۳» د عدم جواز په صورت کښې د حضرت تهانوی رحمه الله د ملفوظ به څه جواب وی ؟

«۴» آیا اردو ژبه کښې یو داسې مستند کتاب شته چه په هغې کښې د تقلید او د تقلید شخصی په سلسله کښې مفصل بحث کړې شوې وی ؟ بینوا توجروا فقط .

محمود حسن عفاالله عنه ۹۵۱۱۲۱۱۷هجری ۷۵۱۱۲۱۲۱ء

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله الذی انزل الکتاب ، وارسل لتبیینه رسوله الذی اوتی جوامع الکلم وفصل الخطاب ، وجعل لشرحه تفقه العلماء الذین الهموا الصدق والصواب والصلوة والسلام علی سید الانبیاء وعلی اله واصحابه الاصفیاء وورثته من الائمة الفقهاء واتباعهم الاتقیاء الی یوم الحساب.

**اما بعد** ! د فتنو په دې دور کښې چرته چه هرقسمه فتنو لره راپورته کولې کیږی هغلته یو فتنه دا هم ده چه مسلمانانو ته په یوې نه یوې طریقې سره مذهبی رخصتی حاصلیږی چه دهغې نه پس هغوی څنګه غواړی آزادانه ژوند تیر کړی . لیکن چونکه ربقۀ اسلام لره څنګه چه وو هغې دخپلې غاړې هار جوړولوسره دا مذهبی آزادی حاصلیدلې نه شوه او علی الاعلان که چرته مذهب لره خیرآباد وشیلوسره د آزادئ یومنصوبه جوړولو کوشش وکړې شو نو هغه کامیاب نه شو ددې وجه نه خیرخواهانِ اسلام د خدمتِ دین نوې طریقې ایجادول شروع کړل.

چا د اسلام د ټولو اصولو ژبهی اقرارکولوسره پټ د اسلافو نه د حسن ظن قتل وکړو نو چا د سرنه نوې نبوت ایجادولوسره د زمانې د ضرورت پوره کولو کوشش وکړو ، که یو طرف ته د اسلام اصل ثانی سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم لره د سر نه غیرضروری ګرځولوسره د مفسرقرآن جوړیدلو کوشش وکړې شو نو بل طرف ته د حدیث او د قرآن فهمې دپاره سرې فهم ته کافی وئیلو سره د اسلافو تعبیراتو لره د شرک او د بدعت په لقب سره تعبیرکړې شول ، صرف هم په دې باندې ئې اکتفا ونه کړو بلکه چه کله د یو فتنې ختمیدل کیږی نودهغې هګئ بچی دبلې یوې فتنې په صورت کښې راښکاره شی ، شعر تن همه داغ داغ شد پنبه کجا کجا نهم

لیکن په هغه فتنو کښې بعضې داسې دی چه په هغې سره ساده مسلمانان ډیر زر دغلط فهمې شکارکیږی او هغوی داګمان کوی چه دا هم یومختلف فیه مسئله ده ددې وجه نه اخوا دیخوا کیدلو کښې څه اهم فرق نه پریوځی ، ځکه چه دا ټول قرآن او حدیثو لره منلووالا خپل خلق دی ، لیکن حقیقت دادې چه شعر :

من ازبیگانگاں هرگز نه نالم که بامن هر چه کرد آں آشنا کرد

که چرته ددې فتنو په زور زیر سره مطالعه وکړې شی نو معلومه به شی چه دا ټولې د اسلام د جرړو د اچولو په فکر کښې دی اوهغوی ته معلومه نده چه «ویابی الله الا ان یتم نوره ولو کره الکافرون» چه کوم دین باندې د دویمې پیړئ هجری پورې تابعین اوتبع تابعین پوهه نه شو او دهغې صحیح ارخ متعین نه کړې شو اوس څوارلس کاله تیریدلو نه پس دهغه محافظ او مجدد پیدا کیږی ، د اسلافو بیان شوی د قرآن او حدیثو تشریحات د ردی په ټوکرئ کښې د اچولو قابل دی ، هغې باندې چلیدلووالا علی دین العجائز شمیریدل شروع شو ، او نن د څوارلسمې پیړئ مجتهد د قرآن او حدیثو تشریح وکړی نو هغه په سرسترګو باندې ، حالانکه هغوی باندې نه د قرآن هوا لګیدلې ده اونه د حدیثِ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې څه واسطه راغلې ده ، شعر

انقلاب چمن دهر کی دیکھی تکمیل آج قارون بھی کہدیتا ہے حاتم کو بخیل

ابوحنیفہ کو کہے طفلِ دبستاں جاہل شیخ کی کرتے ہیں اسکول کے بچے تجہیل

سامری موسیٰ عمران کو کہے جادوگر لوحِ محفوظ کو کہتی ہے محرف انجیل

تاسو به دې اوریدلوسره ډیرحیران شئ چه اوس مونږ کله د یوې جریدې نه د مولانا محمد حسین بټالوی اهلحدیث قول دهغه دکتاب اشاعة السنة نه نقل کړو چه « پنځوس کاله تجربې سره معلومه شوه چه غیرمقلدی د بې دینئ دروازه ده » نو یو غیرمقلد صاحب ډیر په غصه شو ، اصل

(۱) واقعې لره خو دروغژنه کوی ددې وجه نه مجبوراً چه کله هغه باندې تبصره کولو سره کیناستل نو ائمه کرامو رحمهم الله باندې ئې داسې تهمت ولګولو چه پخپله اهلحدیث به هم اوریدلو سره د شرم نه سترګې لاندې کړی . ظلم ئې دا وکړو چه د ائمه کرامو مدون مذاهبو لره د الحاد او زندقیت ثابتولو په ناکام کوشش کښې شروع شو چنانچه په دې موضوع باندې یې چه کوم کتاب ولیکلو دهغې نوم ئې کیښودلو «حقیقة الالحاد» دهغه کتاب یو څو اقتباسات ستاسو په خدمت کښې وړاندې کیږی :

« فقه حنفی کښې چه کوم احادیث فقهاؤ درج کړی دی هغه یا خو موضوعی دی یابیا دهغې رواة ضعیف اومتکلم فیها دی یا منکر اومختلف فیها دی یا بیا شاذ غیرمحتج بها دی، دې فقهاؤ احادیثو کښې د نابیناوالی د وجه نه د صحیح اوغیرصحیح په مینځ کښې امتیاز ونه کړئ شو ... کتب حنفیه کښې د موضوعاتو او اوهامو اوډ بې ثبوته روایاتوبندلې وې ، همدارنګه اکثرهغه فرضی اوډ زندیقانو له وضع شوی دی ،دهغه اسبابو د وجه نه فقهاؤ خیال وکړو چه که چرته څوک د احادیثو نه واقفه شونو زمونږ «راز به ښکاره شی لهذا د شروع نه د سدِ باب دپاره یی د خلقو په غوږونو کښې دا خبره واچوله چه بغیره مجتهد د پوهولو نه حدیث په فکر کښې نه راځی او براهِ راست حدیث او قران باندې عمل کول بې دینی ده .....او په دې باندې عمل کولو والا دخپل ځان بچ کولو دپاره څه خو وائی ، دهغوی په هغه وئیلوسره هغه بیچاره ګان چه هغوی د اول نه په قران او حدیثو باندې عمل کول ـ ددوئ په قول ـ حرام ګڼلی وی مطمئن کیږی » (حقیقة الالحاد ص ۲۷)

تاسې مهربانی وکړئ او په تورو شوو الفاظو باندې نظر دوباره واچوئ ، دا عبارت د کتاب مذکور د نیمې صفحې نه اخستلې شوې دې ، په دې سره تاسو پخپله اندازه ولګوئ چه مصنف علام ائمه کرامو او اکابرِ امت باندې د بهتان تړلو چه کوم دعوت شروع کړې دې په هغې کښې هغه څومره زیات مصروف دې ، شعر *قیاس کن زګلستان من بهار*

حالانکه حقیقت دادې چه هغه حضراتو چه دکوم څیز نوم اجتهاد اینښودلې دې هغه اجتهاد نه دې بلکه دهغوی په ائمه اربعه کښې به دچا قول وی .

د غیرمقلدینو ائمه اربعه ابنِ تیمیه ، شوکانی ، ابن حزم او نواب صدیق حسن خان دی که تاسې اندازه لګولوسره وګورئ نو معلومه به شی چه د غیرمقلدینو یو قول هم ددې څلورو حضراتو د دائرې نه خارج نه دې چه هغې باندې د حدیث مهر لګولوسره دا خلق پیش کوی ، څنګه چه دا حضرات د حدیث نه استدلال کوی هم دغه شان نور ائمه خو هم د کوم یو حدیث نه استدلال کوی مګر غیرمقلدینو ته فقط هغه حدیث په فکر کښې راځی چه هغې لره دې حضراتو صحیح وئیلې

---

۱ ـ د بټالوی پوره عبارت مع حواله انشاء الله لږ وروسته راځی . ۱۲

وی یا یی اختیار کړې وی .

## عجیبه خبره

حقیقت دادې چه دا حضرات چه څېل ځان ته غیرمقلدین وائی دا د ټولو نه زیات مقلدین دی ، ځکه چه د حضورصلی الله علیه وسلم په موجودګئ کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم د دوی د اقوالو په تشریح کښې اختلاف وشو ، د دوی صلی الله علیه وسلم د وصال نه پس پخپل مینځ کښې یی اختلاف وشو ، بیا د تابعینو ، تبع تابعینو او د ائمو پخپل مینځ کښې بې شمیره مسائلو کښې اختلاف وو . بلکه د یو استاذ په شاګردانو کښې اود یو مذهب په کسانوکښې اختلاف پاتې شوې دې . او اوس هم دې ، عقلاً هم اختلافی رائې لازم دی ددې وجه نه چه د هرسړی ذهن او اسلوبِ فکر مختلف دې ، مګر دنیا کښې صرف د غیرمقلدینو فرقه داسې ده چه دهغوی په افرادو کښې د رایو اختلاف نه موندلې کیږی ، دهغوی کوم مشر چه خبره وکړه او نورو ټولو غیرمقلدینو هغه بغیرد څه چون چرا نه تسلیم کړه .

## د تقلید تعریف

په اصل کښې تقلید نوم دې دهغه څیز چه دخپل دین د یو پیشوا یوقول اوفعل لره دهغه حسنِ ظن په بناء باندې قبلولوسره هغې باندې عمل کول چه هغه به د قرآن اوحدیثو مطابق دا خبره کړې وی . هغه تسلیم کول او عمل لره دهغه مسئلې دلیل معلومیدلو باندې نه معلق کول . لیکن هغه دلیل که چرته هغه وخت معلوم وی یا وروستو معلوم شی نو دا د تقلید منافی نه دې ، غرض داچه تقلید کښې د دلیل مطالبه شامله نه ده اوعلم بالدلیل دهغې معارض نه دې، په کشاف اصطلاحات الفنون کښې د تقلید تعریف داسې ذکر دې ، ((**التقلید اتباع الانسان غیرہ فیما یقول اویفعل معتقداً للحقیة من غیر نظر الی الدلیل کانه هذا المتبع جعل قول الغیر اوفعله قلادة فی عنقه من غیر مطالبة دلیل**))

علامه ابن ملک شرح منارمصری ص ۲۵۲کښې فرمائی : **وهو (ای التقلید) عبارة عن اتباعه فی قوله اوفعله معتقداً للحقیه من غیر تأمل فی الدلیل**.نامی شرح حسامی مطبوع مجتبائی ص ۱۹۰کښې دی :
**التقلید اتباع الغیر علی ظن انه محق بلا نظر فی الدلیل.**

دې دریو وارو عبارتونو لره مخې ته ایښودلوسره پخپله فیصله وکړئ چه د تقلید معنی څه ده ، اوس که چرته څوک خپل جدا تعریف مقررولوسره حجت بازی کوی نو دا دهغه خپله اصطلاح شوه چه په مونږ باندې حجت نه ده « **لا مناقشة فی الاصطلاح** » په دې سره دمولوی ثناء الله صاحب امرتسری دهغه اعتراض جواب هم وشو چه هغوی پخپل کتاب ( تقلید شخصی وسلفی ص ۵۱.

۵۲ ، کښې کړې دې چه مفهوم تقلید د علم بالدلیل منافی نه دې ، لهذا تقلید لازم جهالت دې

## اعتماد او انقیاد

حقیقت کښې دین نوم دې د انقیاد او اعتماد ، که چرته د دنیا نه اعتماد او انقیاد دواړه صفات معدوم شی نو د دین نوم اونشان باقی نه پاتې کیږی ، دا اعتماد او انقیاد د عهدِ رسالت نه را پدې خوا جاری دې او هم په دې باندې د ټول شریعت دارومدار دې .

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی : **ان الامة اجتمعت علی ان یعتمدوا علی السلف فی معرفة الشریعة فالتابعون اعتمدوا فی ذلك علی الصحابة وتبع التابعین اعتمدوا علی التابعین وهکذا فی کل طبق اعتمد العلماء علی من قبلهم والعقل یدل علی حسن ذلك لان الشریعة لا یعرف الابالنقل والاستنباط والنقل لایستقیم الابان یاخذ کل طبقة عمن قبلها بالاتصال(عقدالجید ص۳۱)** او دا غیرمقلدین د شروع نه دغه اعتماد او انقیاد بیخ کندی کوی .

## د تقلید فوائد

په دې پُر فتن دور کښې چه هرطرف ته الحاد او بې دینی خوره شوې ده ځنګه چه د ائمه کرامو په تقلید کښې د دینِ مبین حفاظت دې ترکِ تقلید کښې دهغې لسمه حصه هم نشته ، په دې سره معلومه شوه چه د تقلید مقصد د دینِ مبین بحسن وخوبی حفاظت دې او په کوم څیز کښې چه د دین حفاظت وی دهغې په خوبئ کښې دچا هم اعتراض نشته ، لیکن بیا هم تبرعاً د تقلید د خوبئ اود ترکِ تقلید د بیان دپاره مونږ پنځه حضرات بطورشهادت پیش کؤو چه په هغې کښې دری حضرات پخپله اهلِ حدیث هم د سرتاج ګڼی ، ددې وجه نه د «**وشهدشاهدمن اهلها**» مصداق هم وشو .

## د عبدالوهاب شعرانی شهادت

قطبِ ربانی شیخ عبدالوهاب شعرانی رحمه الله فرمائی ، **فقد بان لك یا اخی مما نقلناه عن الائمة الاربعة وغیرهم ان جمیع الائمة المجتهدین دائرون مع ادلة الشریعة حیث دارت و انهم کلهم منزهون عن القول بالرای فی دین الله وان مذاهبهم کلها محررة علی الکتاب والسنة کتحریر الذهب والجوهروان اقوالهم کلها ومذاهبهم کالثوب المنسوج من الکتاب والسنة سداه ولحمة منهما وما بقی لك عذر فی التقلید لای مذهب شئت من مذاهبهم فانها کلها طریق الی الجنة کما سبق بانه اواخر الفصل قبله وانهم کلهم علی هدی من ربهم وانه ما طعن احد فی قول من اقوالهم الا بجهله به اما من حیث دلیله واما من حیث دقع مدارکه علیه**

لاسیما الامام الاعظم ابوحنیفة النعمان بن ثابت رضی الله عنه الذی اجمع السلف والخلف علی کثرة علمه وورعه وعبادته ودقة مدارکه واستنباطاته کما سیأتی بسطه فی هذه الفصول ان شاء الله تعالی وحاشاه رضی الله عنه من القول فی دین الله برای لایشهد له ظاهر الکتاب ولا سنة (میزان کبری ص ۵۰ ج ۱)

## د شاه ولی الله رحمه الله شهادت

دویم شهادت د سید الطائفه مسند الهند شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله تعالی دی دوی فرمائی: وفی ذلك (التقلید) من المصالح مالا یخفی لاسیما فی هذه الایام التی قصرت الهمم جدا واشربت النفوس الهوی واعجب کل ذی رای برایه (حجة الله البالغه مطبوع مصر ص ۱۳۳ ج ۱)

اعلم ان فی الاخذ بهذه المذاهب الاربعة مصلحة عظیمة وفی الاعراض عنها مفسدة کبیرة (عقد الجید ص ۳۱) واستفدت منه صلی الله علیه وسلم ثلاثة امور خلاف ما کان عندی (الی قوله) وثانیها الوصاة بالتقلید بهذه المذاهب الاربعة لااخرج منها (فیوض الحرمین ص ۴۸)

## د نواب صدیق حسن خان شهادت

دریم شهادت د فرقه اهلِ حدیث څلورم امام نواب صدیق حسن خان صاحب بهوپالی دی دوی لیکی: فقد نبتت فی هذا الزمان فرقة ذات سمعة وریاء تدعی لانفسها علم الحدیث والقران والعمل بهما علی العلات فی کل شان مع انها لیست فی شیء من اهل العلم والعمل والعرفان (الحطة فی ذکر الصحاح الستة از نواب صدیق حسن) هم په دې کتاب کښې لیکی: ((فیالله العجب من الذین یسمون انفسهم الموحدین المخلصین وغیرهم بالمشرکین وهم اشد الناس تعصباً وغلواً فی الدین......)) هم ددې مضمون په اختتام کښې لیکی: ((فما هذا دین ان هذا الامحنة فی الارض وفساد کبیر)) (حواله بالا)

## د مولانا محمد حسین بټالوی شهادت

څلورم شهادت د مولانا محمد حسین صاحب بټالوی دې، دوی پخپله رساله کښې لیکی. ((د پنځه ویشت کالو د تجربې نه مونږ ته دا خبره معلومه شوې ده چه کوم خلق د بې علمۍ سره د مجتهدِ مطلق او د مطلق تقلید انکاری جوړیږی هغه آخر اسلام ته خیرآباد وائی د کفر او ارتداد او د فسق اسباب په دنیا کښې نور هم په کثرت سره موجود دی مگر د دیندار د بې دینه کیدلو دپاره بې علمۍ سره ترکِ تقلید لوئ دروند سبب دې، د اهلِ حدیثو په ډله کښې چه څوک بې علمه وی یا علم ئې کم وی د ترک مطلق تقلید مدعی دی هغه دې دهغه نتائجو نه او ویریږی، ددې ډلې عوام

آزاد او خود مختاره روان دی» ، «رساله اشاعة السنة نمبر۲ جلد ۱۱ طبع ۱۸۸۸ء»

## د قاضي عبدالواحد صاحب خانپوري شهادت

پنځم شهادت د یو غیرمقلد بزرګ قاضي عبدالواحدصاحب خانپوري دې ، دوی فرمائي « پس ددې زمانې دروغژن اهلحدیث مبتدعین مخالفین سلف صالحین چه په حقیقت کښې د ماجاء الرسول نه جاهل دی هغوی په صفت کښې وارث او خلیفه شوی دی د شیعه او روافض یعنې ځنګه چه شیعه وړاندې زمانو کښې دروازې د کفراونفاق وې او د ملحدینو او زندیقانو مدخل وو اسلام طرف ته ، هم هغه شان دا جاهل اهلحدیث په دې زمانه کښې دروازه او مدخل دی د ملاحده او زنادقه منافقانو ، بعینه په مثل د شیعه ګانو (الی ان قال) مقصود دادې چه په رافضیانو کښې ملاحده که تشیع ښکاره کولوسره د حضرت علي او حضرت حسین رضی الله عنهم غلو سره تعریف کولو سره سلفو ته ظالم وئیلوسره کنځل وکړی او بیا چه څومره الحاد او زندقه خوروی هیڅ پروا نشته ، هم دغه شان په دې جاهلانو بدعتیانو دروغژنو اهلِ حدیثو کښې که یوغلې رفع یدین وکړی اود تقلید رد وکړی اودسلفو توهین وکړی ، لکه امام ابوحنیفه رحمة الله علیه چه دهغه امامت فی الفقه اجماع امت سره ثابت دې او بیا چه څومره کفر بد اعتقادی او الحاد او زندیقیت په هغوی کښې خوروی ډیر په خوشحالئ سره یې قبلوی او ذره قدرې هم نه ناراضه کیږی اګرچه علماء او فقهاء په زر کرته هغوی له خبردار کړی نو هیڅرې‌یې نه اوری ، سبحان الله ما اشبه اللیلة بالبارحة ، او دویم داچه هغوی د اهل السنت والجماعت مذهب او عقائدو نه وتلوسره د سلفو د اتباع نه مستنکف او مستکبر شوی دی فافهم وتدبرانتهی (التوحیدوالسنة فی رداهل الالحاد والبدعة الملقب به) اظهارکفرثناء الله بجمیع اصول امنت بالله ص ۲۲۲)

تاسو پورته پنځه شهادتونه ولوستل چه په هغې کښې یو د شافعي المسلک بزرګ ، یو د حنفی المسلک پیشوا او درې حضرات د اهلِ حدیثو علماؤ نه دی بلکه نواب صدیق حسن خان صاحب بهوپالی خو دغیر مقلدینو څلورم امام دې ، ددې وجه نه ددې حضراتو نه زمونږ استدعا ده چه په تقلید کښې کوم رحمتِ خداوندی دې او په ترکِ تقلید کښې کوم عذاب د نستونی مار جوړیدلوسره پټ شوې دې ، هغې ته پخپله په غورسره وګورئ .

## تقلید شخصی

تقلیدِ شخصی دادې چه یو خاص مجتهد طرف ته چه کوم مذهب منسوب دې دهغه مفتیٰ به مسائلو لره اخستلوسره هغې باندې بلاطلبِ دلیل عمل وکړې شی ، عام دی چه هغه مسائل په خپله د هغه امام وی اوکه د هغه د شاګردانو ، مګر داسې وی چه هغې باندې دیو مذهبِ معین نوم صادق راشی .

او تقليدِ غيرشخصي دادې چه د ډيرو مجتهدينو مفتي به مسائلو لره بدون طلب دليل خپل معمول وګرځوې ، ليکن يو مسئله ديوامام واخلې او بله دګوم بل امام يعنې ديو مجتهدِ معين د مسائلو التزام ونه کړې.

د عهدِرسالت صلی الله عليه وسلم نه واخله د دويمې پيړئ هجری آخره پورې د تقليد غيرشرعی رواج وو او چونکه هغه وخته پورې د مجتهدينو اصول او ضوابط هم منضبط نه وو ، ددې وجه نه ديومذهبِ معين په تقليد کښې مشکلات هم وو ، همدارنګه په هغه زمانه کښې غيرمجتهد حضراتوکښې د تقوئ اود اخلاص جذبه هم په کامله درجه موجود وه ددې وجه نه د ډيرو مجتهدينو اقوالو اخستلوکښې د کيدِ نفس شائبه هم نه وه .

حضرت شاه ولی الله رحمه الله فرمائی ((لان الناس لم يزالوا من زمن الصحابة الی ان ظهرت المذاهب الاربعة يقلدون من اتفق من العلماء من غير نکير من احد يعتبر انکاره ولو کان باطلا لانکروه (عقد الجيد ص ٣) تردې پورې چه د دويمې پيړئ هجری په آخرکښې ربانی علماؤ د اصولو او فروعو تدوين شروع کړو اودهغوی قابل شاګردانو په دې سلسله کښې نور تدوين اوتهذيب وکړو ، نود دريمې صدئ اکثرو خلقو بطورتقليدِ شخصی هغې لره اختيارکړو ، اصول اوفروع د قرآن او سنت په رڼا کښې مدون کړې شول او هغې لره مطالعې کولو والا داسې ربانی علماء او مجتهدين وو چه دهغوی علم او فقاهت مسلم وو ، دهغوی دا کليات په آسانئ سره دستياب شو ددې وجه نه په هغې کښې دخلقو دپاره ډيره آسانی پيدا شوه ، شاه صاحب فرمائی چه په هغه وخت کښې هم دا تقليد واجب وو ، ((وبعد المأتين ظهر فيهم التمذهب للمجتهدين باعيانهم وقل من کان لا يعتمد علی مذهب مجتهد بعينه وکان هذا هو الواجب فی ذالک الزمان)) (الانصاف ص ٥٩) څلورمې پيړئ هجری پورې د مذاهبِ اربعه نه علاوه دنورو مجتهدينو هم تقليد کيدلو ، ليکن د نورو مجتهدينو حضراتو د مذاهبو داسې حفاظت ونه شو چه ډيرې مودې پورې مدون موجود وای چنانچه د څلورمې پيړئ هجری نه پس د څلورو مذاهبونه سوا يو مذهب هم باقی پاتې نه شو اود الله تعالی په رحمت سره په هغه څلورو مذاهبوکښې دتقليدشخصی انحصار وشو ،حضرت شاه صاحب فرمائی ولما اندرست المذاهب الحقة الا هذه الاربعة کان اتباعها اتباعا للسواد الاعظم والخروج عنها خروجا عن السواد الاعظم (عقد الجيد ص ٣٣)

علامه ابن خلدون مقدمه کښې فرمائی ((ووقف التقليد فی الامصار عند هؤلاء الاربعة ودرس المقلدون لمن سواهم وسد الناس باب الخلاف وطرقه لما کثر تشعب الاصطلاحات فی العلوم ولما عاق عن الوصول الی رتبة الاجتهاد ولما خشی من اسناد ذلک الی غير اهله ومن لا يوثق برايه ولا بدينه فصرحوا بالعجز

والاعواز وردوا الناس الى تقليد هؤلاء كل من اختص به من المقلدين وحظروا ان يتداول تقليدهم لما فيه من التلاعب ولم يبق الا نقل مذاهبهم وعمل كل مقلد بمذهب من قلده منهم بعد تصحيح الاصول واتصال سندها بالرواية لا محصول اليوم للفقه غير هذا ومدعي الاجتهاد لهذا العهد مردود على عقبه مهجور تقليده وقد صار اهل الاسلام اليوم على تقليد هؤلاء الائمة الاربعة)) (مقدمه ابن خلدون ص ۳۰۳)

ملاجیون رحمه الله په دې موقع باندې څه ډیره خوندوره خبره لیکلې ده : ((والانصاف ان انحصار المذاهب في الاربعة واتباعهم فضل الهي وقبوليته عند الله تعالى لا مجال فيه للتوجيهات والادلة)) (التفسيرات احمدية ص ۳۴۶)

## د تقلید شخصي وجوب

د واجب دوه قسمونه دي : لعينه اولغيره ، د واجب لغيره مطلب دادې چه چه په خپله دهغه کلر تاکید شریعت نه وي کړې مگر شریعت چه کومو امورو لره واجب گرځولي وي دهغې تحصیل بغیر ددې نه عادةً ناممکن وي ددې وجه نه دا امر به هم واجب وي ((لان مقدمة الواجب واجب)) لکه د قرآن اود حدیثو د جمعې اوکتابت په شریعت کښې چرته هم تاکید نه دې وارد شوې ، سره ددې نه واجب ورته وئیلې کیږي ، هم دغه شان تقلیدِ شخصي حسن لغيره دې ځکه چه د تقلید شخصي په ترک کښې داسې مفاسد دي چه دهغې نه احتراز واجب دې .

## د ترک تقلید مفاسد

(۱) تقلیدِ شخصي نه کولوسره په دین کښې چه کوم خلل پیدا کیږي هغه تجربې او مشاهدې سره متعلق دې ، په دې زمانه کښې طبائعو کښې د آزادئ او د نفس پرستئ غلبه بالکل ښکاره ده چه دهغې په احادیثِ فتن کښې پیشنگوئیانې کړې شوې دي ، دا حقیقت په اهلِ علم حضراتو باندې پټ نه دې په دې دورکښې به د اجتهاد د اجازت ورکولو نتیجه دا وي چه که چرته چا د قرآن کریم او مشکوة ترجمه کتلې وي نو هغه به هم دا وائي چه د نورو اجتهاد معتبر دې نو څما ولې معتبر نه دې ؟ چه کله اجتهاد داسې عام شو نوپه احکامو کښې چه کوم تحریف اوتصریف مخې ته راځي دهغې نه غیرمقلدین هم انکار نه شي کولې ، بعضې نومولود مجتهدین به دا وائي چه هرکله مجتهدینو سابقینو پخپل قوتِ اجتهادیه سره بعضې نصوصو لره معلل گڼلې دي اودهغوي قول معتبراومقبول شو نوموږ هم که چرته داسې وکړو نو څه خرابي ده . حالانکه په دې طریقه سره که چرته په نصوصو کښې هرچاته د مداخلت کولو اجازت ورکړې شي نو هغه به د ماشومانو لوبې جوړیدلوسره پاتې شي . ترکِ تقلید سره کومې کومې فتنې ښکاره شوې او الحاد کوم

پورې خورشو دا اظهر من الشمس دې ، چا د ترکِ تقلید نه پس د خدائې دعوی وکړه ، چا د نبوت ، چا د مهدویت، د چا انکارِ تقلید او نکارِ حدیث پورې اورسیدله او چا د مجددیت په جامه کښې ټول امتِ مسلمه لره گمراه گرځولو سره د اسلام د بنیادونه متزلزل کیدلو کوشش وکړو . بحمد الله ترننه پورې یو مقلد په دې ضلالتونو کښې مبتلاء نه شو ، شعر

یہ سب فتنے عدمِ تقلید کے ہیں کہ جن میں بوالہوس اوندھے گرے ہیں

(۲) که چرته د تقلید غیرشخصی اجازت ورکړې شی نود نفسانی خواهشاتو د غلبې د وجه نه نفس ته چه کومه مسئله چه دکوم امام آسانه او موافق مقصد ملاؤ شی په هغې باندې به عمل کوی ,مثلاً ښخه ئې مس کړه نو دا دې اوواتی چه زه حنفی یم ، او بیا یې که وینه را وه وتله نو دادې اوواتی چه زه شافعی المسلک یم ، که چرته یی دا دواړه امره مخې ته راشی او هغه ذکر شوی تاویل کولو سره مونځ وکړی نودهغه مونځ په اتفاق د ائموسره ونه شو مگر هغه به د غرض پرستئ دغلبې د وجه نه په هغه حالت کښې هم بې اودسه مونځ کوی او د اخالصة دین لره د نفس تابع جوړول دی .

(۳) د تقلیدِ شخصی په ترک سره عواموکښې بې پرواهی او پخپل مینځ کښې بې اتفاقی او منافرت پیدا کیږی .

حضرت تهانوی رحمه الله څه ښه اوفرمائیل چه ((ترکِ تقلیدشخصی سره په دې پنځو امورو کښې بلاشبه خلل پیدا کیږی :

(۱) علم اوعمل کښې د نیت خالص کیدل (۲) خواهشِ نفسانی باندې د دین غالبه کول یعنې خواهشِ نفسانی لره د دین تابع جوړول ، دین لره دهغې تابع نه جوړول (۳) د داسې امر نه بچ کیدل چه په هغې کښې زیاته خطره دخپل ضررِ دین وی (۴) د اهلِ حق د اجماع مخالفت نه کول (۵) د اسلام د دائرې نه ، نه وتل ، او تقلیدِ شخصی کښې دهغه خلل معتدبه انسداد او علاج دې (الاقتصاد ص ۳۹)

## مقدمة الواجب واجب

د حکیم الامة قدس سره په حوالې سره پورته چه کوم امورِ خمسه ذکرشو هغه بالاتفاق ضروری او واجب دی او تقلیدِ شخصی لره پریخودلوسره په هغې کښې خلل واقع کیږی ، چونکه تقلیدِ شخصی دهغه امورِ خمسه د حفاظت دپاره مقدمه ده ، او دا امور واجب دی ، ددې وجه نه تقلیدِ شخصی هم د ((مقدمة الواجب واجب)) قاعدې مطابق واجبیږی او دا قاعده داسې ده چه نه صرف په مسلمانانو کښې بلکه په ټولو ملتونو کښې مسلمه ده ددې وجه نه په هغې باندې دکوم یو دلیل خو ضرورت نه وو خوبیا هم تبرعاً یو حدیث ستاسو په خدمت کښې پیش کوو : ((عن طلحة بن

عامر قال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول من علم الرمی ثم ترکه فلیس منا او قد عصی)) رواه مسلم (مشکوٰة ص۳۳۸)

ظاهره ده چه غشی ویشتل دین کښې څه عبادت مقصود نه دې لیکن چونکه اعلاء کلمة الله واجب ده او بوقت ضرورت غشی ویشتل دهغې دپاره د مقدمې حیثیت لری ددې وجه نه بی هغه هم واجب اوګرځول او هغې لره زده کولوسره هیرولو والا ته عاصی او ونیلې شو ، په دې سره واضحه شو چه ترک تقلید کښې د دینی خطراتو د علم کیدلو باوجود دهغې ته بندیدل په عصیان کښې داخل دی چه مفضی الی اشده هم کیدلې شی . (اعاذنا الله تعالی منه)

## عقل شاهد دې

عقل شاهد دې چه د ډیرو مجتهدینو په تقلید کولوکښې د تولو نه لویه او واضحه خرابی داده چه کله د بې علمئ د وجهٔ نه دغیرمجتهد د تقلید طوق په غاړه کښې غورځیږی چه په اتفاق سره حرام دې . بلکه د زمانې رواج دا وائی چه د ډیرو مجتهدینو تقلید طبیعت کښې داسې آزادی او سهولت پسندی پیدا کوی چه بعضې وختونوکښې دهغې نه تباه کن نتائج راوځی ، چه کله د آزادئ حاصلولو شوق اوشو نو بعضې طبائع دومره سهولت پسند شواوهغوی دې میدان ته دومره وسعت ورکول شروع کړه چه بالآخرهغوی د اضلال انتهاء ته ورسیدل .

## په تقلید شخصی باندې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع

حضرت شاه ولی الله رحمه الله تعالی په «ازالة الخفاء» کښې فرمائی ، (( وفی الجمله طریق مشاورت درمسائلِ اجتهادیه وتتبع احادیث از مظان آن کشاده شد معهذا بعد عزم خلیفه بر چیزے مجال مخالفت نبود بدون استطلاع رائے خلیفه کارے را مصمم نمے ساختند لهذا دریں عصر اختلاف مذهب وتشتت آراء واقع نشد همه بریک مذهب متفق وبریک راه مجتمع واں مذهب خلیفه ورائے آں بود ، روایت حدیث وفتوی وقضاء ومواعظ مقصور بود درخلیفه )) (ازالة الخفاء مقصد دوم)

په همدې سلسله کښې مونږ دوه ثبوتونه نور پیش کړو ، د حضرت عمرمقررفرموده قانون او خیرالقرون کښې د اهلِ مدینې تعامل ، په هغه قانون اوتعامل کښې دیوصحابی هم څه اعتراض نه کول د اجماع صحابه ښکاره ثبوت دې .

## حضرت فاروق اعظم رضی الله عنه

اعلام الموقعین للحافظ ابن قیم او سنن دارمی کښې نقل دی چه حضرت عمررضی الله عنه دا قاعده مقررکړې وه چه په کومه مسئله کښې یوحدیث ملاؤ نه شی په هغې کښې دې د حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په فتوی باندې عمل وکړې شی ، که چرته د دوی فتوی ملاؤ نه شی نودعلماؤ په مشورې سره چه کومه فیصله وشی دهغې تعمیل دې وکړې شی .

د حضرت عمررضی الله عنه په هغه فیصلې سره د تقلیدِ شخصی اهمیت اود ضرورت اندازه ولګوئ ، پخپله د محدث ، فقیه ، مجتهد اود ټولو کمالاتو جامع کیدلو باوجود د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د تقلید التزام ئې اوفرمائیلو او ټول عمر ئې د دوی د فتاوې مطابق حکم کولو

## اهلِ مدینه اوتقلیدِ شخصی

روی البخاری فی (باب اذا حاضت المرأة بعدما افاضت) عن ایوب عن عکرمة ان اهل المدینة سألوا ابن عباس رضی الله عنهما عن امرأة طافت ثم حاضت قال لهم تنفر قالوا لا نأخذ بقولك وندع قول زید (الی قوله) رواه خالد وقتادة عن عکرمة قال الحافظ رحمه الله تعالی زاد الثقفی فقالوا لا نبالی افتیتنا او لم تفتنا ، زید بن ثابت یقول لا تنفر ، وفی روایة قتادة فقالت الانصار لا نتابعك یا ابن عباس وانت تخالف زیدا (فتح الباری ص ۳۰۳ج)

دې روایت سره ښکاره چه دا ثابته شوه چه اهلِ مدینه د حضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه تقلیدِ شخصی کولو اودهغه په مقابله کښې دبل چا خبرې اوریدلو ته تیارنه وو . هم دغه شان دا هم معلومه شوه چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما یا یو بل صحابی هغه مقلدینو باندې د شرک یا دګناه کبیرې د ارتکاب فتوی ونه لګوله .

## امام العصرحضرت ګنګوهی اوتقلیدِ شخصی

حضرت ګنګوهی قدس سره العزیز د تقلیدِ شخصی متعلق دمختلفو سوالونو په جوابونو کښې مفید بحثونه لیکلی دی ، لاندې د فتاوی رشیدیه ص ۱۸۰ ، ۱۸۱ نه یو اقتباس پیشِ کیږی :

تقلیدمطلق فرض دې لقوله تعالی «**فسئلوا اهل الذکر ان کنتم لا تعلمون**» الایة . حق تعالی په دې آیت کښې مطلق تقلید لره فرض فرمائیلې دې ، اود تقلید دوه افراد دی، یوشخصی چه ټول مسائل هم دیو عالم نه حاصلولوسره عمل پرې وکړی ، دویم غیرشخصی چه دکوم عالم نه غواړې حاصلولو سره عمل پرې وکړې ، او آیت په سبب دخپل اطلاق دواړو قسمو لره متضمن دې ، لهذا دواړه قسمه د تقلید مامور من الله او مفروض د الله د طرف نه دی ، او چه کوم فرد تقلید باندې

عمل کوی د الله تعالی د فرضي حکم عامل به وی ، لهذا کوم سړي چه تقلید شخصی ته چه مامور من الله او مفروض من الله دي شرک یا بدعت وائي هغه جاهل او گمراه دي ، ځکه چه د الله تعالی په مخالفت کښې د الله تعالی مفروض ته شرک وائي او نه پوهیږي چه الله تعالی چرته مطلق حکم ورکړې دي مکلف لره ئې مختارفرمائیلي دي چه په کوم فردمقید باندې غواړي عمل دې وکړي ، ځکه چه د مطلق من حیث الاطلاق چرته په خارج کښې وجود نه وی بلکه دخپلو افرادو په ضمن کښې په خارج کښې موجودیږي ، مثلاً د انسان وجود من حیث الاطلاق چرته جدا نه موندلې کیږي بلکه دخپل افرادو په ضمن کښې خارج کښې وی ، هم داسې دتقلید وجود جدا وی او شخصی او غیرشخصی دې جدا وی دا هیچرې نه شي کیدلې ، بلکه تقلید چه چرته هم وی یا به د شخصی په ضمن کښې اویابه د غیرشخصی په ضمن کښې وی لهذا دواړو قسمونو کښې مکلف مختار دې په کوم باندې چه غواړی عمل دې وکړی اوغاړه دې د امر نه فارغه کړی ، پس مامورمن الله ته بدعت یا شرک وئیل پخپله گناه ده بلک په اصل کښې دواړه قسمه د تقلید په جواز کښې یوشان دی مگر هغه وخت کښې چه عوام الناس بلکه خواصو باندې هم د خواهشات نفسانی غلبه ده او هر سړې په خپله رایه اونظر باندې خې او تقلید غیر شخصی دهغوی د خواهشاتو او اعجاب عمده ذریعه د جواز جوړیږي ، او موجب د بی پروایی کیږي د دین طرف ته او سبب د ژبه درازئ او تشنیع دمسلمانانو په شان او ائمه مجتهدینو کښې دهغوی واسطې جوړیږي او باعث د تفرقې اوفساد د مسلمانانو په مینځ کښې جوړیږي ، چنانچه دا ټول مشاهده دی لهذا داسې وخت کښې د تقلیدغیر شخصی اختیارول په دې وجه سره چه په دنیا کښې مفاسد راپورته کیږي صحیح نه دې ، او فقط شخصی د امتثال امر «فاسئلوا» په واسطې معین اومشخص په حکم دشرعې شوې دې ، ځکه چه اتفاق اواتحاد رکن اعظم د دین اسلام دي نو دهغې محافظت هم فرض اعظم دې ، قال الله تعالی **«واعتصموا بحبل الله جمیعاً ولاتفرقوا ـ الایة»** ، **«ان الله لا یحب الفساد ـ الایة»** او اکثر احادیث په دې باب کښې وارد دی لهذا محافظت دهغه فرض اعظم په وجه او رفع دهغه مفاسدو اوشنائعو په وجه یو شق مامورعلی التخییرسوال لره ترک کول او دویم شق لره چه معین او مقوی دې هغه فرض اعظم لره او دافع شنائع مذکوره لره دې ، اختیارول عین حکم صحابه اوختم شارع علیه السلام شوې دې ، چنانچه قراء ت د قرآن کریم په اوو ۷ حروفو ره مخیروو او په اجماع د صحابه کرامو حضرت عثمان رضی الله عنه هغې لره منع کولوسره یولغت قریش کښې مقصورکړو اودا محض د رفع فساد اوتفرقې د وجه نه شوې وو ، صحیح بخاری ددې شاهد دې او خود فخرعالم علیه السلام د قتل ذوالخویصره په باب کښې «چه واجب القتل وو په سبب د کفری او گستاخو کلماتو د فخرعالم علیه السلام» فرمائیلی وو **((دعه فان الناس یقولون ان محمدا یقتل اصحابه))** او دا حکم له وجهې د خوف د فتنې نه شوې وو نه د بل څه، الحاصل داسې نازک وخت کښې تقلید شخصی

واجب مشخص دي اوغیرشخصي دهغه فتنې مشاهدې په سبب ممنوع دې، البته که چرته دا فساد غیرشخصي کښې ونه موندلې شي نو هغه هم مامورعلی التخییردي لکه شخصي ، پس واضحه شوه چه تقلید شخصي واجب دې اوهغې ته بدعت یا شرک وئیل جهل محض دې ، والله تعالی اعلم

کتبه الاحقررشیداحمد گنگوهی ۷ذی الحجه ۱۳۱۱هجری

څنګه چه د جسماني علاج دپاره یو ډاکټرطرف ته رجوع اود دنیاوي حکومت قانون معلومولو دپاره یووکیل طرف ته رجوع ضروري وی ، بیا دهغې دوه صورتونه دی ، یو دا چه مختلفو اوقاتو کښې مختلفو ډاکټرانو او مختلفو وکیلانو طرف ته رجوع وکړې شی ، دویم داچه همیشه هم د یو ډاکټر اوهم د یو وکیل سره تعلق وساتلې شي په دواړو صورتونو کښې په کوم باندې چه هم عمل وکړې شي مقصود حاصلیږی ، بعینه هم دغه شان د علاجِ روحاني اود حکومتِ رباني قانون معلومولو دپاره د یو حاذق تقلید په نص قرآني سره فرض دې چه شخصي اوغیرشخصي دواړو صورتونو لره شامل دې ، په دې دواړو کښې چه په کوم صورت باندې یی هم عمل وکړو هغې ته به هم فرض وئیلې شی ، بیا که چرته دیو عارض نه بل ډاکټریا وکیل طرف ته رجوع متعذروی نو دعمل دپاره به صرف هم دویم صورت متعین کیږی ، هم دغه شان تقلیدغیرشخصي د قبائحِ مذکوره د وجه نه متعذرشرعي شو نودنصِ قرآني د تعمیل دپاره هم تقلیدشخصي متعین شو ، چنانچه په همدې بناء باندې په یوه واقعه کښې هم دیو سړی تقلید بالاتفاق فرض دې څکه چه واقعه واحده کښې د ډیرو علماؤ تقلید متعذرعقلي اوشرعي دې لکه په یووخت کښې هم د یو ډاکټر نه علاج ضروري دې ، دا د فرض اداکولو په دواړوصورتونو کښې دیو د تعین واضحه مثال دې ، هم دغه شان د صدقة الفطر ، دقربانۍ اود کفاراتو دحکم د تعمیل مختلفو صورتونو کښې که چرته صرف یو صورت میسروی نو اداء واجب به صرف هم په دې یو صورت کښې منحصر کیږی ، په دې تقریرسره واضحه شوه چه تقلیدشخصي ته فرض لغیره وئیلو مطلب دادې چه د فرض په دواړو صورتونوکښې یوباندې انحصار دعوارضو د وجه نه وشو اوکه نه نو فی نفسه تقلید شخصي د مطلقِ تقلید یوفرد کیدلو د وجه نه فرض لعینه دې ، څنګه چه په کفاره کښې صوم فرض لعینه دې اودهغې تعیین لغیره دې ، که غوربونه حقیقتاً اوریدلو والا وی نو دومره مختصر خبره هم کافی ده اوکه نه نو د دلائلو انبارهم بې فائدې دې ، شعر

طوفانِ نوح لانے سے اے چشم فائدہ ؟ دواشک بھی بہت ہیں اگر کچھ اثر کریں !

## خلاصه دخبرې

د ذکرشوی تفصیل په ضمن کښې د مطلوبه سوالونو جوابونه به هم په ذهن کښې ښه ناست وی خوبیا هم مختصراً دوباره لیکل کیږی .

(۱ - ۲) د يو امام مقلد لره د بل امام په مذهب باندې عمل کول جائز نه دی ، دهغې مفاسد او په هغه سهولت پسندئ کښې د دين د نقصان مفصل بيان ماقبل کښې د ترکِ تقليدِ شخصي په ضمن کښې تيرشو.

(۳) «مآثرحکيم الامت» کښې د حضرت حکيم الامت د ملفوظ حواله نه ده ورکړې شوې ، د حضرت تهانوی حکم وو چه ترڅوپورې ځما د ملفوظاتو تصديق فلانکی فلانکی يوڅو مخصوصو خلقو نه ونه کړې شی هغې لره د شائع کولو اجازت نشته ، د مآثرحکيم الامت هغه ملفوظ ته دا تصديق حاصل نه دې ، بالفرض که چرته دا ملفوظ د حضرت تهانوی هم په دې الفاظو سره وی نودهغې مطلب دادې چه چرته د اهلِ فتوی اوتقوی د اجتماعی غور نه پس د مذهب د اصولو او قواعدو په اساس سره بل مذهب باندې دعمل گنجائش وموندلې شی نودهغې اجازت ورکړی، نه دا چه رخصتی ورکړې شی چه څه غوارې اوڅنګه غوارې عمل وکری ، فافهم وتدبر

(۴) تقليدِ مطلق او تقليدِ شخصي باندې بې شماره کتابونه ليکلې شوی دی چه په هغې کښې لاندينی کتابونه دخاص اهميت والا دی :

(۱) عقد الجيد فی احکام الاجتهاد والتقليد ....... شاه ولی رحمه الله تعالی
(۲) الانصاف فی بيان سبب الاختلاف .............- - -
(۳) «حجة الله البالغه» کښې هم مفيد بحثونه دی ....... شاه ولی رحمه الله تعالی
(۴) فتاوی رشيديه کتاب التقليد والاجتهاد ......... حضرت گنگوهی قدس سره
(۵) ايضاح الادله ..................... حضرت شيخ الهند رحمه الله تعالی
(۶) الاقتصاد فی التقليد والاجتهاد ....... حضرت تهانوی رحمه الله تعالی
(۷) الکلام الفريد فی التزام التقليد .......... - - -
(۸) فصل الخطاب فی مسالة ام الکتاب ......... مولانا انورشاه صاحب رحمه الله تعالی
(۹) خيرالتنقيد فی سيرالتقليد ......... مولانا خيرمحمدصاحب رحمه الله تعالی
(۱۰) مقدمه اردو ترجمه الميزان الکبری للشعرانی ..... مولانا محمدحيات سنبهلی
(۱۱) فلسفه تقليدواجتهاد ............... قاری محمدطيب صاحب مدظلهم

فقط والله العاصم من جميع الفتن الظاهرة والباطنة
رشيداحمد ۴محرم ۱۳۹۲ هجری

## د ضرورت په وقت کښې په بل مذهب باندې عمل کول

**سوال** : د شاه عبدالعزيزصاحب په ملفوظاتو (مطبوعه پاکستان ايجوکيشنل پبلشرزلميټډ ۱۲ ميری ودرود کراچی په ۱۹۲۰ء کښې ص ۹۰ باندې دا لاندې ليکل زمونږ په نظر راغلل

«یو مرید عرض وکړو چه که چرته د ضرورت په وخت د حنفی ،شافعی په قول باندې عمل وکړی یاد یو بل امام په قول باندې عمل وکړی آیا دا صحیح کیدلې شی ؟ وې فرمائیل : «**چه که چرته څه ضرورتِ شرعی مجبور کړی نو جائز ده ، اوکه نه نو دنفسانی حیلې په تقاضې سره داسې کول نه دی پکار چه**» مثلاً د یو امام تقلید کوی په یومسئله کښې یې عملاً د بل امام قول آسان ومونډلو هغه وخت ئې هم هغې لره اختیارکړو، «**دا بده خبره ده** » ما ددې تفصیل په یو فتوی باندې لیکلې دې» —

په دې سلسله کښې دا لاندې امور معلومیږی دی :

(۱) د شرعی ضرورت نه څه مراد دی ؟ که چرته دهغې یو څو مثالونه ولیکلې شی ن دمطلب په فهم کښې به سهولت وی .

(۲) داکومه خبره ئې چه کړې ده « بده خبره ده » نودهغې بدی شرعاً څه درجه ده . ناجائز ، مکروه تحریمی یا مکروه تنزیهی ؟

(۳) آیا هرعامی ته به دا اجازت ورکولې شی چه هغه د ضرورت په وخت کښې دیو بل امام په قول باندې عمل وکړی یا دا ضروری دې چه مستندعلماء د مشورې او غور اوفکرنه پس دا فیصله وکړی چه هغه ضرورتِ شرعی دې او په دې صورت کښې د بل امام په قول باندې د عمل کولو اجازت شته ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : (۱) ضرورتِ شرعی نه مراد هغه ضرورت دې چه هغې لره علماءِ راسخین فی العلم چه د تقوی او طهارت په صفاتِ عالیه سره متصف وی ضرورت وګرځوی ، که چرته هغوی واقعی دا ضرورت وګنی چه په دې وخت کښې په بل مذهب باندې د عمل کولو نه بغیر بله چاره نشته نو هغه به ضرورتِ شرعی ګڼلې کیږی او هغه وخت به په بل مذهب باندې بقدرِ ضرورت عمل جائز وی ، د ضرورت تعین به په هره مسئله او واقعه کښې جدا وی او عوام خو عوام دی . عام علماؤته هم دهغې د تعیین اجازت نشته ، دهغې فیصله صرف راسخین فی العلم متقی علماء کولې شی چه شاذ او نادر دی ، ددې واضح مثال د مفقود مسئله ده چه علماؤ کله مذهبِ مالکیه باندې د فتوې ورکولو ضرورت محسوس کړو نودهغې فتوی ئې صادره کړه . لیکن په هغې کښې د احتیاط د ټولو اړخونو مدنظرساتلو سره دا فیصله ورکړې شوه .

حضرت تهانوی رحمه الله تعالی فرمائی ، «او ضرورت هم هغه معتبردې کوم لره چه علماءِ اهلِ بصیرت ضرورت وګنی . دا هم ضروری دی چه فتوی ورکولو والا داسې سړې وی چه هغه د یو ماهر استاذ نه فن حاصل کړې وی او اهلِ بصیرت هغه لره په فقه کښې مهارتِ تامه حاصلیدلو باندې شهادت ورکوی ((کما قال الشامی فی شرح عقود رسم المفتی فان المتقدمین شرطوا فی المفتی

الاجتهاد وهذا مفقود في زماننا فلا اقل من ان يشترط فيه معرفة المسائل بشروطها وقيودها التي كثيراً ما يسقطونها ولا يصرحون بها اعتماداً على فهم المتفقة وكذا لابد من معرفة عرف زمانه واحوال اهله والتخريج في ذلك على استاذ ماهر الخ ص ٣٠)).او ددې فتنو په زمانه کښې دا دواړه خبرې جمع کيدل يعنې په يو سړي کښې د تدينِ کامل اود مهارت تامه اجتماع نايابه ده ددې وجه نه په دې زمانه کښې د اطمينان صورت دا کيدلې شي چه کم اَزکم دوه څلور محقق علماءِ دين په يو امرکښې ضرورت لره تسليمولو سره په بل مذهب باندې فتوى ورکړى ، بغيردهغې نه که په اقوالِ ضعيفه او يا بل مذهب لره د اخستلو اجازت ورکړې شي نودهغې لازمى نتيجه د مذهب ړنګول دى ، کما لايخفى (الحيلة الناجزه ص ۲۴)

(۲) نفسانى حيلې سره يو مسئلې لره پريښودلو سره د بل امام په مذهب باندې عمل کول حرام او ناجائز دى ددې وجه نه، دې سره متعلق چه شاه صاحب « بده خبره ده » فرمائيلې ده دهغې مطلب هم ناجائز او حرام دې مکروه وغيره نه دې .

(۳) د عوامو به څه پوښتنه کوې هرعالم ته هم د ضرورت په وخت په بل مذهب باندې د فتوې او عمل اجازت نشته .

**قال حكيم الامة قدس سره العزيز:**

(( د ضرورتِ شديده اود ابتلاءِ عام په وخت د احنافو په نزد د نورو ائمو مذهب لره اختيارولو سره په هغې باندې فتوى ورکول هم جائز دى ليکن عوامو ته پخپلې رائې سره چه په کومه مسئله کښې غواړى د داسې کولو اجازت نشته بلکه د ډيراحتياط ضرورت دې ((وذلك لما صرح به العلامة الشامي في رسالته شرح المنظومة في رسم المفتي)) ،او په دې زمانه کښې احتياط په دې طريقه کيدلې شى چه ترڅو پورې محقق اومتدين علماءِ کرامو کښې متعدد حضرات په يومسئله کښې د ضرورت تحقق تسليمولوسره د بل امام په مذهب باندې فتوى ورنه کړى هغه وخته پورې دې هيچرې دخپل امام مذهب لره نه پريږدى څکه چه مذهبِ غير لره د اخستلو دپاره دا شرط دې چه اتباعِ هوىٰ په بناء باندې نه وى بلکه د ضرورتِ داعيه په وجه وى )) (الحيلة الناجزه ص ۲۲) فقط

والله تعالى اعلم . رشيد احمد ۱۲ ربيع الاول ۹۲ هجرى

بسم الله الرحمن الرحیم

وما توفیقی الا بالله علیه توکلت والیه انیب

# الهدایات المفیدة

## لتنزیه

# المدارس من العلوم الجدیدة

### الهدایات المفیدة

تاریخ تالیف ........................ ۱۸ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

د اشاعت کال ........................ ۱۳۹۸ هجری

**د ډیرې مودې راهیسی** د مختلفو حلقو د طرف نه دا سوال راپورته کولې کیږی چه د مدارسِ دینیه په نصاب کښې دې دنیوی تعلیم هم شامل کړې شی بعضې دینی مدارس په دې کښې مبتلاشوی هم دی.

په دې رساله کښې د عقلِ سلیم اود ذاتی مشاهداتو او تجرباتو په رڼا کښې ثابته کړې شوې ده چه دا اقدام د مدارسِ دینیه دپاره تباه کونکې دې. او ددې د صحیح طریقه کار نشاندهی کړې شوې ده.

## په دینی مدارسو کښې دنیوی تعلیم داخلول

**سوال**:- د یو دارالعلوم طالبانو ته علومِ مقصوده سره مولوی فاضل او ایم اے کول او ضمناً اوتبعاً هغوی ته دینی ماحول کښې د دیندارو استاذانو په ذریعې انگریزی ښودل او بعضې علومِ جدیده لکه عالمی جغرافیه. سائنس. فلسفه اوجدید نفسیات او شهریت ښودل جائز دی اوکه نه. خدمت خلق اود الله د رضاء ذریعه ده اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دیندارماحول کښې اود دیندارو استاذانو په نگرانئ کښې د علومِ جدیده تحصیل په نیت دخدمت خلق اورضاءِ حق سره بیشکه موجب د اجراوثواب دې مگر مدارسِ دینیه کښې دهغه علومو جاری کیدل په تجربې سره مضرثابت شوی دی. اولاً ددې وجه نه چه بعضې مدارسِ دینیه کښې علومِ جدیده لره تبعاً اوضمناً جاری کړې شو مگر په یوڅو ورځو کښې هغه مدرسه سواد علم دین نه باقی د ټولو فنونو مرکز جوړشو او علمِ دین برائے نام پاتې شو.

اوبيا د يوڅو ورځو نه پس د علم دين نوم هم ختم شو ددې ډيرنظائر زمونږ وړاندې موجود دی، په دې صورت کښې به د مدرسې زمکه ، آبادی او متعلقه سامان چه د تعليم دين دپاره وقف وو قيامته پورې به د تعليم دنيا او بالواسطه يا بلاواسطه د هدم دين دپاره به استعماليږی چه دهغې تول وبال به په بنياد اېښودلو والا باندې وی ،بالفرض که د هدم دين باعث جوړ هم نه شی مګرکوم وقفی ځيزونه چه د علم دين دپاره مخصوص وو هغه د علم دنيا دپاره مخصوص کولو او هميشه دپاره د جهتِ وقف بدلولو عذاب خو به خامخا وی . دويم دا چه که چرته بالفرض په يومدرسه دينيه کښې هم علم دين غالب وی نو ددې استعداد طالبان به د کوم ځائ نه راولې چه علومِ دينيه اودنيويه دواړو کښې مهارت حاصل کړې شی ، چه هرکله علومِ دينيه کښې د استعداد حاصلولو والا تعداد ډير فيصد نه زيات نشته . اود علوم جديده د طلبه معيار خو دهغې نه هم زيات لاندې دې ،دريم که چرته بفرضِ محال په لاکهونوکښې څوک يونيمُ فرد د دواړو علومو ماهر هم شی نوآيا هغه به د علم دين څه خدمت وکړی ؟ حاشاوکلا هغه لره خو دنيوی اميدونو او حب مال اوجاه نه صرف دا چه د علم دين د خدمت موقع نه ورکوی بلکه دهغې نه يې متنفرکوی ، چنانچه دهغې يو نظيرنه شی پيش کيدلې چه دواړه قسمه علومو کښې يوماهرفرد د دين يو بنيادی معتدبه خدمت کوی داصحيح ده چه داسې سړې که چرته اخلاص سره دنيوی خدمت وکړی نوهغه هم باعثِ اجر دې مګر کتل دادی چه که چرته هغه ته د علومِ دنيويه تعليم نه وې ورکړې شوې نوهغه به د دين خدمت کولو د علومِ دنيويه تعليم هغه لره د خدمتِ دين نه محرومه کړو ، بيا دهغه په دعوائے اخلاص کښې هم شبهه کيږی چه آيا دا حقيقت څه حصه هم ده اوکه محض نفسانی تدبيراوکيد دې که چرته واقعی رضائے الهی مقصود وې نو د دين د خدمت قدرت لرلو سره د علومِ دنيويه خدمت لره ولې يې اختيارکړو ؟

په دې سره ثابتيږی چه د طلبِ مال اوجاه نه سوا هيڅ مقصود نه دی ، مشاهده ده چه عموماً د داسې حضراتو د زړه نه د عمل اهتمامِ ختميږی بلکه د ډيرو خو نظريات هم بدليږی غرض دا چه مدارسِ دينيه کښې که چرته هغه علوم جديده لره لږ شانتې هم ځائ ورکړې شی نو خطره ده چه يوڅو کاله پس به يوفردهم د دين خدمت کولو والا پاتې نه شی الله تعالی دې په خپل فضل سره زمونږتوحفاظت وکړی ، آمين .

لهذا مدارسِ دينيه لره د بربادولوپه ځائ د کالجونو د اصلاح طرف ته توجه کول پکاردی ، هغلته دې ديندار استاذان مقررکړې شی او ماحول لره د ديندار جوړولو کوشش دې وکړې شی . نصاب کښې دې د علم دين معتدبه حصه مقررکړې شی . مدارسِ دينيه کښې که چرته قديم نصاب په محنت سره وښودلې شی نو د انګريزی ژبې نه سوا باقی ټولو فنونو دنيويه کښې هم د کالجونو د طالب علمانو نه زيات استعداد پيدا کيږی چنانچه فنونِ قديمه کښې فهم لرلو والا بعضې داسې

افراد ترڅه پورې موجود دی چه علوم جدیده کښې د مهارت مدعی دهغوی وراندې د مکتب ماشوم معلومیږی او افسوس دادې چه حساب ، اقلیدس (جیومیټری) او هیئت وغیره ضروری علومولره مدارسِ دینیه نه داسې خارج کړې شوی دی چه گویا دا دهغوی په نصاب کښې بالکل داخل شوی نه وو ، حقیقت دادې چه دهغه علومو نه سوا دعلم دین تکمیل ناممکن دې ، که چرته په ژورنظرسره وکتلې شی نو علوم جدیده بالکل هیڅ څیز نه دې دا ټول هم د علوم قدیمه رنګدار کاغذونه دی هغه هم ناقص اونامکمل ، هم دهغه علوم قدیمه لر جدید نوم تجویزکړې شوې دې یا خو متجددینو مصنفینو کتب جدیده لیکلی دی چه په هغې کښې علوم هم هغه قدیمه دی دغه دجدید اومتجدد نوم یا دکافر اوملحد مصنف د جدید تصنیف په طبائعو باندې بد اثر غورزیږی.

غوروکړئ چه د هدایه وئیلو والا اود هدایه انګریزی ترجمې «محمدن لاء» وئیلو والا عمل او سلامتِ طبع ونظروفکر کښې برابر کیدلې شی ؟ دا فرق «محمدن لاء» دهدایه ترجمه ګڼلوسره دې نو چرته چه تصانیفولره مستقل بلکه تحقیقِ جدیداو مصنف لره د ترقی یافتهٔ قوم اتل وګڼلې شی او ذهن دهغې نه دومره مرعوبه وی چه دهغه یو تحقیق ته د تنقید په نظر کتل جرم عظیم وی د الله اود الله درسول صلی الله علیه وسلم په خبره کښې خو شبهات پیدا وی ، مګر د مغربی مصنف یوه خبره کښې د شبهې څه ګنجائش نه وی نو ظاهره ده چه د داسې علومو حاصلولو والا انجام به څه وی؟. په ذکر شوی بیان سره د بعضې حضراتو دهغه قیاس جواب هم وشو چه فرمائی چه متقدمینو خو هم سرکاری ژبه او علوم دنیویه وئیل او ښودل او په هغې کښې ئې مهارت لرلو ، نو واضحه دې وی چه د متقدمینو سرکاری ژبه دیومسلمان قوم ژبه وه او د فنونو د کتابونو مصنفینِ هم مسلمانان وو او استاذان هم ، او هغوی د عزت اود خود اعتمادئ او ټولو علومو اوفنونو کښې د سبقت او امتیاز په دومره اوچت مقام باندې وو چه هغوی ته د ټولې دنیا اقوام ښکته په نظر راتلل ددې وجه نه په هغوی باندې د سرکاری ژبې زده کولو یا دنیویه علومو اوفنونو حاصلولو کښې دیو بد اثرپریوتلو څه امکان نه وو هغوی سرکاری ژبه او دنیوی علوم دخپل کور څیز ګڼلو ، د ننی مسلمانانو په شان اغیاربلکه د خیرغوښتلو تصورئې نه لرلو بلکه ددې برعکس د ټولې دنیا دپاره سخیان وو د ټولې دنیا اقوام دهغوی د بزرګانو نه خیرغوښتلو سره نن د ترقئ ډنډوره غږوی .غرض داچه د متقدمینو دپاره سرکاری ژبه اوعلوم دنیویه کښې مهارت د غیرت اود خوداعتمادئ اود تفوق واستغناء باعث وو ،ددې برعکس بدقسمتئ سره نن سبا هم دهغه علومو بطریق جدید تعلیم د اغیارو غلامئ او احتیاج لره په زړه کښې مکمل طورباندې مضبوطوی اود مسلمانانو مرئ لره د اغیارو د احسان په دروند بار سره داسې خفه کړې ده چه هغې لره دهغوی نه دنجات ورکولو دپاره بونسخه هم په کار نه راځی ، هم دهغه غلامانه ذهنیت اود احساسِ کمترئ دا کرشمه ده چه د بنځمې پیړئ مسلمانان د ابوریحان بیرونی نه استفاده کولوسره سپوږمئ او زهره ته رسیږی چه

دهغې ماسکو اعتراف کړې دې مګر د نن سب مسلمانان ماهرينِ فلکيات د نورو په نقل کښې هم ښکاره غلطيانې کوي ، چنانچه همدا اوس حيرانيدونکې انکشاف وشو چه د ګرينج شاهي خبريالانو د رڼا د ابتدا چه کوم وخت ښودلې دې هغې لره د پاکستان او هندوستان ماهرينِ فلکيات صبح صادق ګرځولوسره دهغې مطابق جنترياني مرتب کولوسره په ټول ملک کښې شائع کړي دي.

دويم فرق دادې چه متقدمين علومِ دنيويه کښې مهارت حاصلولونه پس هم د تقوی او د زهد په برکت نه د خدمتِ علمِ دين نه غافل کيدل او نه په هغې کښې څه عملي کوتاهي واقع کيدله . نظرياتي تبديلي خو لرې خبره ده په هغوی کښې اکثرد هرقسمه مهارت لرلو باوجود د فقر اوفاقې په عالم کښې هم خدمت دين کښې مشغوله وو او هغې لره ئې سعادت ګڼلو . او بعضې د دنيا په لويو لويو منصبونو باندې د فائز کيدلو اود بادشاه کيدلو نه پس هم دهغوی په اعتقاد اوعمل اوخدمت دين کښې هيڅ نقص واقع نه شو بلکه هغه مال لره ئې نورد خدمتِ دين ذريعه جوړولوسره دنيالره ئې هم دين جوړکړو ددې برعکس نن سبا د تمناګانو اود حبِ مال اوجاه دومره غلبه ده چه علومِ دنيويه په جديدې طريقې سره حاصلولو نه پس د خدمت علم دين تصور هم ناممکن دې .

خلاصه داده چه مدارسِ دينيه کښې علومِ دنيويه خصوصاً د حساب اوهيئت او اقليدس تعليم اشد ضروری دې مګر د کتبِ قديمه په ذريعې ، صرف اساتذه دې د کتبِ جديده مطالعه کوی که څه دکار خبره ومومې نو طالبان دې په داسې طريقې سره پوهه کړی چه کتبِ جديده اودهغې د مصنفينو تفوق دهغوی په ذهن کښې رانه شي که چرته کتبِ قديمه ناکافي وی نو علماءِ دين دې جديد تصنيف کړي . ددې نه هم زيات ضروری دادې چه د طريقِ تعليمِ اصلاح دې وکړی د زياتو کتابونو ښودلو په ځائې دې تمرين (عملي مشق) زيات وکړې شي د يو کالج د تعليم يافته تصنيف که هغه هرڅومره صالح او متقي وی د طالبانو په اذهانو باندې به دا اثر ضرور اچوی چه هغوی ته دا علوم د مغرب نه حاصل شوی دی . دې علومو لره که چرته دکتبِ جديده په ذريعې سره مدارسِ دينيه ته راوړلې شو نويو طرف ته خو به دهغې اود هغې دمصنفينو د خباثت ډير لوئ اثر پريوځی او دې سره سره به د نصرانيت نه ذهن مرعوبه شي او بل طرف ته به دا نقصان وشی چه د غلبه هوس د وجه نه به دا خلق عصری امتحانات ورکولوسره د خدمتِ دين په ځائې به دحکومت ملازمت اختيارکړی چه په هغې سره د خدمتِ دين د محرومتيا نه علاوه عملي او اعتقادی خرابيانې هم پيدا کيږی . که چرته خدانخواسته ټولو مدارس دينيه دا کارِخيرشروع کړو اوخپل نيم پخته مال ئې سرکاری دفترونو او دينوی منډو کښې خرڅ کول شروع کړه نو آئنده د علمِ دين يو دمدرس پيدا کيدلو هيڅ توقع نه دی پکار ساتل او علم دين لره صرف ديو څو ورځو ميلمه ګڼل پکار دی ممکن ده چه قربِ قيامت کښې د رفعِ علم دين سبب هم دا نظريه جوړيدلو والا وی . الله تعالی دې مونږ نه

دا وخت نه ښائي . آمين . د انګریزۍ ژبې په باره کښې وئيلې کيږي چه ددې په زده کيدلو سره علماء د دين خدمت زيات کولې شي . دا خبره خما په فکر کښې نه راځي چه هغه کومه مسئله ده چه دهغې حل په انګریزی ژبه باندې موقوف دې حالانکه مخالف او موافق د هرقسم کتابونو دفاتر په اردو کښې موجود دی . که چرته دهغې خدمتِ دين کښې معين کيدل هم تسليم کړې شی نو کتل دادی چه دهغې څه مصداق هم په دنيا کښې موجود دې او که نه؟ . که چرته تاسو دهغې جائزه واخلئ چه آيا يو انګریزی وئيلو والا د عالم دين يو بنيادی خدمت کوی نو يقيناً هغه به کالعدم اومومو ، په دې سره خما مقصود دا هيڅرې نه دې چه انګریزی ژبه زده کول ناجائز دی بلکه مقصود دادې چه د دين يوخدمت په دې باندې موقوف نه دې ،لهذا د علماء دين دپاره انګریزی ژبه زده کول بې ضرورته او غيرمفيد دی بلکه داکثرو طبيعتونو دپاره خو مضر دې .

آخرکښې بيا درخواست دې چه مدارسِ دينيه لره مسموم او مولیانو لره دمستر جوړولو په ځائ د کالجونو اصلاح او مستړانو لره صحيح مسلمان جوړولو باندې پوره قوت صرف کول پکار دی .

فقط والله العاصم ١٨ ربيع الاول ٨٩. هجری





بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا

# الكلام البديع فی احكامِ التوزيع

## الكلام البديع

تاريخ تاليف ............ ١٤ذی الحجه ١٣٩٥ هجری

داشاعت کال ............ ١٣٩٨ هجری

عنوانات

- د چندې د پيسو احکام
- آيا د چندې پيسې صرف کيدلو پورې هم د معطی په ملک کښې پاتې وی ؟
- د چندې په پيسو باندې زکوة فرض دې او که نه ؟
- آيا د معطی د انتقال په صورت کښې په هغه کښې به وراثت جاری کيږی ؟

- آیا معطی ته دخپل رقم واپس اخستلو اختیار دې ؟
- زکوٰة لره په نورو مصارفو کښې د لګولو دپاره د مروجه حیلو حقیقت

## د چندې د پیسو احکام

**سوال** :- مدارسِ دینیه کښې د صدقاتِ واجبه او د عطیاتو کومې پیسې چه جمع کیږی آیا په هغې باندې به دکال تیریدلو پس زکوٰة فرض وی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بعضې علماؤ خیال دې چه د چندې پیسې چه ترڅو پورې صرف شوې نه وی هغه وخته پورې هغه هم د معطی په ملک کښې وی په دې بناء باندې هغه پیسو سره متعلق لاندې اشکالات دحل کولو محتاج دی:

(۱) هغه پیسو باندې حولانِ حول نه پس زکوٰة فرض دې او که نه ؟

(۲) که چرته زکوٰة فرض وی نودهغې د ادا کولو به څه صورت کیدلې شی ؟ چه هرکله دهغې د مالکانو هیڅ علم نشته ، ددې وجه نه چه اولاً خو دچندې ورکولو والا فهرست ډیر اوږد وی چه په هغې کښې د ډیرو معلومات کول مشکل وی بیا د چندې تولې پیسې په یوځائ کښې جمع کیږی او حسبِ موقع خرچ کیږی کیږی ، په دې صورت کښې دا معلومول ناممکن دی چه په دې کښې دیوسړې څومره پیسې دې ، چا پنځوس کاله وړاندې پیسې ورکړې وی نوترننه پورې دهغه هم شرکت راروان دې اوآئنده به هم دا شرکت جاری وی .

(۳) چنده ورکولووالاکښې که څوک مړ شی نودهغه د چندې پیسې به دهغه په ترکه کښې داخلیږی ، لهذا اداءِ وصیت اوقرض اود وارثانو حقوق به هغې سره متعلق وی ، وارثانو کښې نابالغه او مجنون هم کیدلې شی چه د ابراء اود تبرع اهل نه دی ، پس هغه پیسو لره واپس کول فرض شو او دا د دویم نمبر مذکوره وجوه سره ناممکن دې ،

(۴) هرچندې ورکونکې ته به هر وخت دخپل پیسو د استرداد حق وی او هغې باندې هم هغه اشکالات کیږی چه په دویم نمبر کښې بیان شو .

**اوس ددې اشکلاتو حل لیکلې کیږی** :

د صدقاتِ واجبه په چوکاټ کښې جمع شوی پیسو باندې خو حولانِ حول نه پس عدم وجوبِ زکوٰة ظاهر دې ددې وجه نه که چرته دا رقم هم اصل مالک سره وې او هغه چاته په چنده کښې نه ورکولو نو بیا به هم په هغې باندې زکوٰة واجب نه وو ، حضرات فقهاؤ رحمهم الله تعالی تصریح فرمائیلې ده چه که چرته د چا په ذمه دیو څو کالو زکوٰة باقی وی نو دکال په اول کښې د واجب کیدلو والا زکوٰة مقدار د ټول مال وضع کولوسره د نورو کلونو زکوٰة به ادا کوی . قال فی التنویر

وسببه ملك نصاب حولی تام فارغ عن دین له مطالب من جهة العباد وفی الشرح سواء کان لله کزکوٰة

وخراج. وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى (قوله كزكوة) فلو كان له نصاب حال عليه حولان فلم يزكه فيهما لازكوة عليه في الحول الثاني (رد المحتار ص ج ۲)

د عطياتو پيسې د مهتمم په تحويل كښې د وركولو نه پس د معطى د ملک نه خارجيږي.

قال في الهندية رجل اعطى درهما في عمارة المسجد او نفقة المسجد او مصالح المسجد صح لانه وان كان لا[1] يمكن تصحيحه تمليكا بالهبة للمسجد فاثبات الملك للمسجد على هذا الوجه صحيح فيتم بالقبض كذا في الواقعات الحسامية (عالمگيريه كتاب الوقف باب ۱۱ فصل ۲ ص ۳۰ ج ۲) وفيها ايضا متولى المسجد اذا اشترى عال المسجد حانوتا او دارا ثم باعها جاز اذا كانت له ولاية الشراء هذه المسألة بناء على مسألة اخرى ان متولى المسجد اذا اشترى من غلة المسجد دارا او حانوتا فهذه الدار وهذه الحانوت هل تلتحق بالحوانيت الموقوفة على المسجد ومعناه انه هل تصير وقفا اختلف المشائخ رحمهم الله تعالى قال الصدر الشهيد المختار انه لا تلتحق ولكن تصير مستغلا للمسجد كذا في المضمرات (عالمگيريه كتاب الوقف باب ص ج ۲)

په دې عباراتو سره ثابته شوه چه د عطيه پيسې د معطى د ملک نه خارجيدلو سره د مدرسې په ملک كښې راځي دلته ملک بمعنى مختص دې اوكه نه نو د ملک حقيقت د غيرذوى العقولو دپاره غيرمعقول دې ، ددې پيسو نظيرغلة الوقف دې ، پس دعطيه په پيسو باندې هيڅ اشكال باقي پاتې نه شو . چه هركله د معطى ملک ختم شو نو نه د وجوب زكوة سوال پاتې شو نه ده د استرداد اونه د معطى د مرگ په صورت كښې پيدا كيدلو والا اشكلات باقي پاتې شو څنگه چه معطى باندې دهغې زكوة واجب نه دې هم دغه شان د مدرسې په مهتمم باندې هم دهغې زكوة ويستل واجب نه دی لما مرانها بمنزلة غلة الوقف .

اوس صرف دصدقې پيسو كښې استرداد اود متصدق په مرگ باندې واريدلو والا اشكلات باقي پاتې كيږي . نو غور كولو سره معلوميږي چه دا پيسې هم د مدرسې د مهتمم په تحويل كښې د راتللو نه پس د اصل مالک د ملک نه خارجيږي ددې وجه نه چه په حكم دعطيه اوصدقه كښې څه فارق ښكاره نشته البته دهغه پيسو مستحقينو لره د مالک جوړيدلونه وړاندې به زكوة ادا كيږي نه . خروج عن الملک اداء زكوة لره مستلزم نه دې . مثلاً چا بل چاته قرض وركولو سره دا اووئيل چه دا پيسې ماته د واپس كولو په ځائ ځما د طرف نه كوم مسكين ته په زكوة كښې وركړه په دې صورت كښې قرض وركولو سره د مقرض ملک ختم شو مگر تراوسه پورې زكوة ادا شوې نه دې . غرض داچه څنگه عطيه مختص للمدرسه كيدلو د وجه نه د معطى د ملک نه خارجيږي هم

---

[1] وفي بعض النسخ وان كان لا يمكن تصحيحه وقفا يمكن تصحيحه تمليكا بالهبة للمسجد واثباتها الخ منه

دغه شان صدقه هم مختص للمدرسه ده اگرچه دهغې ديو خاص شعبې دپاره دې.

غرض داچه صدقه هم د مالک د ملک نه خارجيږي څکه چه د عطيه په شان د صدقې د پيسو د استرداد به هم حق نه وي او د متصدق د مرگ به هم په هغې باندې څه اثر نه وي. سره ددې نه زيات احتياط دپاره که د صدقې پيسو لره د تمليک په ذريعې سره عطيه کښې شامل کړې شي نو بهتره ده. د تمليک صحيح صورت دادې چه يوفقير د مهتمم په ضمانت باندې قرض اخستلو سره مدرسې ته عطيه ورکړي او مهتمم زکوة نه دهغه قرض ادا کړي. عام طور باندې چه کومه حيله مروجه ده هغه صحيح نه ده.

بعضې حضرات دا تاويل کوي چه مهتمم د طالبانو وکيل دې لهذا د مهتمم په قبضه کښې راتللو والا پيسې که هغه عطيات وي اوکه صدقات د معطي د ملک نه وتلو سره د طالبانو په ملک کښې داخليږي، دا خيال په لاندې وجوهو سره باطل دې:

(۱) چه کله دومره پيسې جمع شي چه مجموعه طالبانو باندې تقسيمولو سره دهرسړي حصه دنصاب په اندازه شي نودهغې نه پس د مهتمم دپاره د چانه نورې پيسې د مدرسې دپاره اخستل به جائز نه وي بلکه د حولانِ حول نه پس هرطالب علم باندې به زکوة فرض کيږي او که معطي ته دهغې علم وشو او د هغې باوجود يې هغه زکوة ورکړو نو زکوة يې نه ادا کيږي، قال في العلائية ولو خلط زكوة موكليه ضمن وكان متبرعا الا اذا وكله الفقراء قال ابن عابدين رحمه الله تعالى (قوله اذا وكله الفقراء) لانه كلما قبض شيئا ملكوه وصار خالطا مالهم بعضه ببعض ووقع زكوة عن الدافع لكن بشرط ان لا يبلغ المال الذي بيد الوكيل نصابا فلو بلغه وعلم به الدافع لم يجزه اذا كان الآخذ وكيلا عن الفقير كما في البحر عن الظهيرية، قلت وهذا اذا كان الفقير واحدا فلو كانوا متعددين لا بد ان يبلغ لكل واحد نصابا لان ما في يد الوكيل مشترك بينهم فاذا كانوا ثلاثة وما في يد الوكيل بلغ نصابين لم يصيروا اغنياء فتجزي الزكوة عن الدافع بعده الى ان يبلغ ثلاثة انصباء (ردالمحتار ص" ج۲)

(۲) هرطالب علم ته به دا اختيار وي چه هغوي کله غواړي د مهتمم وکالت ختمولو سره دخپلې حصې د پيسو مطالبه وکړي خصوصاً چه کله هغه مدرسې پريښودلو سره ځي.

(۴) د طالب علم په انتقال باندې به دهغه د حصې رقم دهغه په ترکه کښې داخليږي.

(۵) مهتمم، استاذان او د مدرسې پوره عمله به د طلبانو تنخواه دار ملازمين وي، ددې نظرئې مطابق نه خو د مدرسې نظم صحيح پاتې کيدلې شي او نه د طالبانو صحيح تربيت کيدلې شي. علاوه ددې نه دطالبانو په زړونو کښې د استاذانو به څه عزت وي او په هغه علم کښې به څه نور وي چه استاذ لره نوکر گڼلو سره حاصل کړې شوې وي.

دااشکالات اسلامي بيت المال باندې نه واردېږي ددې وجه نه چه د ساعي په قبضه کښې

زائلو والا مال د اصل مالک د ملک نه خارجیږی مگر د فقیر په ملک کښې نه داخلیږی . د فقهی په کتابونو کښې ددې تصریح ده چه بیت المال کښې د فقراؤ حق دې او حقِ ملک . عدم حقیقت ملک لره مستلزم دې . د خروج الشیء عن ملک لا الی ملک نظائر موجود دی . لکه وقف . بیع بالخیار او ترکه مستغرقه بالدین

دبحر د زکوة الغنم په آخرکښې دی ((ان الدفع الی المصدق لا یزیل ملکه عن المدفوع)) . دا په هغه صورت کښې دې چه د تمامِ حول نه وړاندې ئې زکوة ورکړې وی . په دې صورت کښې ساعی ته ولایتِ جبریه حاصل نه دې بلکه دا د معطی وکیل دې ددې وجه نه فقیرته ورکولونه وړاندې د معطی ملک نه زائل کیږی . د مدرسې مهتمم ته هم اگرچه ولایتِ جبریه نشته مگر په دې کښې او اعطاءِ ساعی قبل تمامِ الحول کښې دا فرق دې چه په اول کښې عمارت وقف کښې صرف متعین دې او ثانی کښې مطلقاً تصدق علی الفقراء مقصود دې لهذا اول بحکم وقف کیدلو د وجه نه به مزیلِ ملک وی څنګه چه عالمگیریه نه د مسجد د عطیه حکم تیرشو . ثانی بحکم وقف نه دې ددې وجه نه مزیلِ ملک نه دې . پاتې شو بیت المال باندې دا اشکال چه بدون د تملیک دفقیر نه زکوة ادا کول څنګه صحیح کیږی ؟

ددې جواب دا کیدلې شی چه بیت المال کښې خلافِ قیاس حقِ ملک لره حکماً حقیقت ملک گرځولې شوې دې څنګه چه دینِ قوی کښې حقِ ملک لره حقیقتِ ملک گرځولوسره دائن باندې د وجوبِ زکوة حکم ورکولې کیږی .

د مدارسو خزانې لره په بیت المال باندې قیاس کول صحیح نه دی . ددې وجه نه دا خلافِ قیاس کیدلو د وجه نه پخپل مورد باندې به منحصروی . علاوه ددې نه دلته خو وجه القیاس هم موجود نه ده د سلطان ولایتِ جبریه عامه باندې د مهتمم وکالتِ اختیاریه خاصه لره قیاس کولو هیڅ جواز نشته . د شامیه تیرشوی عبارت ((لانه کلما قبض شیئا ملکوه ـ الخ )) نه هم ثابته شوه چه وکالتِ اختیاریه د ولایتِ جبریه په حکم کښې نه دې . وجه الفرق دادې چه د اخذ زکوة په ولایتِ جبریه کښې نفسِ اخذ سره د صحت زکوة حکم نه لګولو کښې حرج عظیم دې

حاصل دا چه د مدارسو پیسې صرف په خروج عن ملک المعطی کښې د بیت المال په حکم کښې دی او اداءِ زکوة کښې د بیت المال په حکم کښې نه دی . ددې وجه نه بدون تملیک مستحقین زکوة به نه ادا کیږی اود مدرسې په نورو ضروریاتو کښې به خرچ کول جائز نه وی . فقط والله تعالی اعلم

۱۴ ذی الحجه ۹۵ هجری

**نظرثانی :** د مدرسې خزانه دبیت المال په حکم کښې ده . په هغې کښې مالِ زکوة داخلیدلو سره زکوة ادا کیږی سره ددې نه د تملیکِ طلبه نه سوا په بل مصرف کښې لګول جائز نه دی . تفصیل به تتمه کښې دې

۲۰ ذی قعده ۱۴۰۴ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ

# صيانة العلماء عن الذُل عندالاغنياء

## صيانة العلماء

سن تاليف ........................ ۱۳۹۶ هجری

سن اشاعت ........................ ۱۳۹۸ هجری

په دې دور کښې د دینی اقتدار د سقوط یونهایت دردناکه واقعه دا هم ده چه دینی کارونو بالخصوص دینی مدارسو دپاره دچندې کولو عام دستور داسې روان دې چه د مدارسو سفیرد مالدارانو دکانونو او کورونو ته تللوسره ډیرو خوشامندو او اصرار سره دسوال لاس اوږدوی ، مالداره هغوی ته د ذلت په نظر ګوری ، بلکه کله کله دهغوی دپاره بې خونده الفاظ استعمالولو سره دهغوی تحقیر کوی . چه په حقیقت کښې د دینِ اسلام تذلیل دې ، دا دومره لویه حادثه ده چه ددې په تصورسره هم د شرم نه سترګې ټيټیږی . او په زړه باندې ارې شروع شی ، د دین اود علماء دین په دې تذلیل او توهین کښې اهلِ مدارس او مالداره دواړه برابرمجرم دی .

په دې رساله کښې د دې دواړو طبقو دپاره د صراطِ مستقیم هدایت دې ، الله دې وکړی چه د یو عاجز په درد کښې نغوتلې آواز دچا په زړه کښې کوز شی . الله تعالی دې مونږ ټولو لره د آخرت فکر رانصیب کړی . آمین

## د چندې غوښتلو مروجه طریقه جائز نه ده

**سوال** - نن سبا عام طور باندې دینی مدارسوکښې دا دستور شروع شوې دې چه د چندې دپاره مستقل سفیرساتی چه د مختلفو خلقو سره ملاقات کوی دخلقو دکانونو او کورونو ته ځی او په هغوی کښې ډیر د څه ناڅه حاصلولو دپاره بیحده اصرار کوی ، بالخصوص د رمضان په میاشت کښې د دینی مدارسو ټولګی ټولګی په نظر راځی چه دهغوی د ویرې نه دوکانداران په پرده کښې پټ کینی . آیا د چندې کولو دا طریقه شرعاً صحیح ده ، حالانکه دا یوقسم جبر دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مدارسِ دینیه دپاره نن سبا دچندې کولو چه کومه طریقه مروج ده چه دهغې څه تفصیل په سوال کښې لیکلې شوې دې دا قطعاً ناجائز ده ، دینی کار کولو والو لره مستغنی کیدل پکار دی . استغناء اود دین عظمت لره برقرار ساتلوسره دخپل طرف نه چه د څومره بسو انتظام وشی بس هغه اندازه کار باندې اکتفا وکړئ . او که چرته هم چنده کول وی نود عام

خطاب گنجائش دي . خاص خطاب هرگز جائز نه دي . بعضې وقتونو کښې خطاب هم بحکم خطاب خاص وی هغه په دې صورت کښې چه عام مجلس کښې څه خواص موجود وی . چه ددې خطاب نه پس څه پیسو نه ورکولو کښې عیب محسوسوی ، نو دا صورت هم بحکم خطاب خاص کیدلو د وجه نه ناجائز دې . خطاب عام کښې هم زیات د احتیاج ښکاره کول صحیح نه دی . بلکه استغناء سره اظهار مصرف باندې اکتفاء کول پکار دی .

نن سبا یو عام دستور دا شروع شوې دې چه اهل خیرله کومې بهانې سره جمع کولو سره دهغوی نه د رقم مطالبه کولې کیږی دا طریقه انفرادی طورباندې د چا نه د څه سوال کولو په نسبت هم زیاته قبیحه ده . په دې صورت کښې مجمع کښې د رسوائي نه بچ کیدلو دپاره په زړه ماتی چنده ورکول پیښیږی چه بلاشبه جبر دې ددې وجه نه دا طریقه بالکل ناجائز او حرامه ده

که چرته یو سړې انفرادی طورباندې د چا نه چنده وغواړی نو دهغوی په خپل مینځ کښې د تعلق درې قسمونه دی (۱) وجاهت (۲) محبت (۳) پردې والې . که چرته داسې سړی ته د چندې دپاره لاړو چه هغه باندې دهغه د وجاهت اثر دې که هغه د دینی مرتبې د وجه نه وی یا د دنیاوی مال اودولت یا منصب په بناباندې دا صورت ناجائز دې ددې وجه نه چه په دې کښې د چندې اخستونکی د وجاهت نه متاثرکیدلوسره په زړه ماتی باندې چنده ورکوی چه حلاله نه ده. لقوله علیه السلام : ((لایحل مال امرئ مسلم الابطیب نفسه)) (مسند الامام احمد رحمه الله)

اوکه چرته بغیرد څه تعلق اورابطې نه چندې کولو دپاره څی نو په هغې کښې خپل توهین دې او ددې نه هم زیات د اسلام توهین دې ددې وجه نه دا هم ناجائز دی ، باقی صرف د محبت تعلق پاتې شو دهغې دلیل دادې چه پخپل مینځ کښې دومره بې تکلفی وی چه دچا نه چنده طلب کړې شوه هغه دخپل کوم مصلحت په بناء باندې چنده ورکول نه غواړی نودهغې نه انکارکولوکښې لږ شان هم تکلف او ندامت نه وی . اودهغه په انکار کولو باندې طلب کولو والا ته لږ هم څه خفگان نه وی . دصحابه کرامو رضی الله عنهم د حضورصلی الله علیه وسلم سره داسې قسم تعلق او محبت وو . احادیثوکښې ددې ډیر مثالونه موجود دی ، حضورصلی الله علیه وسلم یو صحابی ته څه مشوره ورکړه هغه قبوله نه کړه. نه هغه صحابی ته انکارکولوکښې څه مشکل محسوس شو اونه حضورصلی الله علیه وسلم دپاره دهغه انکارکول د خفگان باعث جوړشو ، عرض دا چه داسې قسم بې تکلفی تعلق وی نودچندې دپاره خطاب خاص هم جائز دې مگر نن سبا داسې تعلق عنقاء دې . خلاصه دا را اوتله چه نن سبا خطاب خاص هم بهرحال ناجائز دې .

د اهل مدارسو ددې بدچلد او دروازو باندې د چندې لټولو بنیاد په دریو څیزونو بنا دې

(۱) کارشروع کولوسره پخپل ذهن کښې لویه اوږده نقشه مرتب کوی چه د دومره طلباؤ د طعام او قیام انتظام به کولې کیږی ، دومره کوټې به جوړیږی .دومره درسگاهونه به وی دومره استاذان

به وی . دومره لویه کتب خانه به وی . تردې پورې چه د سنګ بنیاد ایښودلو نه وراندې وراندې د دارالعلوم او د جامعې په شان نوم تجویزکیږی . اوس د دومره لوئ کار دپاره سرمایه موجود نه وی نو د مالدارو په دروازو باندې د خیرغوښتلود پاره ګرځی راګرځی او دین لره ذلیل کوی . صحیح طریقه داده چه ابتداء د مختصرکاربنیاد کیښودلې شی ، دهغې نه پس چه څومره څومره اسباب پیدا کیږی دهغې مطابق دې کار زیاتولې کیږی . یعنې چه څومره رقم دخپل خان عزت اود دین عزت لره باقی ساتلوسره حاصل شی صرف هم دهغې مطابق دې د کار آغاز وشی . وراندې که الله تعالی ته منظوره شوه نو هغه به ستاسو دې وړوکی کار لره دارالعلوم او جامعه هم جوړه کړی . اوکه نه نو دهغه د مرضئ مطابق چه څومره کار کیدلې شی هغې لره غنیمت وګنئ ، دهغې ظاهراً وړوکې شانتې وجود به هم عندالله ډیر لوئ وی .

(۲) مدرسې لره داسې مقصود جوړولې کیږی چه دهغې په بقاء اوحفاظت باندې دین لره قربانولې کیږی . حالانکه اصل مقصود دین دې ، مدارس د حفاظتِ دین ذریعې دی ، پس د ذریعې په حفاظت باندې مقصود لره قربانول څومره لوئ ظلم دې . حدودِ شرع کښې دننه که چرته مدرسه ونه چلیږی نوهغه دې بنده کړې شی ، مونږ دهغې مکلف نه یو ، د یوبند یو با اثررئیس د دارالعلوم د مجلسِ شوری رکن جوړیدلو مطالبه وکړه ، حضرت ګنګوهی رحمه الله هغه لره دهغې لائق نه ګڼلو ، حضرت تهانوی رحمه الله تعالی مشورة ولیکل چه هغه سړی لره رکن نه جوړولوکښې دهغه نه د فساد خطره ده او رکن جوړولو کښې هیڅ خطره نشته ، ځکه چه اکثریت زمونږ دې . حضرت ګنګوهی رحمه الله جواب ورکړو چه که چرته عندالله ځما نه دا سوال وشو چه نالائق لره دې رکن ولې جوړکړو ؟ نو دهغې به ځما سره هیڅ جواب نه وی او درکن نه جوړولوپه صورت کښې زیات نه زیات هم دا ضرر کیدلې شی چه مدرسه به بنده شی زه به الله تعالی ته دهغې دا جواب ورکړې شم چه ما ستا د حکم تعمیل وکړو هغې باندې که چرته مدرسه بنده شوه نو په هغې کښې ځما قصور څو نشته . د حضرت ګنګوهی رحمه الله تعالی دهغې تقوی نتیجه دا وشوه چه هغه رئیس صاحب د مدرسې خلاف چغووهلوسره پاتې شو مګر دارالعلوم مسلسل حیرانونکې ترقئ باندې روان وو .

(۳) الله تعالی باندې د توکل او اعتماد فقدان . که چرته الله تعالی باندې کامل اعتماد وې اود « اناعندظن عبدی بی » مطابق د الله تعالی سره حسنِ ظن وې نودهغه کریمِ دروازې لره پریخودلو سره د دنیادارو په دروازه باندې به ئې تیلې نه خوړلې . دهغه سره به الله تعالی دغیبو هغه معامله کوله چه مالداران به دهغه دروازې ته راتلل . افسوس او تعجب دې چه دقرآن اوحدیث وئیلو او شودونکونظرونه د «ان تنصروا الله ینصرکم ویثبت اقدامکم» ، «ومن یتق الله یجعل له مخرجا ویرزقه من حیث لا یحتسب» ، «ومن یتوکل علی الله فهو حسبه» ، «ومن یتق الله یجعل له من امره یسرا» ، «ومن یهاجر

في سبيل الله يجد في الارض مراغما كثيرا وسعة» «ومن يستغن يغنه الله ومن يستعفف يعفه الله» ، په مثال
نصوصو باندې ولې نه غورځيږي ، اود الله اود الله درسول صلى الله عليه وسلم دا ارشادات
دهغوی په زړونوکښې ولې نه کوزيږی او دې قطعی وعدو باندې دهغوی يقين ولې نه راځی اود
دعا «اللهم اجعلنی ممن توکل عليک فکفيته» توفيق ولې نه حاصليږی .

مروجه طورباندې د چندې کولو فسادات اوقبائح او د الله تعالی حسن ظن او هغه باندې د
توکل اود اعتماد تعليم باندې د حضرت تهانوی رحمه الله تعالی يو وعظ «تاسيس البنيان علی
تقوی من الله او رضوان» دې ، همدارنگه د حضرت يو رساله «التوريع عن فساد التوزيع» هم ده
چه په هغې کښې د چندې کولو د مفاسدو نه علاوه د چندې د پيسو د مصارفو مفاسد يې هم بيان
کړی دی. اهلِ مدارس باندې لازم ده چه دې دواړو رسالو لره تعويذ جوړکړی اودهغې د مطالعې
معمول دې هميشه دپاره جاری وساتی ، پخپل قول او عمل او استغناء سره په مالدارو خلقو
باندې دا ښکاره کړئ چه د الله تعالی دين ستاسو د اعانت محتاج نه دې بلکه تاسو محتاج ئې او
ستاسو خپل ضرورت دې چه ستاسو پيسې په يو دينی کار ولگيږی ددې وجه نه اهلِ مدارس
باندې ستاسو څه احسان نشته بلکه داهلِ مدارسو په تاسو باندې احسان دې چه ستاسو پيسو لره
صحيح مصرف باندې د لگولو انتظام کوی . د علمِ دين مقام خو ډير اوچت دې يو عامی مسکين
ته د صدقې ورکولو په باره کښې احياء العلوم کښې يې د مشهور امام محدث شعبی رحمه الله
تعالی قول نقل کړې دې چه کوم سړې خپل ځان لره د ثواب دهغه چا نه زيات محتاج ونه گڼی څومره
چه فقيرلره دخپلې صدقې محتاج گڼی هغه خپله صدقه ضائع کړه او هغه صدقه به دده په مخ باندې
ويشتلې کيږی مگر دلته دا حالت دې چه اهلِ مدرسه د چندې ورکولو والا شکريه ادا کوی څومره
د بې غيرتوب خبره ده حقيقت خو دادې چه مالدارو ته د اهلِ مدرسې شکريه پکار ده چه د هغوی
پيسو قبلولوسره دهغې حفاظت کوی او صحيح مصرف باندې يې لگوی .

مالداره دې ښه پوهه شی چه الله تعالی ته دخپل دين د حفاظت دپاره دهغوی د خزانو ضرورت
نشته. **«هم الذين يقولون لا تنفقوا على من عندرسول الله حتى ينفضوا ولله خزائن السموات والارض ولكن
المنافقون لا يفقهون»** که چرته تاسو خلق د الله په لاره کښې د خرچ کولو نه برطرفی کوئ نو الله
تعالی به د خدمتِ دين کار د بل چا نه واخلی . **«وان تتولوا يستبدل قوما غيركم ثم لا يكونوا امثالكم»**
انشاء الله تعالی د الله د دين کار نه بنديږی که چرته په ظاهره يومدرسه بنده هم شی نو په حقيقت
کښې هغه بنده نه شوه بلکه د مالدارو خلقو د بې قدرئ او ناشکرئ د وجه نه الله تعالی دا چينه بل
ځائ ته منتقل کړې ده اود هغه خلقو اصلاح لره ئې کوم بل ځائ سره وابسته فرمائيلې ده . لکه يو
نادانه ماشوم يا يو ديوانه په پوکوسره چراغ مړه کول غواړی نو چراغ لره اوچتولوسره چرته لرې
کيښودلې کيږی . اوس که چاته د رڼا ضرورت وی نولاړ دې شی هغې سره دې کينی . که يو

حکومت دیوې علاقې نه د انتظامیې دفتر یا هسپتال اوچت کړو نودا کارختم نه کړې شو بلکه دهغه ځاۍ داوسیدونکو د نالائقۍ د وجه نه دهغوی نه د نزدې والی سهولت اوچتولوسره دهغوی انتظام یا علاج یې لرې یوځاۍ سره وابسته کړو .

دعلماؤ دمالدارو ورانديې لاس اوږدول او ژبه خلاصول خو لرې خبره ده باید دچا په زړه کښې هم هغوی طرف ته میلان پیدا نه شی . د زړه دمیلان هم دا اثروی چه د داسې علماؤ د مالدارو په زړونو کښې عظمت باقی نه پاتې کیږی .

د دارالعلوم نه یو منتهی طالبِ علم دخوب د تعبیرپوښتنې دپاره ماته راغلو . په خوب کښې ئې ولیدل چه امام محمد رحمه الله تشریف راوړې دې ، د دوی مخې ته یو نهایتِ ښائسته ځوانه ښځه سنګارکولوسره مزین لباس کښې ناسته ده او هغه خپل ځان لره د امام ښځه ښکاره کوی او خوشامدې کوی چه امام یو نظر هغې طرف ته وګوری مګر امام نهایتِ استغناء سره په بل دینی کار کښې مشغول دې .

ما هغه مولوی صاحب ته اووئیل چه داسې معلومیږی چه تا سره د تعلیم د فراغت نه پس د معاش فکر وی ؟ هغوی اووئیل چه په دې فکر کښې بعضې وقت خوب هم نه راځی . ما ورته اووئیل چه بس په دې خوب کښې هم ددې مرض علاج ښودلې شوې دې ، د امام محمد رحمه الله تعالی په شان علم حاصل کړه نو دینا به خپل تول ډول اوسنګارسره ستادیو نظر خواهشمنده وی اوته به وائې چه ماته ضرورت نشته . علماء دې الله تعالی باندې اعتماد مضبوطولو سره د «اتته الدنیاوهی راغمه[1]» مشاهده وکړی .

دعالمګیررحمه الله د حکومت لاندې دیو ریاست والی هندوراجه وو هغه مړشو . دهغه ځوئ نابالغه وو . عالمګیررحمه الله دې اندازه لګولودپاره چه په هغه ماشوم کښې د حکومت کولو صلاحیت شته اوکه نه، هغه طلب کړو ، اتفاقاً دوی هغه وخت د حوض په غاړه باندې وو مزاحاً ئې ماشوم له لاسونو نه ونیولو او په حوض کښې یې زوړنده کړو او وې فرمائیل پرېږدیدم، ماشوم اووئیل چه «دچا لاس د بادشاه په لاس کښې وی دهغه د ډوبیدلو څه ویره ده ؟»

د یو هندو بچی په یو مخلوق بادشاه باندې دومره اعتماد کوی ، کاش ، چه د نن مسلمانانو ته هم پخپل مالک ارض وسماء باندې داسې اعتماد حاصل شی .

یو شکل بدلولو والا لره د دزاهد په شکل کښې کتلوسره عالمګیررحمه الله یوزراشرفۍ نذرانه پیش کړې مګر هغه صرف د اهل الله نقل ویستلو په غرض سره دهغې نه انکاروکړو . کاش د مالدارانو په دروازې باندې ویشتلو والا نظرونه دهغه شکل بدلولو والا نه د اهل الله د نقل ویستلو سبق حاصل کړی . فقط والله الموّفق لمرضیاته .

۳جمادی الاخره ۸۲هجری

---

[1] ـ سوره حدمت د رسالې په آخرکښې عنوان تتمه لاندې درج دې ۱۲ منه

«صیانة العلماء» رساله تراوسه کتابت نه پس د تصحیح مراحل پوره کول چه د عزیز محترم مولوی احتشام الحق آسیا آبادی خط را ورسیدلو چه دهغه په کلی آسیا آباد «بلوچستان» کښې فی الحال جاری شوې ددینی مدرسې دطرف نه دتوکل علی الله والاستغناء عماسواه په برکت سره د جذبه قلوب په خبر باندې مشتمل وه. دنگاهِ عبرت په خاطر هغه هم د رسالې «صیانة العلماء» جزء جوړولې کیږی

دهغه مدرسې د مختصرکوائفو بیان به د برکاتِ توکل د اظهاراود تحصیلِ توکل دپاره زیاته نافع او فائده منده شی:

(۱) دا مدرسه د بلوچستان په داسې پسمانده علاقه کښې ده چه د هغې د بیچارګئ اندازه بدون له مشاهدې نه شی کیدلې.

(۲) دا مدرسه بالکل نوې ده دهغې عمر اوس صرف د یو څو میاشتو دې.

(۳) دې مدرسې لره جاری کولو والا مولوی احتشام الحق بالکل خوان دې. اوس اوس د دارالافتاء والارشاد د شعبه تمرینِ افتاء نه فارغ شوې دې چه دهغه اوس نه علمی حلقو کښې څه مقام شته اونه څه وجاهت.

(۴) د علاقې دنیادارو بې دینه عناصرو د مدرسې دپاره زیاتې پیسې پیش کړې مگر مولوی صاحب قبولې نه کړې. چه کلهٔ هغوی داسې مولوی صاحب لره تابع نه کړې شو نو د دروغو مقدمات ئې دائر کړل. الله تعالي پخپل فضل اوکرم سره مولوی صاحب لره بری کړو

(۵) یوڅو ورځې وړاندې مولوی صاحب مانه پوښتنه وکړه چه بعضې مالداره خلق د مدرسې سره د تعاون پیشنهاد کوی آیا هغه قبول کړم اوکه نه؟ ما دهغه خلقو څه کوائف معلوم‌ولو نه پس دهغوی د امداد قبلولو نه مولوی صاحب منع کړو.

هغه کوائفو لره مخې ته کینښودلوسره اوس د مولوی صاحب په خط کښې د توکل د برکاتو مشاهده وکړئ.

زما محبوب حضرت اقدس دامت برکاتهم.

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

طالبِ خیر په خیراوعافیت سره دې اما بعد.

پرون د مدرسې دپاره یو صاحب ۳۲۳۷ روپئ قطر«عربین گلف» نه رالیږلې دی. هم داسې ددې نه وړاندې هم دیرکرته مسقط او نورو بعضې ملکونو نه بعضې خلقو پیسې رالیږلې دی هم دغه شان نن یو خط د عربو دیو علاقې نه راغلې دې په هغې کښې ئې لیکلی دی چه یو څو زره پیسې د مدرسې دپاره ما سره دې. زه به یې د مارچ په میاشت کښې در ولیږم. هغه حضراتو کښې بعضولره خو زه پیژنم او بعضې نه پیژنم لیکن هغوی ما پیژنی. اول الذکر اود چا د خط ذکر

مي چه کړي دي هغه دوارو لره زه پيژنم . ديندار ه دی ډيره ئې هم ساتلې ده ستاسو په مجلس کښې ډيرخلې حاضر شوی دی

سوال دادی چه دهغه حضراتو راليږلي شوی پيسي تراوسه پورې ما نه دی اخيستي آيا ددې حضراتو او دنورو داسي خلقو پيسي د مدرسي دپاره قبولي کړم اوکه نه ؟ يا په دي سلسله کښې دهغه حضراتو سره څه شرائط مقررکړم او هغه څه ؟ واضحه دې وی چه دومره گمان غالب دې چه دومره پيسي داحضرات دخپل طرف نه نه ورکوی اندازه داده چه د مدرسي دپاره د چندې وغيره په ذريعې سره به دا پيسې حاصلوی

نمبر۲ همدارنگه بعضې خلقو د عرب ممالکونه ليکلی دی چه ستاسو د «راقم» بعضې پيژندلو والا د مدرسې دپاره مونږ ته ماهانه طور باندې د پيسې ورکولو دپاره راخی تاسو څه سند «رسيد بك» راوليږئ دې دپاره چه هغوی ته رسيد هم ورکړې شی . اوهمدارنگه د پيسو حساب هم په سهولت سره وشی . په دې سلسله کښې هم د حضرت نه د مشورې درخواست دې والسلام

د دعاگانو طلب گار احتشام الحق آسيآبادی

۲۲صفرسنه ۱۳۹۷ هجری

**جواب**

رشيداحمد ۵ربيع الاول سنه ۱۳۹۷ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

عزيز محترم زيدت معاليکم

وعليکم السلام ورحمة الله وبرکاته . د الله تعالی دخلقو زړونو لره د مدرسې اعانت طرف ته متوجه کول او د دينی کار دپاره دغيب نه اسباب پيدا کول دهغه لوئ کرم دې . زمونږ په شان نالائقو باندې دهغه د دومره لوئ کرم خبرلوستلوسره د ډير ندامت او ډيرې خوشحالئ نه دمرکب کيفيت په غلبې سره څما د سترگونه اوښکې جاری شوې او بې اختياره هم په هغه حال کښې په سجده باندې پريوتلم

ياالله ستادهغه کرم په صدقې سره مونږستانه سوال کوُوچه زمونږه کمزورې کوشش او رټ لړه غوندې سعيه قبوله کړه او زمونږه ټولو اقوالو . افعالو . نياتو . اراداتو . خطراتو او جمله حالاتو لره دخپلې مرضئ مطابق جوړکړه . د ماضی په شان مستقبل کښې هم مونږ صرف دخپل ځان محتاج اوساته . د غيرد احتياج نه حفاظت راکړه . زمونږه د زړه توجه لره خپل ذات باندې داسې مرکوزه کړه چه د زړه په يوه حصه کښې هم دغيرتيريدنه ونه شی اللهم اقذف فی قلبی رجائك واقطع رجائی عمن سواك حتی لا ارجوا احدا غيرك آمين شعر

خلوا فؤادي ولقشوه وقلبوه كما تريدوا
فلن تحسوابه سوا كم زدوا على الحضور ليدوا

رسيدبك «سند» استولو كښې هيڅ حرج نشته . د معطينو «صديقې وركونكو» اود مرغبينو «صدقې اخستونكو» شرائط لاندې ذكر كيږي نقل كولو سره يې دوستانو ته وليږه

**شرائط معطين :**

(۱) صحيح العقيده وى .

(۲) ذريعه معاش يې حلاله وى .

(۳) دهغوى نه كله هم د احسان كولو خطره نه وى .

(۴) كله يوناجائزيا نامناسب كاركښې ستاسو نه د تعاون درخواست كولو انديښنه نه وى .

**شرائط مرغبين :**

(۱) صرف داسې دوستانو ته ذكر وكړى چه هغوى سره يې د بې تكلفئ او خلوصِ محبت داسې تعلق وى چه هغوى څه نه وركولو كښې خپله شرمندگى محسوس نه كړى او ترغيب وركولو والا له قطعاً څه خفگان نه وى .

(۲) ترغيب كښې د شانِ استغناء مظاهره وى .

(۳) د الحاح او اصرار نه بالكليه احتراز وكړه .

(۴) چاته يو ځل ذكركولو نه پس دوباره هيچرې مه وايه .

(۵) د وجاهت نه كار مه اخله .

(۶) يو داسې سړى ته ونه وائې چه ديو وجه نه دهغه محتاج ئې .

(۷) د وركولو والا شكريه هيچرې ادا نه كړې بلكه دشكريه په ځائ هغه ته د « جزاكم الله تعالى» دعا وكړه .

ددې اوو شرائطو خلاصه داده چه ديوسړى مرغب وجاهت يا هغه طرف ته خپل حاجت يا غلبه مروت يا نه وركولو كښې د شرمندگئ او خفگان وغيره باعث جوړنه شې بلكه ظنِ غالب حاصل شى چه د زړه نه وركوى . نيز وركولو والا دا اوگنى چه هغه چاباندې څه احسان نه كوى بلكه په هغې كښې دهغه خپله فائده ده . وفقنا الله الجميع لما يحب ويرضى . آمين

ستاسو په نوم د قطر دوحه نه د دوو زرو روپو يو پيشكش اويو دنائيټډ بنک نه يو لفافه راغلې ده دهغې سره څه وكړو ؟ فقط والسلام عليكم

# تتمه

## التوكل والتقوى

### القرآن

(۱) ﴿رَّبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا﴾

(۲) ﴿إِن تَنصُرُوا اللَّهَ يَنصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ ﴿٧﴾﴾

(۳) ﴿إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٦٠﴾﴾

(۴) ﴿مَّا يَفْتَحِ اللَّهُ لِلنَّاسِ مِن رَّحْمَةٍ فَلَا مُمْسِكَ لَهَا وَمَا يُمْسِكْ فَلَا مُرْسِلَ لَهُ مِن بَعْدِهِ﴾

(۵) ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم﴾

(۶) ﴿وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ﴾

(۷) ﴿وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً﴾

وقال صلى الله عليه وسلم: ((المهاجر من هجر ما نهى الله عنه)).

(۱) ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ﴿٢﴾ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ﴾

(۲) ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا﴾

(۳) ﴿وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾﴾

(۴) ﴿اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ﴿١٠﴾ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا ﴿١١﴾ وَيُمْدِدْكُم بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَل لَّكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَل لَّكُمْ أَنْهَارًا ﴿١٢﴾﴾

## الحدیث

(۱) عن انس بن مالك رضی الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من كانت الاخرة همه جعل الله غناه فی قلبه وجمع له شمله واتته الدنيا وهی راغمة ومن كانت الدنيا همه جعل الله فقره بين عينيه وفرق عليه شمله ولم ياته من الدنيا الا ما قدر له (ترمذی)

(۲) عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم ولم يقول لو انكم كنتم توكلون على الله حق توكله لرزقتم كما ترزق الطير تغدو خماصا وتروح بطانا (ترمذی)

(۳) عن ابی ذر رضی الله تعالى عنه عن النبی صلى الله عليه وسلم قال الزهادة فی الدنيا ليست بتحريم الحلال ولا اضاعة المال ولكن الزهادة فی الدنيا ان لا تكون بما فی يديك اوثق بما فی يد الله (ترمذی)

(۴) عن ابن عباس رضی الله تعالى عنهما قال كنت خلف رسول الله صلى الله عليه وسلم يوما فقال يا غلام احفظ الله يحفظك احفظ الله تجده تجاهك واذا سالت فاسال الله واذا استعنت فاستعن بالله واعلم ان الامة لو اجتمعت على ان ينفعوك بشیء لم ينفعوك الا بشیء قد كتبه الله لك ولو اجتمعوا على ان يضروك بشیء لم يضروك الا بشیء قد كتبه الله عليك رفعت الاقلام وجفت الصحف (احمد و ترمذی)

(۵) عن ابی ذر رضی الله تعالى عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال انی لا علم اية لو اخذ الناس بها لكفتهم ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب (احمد و ابن ماجة)

(۶) عن عمرو بن العاص رضی الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان من قلب ابن ادم بكل وادشعبة فمن اتبع قلبه الشعب كلها لم يبال الله بای واد اهلكه ومن توكل على الله كفاه الشعب (ابن ماجة)

(۷) عن ابی هريرة رضی الله تعالى عنه ان النبی صلى الله عليه وسلم قال قال ربكم عزوجل لو ان عبيدی اطاعونی لاسقيتهم المطر بالليل واطلعت عليهم الشمس بالنهار ولم اسمعهم صوت الرعد (احمد)

(۸) عن ابی هريرة رضی الله تعالى عنه قال دخل رجل على اهله فلما رای ما بهم من الحاجة خرج الى البرية فلما رات امراته قامت الى الرحی فوضعتها والى التنور فسجرته ثم قالت اللهم ارزقنا فنظرت فاذا الجفنة قد امتلات قال وذهبت الى التنور فوجدته ممتلئا قال فرجع الزوج قال اصبتم بعدی شيئا قالت امراته نعم من ربنا وقام الى الرحی فذكر ذلك للنبی صلى الله عليه وسلم فقال اما انه لو لم يرفعها لم تزل تدور الى يوم القيامة (احمد)

(۱) عن ابی الدرداء رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان الرزق لیطلب العبد کما یطلبه اجله (ابو نعیم فی الحلیة)

(۲) عن ابن مسعود رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ایها الناس لیس من شیء یقربکم الی الجنة ویباعدکم من النار الا قد امرتکم به ولیس شیء یقربکم الی النار ویباعدکم من الجنة الا قد نهیتکم عنه وان الروح الامین نفث فی روعی ان نفسا لن تموت حتی تستکمل رزقها الا فاتقوا الله واجملوا فی الطلب ولا یحملنکم استبطاء الرزق علی ان تطلبوه بمعاصی الله فانه لا یدرك ما عند الله الا بطاعته (شرح السنة)

(۳) عن جابر رضی الله تعالی عنه انه غزا مع النبی صلی الله علیه وسلم قبل نجد فلما قفل رسول الله صلی الله علیه وسلم قفل معه فادرکتهم القائلة فی واد کثیر العضاه فنزل رسول الله صلی الله علیه وسلم وتفرق الناس فی العضاه یستظلون بالشجر ونزل رسول الله صلی الله علیه وسلم تحت سمرة فعلق بها سیفه ونمنا نومة فاذا رسول الله صلی الله علیه وسلم یدعونا واذا عنده اعرابی فقال ان هذا اخترط علی سیفی وانا نائم فاستیقظت وهو فی یده صلتا قال من یمنعك منی فقلت الله ثلاثا ولم یعاقبه وجلس (متفق علیه) وفی اربعة ابی بکر اسماعیل فی صحیحه فسقط السیف من یده. الحدیث

(۴) واعلم ان ما اصابك لم یکن لیخطئك وما اخطاك لم یکن لیصیبك (کنز العمال)

(۵) وعقد الامام البخاری رحمه الله تعالی بابا فی برکة الغازی فی ماله حیا ومیتا وذکر فیه قصة الزبیر رضی الله عنه.

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم المجاهد من جاهد نفسه (ترمذی)

- ومن یستغن یغنه الله ومن یستعفف یعفه الله (بخاری)
- اللهم اجعلنی ممن توکل علیك فکفیته واستهداك فهدیته واستنصرك فنصرته
- اللهم لا مانع لما اعطیت ولا معطی لما منعت ولا ینفع ذا الجد منك الجد
- اللهم اکفنی بحلالك عن حرامك واغننی بفضلك عمن سواك
- اللهم اقذف فی قلبی رجاءك واقطع رجائی عمن سواك حتی لا ارجو احدا غیرك
- من جعل الهموم هما واحدا هم المعاد کفاه الله هم دنیاه ومن تشعبت به الهموم احوال الدنیا لم یبال الله فی ای اودیته هلك (ابن ماجة)
- لا یفتح عبد باب مسالة الا فتح الله علیه باب فقر (احمد وترمذی)

بسم الله الرحمن الرحيم

وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا وَلَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الصَّابِرُونَ

# القول المتين في شرح اطلبوا العلم ولو بالصين

## القول المتين

- تحقیق د «أطلبوا العلم ولو بالصبن».
- تفسیر د «انا عرضنا الامانة على السموات والارض ـ الاية»
- علم د عقل په رڼا کښې
- سیاست
- طب قدیم اوجدید
- د صحت حفاظت
- تعمیرات
- کیمیکل
- علم المکاشفه
- دزلزله پیما فن
- دمعدنیاتو فن
- د موسمیاتو فن
- د سیلاب د معلوماتو فن
- د غوږې وهلو فن
- د تیراکۍ فن
- د پرواز فن
- د دفاع فن
- دکسب معاش فن
- د وښتونو د تخریج فن
- د کر[illegible]

## د «اُطلبوا العلم ولو بالصين» حديث تحقيق

**سوال** : آيا «اطلبوا العلم ولوكان بالصين» حديث دي . كه چرته دا حديث وي نو ددي څه مطلب دي ؟ بعضي خلق دا وائي چه چين نه د نبوت په زمانه کښي د دين مركز وو اونه ئن دي . ددي وجه نه دلته چه د كوم علم حاصلولو حكم دي هغه علم دنيوى دي . په دي باره کښي وضاحت اوفرمائي چه ددي نه څه مراد دى ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** اطلبوا العلم ولو بالصين فان طلب العلم فريضة على كل مسلم ،عق،عد، هب وابن عبدالبر .قال البيهقي متنه مشهور واسناده ضعيف وقد روى من اوجه كلها ضعيفة وقال المزى له طرق ربما يصل بمجموعها الى الحسن (فيض القدير ج ص ۳۰) وقال العزيزى هو حديث حسن لغيره (السراج المنير ص ۳۳ ج ۱) د بعضي متشددينو قول او وضع د روايت الفاظو سره متعلق دى . ددي مفهوم يعني ممالک بعيده ته دتللو حكم د طلبِ علم لپاره د قرآن اوحديثو د نورو نصوصو نه ثابت دي »

**د حديث مطلب** :

انسان ته الله تعالى دوه قوتونه وركړى دى . يو د كوم كار پيژندلو قوت او دويم دهغي د كولو قوت او عقلاً پيژندل د كولو نه مقدم دي . د ټولو نه وړاندي انسان ته ديو څيز علم حاصليږى چه په هغي سره رغبت يا نفرت اوخوف پيدا كيږى او هم دا رغبت يا خوف ديو كار د كولو يا دنه كولو موجب جوړيږى . ګوياچه د انسان د ژوند ګاډى لره د چلولو دپاره «علم» مدارِ عمل دي او ظاهره ده چه كوم د ژوند مدار وى هغه به افضل وى .

دويمه خبره د پوهيدلو داده چه ديو انسان دپاره څنګه چه دهغه دنيوى ژوند اهم دي هم دغه شان دهغي نه څه چنده زيات د اُخروى ژوند اهميت دي بلكه د دنيوى ژوند اهميت كه چرته دي نو صرف دي لحاظ سره چه هغه مزرعة الاخرة يعني د آخرت ژوند لره د صحيح كولو وخت او مقام دي

دريمه مقدمه دا اوپيژندلي شى چه دانبياءِ كرامو عليهم السلام د بعثت مقصد هم دادي چه انسان دنيوى جنجال کښي ګير دي اود خواهشاتِ نفسانيه ميدانِ جنګ دي دهغه اُخروى ژوند لره د ښائسته كولو طورطريقي اوښائي . نبوت من حيث النبوة صفت علميه دي . همدارنګه د نبى لغوى معنى هم خبروركولو والا دي . يعني د احكامِ الهيه خبروركوى . او ظاهره ده چه چاته پخپله علم نه وى هغه به نورو ته څه خبر وركړى

دي دريو واړو مقدماتو لره په ذهن کښي د ساتلو نه پس دا اوګنئ چه علماؤ ته ورثة الانبياء فرمائيلي شوى دى او ظاهره ده چه علمِ نبوى علمِ شرع ته وئيلي كيږى لهذا په دي حديث کښي اوپه نورو احاديثو کښي چرته چه د علم لفظ راغلي دي دهغي نه مراد هم علمِ شرع دي . او عالِم نه مراد دعلمِ شرع پيژندلو والا . وارث ته دخپل مورث هرمتروكه څيز نه حصه ملاويږى پس چانه چه

: حضورصلی الله علیه وسلم د هرصفت نه حصه نه وی ملاؤ شوې هغه به وارثِ نبی هم نه وی . او ظاهره ده چه دنیوی فنون حاصلولوسره علم نبوی او صفاتِ نبویه نه حصه نه شی ملاویدلې

**انسان او علم** وحی الهی اود رسالت اود نبوت دولت په ټول عالم کښې صرف د انسان په حصه کښې راغلو وحی د علمِ الهی نازلولو ته وئیلې کیږی او هم دغه علم نورو انساناتو ته د رسولو دپاره حضراتِ انبیاء کرامو علیهم السلام ته ورکولې کیږی . په نورو لفظونو کښې داسې وئیلې کیدلې شی چه د علمِ الهی په نعمت سره صرف انسان منتخب کړئ شو . ګویا علمِ الهی د انسان بنیادی خصوصیت او امتیازی شان دې اود یو څیز خصوصیت هم هغه کیدلې شی چه په نورو څیزونو کښې نه شی موندلې کیدلې .

نتیجه دا شوه چه اصل انسان دهغه محسوس مجسمې نوم نه دې بلکه دهغه جوهر نوم دې چه په هغې کښې ودیعت ایښودلې شوې دې اوهغه علم الهی دې . بازار کښې د پلاستکو نه جوړ شوی انسانی صورتونه په یو څو پیسو باندې ملاویږی . هم دغه شان څوک چه د علم الهی نه محرومه دې هغه که زرځلې د انسانیت دعوی وکړی لیکن حقیقت کښې دهغه قدر اوقیمت د پلاستکه نه د جوړ شوی بت نه زیات نه دې . هم ددې متعلق ارشاد دې : شعر :

| | |
|---|---|
| گر بصورت آدمی انساں بدے | احمد وبوجہل ہم یکساں بدے |
| اِیں که می بینی خلافِ آدم اند | نیستند آدم غلافِ آدم اند ! |
| از بروں چو گورِ کافر پُرحلل | واندروں قہرِ خدائے عزوجل |

الله تعالی پخپله وضاحت کړې دې چه علم اوعمل چه د انسان دپاره وجه امتیاز اوشرف دې هغه صرف داسې عمل اوعلم دې چه د الله تعالی د رضا سبب او عذابِ آخرت نه د بچ کولو ذریعه وی . فرمائی ﴿إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا لِّيُعَذِّبَ ٱللَّهُ ٱلْمُنَٰفِقِينَ وَٱلْمُنَٰفِقَٰتِ وَٱلْمُشْرِكِينَ وَٱلْمُشْرِكَٰتِ وَيَتُوبَ ٱللَّهُ عَلَى ٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾

د آیت د تفسیر نه وړاندې دهغې د الفاظو تشریح ضروری ده :

«عرض» د امتحان استعداد او صلاحیت «امانة»علم وعمل «اباء» د صلاحیت فقدان او استعداد «حمل» وجودِ صلاحیت او استعداد «ظلم» عدم العمل عما من شانه ان یکون عاملا «جهل» عدم العلم عمامن شانه ان یکون عالماً

**د تفسیرخلاصه** الله تعالی د علم اوعمل د امانت دپاره په ټوله دنیاکښې صرف انسان لره خکه

منتخب کړو چه دده نه سوا په بل یو مخلوق کښې دهغې د تحمل استعداد او صلاحیت نه وو ,, **انه کان ظلوما جهولا** ,, علت یې بیانوی . یعنې د علم مکلف هغه لره جوړولې شی چه په هغه کښې فی الحال علم موجود نه وی مګر بالقوة استعداد او صلاحیت ورسره وی . هم داسې د عمل حکم هغه ځانه ورکولې شی چه په هغه کښې فی الحال عمل نه وی مګر د بالقوة عمل استعداد موجود وی . که چرته زمانهٔ حال کښې علم اوعمل موجود دې نو دهغې حکم تحصیل د حاصل دې . او که چرته هړو استعداد نه وی نو هغه تکلیف مالا یطاق دې او دا دواړه امر باطل دی . غرض داچه انسان کښې علم اوعمل بالفعل موجود نه وو مګر دهغې استعداد موجود وو او په بل کوم مخلوق کښې دهغې استعداد بالکل موجود نه وی ددې وجه نه د شرف امانت دپاره انسان لره منتخب کړئ شو .

,,**لیعذب - الایة**,, کښې لام د عاقبت دپاره دې یعنې د انسان د حمل امانت نتیجه دا شوه چه چه بعضې د الله تعالی د رضا مستحق شو او بعضې د عذاب .

په دې سره دا ثابته شوه چه دلته د امانت نه هغه علم اوعمل مراد دې چه صرف د انسان خاصه او امتیاز دې او ظاهره ده چه هغه علم هم دین دې . ددې وجه نه چه دنیوی علم اوعمل کښې انسان سره هرجاندار شریک دې . علاوه ددې نه لیعذب الخ کښې هم ددې صراحت دې چه دلته هغه علم اوعمل مراد دې چه په آخرت کښې په کار راتللو والا وی . او هغه هم علم دین دې

دا امر اهل اسلام کښې متواتر او مسلم او بدیهی راروان دې چه اصل علم صرف هم علم دین دې او علماء صرف هم علماء دین ته وئیلې کیږی مګر په دې دور فتن کښې څنګه چه د نورو ډیرو ضروریات دین اود متواتراتو او مسلماتو نه انکار شروع شوې دې اود اسلام بدیهی او متفق علیه حقائقو کښې شکوک او شبهات پیدا کولو سره هغې لره د نظری . استدلالی اود مباحث اختلافیه په فهرست کښې اچولوسره په هغې باندې د دلائلو اود بحث مباحثې دروازې خلاصول شروع شوی دی هم دغه شان ظلمت جدیده (نوې رڼا) ,, سره مسموم مسلمانانو ته نن د علم او د علماؤ بدیهی او ټول امت کښې مسلم مفهوم پوهولو دپاره د دلائلو ضرورت دې ددې وجه نه موږه پوره د کفایت په اندازه بیانولو باوجود قرآن او حدیث نه یو څو داسې شواهد پیش کوو چه په هغې سره دا حقیقت ښه صفا کیږی چه د شریعت په اصطلاح کښې دعلم لفظ صرف هم د علم دین دپاره استعمالولې کیږی

(۱) ﴿إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا﴾ (۳۳، ۷۲) ددې آیت تشریح پورته بیان شوې ده دهغه د اهمیت په نظر کښې نیولو سره اعاده شوې ده

(۲) ﴿فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ﴾ (۴۷، ۱۲)

په دې آيت کښې حضور اکرم صلى الله عليه وسلم ته اود دوی په واسطې سره د دوی امت ته د شرعي علم اوعمل د تحصيل حکم ورکړې شوې دې . امام بخاری رحمه الله تعالى باب العلم قبل القول والعمل لاندې دې آيت لره راوړلو سره فرمائي ((فبدأ بالعلم وقال الحافظ رحمه الله تعالى اى حيث قال فاعلم انه لا اله الا الله ثم قال واستغفر لذنبك والخطاب وان كان للنبي صلى الله عليه وسلم فهو متناول لامته واستدل سفيان بن عيينه بهذه الاية على فضل العلم كما اخرجه ابونعيم في الحلية في ترجمته من طريق الربيع ابن نافع عنه انه تلاها فقال الم تسمع انه بدا به فقال اعلم ثم امره بالعمل وينتزع منها دليل ما يقوله المتكلمون من وجوب المعرفة)) (فتح الباری ص۳۰ ج۱)

﴿۴﴾ ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَٰؤُا﴾ ﴿۳۵ . ۲۸﴾

قال الحافظ رحمه الله تعالى اى يخاف من الله من علم قدرته وسلطانه وهم العلماء قاله ابن عباس رضى الله تعالى عنهما (فتح الباری ص۳۰ ج۱)

حبرامت رئيس المفسرين حضرت ابن عباس رضى الله عنهما د «علماء» لقب لره منحصر کړې دې په داسې خلقو کښې چه دهغوی زړونه د معرفت او خشيتِ الٰهيه نه معمور وی .

(۲) وقال الزمخشری (فى قوله تعالى انما يخشى الله من عباده العلماء) المراد العلماء الذين علموه بصفاته وعدله وتوحيده وما يجوز عليه وما لا يجوز فعظموه وقدروه وخشوه حق خشيته ومن ازداد به علماً ازداد منه خوفاً ومن كان علما به كان امنا وفى الحديث اعلمكم الله اشدكم له خشية وقال رجل للشعبي افتنى ايها العالم قال العالم من خشى الله (عمدة القاری ص۱۱ ج۲)

﴿۵﴾ ﴿وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ﴾ ﴿۲۷ . ۱۰﴾

قال الحافظ رحمه الله تعالى وهذه اوصاف اهل العلم فالمعنى لو كنا من اهل العلم تعلمنا ما يجب علينا فعملنا به فنجونا (فتح الباری ص۳۰ ج۱)

(۱) قال العينى رحمه الله تعالى (فى تفسير قوله تعالى لو كنا نسمع او نعقل الاية) والمعنى لو كنا من اهل العلم لما كنا من اهل النار (ثم قال) ان المراد من العقل والعلم ههنا فان الكفار لو كان لهم العلم لما دخلوا النار (عمدة القاری ص۲۰ ج۲)

۷ - ﴿وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ﴾ ﴿۲۹ . ۴۳﴾

قال العينى رحمه الله تعالى اى وما يعقل الامثال المضروبة الا العلماء الذين يعقلون عن الله وروى جابر

رضی الله تعالیٰ عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم لما تلا هذه الایة فقال العالم الذی عقل عن الله فعمل بطاعته واجتنب سخطه (عمدة القاری ص ج۲)

(۷) ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ (۲۰:۱۱۴)

قال الحافظ رحمه الله تعالیٰ واضح الدلالة فی فضل العلم لان الله تعالیٰ لم یأمر نبیه صلی الله علیه وسلم بطلب الازدیاد من شیء الا من العلم والمراد من العلم العلم الشرعی الذی یفید معرفة ما یجب علی المکلف من امر دینه فی عباداته ومعاملاته والعلم بالله وصفاته وما یجب له من القیام بامره وتنزیهه عن النقائص ومدار ذلک علی التفسیر والحدیث والفقه (فتح الباری ص ج۱)

(۸) ﴿فَوَجَدَا عَبْدًا مِّنْ عِبَادِنَا آتَيْنَاهُ رَحْمَةً مِّنْ عِندِنَا وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ (۱۸:۶۵)

دلته علم نه علم الاسرار والمکاشفه مراد دي چه شرعی علم او عمل کښې رسوخ باندې مرتب کیږي.

قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالیٰ ای علما لا یکتنه کنهه ولا یقادر قدره وهو علم الغیوب واسرار العلوم الخفیة (ثم قال) قال العارف بالله تعالیٰ الشیخ عبدالوهاب الشعرانی علیه الرحمة فی کتابه المسمی بالدرر المنثورة فی بیان زبد العلوم المشهورة ما لفظه واما زبدة علم التصوف الذی وضع القوم فیه رسائلهم فهو نتیجة العمل بالکتاب والسنة (روح المعانی ص ج۱۵)

(۹) ﴿وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللَّهِ خَيْرٌ لِّمَنْ آمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا وَلَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الصَّابِرُونَ﴾ (۲۸:۸۰)

په دې کښې د دنیادارو په مقابله کښې د دنیا د فناکولو استحضار او د آخرت فکر لرلو والو ته اهل علم ونیلي شوی دی.

قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالیٰ وقال الذین اوتوا العلم ای باحوال الدنیا والاخرة کما ینبغی ومنهم یوشع علیه السلام وانما لم یوصفوا بارادة ثواب الاخرة تنبیها علی ان العالم باحوال النشأتین یقتضی الاعراض عن الاولی والاقبال الی الاخری حتما وان تمنی المتمنین لیس الا لعدم علمهم بهما کما ینبغی (ولا یلقاها الا الصابرون) علی الطاعات وعن المعاصی والشهوات (روح المعانی ص ج۲۰)

(۱۰) ﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ عِلْمًا﴾ (۲۷:۱۵)

اي اتيهما كل واحد منهما طائفة من العلم لائقة به من علم الشرائع والاحكام وغير ذلك مما يختص بكل منهما كصنعة لبوس ومنطق الطير وخصها مقاتل بعلم القضاء وابن عطاء بالعلم بالله عزوجل ولعل الاول ما ذكر اوعلما سنيا غزيرا الخ (روح المعاني ص۱۳ ج۲۳)

په دې کنبې که چرته لفظ علم ته صنعتِ لبوس او منطق الطير شامل تسليم کړې شي نو بيا هم زمونږ د مدعى خلاف نه دى بلکه دهغې دپاره مؤيد دې ځکه چه حضرت داؤد اوسليمان عليهما السلام ته دا دواړه علوم بطورمعجزه ورکړې شوى وو چه دهغوى سره مختص وو . او معجزې سره د اسلام د حقانيت اظهار مقصود وى . لهذا کوم علم چه بطورمعجزه ورکړې شو هغه د نتيجې په لحاظ سره علم شرع کنبې داخل دې .

(۱۲) ﴿وَلُوطًا ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا﴾ (۲۱. ۷۴)

(۱۳) ﴿فَفَهَّمْنَٰهَا سُلَيْمَٰنَ ۚ وَكُلًّا ءَاتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا﴾ (۲۱. ۷۹)

(۱۴) ﴿قَالَ ٱلَّذِى عِندَهُۥ عِلْمٌ مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبْلَ أَن يَرْتَدَّ إِلَيْكَ طَرْفُكَ﴾ (۲۷. ۴۰)

دا قائل په خپله حضرت سليمان عليه السلام دې يا د دوى يوخادم يا يو فرښته . بهرصورت دا د حضرت سليمان عليه السلام معجزه ده لهذا دلته د علم نه علمِ الهى مراد دې

(۱۵) ﴿وَأُوتِينَا ٱلْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِينَ﴾

دلته د علم نه د الله تعالى معرفت . د حضرت سليمان عليه السلام نبوت اود اسلام د حقانيت علم مراد دى

قال العلامة الالوسى رحمه الله تعالى معناه واوتينا العلم بكمال قدرة الله تعالى وصحه نبوتك (الى قوله) وكنا مؤمنين من ذلك الوقت (روح المعنى ص۲۰۱ ج۱۹)

(۱) ﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِى ٱلَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾

قال العلامة الالوسى رحمه الله تعالى (هل يستوى الذين يعلمون) فيعملون بمقتضى علمهم ويقنتون الليل سجدا وركعا يحذرون الاخرة ويرجون رحمة ربهم (والذين لا يعلمون) فيعملون بمقتضى جهلهم وضلالهم (الى قوله) ويعلم مما ذكرنا ان المراد بالذين يعلمون العالمون من علماء الديانة (ثم قال) وان العلم الذى لا يترتب عليه العمل ليس بعلم عندالله تعالى (ثم قال) وحمل الذين يعلمون على العاملين من علماء الديانة على ما سمعت مما لا ينبغى ان يختار غيره لتكثير الفائدة (روح المعانى ص۲۴۷ ج۲۳).

واشار الی هذه الایة ـ الخ ابن هرید فی ابیات له شعر

اهلاً وسهلاً بالذین احبهم واودهم فی الله ذی الالاء
اهلاً بقوم صالحین ذوی التقی غر الوجوه و زین کل ملاء
یسعون فی طلب الحدیث بعفة و توقرو سکینته و حیاء
لهم المهابة والجلالة والنهی وفضائل جلت عن الاحصاء
و مدادما تجری به اقلامهم ازکی وافضل من دم الشهداء
یا طالبی علم النبی محمد ما انتم و سواکم ، بسواء

(۷) ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ ٱلْحِكْمَةَ﴾ (۳۱، ۱۲)

قال الله تعالی ومن یؤت الحکمة فقد اوتی خیرا کثیراً ،وقال رسوله صلی الله علیه وسلم من یرد الله به خیرا یفقهه فی الدین، نتیجه دا را اوتله چه د حکمت نه مراد تفقه فی الدین دي

قال الامام هی عبارة عن توفیق العمل بالعلم ثم قال وان اردنا تحدیدا بما یدخل فیه حکمة الله تعالی نقول حصول العمل علی وفق المعلوم (روح المعانی ص ج)

(۸) ﴿وَإِنَّهُۥ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَٰهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (۱۲، ۶۸)

ای لتعلیمنا ایاه بالوحی ونصب الادلة حیث لم یعتقد ان الحذر یدفع القدر حتی یتبین الخلل فی رایه عند تخلف الاثر وحیث بت القول بانه لا یغنی عنهم من الله تعالی شیئا فکانت الحال کما قال (روح المعانی ص ج)

(۹) ﴿يَرْفَعِ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنكُمْ وَٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْعِلْمَ دَرَجَٰتٍ﴾ (۵۸، ۱۱)

قال العینی رحمه الله تعالی والمعنی یرفع الله الذین امنوا واوتوا العلم علی الذین امنوا فقط ولم یؤتوا العلم درجات فی دینهم اذا فعلوا ما امروا به (عمدة القاری ص ج)

قال الحافظ رحمه الله تعالی فی تفسیر قوله تعالی یرفع الله الذین الخ وفی صحیح مسلم عن نافع بن عبد الحرث الخزاعی وکان عامل عمر رضی الله تعالی عنه علی مکة انه لقیه بعسفان فقال له من استخلفت فقال استخلف ابن ابزی مولی لنا فقال عمر استخلفت مولی قال انه قاری لکتاب الله عالم بالفرائض فقال عمر رضی الله تعالی عنه اما ان نبیکم صلی الله علیه وسلم قد قال ان الله یرفع بهذا الکتاب اقواما ویضع به اخرین (فتح الباری ص ج)

وقال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی (والذین اوتوا العلم) الشرعی (درجات) ای کثیرة جلیلة کما یشعر به المقام وعطف الذین اوتوا العلم علی الذین امنوا من عطف الخاص علی العام تعظیما لهم بعدهم کانهم جنس

اخر ولذا اعيد الموصول فى النظم الكريم (روح المعانى ص ج)

(۲۰) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان العلماء هم ورثة الانبياء ورثوا العلم من اخذه اخذ بحظ وافر (بخارى ص ج)

ظاهره ده چه د حضراتِ انبياءِ كرامو عليهم السلام نه علماؤ ته هم علمِ شريعت ملاؤ شوې دې

واخرج الترمذى وغيره ان الانبياء لم يورثوا دينارا ولا درهما وانما ورثوا العلم وفى معناه قوله صلى الله عليه وسلم العلم ميراثى وميراث الانبياء قبلى. مسند الفردوس للديلمى (كنوز الحقائق ص ج)

(۲۱) قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من سلك طريقا يطلب به علما سهل الله له طريقا الى الجنة (بخارى ص ج). قال الحافظ رحمه الله تعالى (قوله تعالى) نكرها ونكر علما ليتناول انواع الطرق الموصلة الى تحصيل العلوم الدينية وليندرج فيه القليل والكثير. (قوله سهل الله له طريقا) اى فى الاخرة او فى الدنيا بان يوفقه للاعمال الصالحة الموصلة الى الجنة وفيه بشارة بتسهيل العلم على طالبه لان طلبه من الطرق الموصلة الى الجنة (فتح البارى ص ج)

(۲۲) قال العينى رحمه الله تعالى (قوله علما) انما نكره ليتناول انواع العلوم الدينية وليندرج فيه القليل والكثير (قوله سهل الله له) اى فى الاخرة او المراد منه وفقه الله للاعمال الصالحة فيوصله بها الى الجنة (عمدة القارى ص ج)

(۲۳) وقال النبى صلى الله عليه وسلم من يرد الله به خيرا يفقهه فى الدين (بخارى ص ج)

په دې حديث سره ثابته شوه چه قران او حديث كښې چه د كوم علم فضيلت راغلې دې هغه صرف تفقه فى الدين دې

(۲۴) وانما العلم بالتعلم (بخارى ص ج)

قال الحافظ رحمه الله تعالى هو حديث مرفوع ايضا اورده ابن ابى عاصم والطبرانى من حديث معاويه رضى الله تعالى عنه ايضا بلفظ يا ايها الناس تعلموا انما العلم بالتعلم والفقه بالتفقه ومن يرد الله به خيراً يفقهه فى الدين اسناده حسن لان فيه مبهما اعتضد بمجيئه من وجه اخر وروى البزار نحوه من حديث ابن مسعود رضى الله عنه موقوفا ورواه ابو نعيم الاصبهانى مرفوعا وفى الباب عن ابى الدرداء وغيره فلا يغتر بقول من جعله من كلام البخارى والمعنى ليس العلم المعتبر الا الماخوذ من الانبياء وورثتهم على سبيل التعلم (فتح البارى ص ج)

حديث مذكور سره چه څنګه دا ثابته شوه چه اصطلاحِ شرع كښې صرف هم علمِ دين ته علم

ونيلي کيږي هم دغه شان دا هم معلومه شوه چه علم دين صرف هغه معتبر دي چه د حضرات انبياء کرامو عليهم السلام اودهغوی وارثين علماء عظام نه بالمشافهه د تعليم اوتعلم په ذريعي سره حاصل کړئ شي . دا حديث د نن سبا دهغه متجددينو جرړي کټ کوي چه په کور کښې ناستې سره د عربي ژبه نه معمولي واقفيت حاصلولو سره نه صرف عالم بلکه مفسرومجددا ومفکر اسلام جوړ شوی دی . اللهم خذهم اخذ عزيز مقتدر.

(۲) قال العيني رحمه الله تعالى في شرح قوله صلى الله عليه وسلم (انما العلم بالتعلم) بفتح الصلوة والسلام على سبيل التعلم والتعليم فيفهم منه ان العلم لا يطلق الا على علم الشريعة ولهذا لو اوصى رجل للعلماء لا ينصرف الا الى اصحاب الحديث والتفسير والفقه (عمدة القاري ص ج)

(۳) عن ابي التياح عن انس رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان من اشراط الساعة ان يرفع العلم ويثبت الجهل وعن قتادة عن انس رضي الله تعالى عنه يقل العلم ويظهر الجهل (بخاری ص ج) وعن سالم عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه يقبض العلم ويظهر الجهل (بخاری ص ج)

وعن عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله تعالى عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ان الله لا يقبض العلم انتزاعا ينتزعه من العباد ولكن يقبض العلم بقبض العلماء حتى اذا لم يبق عالما اتخذ الناس رؤسا جهالا فافتوا بغير علم فضلوا واضلوا (بخاری ص ج)

وروى احمد والطبراني من حديث ابي امامة رضي الله تعالى عنه قال لما كان في حجة الوداع قال النبي صلى الله عليه وسلم خذوا العلم قبل ان يقبض اويرفع فقال اعرابي كيف يرفع فقال الا ان ذهاب العلم ذهاب حملته ثلاث مرات (فتح الباری ص ج)

په دې رواياتو سره ثابته شوه چه قرب قيامت کښې به علم اوچتيږي . حالانکه علوم دنيويه ورځ په ورځ ترقی کوي البته علم دين ورځ په ورځ کميدلو طرف ته روان دې . د علم د اسبابو زياتوالي . د مطبوعاتو کثرت اود تصانيفو د ډيروالي باوجود دعلم حقيقت او په هغې کښې تعمق ډير په تلواری سره کمئ طرف ته روان دې . په دې سره ثابته شوه چه احاديث مذکوره کښې صرف علم دين لره علم سره تعبيرکړې شوې دې او بقيه تمام علوم د دنياترقئ لره ظهورجهل ګرځولې شوې دې .

(۴) کتب عمر بن عبدالعزيز الى ابي بکر بن حزم انظر ما کان من حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم فاکتبه فاني خفت دروس العلم وذهاب العلماء ولا يقبل الا حديث النبي صلى الله عليه وسلم وليفشوا العلم

ولیجلسوا حتی یعلم من لا یعلم فان العلم لا یهلك حتی یکون سرا (بخاری ص۲۰ ج۱)

په دې کښې حضرت عمربن عبدالعزیز رحمه الله تعالی حدیث له علم سره تعبیر کړې دې او حفاظتِ حدیث له ئې د حفاظتِ علم ذریعه ګرځولې ده.

(۲۸) نقل العلماء رحمه الله تعالی عن سیدنا علی رضی الله تعالی عنه ابیاتا فی فضل العلم شعر

| | |
|---|---|
| ما الفضل الا لاهل العلم انهم | علی الهدی لمن استهدی اولاء |
| و وزن کل امرء ما کان یحسنه | والجاهلون لاهل العلم اعداء |
| ففز بعلم ولا تجهل به ابدا | الناس موتی واهل العلم احیاء |

حضرت علی رضی الله تعالی عنه د اهلِ علم وجه دفضیلت دا بیان کړې ده چه هغوی د امت دپاره هادی او رهبران دی. وقال ابن عابدین رحمه الله تعالی عنه وال فی العلم للعهد ای العلم الشرعی الموصل الی الاخرة (قوله والجاهلون) ای بالعلم الشرعی فیشمل العالمین بغیره بل هم اشد عداوة للعلماء الدین من العوام (ردالمحتار ص۴۰ ج۱)

(۲۹) په خپله زیر بحث حدیث «اطلبوا العلم ــ الخ» کښې هم دا وئیلې کیږی چه په هغې کښې علم دین مراد دې ددې وجهې نه چه په هغې کښې صیغه د امر ده چه بغیر له قرینې نه د وجوب دپاره راځی په دې سره ثابته شوه چه طلبِ علم هرمسلمان باندې فرض دې، هم ددې حدیث په آخر کښې ددې تصریح هم ده «فان طلب العلم فریضة علی کل مسلم» او ظاهره ده چه دعلومِ دنیویه د تحصیل هرمسلمان سړی اوښځې دپاره ضروری اوفرض ګرځولو دنیا کښې یو احمق هم قائل نه دې

مونږ دا یو څو مثالونه لیکلی دی چه معمولی توجه سره مخې ته راغلل اوکه نه نو چاچه قرآن او حدیث وئیلې وی اوپه هغې پوهه شوی وی هغوی ښه پوهیږی چه چرته هم د علم لفظ مطلقاً وئیلې شوې دې دهغې نه هم علمِ شرعی مراد دې، ((فمن شاء فلیراجع الی کتب الشرع والمطولات فی الحدیث والتفسیر والفقه)).

## علم د عقل په رڼا کښې

عقلی حیثیت سره هم که چرته وکتلې شی نودعلم نه به دنیوی علوم مراداخستل په یو طریقه هم صحیح نه وی، چه دهغې متعدد وجوه دی.

(۱) د شریعت په نظر کښې د علومِ شرعیه په مقابله کښې دنیوی علوم صنعت وغیره دومره ناقص دی چه هغې ته علم وئیلې کیدلې نه شی. ددې وجه نه چه د ټول کائنات وجه تخلیق داده چه انسان دهغې نه استفاده وکړی لقوله تعالی «هوالذی خلق لکم ما فی الارض جمیعا» چه کله ټول

ځيزونه د انسان د پاره جوړکړي شوي دي نو سوال پيدا کيږي چه په خپله د انسان وجه تخليق څه ده
؟ هغه د الله تعالی عبادت دي لقوله تعالی «**وما خلقت الجن والانس الا ليعبدون**» نو معلومه شوه چه
د ټول عالم د پيدائش نه اصل مقصود عبادت دي اود عبادت علم، علم شرع دي . پس د علم فرد
کامل چونکه علم دين دي ددې وجه نه علی الاطلاق چه کله د علم لفظ وئيلې کيږي نو دهغې نه به
هم علم دين مرادوی هم دغه شان چه کله قرآن اوحديثو کښې دعلم لفظ علی الاطلاق راځی
نو دهغې نه به هم علم شرع مراد وی .

(۲) د فخرموجودات محسنِ اعظم صلی الله عليه وسلم د بعثت مقصد د امورِدنيا تعليم نه دې
بلکه د امورِ متعلقه بالآخرة تعليم دې ددې وجه نه د دوی په اصطلاح کښې علم نه مراد هم هغه علم
به وی چه د دوی د بعثت مقصود دې .

(۳) کوم علم چه د انسان خاصه ده هغه علمِ دين دې . ځکه چه صرف په علمِ دين کښې د انسان
انفراديت دې . په نورو علومو کښې د انسان هيڅ تخصيص نشته بلکه هرحيوان دنيوی علومو لره
بقدرِ ضرورت پيژني . بلکه د انسان نه زيات پيژني او ډير علوم انسان د حيواناتو نه زده کړي دی
چنانچه لاندې مونږ يوڅو مثالونو سره دې حقائقو باندې رڼا اچوو :

## سياست

سياست او انتظامی امورو کښې انسان نورو ځناورو باندې د برترئ (اوچتوالی) دعویٰ نه شی
کولې . د شاتو موچئ چه کله ګبين جوړوی نو په هغې کښې اتو اړخونه ته سوری او خانې جوړولو
سره دخپلې قلعې تعميرکوی . دهغه قلعې تقسيم څه په دې طريقې وی چه په يو حصه کښې شات
جوړول کيږی . په يو حصه کښې بچی زيږوی اوپه يوحصه کښې لوئې موچئ اوسيږی . همدارنګه
دهغوی يو اميرهم وی چه هغه ته په عربئ کښې «يعسوب» وائی هغه دهغه ټولو نګرانی کوی .
چنانچه که چرته يو موچئ په يو زهريله پانې باندې کيناستلوسره دهغې رس په شاتو کښې د
ملاؤولو کوشش کوی نو فوراً هغه وژلوسره دهغې سرکټ کولې کيږی . د شاتو موچو والا ته تللو
سره وګورئ دچابه سر کټ شوې وی اود چا به ملا ماته شوی وی .

بيا د امير د اطاعت دا عالم دې چه مجرم ته سزائې موت ورکولو باندې په نورو موچو کښې د
بغاوت يا د تحريک جذبه نه راپورته کيږی .

سياست کښې د بطخو تنظيم او اطاعت خوقابلِ تقليد دې . چه کله ټولې بطخې ودې کيږی نو
دهغوی امير په يو خپه باندې ټوله شپه په حوض کښې په ولاړه نګرانی کوی . د خطرې په صورت
کښې آواز کوی. په ړومبنی آواز باندې ټول قوم د خطرې نه خبر شی او ټولې وزرې راخورې کړی
او په دويم آواز باندې الوزيدل شروع کوی . اميرد ټولو نه وړاندې وړاندې ځی او باقی بطخې دوه

قطاروته جوړولوسره وروستو وروستو الوځي . اميرچه چرته رخ کړي هم دهغه په طرف باقي قوم ورځي . په دې سره دهغوی په يوبل باندې کامل اعتماد هم ښکاره دې .
دنن سبا متمدن دنيا ددې نه زيات د تنظيم اوسياست مظاهره کولوسره اوښائي .

## طب جديد اوقديم

(۱) طبِ قديم اوجديد دواړه علم احتقان (حقنه) اوعلمِ تلقيح (انجکشن يعنی پيچکاري) کښې ديو مارغه شکرګزار دی . حکيم جالينوس يومارغه لره د پريشانۍ په حالت کښې وکتلو نو محسوسه ئې کړه چه د هغه په خيټه کښې درد دې ، لږ وخت پس يو بل مارغه په مښوکه کښې آبِ نمکين (مالګينې اوبه) راوړې اودهغه په مقعد کښې ئې داخلې کړې چه په هغې سره دهغه خلاصه تقاضا وشوه او درديې په ختميدوشو . جالينوس کورته راغلو نو ديو خيټې درد والا مريض راغلو . جالينوس په هغه باندې د مارغه نه د حاصل شوی حکمت تجربه پرې وکړه چه ډيره مفيده ثابته شوه ، جالينوس د مارغه نه عملِ احتقان ياد کړو او هم په دې باندې قياس کولوسره طبِ جديد انجکشن ايجاد کړو ددې وجه نه انجکشن ته عمل الطائر وئيلې کيږی ، غرض داچه طبِ قديم اوجديد دواړه د مارغه شاګردان دی .

(۲) حضرت قاري محمدطيب صاحب مدظلهم خپله د سترګو ليدلې واقعه بيان کړه . ليکی چه د تقسيم نه وړاندې زما يو هندو رياست اندرګډه ته ډيرځلې د تللو اتفاق وشو ، هغلته څما بعضې خپلوان په اوچتو عهدو باندې ممتاز وو ، هغه رياست کښې د بيزوګانو وژلو ممانعت وو ددې وجه نه د بيزوګانو شميرڅه زرو پورې وو . د بيزوګانو په خمبيرکښې شرارت او چالاکي بلکه تکليف رسول داخل دی. ددې وجه نه هغوی ډير نقصان کولو . کله به ئې لوښي تختول او کله به ئې کپړې اوجامې تښتولې ددې وجه نه مونږ يو خل سوچ وکړو چه څه تدبير کول پکار دی . ددې وجه نه مونږ د يو روپۍ زهرواخستل او هغه مو په اوړو کښې ګډ کړل او روټۍ مو ترينه پخې کړې اوپه چت (بام) مو ورته کيښودلې دې دپاره چه هغوی ئې خوری او مړې کيږی ، ددې وجه نه مونږ روټۍ په چهت باندې کيښودلې او ورته په انتظار وو چه اوس به بيزوګان راتللو سره هغه ډوډۍ خوری او مړې کيږی به . يوڅو بيزوګانې راغلې مګر دهغه روټو (ډوډيو) نه لرې ودريدلوسره يې کتل چه دا څه نوې حادثه مخې ته راغله چه روټۍ خورې ورې پرتې دی يقيناً په دې کښې څه خبره شته اوکه نه نو روټۍ داسې څوک نه خوروی ددې وجه نه ئې روټو ته په غور وکتل او بوئې کړې ، بالاخر هغوی روټو سره لاس ونه لګولو او لاړې ، مونږ پوهه شو چه زمونږ تدبير ناکام شو ليکن د بيزوګانو دا چالاکه قافله لاړه او بيا ئې دخپل څان سره نورې بيزوګانې راوستلې او څوارلس پنځلس غټې بيزوګانې دهغوی سره راغلې اود روټو نه ګيرچاپيره ډيره اچولوسره کيناستلې . څه

وخت پس یوه بیزو وراندې شوه او هغې روټو لره بوئ کړې . بیا دویمه وراندې شوه هغې یو روټئ ټکړې ټکړې کړه او هغه ټکړو لره ئې بوئ کړه او روټئ ئې پریښودلې اوتولې وتښتیدلې .

اوس مونږ ته یقین وشو چه دا تولې پوهه شوې او زمونږ ټول تدبیرناکام شو مگر لږ وخت پس تقریباً د شپیتواویاؤ بیزوگانو یو قافله راغله او په هغوی کښې د هریو په لاس کښې یوه څانګه وه چه هغه د پاڼو نه ډکه وه هغوی راتللو سره مخکښې ئې تولې روټئ ټکړې ټکړې کړه .گویا په ټول جماعت کښې دا اصول پیشِ نظر وو چه شعر :

*نیم نانے گر خورد مردِ خدا بذلِ درویشاں کند نیمے دگر*

د بیزوگانو تقسیم خو مشهور دې نوهغوی په خپل مینځ کښې هغه ټکړې تقسیم کړې او هریوې . یوه یوه ټکړه خوړله او وریسې ئې هغه پاڼې وخوړلې ، او په گډیدلوسره لاړې او مونږ په کتلوسره حیران پاتې شو . خپل اوره هم لاړه . کېږې خو د وراندې نه تلې وې او وخت هم ضائع شو (انسانیت کا امتیاز ص ۳۴)

اوس که چرته انسان خپل دا کمال ښکاره کړی چه زه طبیب یم او د جړو بوټو خواص پیژنم نودا به غلط وی ځکه چه بیزوگان خو هم دا وثیلې شی چه مونږ هم طبیبان یو مونږ جړو بوټو سره علاج کؤو . بلکه د زهراثرختمولو پورې مونږ ته معلومات دې ، هم داسې په نورو ځناورو کښې هم معالج او اطباء موجود دی ، که چرته د انسانانو په معالجینو او ځناورو کښې څه فرق وی نو صرف دومره کیدلې شی چه انسان ته زیاتې دوائیانې معلوم دی او هغوی ته کمې . مګر په دې سره د انسان لویوالې نه ثابتیږی ددې وجه نه هغوی ته د انسان په نسبت امراض هم کم راځی غالباً وجه داده چه عامو انسانانو نه عامو ځناورو ته اصولِ طب زیات معلوم دی . اکثرځناور د حفظ ماتقدمه اصولوباندې عمل کولوسره بیمارئ لره بندوی په دې طریقه د دوا ضرورت هغوئ ته باقی نه پاتې کیږی .

هم دغه شان ټول حیوانات پخپل خوراک کښې هم د مضر او مفید څیزونه علم لری . که چرته یو مضرڅیز دکومې وجه نه دننه لاړ شی نو هغوی ته دهغې طریقه هم معلومه ده چنانچه سپې یو مضر څیز وخوری نو هغه په کومه طریقه التئ (قی) کولوسره را اوباسی .

مونږ اس ډیرځلې کتلی دی چه په ځله کښې د لګام (قیضه) لګیدلو په حالت کښې واښه خوری دهغه په ځله کښې د واښو په نرو ډکوکښې که چرته یو نرې ډکې دهغه دپاره مضر وی نو هغه هغې لره سره د لګام نه باوجود په نرو ډکوکښې بهرته را اوباسی .

## حفظ صحت

د حفظ صحت دعلم په اصولو کښې ورزش زیات اهمیت لری اودهغې دستور په ټولو ځناورو

کښې مشاهده کولې کیږي . د لاندې پنډو د ورزش موجد جوګي به د هرځناور حرکاتو لره په غور سره کتلو سره دهغې د ورزش طریقه به ئې زده کوله . دغه شان انسان د ځناورو نه ځلوراتیاالاکهه د ورزش ځایونه زده کړه چه په هغې کښې صرف څلوراتیا مشهور دی .

## تعمیرات

هرځناور دخپل حیثیت مطابق دخپل ځان دپاره محفوظ او آرام ورکونکې کور تیاروی . د یخنئ ، ګرمئ ، د باران طوفان اود دښمنانونه د حفاظت دهغه ټولو څیزونو رعایت دهغوی په کورکښې وی ، ګویا چه د دښمن نه د حفاظت دپاره یوطرف ته مضبوطه ته خانه ده نو بل طرف ته د یخنئ اود ګرمئ د شدت نه د حفاظت دپاره د ائرکنډیشن . زنبور «موچو» جوړ شوي کور دهغې واضح مثال دې .

د بیا مارغه جاله وګورئ ، (بیا هغه مارغه دې چه په جاله کښې زیات مشهور دې) دهغه پیللو ته وګورئ څنګه ښانسته ئې جوړه کړی وی او داسې مضبوطه چه د هوا چپې دې چلیږی ، غټو او تیزو ځاځکووالا باران دې وی څه مجال دې چه دهغه جاله ځانګې لره پریږدی او بیا په هغې کښې د اړو اود بچو حفاظت کوم حده پورې وی ، د شاتو د مچئ کور وګورئ د بچو زیږولو کمرې جدا او د شاتو پیدا کولو ځائ جدا دې ، د شاتو د غټو مچو کور هم داسې قسم وی .

## کیمیکل

د شاتو مچئ په کومې طریقې سره د مختلفوپاڼو ، میووا او ګلونو نه مختلف قسم وټامن حاصلولوسره کیمیاوی طور باندې په هغې کښې څه تصرف کوی چه هغه بهترین عمده . خوندور اود صحت بخش غذا په صورت کښې بدلیږی .

## علم المکاشفه

محنت شاقه اود اوږدو مجاهداتو نه پس بعضې خلقو ته توجه نفس او مسمریزم وغیره کښې کامیابی حاصلیږی مګر حیوانات بغیر د څه قسم مجاهدې نه اود مشق نه بعضې حالات معلوموی چنانچه حیواناتو دپاره کشف قبور داحادیثو نه ثابت دې .

## د زلزلې معلومولو ماهرین

د زلزلې معلومولو ماهرینو ترننه پورې د وخت نه مخکښې دزلزلې څه یقینی اطلاع ورنه کړی شوه ، مګر ګډه چیلئ او نور حیوانات د وخت نه مخکښې هغه محسوس کوی او چغې وهل شروع کوی

## د معدنیاتو ماهرین

نن سبا معدنیاتو پسې تو له دنیا لګیدلې ده ، زمکه کنلو سره د زمکې دخزانو په تلاش کښې مصروفه دی مګر د نن نه په زرګونو کاله وړاندې هُدهُد حضرت سلیمان علیه السلام ته درخواست کړې وو چه هغه دخپل لښکرسره کړه ددې وجه نه چه هغه ته د زمکې په تل کښې د اوبه خزانې په نظر راځی.

## دموسمیاتو ماهرین

د باران او طوفان وغیره دپاره د محکمه موسمیاتو والو پیشګوئی بعضې وختونو کښې غلطه هم کیږی ، دهغوی اعلان د ظنِ غالب په بنیاد باندې وی مګر میږې او نورو حشرات الارض ته دهغې داسې علم وی چه هغوی د وقت نه مخکښې خپلې اړئ او غذائی سامان وغیره محفوظو مقاماتو ته منتقل کوی.

## د سیلاب معلومولو ماهرین

سیلاب سره متعلق هم ماهرینِ فن څه یقینی پیشګوئی نه شی کولې مګر دریابونو ته نژدې اوسیدلو والا ځناور سیلاب نه وړاندې خپلې خپلې اړئ بچی اونور سامان لرې محفوظو مقاماتو ته منتقل کوی.

## د غوپې وهلو فن

انسان که غوپې وهلو کښې څومره ماهر وی مګر د دریاب د ځناورو مقابله نه شی کولې.

## د لامبو فن

کوم انسان دې چه په لامبوکښې د کب وغیره د دریاب د ځناورو مقابله وکړې شی.

## د پرواز (الوتلو) فن

انسان که څومره پرواز هم وکړی ، د مارغانو مقابله نه شی کولې ، همدارنګه ددې انتهائی ترقئ په زمانه کښې هم یو طیاره یا بحری بیړئ ترڅوپورې چه یو نښې ته مخامخ ونه ګوری محض قطب نما سره زاویه قائمولوسره نیغ نه شی تللې ، بلکه مقامِ مطلوب ته د مقامِ روانګئ نه چه کومه زاویه قائمولوسره ځی هغه زاویه د دوارو مقاماتو په مینځ کښې خطِ مستقیم باندې تللوسره قدم په قدم باندې بدلیږی ددې وجه نه که چرته یو ځیز یو زاویه قائمولو سره روان وی نو هغه مقامِ مطلوب پورې د رسیدلو په ځائ به د قطبِ مقناطیسی ګیرچاپیره چکرې لګوی ، په دې بناء باندې د زاویې په مدد سره د رفتار دوه صورتونه دی:

(۱) د خطِ مستقيم د زاويې په نسبت دومره لويه زاويه كېښودلې كيږي چه جهاز چكر وهلو سره مقام مطلوب ته ورسيږي.

(۲) د خطِ مستقيم په زاويه باندې روانيدل شروع كيږي بيا هرشپيته ميله پس ښي يا چپ طرف ته يو ميل اخوا كيدلو سره هغه فرق لره ويستلې كيږي.

مگر مارغان لرې سفر بغير د كومې قطب نما په مدد براه راست كوي، خصوصاً د شاتو مچئ په باره كښې د الله تعالى ارشاد دې، «ثم كلي من كل الثمرات فاسلكي سبل ربك ذللاً — الاية» په دې سره ثابته شوه چه د ربِ كريم شانِ تربيت د شهدو د مچئ د پرواز دپاره د ډيرو لرو خايونو لارې مسخرې كړې دى. د مچو ماهرين ددې مشاهده ښائي.

## د دفاع فن

د حيواناتو د دفاعي كورونو تذكره پورته بيان شوه. د دې نه علاوه ددې دپاسه د دښمنانو نه دخپل حفاظت طريقې هم الله تعالى هرحيوان ته ښودلى دى.

## د كسب معاش فن

كوم حده پورې چه د كسبِ معاش تعلق دې دا يو بديهي خبره ده چه الله تعالى هغوى ته په علم معاشياتو كښې هغه كمال عطا كړې دې چه د نن سبا ماهرينِ معاشياتو ته دهغې لسمه حصه هم نصيب نه ده، همدارنگه حيواناتو ته الله تعالى د توكل څومره لوئ دولت عطا كړې دې، اول خو ډير حيوانات مارغان وغيره داسې دى چه هغوى د سبا فكر نه لري. او بعضې حيوانات لكه ميږې وغيره ذخيره جمع كوى نو هغه ته بلاشبهه دا هم معلومه ده چه چرته هغه كيښودلې شى دې دپاره د يخنئ اود گرمئ د اثر نه اود دښمنانو د لوټ مار نه دهغې حفاظت وشى. غرض داچه په دې فن كښې هم حيواناتو ته مهارت حاصل دې.

## د اوقاتو د تخريج فن

چرگ به مو كتلې وى چه هغه بغير د حسابي تخريجاتو نه څنگه د اوقاتو معلومات وركوى. خاص طور باندې د صبح صادق. صبح كاذب او نيمه او دريمه څلورمه حصه د شپې كښې خو ټيک په وخت باندې بانگ كوى. تردې پورې چه بعضې كلو كښې د شپې وختونه بالخصوص پيشمنى دارمدار دچرگ په آواز باندې وى.

دا د فنونِ دنيويه يوڅو داسې مثالونه ذكركړې شوى دى چه دهغې هركس مشاهده كوى اوكه نه نو ماهرينِ حيوانات خو خدائ ښه پوهيږي د حيواناتو دكومو كومو كمالاتو اطلاع وركړې ده. سره ددې نه دهغوى د معلوماتو نه مجهولات زيات دى. غرض داچه د دنيا په فنونو او علومو كښې كوم يولره چه اخلې اوپخپله انصاف سره فيصله وكړې نومعلومه به شى چه په هغه علومو او

فنونو کښې يوهم داسې نشته چه په هغې کښې انسان منفرد وی بلکه په هغه ټولو علوموکښې د انسان سره حيوان هم شريک دې ، ددې وجه نه قرآن اوحديث کښې چه د کوم علم تعريف کړې شوې دې او هغه د انسان کالئ بلکه وجه امتياز ښودلې شوې دې هغه علم داسې کيدل پکار دې چه په هغې کښې انسان منفرد وی او هغه هم علمِ دين دې څنګه چه مونږ مخکښې په وضاحت سره بيان کړې دې.

(۳) ديو علم شرافت د معلوم د شرافت د وجه نه وی لکه د زرګراو د موچی دعلم شرافت کښې متفاوت دې ، د علومِ شرعيه معلومات قرآن اوحديث دی اود علومِ دنيا معلومات پيشه وغيره دی . او ظاهره ده چه قرآن او حديث د الله اود الله د رسول تعليمات دی ددې وجه نه هغه په صنعت اوحرفت باندې د شرافت په لحاظ سره ډير فوقيت لری نودهغه علم به هم اعلی او اشرف وی او حديث کښې د همدغې اعلی او اشرف علم فضيلت وارد شوې دې.

(۴) د دنيوی علومو ماحصل دادې چه ددې دنيا عارضی ژوند ښائسته شی ، ګويا علومِ دنيويه د عارضی ژوند موقوف عليه دې ، بخلافِ علومِ اسلاميه چه هغه د هميشه ژوند موقوف عليه دی . اوظاهره ده چه کوم د دائمی ژوند موقوف عليه دې هغه اعلی او اشرف به وی.

(۵) دنيوی علم پخپل هم جنس انسانانوکښې د ژوندتيرولو او هغوی سره دتعلقاتو او رابطې ساتلو ذريعه ده او علمِ آخرت خپل خالق او احکم الحاکمين سره تعلق او رابطې لره د برابرولو ذريعه ده هم په دې سره دهغه رضا حاصليږی ، ددې وجه نه بنده اوخالق کښې چه کوم فرق مرتبه دې هم هغه په علم دين کښې دې ، ددې وجوه په بناء باندې علمِ آخرت ته کمال اوعلم دنيا باندې شرف حاصل دې ددې وجه نه چرته مطلق علم وئيلې کيږی هغې نه دهغه فردِ اکمل واشرف يعنې علمِ دين مراد وی.

د شريعت په اصطلاح کښې صرف دعلم دين سره د علم د لفظ اختصاص دې حده پورې عام او معروف دې چه اهلِ اسلام کښې قبل الا سلام دپاره زمانه جاهليت او کافر دپاره د جاهل اصطلاح عامه مشهوره وه . کتبِ بلاغت کښې دا مثال په کثرت سره مذکور دې «قول الجاهل انبت الربيع البقل وشفى الطبيب المريض» ابوجهل د زيات هوښيار والی د وجه نه دابوالحکم په لقب سره معروف وو مګر ددولتِ ايمان نه د محروموالی په وجه سره ابوجهل جوړ شو عامه مقوله ده «علمے که بحق رہ ننماید جهل است» وقال العارف الرومی رحمه الله تعالی شعر

فکر آں باشد کہ بکشاید رہے ‏ ‏ ‏ راہ آں باشد کہ پیش آید شہے

## د چين ذکر

حقيقتِ مذکور په زړه کښې دکيناستلو نه پس سوال پيدا کيږی چه حديث کښې د چين د ذکر

كولو څه مطلب دې ؟ چين عهدِ رسالت كښې هم د علم دين نه خالي وو او وروستوهم تراوسه پورې رد هغه ځاى نه د علم دين د تحصيل هيڅ مطلب نه جوړيږى اونه د آئنده دپاره دهغې څه توقع په نظر راځي.

ددې جواب دادې چه دا اشكال څنګه چه علم دين سره متعلق پيدا كيږى هم دغه شان علم دنيا مراد اخستلو باندې هم دا اشكال پيدا كيږى ، ددې وجه چه علوم دنيويه كښې هم چين ته څه خصوصيت حاصل نه دې بلكه د نورو ممالكو په چين باندې فوقيت پاتې شوې دې ، بالفرض علوم دنيويه كښې كه د چين څه اوچتوالې تسليم هم كړې شى نو بيا هم حقيقت هغه دې چه پورته بيان شو ، يعنې كلام محسنِ اعظم صلى الله عليه وسلم كښې علم نه فقط علم دين مراد دې اود چين ذكر صرف په بعد مسافت كښې د تمثيل په طور باندې دې ، مقصد دادې چه د علم دين په تحصيل كښې خواه څومره اوږد سفر راشى او څومره مشقت تيرول راشى نو بيا هم په هغه فريضه كښې د تساهل هيڅ ګنجائش نشته ، عامه محاوره كښې د داسې قسم كلام نه بُعدِ مسافت كښې تمثيل مراد وى نه دهغه مقام تعيين ، كما هو ظاهر على من تتبع وتفكر فى كلام الناس، وهذا هو الحق الصريح لمن شاء ان يكون النجيح فقط والله سبحانه وتعالى اعلم.

مرجب سنه ... هجرى





بسم الله الرحمن الرحيم

وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ

## كَشْفُ الغطاء عن حقيقة اختلاف العلماء

## د اختلاف العلماء تحقيق

### (دا مضمون د صحيح بخارى له تقرير نه اخستل شوې دې)

د علماؤ اختلاف ختميدل ناممكن دى او ددې تمنا ساتلو والا ډيرلوئ احمق دې .ددې وجه نه چه د علماؤ اتفاق صرف په هغه صورت كښې كيدلې شو چه په قرآن اوحديث كښې دهرسړى متعلق دهرفعل اودهركيفيت حكم منصوص وې او دا ناممكنه ده . څكه چه دنيا كښې انسان غيرمحصور دې اګرچه غيرمتناهى نه دې بيا د هرسړى افعال غيرمحصور اود هرفعل كيفيات او

احکام غیرِ محصور دی . پس که چرته دومره مفصل کتاب نازل کړې شوې وې چه په هغې کښې هره جزئیه ذکر وې نوهغه به دومره غټ شوې وو چه نه خو به دهغه حفاظت ممکن وۀ اونه دهغه نقل کول به د انسان په قدرت کښې وۀ او نه به دهغه نه د استفادې څه صورت ممکن وۀ ، غیرِ محصور (بې شمیره) انسانانو کښې به خپل نوم تلاش کول مشکل وۀ، بیا دخپل غیرمحصورافعالو غیر محصوراحکامو کښې دیو حکم تلاش کول به ناممکن وۀ ، پس د داسې کتاب نازلول چه دهغه نه انسان استفاده ونه کړې شي اودهغه د حفاظت نه هم عاجز وی دا یو عیب دې . او په الله تعالی کښې د عیب کیدل ناممکن دی . لهذا د اختلاف ختمیدل هم ناممکن دی اود ناممکن تمناکولو والا به احمق وی ، پس لازمه شوه چه قرآن اوحدیث کښې د جزئیاتو په ځائې کلیات ذکر وی چه دهغې نه دهر جزئی حکم مستنبط کړې شی او کلیاتو نه استنباط کښې د انسان د عقل اوفهم دخل وی اود انسانانو عقول مختلف دی چه دهغې د وجه نه په مسئله کښې اختلاف پیدا کیږی بعضې اوقاتو کښې جزئیه یوه وی او کلیات هم فریقینو کښې مسلم وی مگر اختلاف په دې کښې وی چه دا جزئیه دکوم کُلیی لاندې درج ده . ددې مثال داسې وګنئ چه قاضی سره سره یوه دوسیه کښې د مدعی اومدعی علیه وکیلان اختلاف کوی .حالانکه جزئیه هم یو ده ، چه هغې باندې دواړه بحث کوی اوپه کومو قوانینوسره چه خپلې نظرئې سره ثابتول غواړی هغه قوانین هم دیوحکومت او فریقینو په نزد مسلم وی . ددې باوجود دواړو وکیلانو کښې داسې اختلاف وی چه د مدعی وکیل وائی چه د فلانکی قانون په اساس مدعی علیه ته سزا ورکول پکار دی اود مدعی علیه وکیل دا ثابتوی چه دا جزئیه دهغه قانون لاندې نه راځی کومه چه د مدعی وکیل بیان کړې ده بلکه د بل قانون سره زیات مناسبت لری چه دهغې په لحاظ سره مدعی علیه بری کیږی . غرض داچه ددې دواړو بحثونه په دې کښې وی چه دا جزئیه دکومې کلیه فرد دې او کوم قانون په دې باندې تطبیق کیږی . مونږ شپه او ورځ ګورو چه د وکیلانو بحثونه داسې جاری وی او دواړه وکیلان د حکومت مجاز وی ، دهغوی په اختلاف باندې نه د فریقینو اعتراض وی او نه نور خلق هغه بدګنی اونه قاضی دهغوی په اختلاف باندې ناراضه کیږی . نه حکومت هغوی د اختلاف نه بندوی بلکه هغوی ته د بحث کولو اود دلائلو بیانولو موقع ورکولې کیږی . او کوم وکیل چه زیات بحث کوی دهغه تعریف کیږی . دهغې نه پس قاضی په دواړو کښې چه دچا دلائلو ته راجح اومومی دهغه جانب فیصله کوی مگر د دویم وکیل نه اجازت سلب کولې کیږی اونه هغه ته سزا ورکولې کیږی اونه هغه بد ګڼلې کیږی بلکه آئنده مقدماتو کښې بیا هغه ته په عادی ډول د بحث کولو اجازت وی بعینه هم دا مثال د علماؤ دې چه جزئیه معینه باندې کومه کلیه منطبق کیږی په دې کښې دهغوی اختلاف وی ، دنیا کښې د اختلاف وکلاء نه علاوه نورهم دیرقسمه اختلافات مونږ ګورو او اورو مثلاً سیاسی اختلاف دې حده پورې رسیږی چه په پارلمانونو کښې بعضې کرت د جوکیانو

،کرسیانو، وبشتلو پورې خبره رسیږی . هم دغه شان علم العلاج کښې هم لوئ اختلاف موندلې کیږی . د ایلوپیتهی . هومیوپیتهی . یونانی اود ویدک وغیره خو اصول مختلف دی . چنانچه ایلوپیتهی کښې علاج بالضد وی او هومیوپیتهی کښې علاج بالمثل . بیا په هره طریقه د علاج کښې د مرض تشخیص دهغې اسباب اوتجویزِ دوا او خوراک اوپرهیز اود دوا مقدار . د دوا د خوراکونه شمیر اود دوا طریقهٔ استعمال کښې اختلاف وی ، که چیرته دیو طریقې دوو ماهرینو لره یعنې دوو ډاکټرانو یا دوو حکیمانو لره وکتلې شی نوهغوی به هم پخپل مینځ کښې مختلف وی مگر دهغې باوجود هغه اختلاف لره څوک بدنه گنی او اختلاف کولو والو باندې څوک هم اعتراض نه کوی اودهغوی اختلافاتو لره کتلوسره یو هم علاج نه پریږدی ، بلکه چه په کوم حکیم یا ډاکټر باندې اعتماد وی دهغه نه علاج کولې کیږی ، د علماؤ اختلاف ددې نه ډیره کمه درجه لری ددې وجه نه چه دهغوی اصول متحد دی ، سره ددې نه هغه اختلاف لره بدگنی او علماؤ لره د طعن هدف جوړولې کیږی او ورسره ورسره دا هم وئیلې کیږی چه مونږ ته هیڅ معلومات نه کیږی چه دکوم عالم خبره ومنو . حقیقت کښې دا نتیجه ده د دین اودعلمِ دین نه د بې توجهئ اود بې رغبتئ ، د علاج جسمانی اهمیت دې، ددې وجه نه د ډاکټرانو اختلاف د علاج نه مانع نه جوړیږی . ددې برعکس د چا په زړه کښې چه د باطنی امراضو د علاج ضرورت نه گڼلې کیږی او د دین اهمیت یې په زړه کښې نوی نو بیا اختلاف دعلماؤ حیله جوړولې کیږی . تردې پورې ددې بیان دې چه اختلاف کیدل لازمی امر دې اودهغې ختمول ناممکن دی .

وروسته په دې باندې پوهیدل ضروری دی چه د اختلاف درې قسمونه دی ، یوداچه د فریقینو نقطهٔ نظر د الله رضا وی ، هرسړې دا خیال وکړی چه زه څه وایم په هغې کښې د دین فائده ده اود فریقِ مخالف چه کومه نظریه ده په هغې کښې د دین ضرر دې په هغه صورتونو کښې جانبینو باندې دا اختلاف فرض وی چه په هغې باندې جانبینو ته ثواب ورکول کیږی که چرته دې اختلاف لره پریږدی نو گنهگار به وی .

دویم داچه د جانب واحد مقصد رضائې الهی وی او بل جانب صرف د اتباع کیدلو په خاطر اختلاف کوی . مثلاً یو سړې بل لره د مونځ تلقین کوی اود منکراتو نه یې منع کوی ، د نه بندیدلو په صورت کښې دهغه سره اختلاف کوی او بل سړې صرف ددې وجه نه دهغه مخالف دې چه دې هغه لره د منکراتو نه ولې منع کوی ؟ نو په ړومبنی سړی باندې دا اختلاف واجب دې او په دویم باندې حرام .

دریم داچه دواړه د خواهشاتِ نفسانیه په بناء باندې اختلاف کوی . دا اختلاف د جابینودواړه حرام دې . اودهغې ترک کول واجب دې .

د صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف د اول قسم اختلاف وو .

# د اختلاف د جواز شرائط

(۱) د اختلاف محمود کیدلو اول شرط دادي چه دهغوی منشاد الله رضا وی.

(۲) دویم شرط دادي چه د اختلاف کولو والا نظریه د بداهت خلاف نه وی .مثلاً څوک اوبښ ته بکری ونیل شروع کړی او دا اووائی چه څما تحقیق هم دادي ، زه خپل دیانت او اخلاص سره هم دا گنم . ددې باوجود هغه اختلاف ته محمود نه شی وئیلې کیدلې بلکه مذموم دې.

د ((ما انا علیه واصحابی)) خلاف قول کول هم په دې کښې داخل دې ، ددې وجه نه چه څنگه قرآن پخپل مفهوم کښې د سنت محتاج دې بعینه هم دغه شان کتاب اوسنت دواړه پخپل مفهوم کښې دصحابه کرامو رضی الله عنهم د تشریح او وضاحت محتاج دی . یعنې دکتاب او سنت نه به هغه مفهوم اخستلې کیږی کوم چه صحابه کرامو رضی الله عنهم گڼلې دې . د صحابه کرامو رضی الله عنهم نه خلاف دکتاب اوسنت مفهوم گڼل گمراهی ده. په دې باندې مختصر دلائل دا دی

(۱) ((اهدنا الصراط المستقیم)) کښې د صراطِ مستقیم تفسیر ((صراط الذین انعمت علیهم)) نه اخستلې شوې دې . ((د الصراط المستقیم)) تفسیر د صراط الله یا صراط الرسول یا صراط القرآن نه . ندې اخستلې شوې. ځکه چه بیا به خلقو دهغې په مفهوم کښې اختلاف کولې او هر سړی به خپل متعین شوی مفهوم لره صراطِ قرآن گرځولې لهذا ((صراط الذین انعمت علیهم)) سره یې وضاحت وکړو چه صراط مستقیم نه مراد د منعم علیهم بندگانو لاره ده چه یو خاص جماعت دې

(۲) ((ومن یشاقق الرسول من بعد ما تبین له الهدی ویتبع غیرسبیل المؤمنین نوله ما تولی ونصله جهنم)) په دې کښې هم د سبیل الله په ځائ سبیل المؤمنین اوفرمائیلې شو.

(۳) ((قل هذه سبیلی ادعوا الی الله علی بصیرة انا ومن اتبعنی)) په دې کښې الله تعالی د ((سبیلی)) نه پس ((انا)) باندې د ((من اتبعنی)) عطف کولو سره ددې وضاحت وکړو چه لاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ده کومې طرف ته چه د دوئ متبعین یعنې صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم دعوت ورکوی

(۴) د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې . ((علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین المهدیین عضوا علیها بالنواجذ)) د ((سنتی)) نه پس د سنة الخلفاء الراشدین ذکرکول ښکاره دلیل دې چه سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم به هم هغه وی کوم چه خلفاء اختیاروی . یعنی دا عطف تفسیری دې او ددې نه سوا ددې بله معنی نه شی کیدلې

(۵) حضورصلی الله علیه وسلم دا هم اوفرمائیل چه کامیابه فرقه هغه ده چه د ((ما انا علیه واصحابی)) مطابق وی . که چرته سنت پخپل مفهوم کښې د صحابی محتاج نه وې نو صرف ((ماانا علیه)) وئیل کافی وو . او د و ((اصحابی)) لفظ بې فایدې کیږی

(۲) د صحابه کرامو رضی الله عنهم مغفورلهم کیدل نصِ قرآنی سره ثابت دي . فرمائي ((**وکلاوعدالله الحسنی**)) او دویم ځائ فرمائي ((**الذین سبقت لهم منا الحسنی اولئک عنها مبعدون**)) د دواړو آیتونو په یو ځائ سره نتیجه دا را اوتله چه ټول صحابه کرام رضی الله عنهم کامیاب دی .

(۸) دا امرعقلاً هم ښکاره دي چه د قرآن اوحدیث مفهوم به هم هغه متعین وی کوم چه صحابه کرامو رضی الله عنهم وپیژندلو ددي وجه نه چه د متکلم مراد پیژندلو کښې دیو څو امورو دخل وی . مثلاً اهلِ ژبه کیدل ، د متکلم حالت نه باخبره کیدل ، متکلم سره ظاهری اوباطنی قرب ، د کلام شانِ ورود نه واقفه کیدل ، یعنې دا کلام په کوم محل اوپه کومه موقع باندې او کوم وخت واقع شو ؟ اود متکلم لهجې لره اوریدل هغې سره د لاسونو او مخ آثارو لره لیدل خصوصاً د الله اود الله د رسول کلام پیژندلوکښې د تقدس اوتقوی اود باطن طهارت او نورِ قلب (د زړه رڼا) نهایت ضروری دي .

دا ټول امور په صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې بدرجه اتم موجود وو ، ، هم ددې وجه نه چه کله یو صحابی رضی الله عنه د دوی صلی الله علیه وسلم دیوحکم زیات تاکید بیان کول غواړی نو د روایت کولو په وخت داسې فرمائي ((ابصرته عیناي وسمعته اذناي ووعاه قلبي)) .

دهغه خلقو اهلِ حق سره اصولی اختلاف دي چه قرآن اوحدیث لره د صحابه کرامو رضی الله عنهم د تفسیرمحتاج نه ګنی څنګه چه پرویز قرآن لره د حدیث محتاج نه ګنلو . کتاب الله اوسنت رسول الله صلی الله علیه وسلم هم قافیه کولو دپاره زه دي جماعت د صحابه رضی الله عنهم لره رجال الله سره تعبیرکوم ، اودا لفظ ماخوذ دي د ((**رجال لا تلهیم تجارة ولا بیع عن ذکرالله**)) نه .

(۳) د جوازِ اختلاف دریم شرط دادې چه د اختلاف کولو په وخت د ((الاهم فالاهم)) خیال وساتلې شی ، دحضرت علی اود حضرت معاویه رضی الله عنهما په مابین کښې د اختلاف په زمانه کښې قیصرروم دحضرت معاویه رضی الله عنه د طرف نه خپل خان لره مطمئن کولو لپاره د ایران په څه حصه باندې قبضه کول وغوښتل چه د حضرت علی رضی الله عنه په ولایت کښې وه په هغې باندې حضرت معاویه رضی الله عنه ملکِ روم ته ولیکل : ((**والله لئن لم تنته وترجع الی بلادك یالعین لاصطلحن انا وابن عمي علیك ولا خرجنك من جمیع بلادك ولا ضیقن علیك الارض بما رحبت ، وفي جمهورة رسائل العرب وبلغ معاویة رضی الله تعالی عنه ان صاحب الروم یرید قصد بلاد الشام ایام صفین فکتب الیه تالله لئن تممت علی ما بلغني لا صالحن صاحبي ولا کونن مقدمة الیك ولاجعلن القسطنطینیة الحمراء حممته سوداء ولا نزعنك من الملك نزع الاصطفلینته ولاردنك اریسا من الارارسة ترعی الد.....وفي روایة کما کنت ترعی الخنانیص**)) .

غرض داچه د اهمو اختلافاتو سره سره ادنی اختلافاتو لره پرېښودلو سره متحد کېدل ضروري دي . ((اللهم الف بين قلوبنا واصلح ذات بيننا وانصرنا على عدوك وعدونا. آمين))

**رشيد احمد اواخرشعبان سنه ۸۶ هجری**



**بسم الله الرحمن الرحيم**

**الانبياء اخوة من علات امهاتهم شتى ودينهم واحد (متفق عليه)**

## تنبیه المغفلین فی بیان التفاضل بین المرسلین

### تفاضل د انبياء عليهم الصلوة والسلام

**(دا بحث د صحیح بخاري له تقرير نه اخستل شوي دي)**

عام طور باندې واعظين ليدلې كيږي چه هغوى د حضورصلى الله عليه وسلم تفضيل په نورو انبياء عليهم الصلوة والسلام باندې بيانوى اوپه هغې كښې داسې خيزونه بيانوى چه في نفسه غلط دى .اوكه چرته يو خيز صحيح هم تسليم كړې شي نوبيا هم هغه طريقې سره فضيلت بيانول چه دنورو انبياؤ په تنقيص لره شامل وى جائز نه دى . په دې باره كښې ظاهراحاديث متعارض په نظر راځى چنانچه حضورصلى الله عليه وسلم اوفرمائيل «**لاتخيرونى على الانبياء**» او وې فرمائيل «**لاتقولوا اناخيرمن يونس بن متى**» حالانكه پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم په ډيرو مقاماتو باندې خپل فضيلت بيان كړې دې چنانچه فرمائى «**اناسيدولد آدم ولافخر**» او وې فرمائيل «**اناصاحب اللواء يوم القيامة وآدم تحت لوائى**» او وې فرمائيل «**كنت نبياوآدم بين الماء والطين**» حديث شفاعة كښې هم دوى صلى الله عليه وسلم خپل فضيلت په ټولو انبياؤ عليهم السلام باندې بيان كړې دې او حضرت ابن عباس رضى الله عنهما يوقصيده دحضورصلى الله عليه وسلم په خدمت كښې اووئيله چه په هغې كښې دوى لره ټولو انبياء عليهم السلام باندې فضيلت وركړې شوې دې، مولانا جامى رحمه الله هم دې قصيدې طرف ته اشاره كولو سره وئيلى دى : شعر :

زجودش گر نبودے راہ مفتوح بجودی کے رسیدے کشتیٔ نوح

حضورصلى الله عليه وسلم هغه قصدې نه انكار ونه فرمائيلو ، په دې روايات متعارضه كښى وجه د تطبيق داده چه طرزِ بيان كه چرته داسې وى چه هغه ديو نبي هم د تنقيص موهم نه وى نو جائز

دي او چرته دیونبي د بل نبي سره مقابله کولوسره يو ته ترجيح ورکړې شي چونکه په دې کښې د بل نبي تنقيص وی ددې وجه نه جائز نه دی . کومو مواقعو باندې چه دوی صلی الله علیه وسلم دخپل تفضيل نه منع فرمائیلې ده هغه هم د داسې تقابل مواضع وو چنانچه «لاتخيروني على الانبياء» بي هغه وخت اوفرمائيل چه هرکله دیو یهودی دمسلمان سره جګړه وشوه .مسلمان اووئيل «**والله الذي اصطفى محمدا صلى الله عليه وسلم على العالمين**» او يهودي اووئيل «**والله الذي اصطفى موسى عليه السلام على العالمين**» نوهغه مسلمان یهودی لره په څپیړه وهلوسره اووئيل «على محمد أيضا؟» هغه يهودی حضورصلی الله علیه وسلم ته شکایت راوړلوسره راغلو دوئ صلی الله عليه وسلم ټوله واقعه واوريدله نو وې فرمائیل «**لاتخيروني على الانبياء**» غرض دا چه چرته چه په دوو نبیانو کښې تقابل وی چه په هغې کښې دیو تفضيل اود دویم تنقیص لره مستلزم وی . د داسې قسم تفضیل نه يې منع اوفرمائيله :

واعظين عموماً لاندیې وجوه د فضیلت بیانوی :

(۱) د حضورصلی الله عليه وسلم معجزه د حضرت موسى عليه السلام د معجزې نه زيات اهميت لري ددې وجه نه چه موسی علیه السلام په کاڼی باندې کونتۍ (عصا) وهلوسره اوبه را ويستلې اوحضورصلی الله علیه وسلم د لاس مبارک نه اوبه را وتلې . د کاڼی نه اوبه راوتل څه بعیده نه ده . د کاڼو نه خو چینې راوځی . د ګوتو نه یعنې د انسان د هډوکی او غوښې نه چینه جاری کیدل دا لوئ کمال دې .

(۲) کوه طور باندې د الله تعالی تجلی لیدلوسره موسی علیه السلام بې هوشه شو او حضور صلی الله عليه وسلم عرش لره تشريف يوړو اوبلاحجاب يې الله تعالى وليدلو مګر بې هوشه نه شو

(۳) موسى عليه السلام بنی اسرائيلو روان کړی وو چه د فرعون لښکر يې تعاقب وکړو . بنی اسرائيلو چه هرکله وليدل چه مخامخ دریاب نیل دې او وروستو د فرعون لښکر دې نو ووېريدل هغه وخت حضرت موسى عليه السلام اوفرمائيل (**ان معي ربي سيهدين**) په دې کلام کښې يو نقص خو دادې چه موسی علیه السلام خپل نفس لره په لفظ رب باندې مقدم کړو او دويم دا چه د رب معيت يې صرف خپل ځان سره بیان کړو او قوم ئې پريښودلو . ددې برعکس حضورصلی الله علیه وسلم غارثورکښې د صديق اکبر رضی الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل (**لاتحزن ان الله معنا**) په دې کښې يې د الله تعالی لفظ لره مقدم اوفرمائيلو او «معنا» وئيلو سره ئې معيت الهيه لره عام اوساتلو صرف خپل ځان سره ئې مختص نه کړو

(۴) حضرت نوح عليه السلام بددعایی وکړه اوټول قوم ئې غرق کړو . ددې برعکس طائف کښې د حضورصلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حضرت جبرئیل علیه السلام تشريف راوړو چه که چرته حکم وی نوزه به دې خلقو لره د دوو غرونو په مینځ کښې پیوسته کړم . دوی اوفرمائيل

چه زه رحمة للعالمين جوړولو سره راليږلې شوې يم .

دا وجوه د ترجيح که چرته صحيح وې نو بيا هم دهغې په دې طريقې سره بيانول جائز نه وو ددې وجه نه چه په دې کښې د نورو انبياءِ کرامو عليهم السلام تنقيص دې . که ديو ورور تعريف داسې وکړې چه هغه دهغه بل ورور تنقيص لره متضمن وی نود خوشحالئ په ځائ د غيظ اوغضب سبب جوړيږی، اوحقيقت خودادې چه دا وجوهِ فضيلت چه پورته بيان کړې شوی دی فی نفسه غلط دی .

(۱) په هغې کښې د موسی عليه السلام هم تنقيص دې او ورسره دحضورصلی الله عليه وسلم هم تنقيص دې ، د موسی عليه السلام تنقيص خو ښکاره دې چه هغه معجزه ده چه هغې لره الله تعالی باربار بطورامتحان ذکرفرمائيلې ده، دهغې متعلق دا وئيل چه څه لويه خبره نه ده څومره لوئ جرأت دې ، اودحضورصلی الله عليه وسلم تنقيص داسې دې چه په يوروايت سره هم دا ثابته نه ده چه د دوی د ګوتونه اوبه را وه وتلې بلکه حقيقت دهغه واقعې دادې چه دوئ په اوبو کښې لاس کيښودلو چه دهغې په برکت سر ه هغه اوبه زياتې شوې اود ګوتو د مينځ نه را خوټکيدلې په نظر راتللې نو که ددې خبر د معجزې دعوی کولوسره هغه ثابته نکړې شی نودا په خپله موجب د تنقيص دې ، لهذا دا وجه د ترجيح اوتفضيل د بې وقوفه دوست حيثيت لری .

(۲) په کورکښې په ناسته يوخبره کول آسان دی ، کمال خودادې چه د خصم په وړاندې خبره وکړې شی ، غور وکړئ چه که چرته مونږ هم دا وجه ترجيح ديو يهودی په وړاندې بيان کړو او هغه په جواب کښې داسې اووائی چه زمونږ نبی الله تعالی لره ليدلوسره بې هوشه شو او ستاسو نبی يوځلې جبرئيل عليه السلام لره ليدلو سره بې هوشه شو نو زمونږ سره سوا د ندامت نه دهغې به څه جواب وی ؟ حقيقت دادې چه موسی عليه السلام ته تجلی عالمِ دنياکښې شوې وه اود عالم دنيا قوه کمزورې ده چه د الله د تجلئ متحمل نه شی کيدلې ، د حضورصلی الله عليه وسلم جبرئيل عليه السلام لره ليدلوسره بې هوشه کيدل هم ددې وجه نه وو ، او حضورصلی الله عليه وسلم چه کله معراج ته تشريف يوړو نو دوئ ته دهغه ځائ حالات ښودلو دپاره دهغه عالم مناسب قوه ورکړې شوې وه چنانچه د معراج نه وړاندې د دوی شقِ صدر او غسل بماءِ زمزم ددې وجه نه کړې شوې وو چه په دوی کښې د عالمِ اعلی قوت پيدا شی لهذا يوعالَم لره په بل باندې قياس کول جهالت دې او د معراج په قصه کښې د عرش نه تجاوز کول وغيره ډير داسې خرافات داسې بيانولې کيږی چه د اصولِ شريعت خلاف وی او رؤية باری تعالی کښې د صحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف دې [۱] ، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی (من زعمه انه رای ربه فقد اعظم علی الله الفرية )

(۳) دا داسې غلطي ده چه په دې کښې بعضې مصنفين هم مبتلاشوی دی . حقيقت دادې چه د حضورصلی الله عليه وسلم اود موسی عليه السلام دواړو کلام په خپل خپل ځای د بلاغت په اعلی معيارباندې دې او دخپلو خپلو مواقعو اومحل عينِ مناسب دې . که چرته موسی عليه السلام (**ان الله معنا**) وئيلې وې نوپه کلام کښې بلاغت نه پاتې کيدلو . هم داسې که چرته حضورصلی الله عليه وسلم (**ان معی ربی**) فرمائيلې وې نودموقع غيرمناسب کيدلو د وجې نه به کلام بليغ نه پاتې کيدلو . تعجب دې په علامهٔ تفتازانی باندې چه فنِ فصاحت اوبلاغت کښې تصنيف کوی او هم په هغې کښې غلطی کوی چه د حضورصلی الله عليه وسلم کلام لره د موسی عليه السلام په کلام باندې ترجيح ورکوی . غالباداغلطی د علامه بيضاوی نه هم شوې ده .

اوس لږ تفصيل واورئ چه په هغې سره به ثابته شی چه د هرنبی کلام پخپله موقع کښې نهايت بليغ دې د حضرت موسی عليه السلام قوم دومره ضعيف الايمان واقع شوی وو چه د الله په حکم سره د الله نبی سره روان دی او نبی هم داسې چه دهغه معجزاتِ صرف معقولې نه وې بلکه محسوس او مبصر وی چه په هغې سره کم عقل سړې هم يقين حاصلولې شی . په هغه حالت کښې هغه خلقو ته دخپلې گرفتارئ وهم قدرې هم نه وو راتلل پکار مگر هغوی د فرعون لښکر لره ليدلوسره وسوسه خوټې وکړه يقينی طور باندې يې د ډيرو تاکيداتو سره حکم ولگولو (**انالمدرکون**) لفظِ (انا) او لام تاکيد او جمله اسميه راوړلوسره دهغه يقين استحکام لره ښکاره کړو . اوس قابلِ غورمقام دې چه داسې قوم چه هغوی ته د الله اود رسول په وعدې باندې اطمينان نه وی او هغوی دهغه په خلاف يقين لری او هغه په ډيرو تاکيداتوسره بيانوی يعنې يقيناً يقيناً يقيناً مونږ ونيولې شو، نو داسې قوم سره د الله تعالی معيت او مدد څنگه کيدلې شی ؟ لهذا موسی عليه السلام (**ان معی ربی**) کښې بغرضِ حصر ((معی)) لره مقدم کړو او ضميرمتکلم ئې مفرد راوړو چه ځما سره هم ځما دربِ معيت دې دهغې په برکت سره به تاسو هم بچ کيږئ . اوکه نه نو تاسو خو ددې لائق نۀ چه يا خو د فرعون د ظلم شکار شئ يا په درياب کښې غرق شئ نو مقصود دا بيانول دی چه د رب معيت صرف ځما سره دې تاسو دهغه دمعيت لائق نه ئې . پس که چرته يې ((ان الله معنا )) فرمائيلې وې نوخلافِ مقصود به وې ،لهذا د کلام بلاغت د معيارنه به بالکل غورځيدلې وې . ددې برعکس غارِثور کښې د صديقِ اکبر رضی الله عنه په اوالله اورسول صلی الله عليه وسلم باندې ايمان کامل وو او بطورِ وسوسه يې چه دا لفظ په ژبه باندې راغلو چه که چرته کفارلږ په ښځ اوچتولوسره وگوری نومونږه نيولې شی . اولاً دا صرف د وسوسې په درجه کښې وو چه هغې باندې مواخذه نشته . ثانياً داچه دهغه وسوسې منشا خوف علی النفس نه وه بلکه حضورصلی الله عليه وسلم باندې خوف وو چه دا دليل دې دحضورصلی الله عليه وسلم سره د کمالِ محبت اودکمالِ ايمان . چنانچه د ((لاتخف )) په ځای (لاتحزن ) ددې وضاحت کوی . ددې وجه

چه خوف نفس باندې وی او حُزن دیومحبوب څیز په جدا کیدلو باندې وی نو معلومه شوه چه صدیقِ اکبر رضی الله عنه ته خوفِ نفس نه وو بلکه د حضورصلی الله علیه وسلم د جدا کیدلو خطره وه . لهذا دوی (ان الله معنا) فرمائیلوسره واضحه کړه چه د صدیقِ اکبر رضی الله عنه ایمان دومره کامل دې چه څنګه دالله معیت څماسره دې هم هغسې د هغه سره هم دې . که چرته په دې موقع باندې دوی ((ان معی ربی )) فرمائیلې وې نو مقصود نه ادا کیدلو او په کلام کښې بلاغت نه پاتې کیدلو .

(۴) د حضرت نوح علیه السلام په باره کښې دا وئیل چه هغوی د بد دعایی په ذریعې سره قوم لره تباه کړو . دا د قرآن نه د بیخبرئ نتیجه ده . قرآن کریم کښې که چرته د حضرت نوح علیه السلام په قصه باندې غوروکړې شی نومعلومیږی چه دحضرت نوح علیه السلام په خپل قوم باندې ډیر شفقت وو اوپه یو صورت کښې هم هغه ته دهغوی هلاکت خوښ نه وو . چنانچه فرمائی ((لاتبتئس بما کانوا یفعلون )) په دې سره معلومه شوه چه نوح علیه السلام ته دقوم په بدعملئ باندې تکلیف رسیدلو چه دا د شفقت اومحبت دلیل دې . د دښمن په بدعملئ باندې تکلیف نه ملاویږی بلکه خوشحالی ملاویږی . نه نیم سوه (۹۵۰) کاله پورې نوح علیه السلام دهغوی په بدعملئ باندې تکلیف برداشت کولو . د نه نیم سوه کاله موده قابلِ غور ده . په وئیلو کښې آسان دی مګر دومره مودې پورې بدعملیانې کتل او په هغې باندې غمناکه کیدل بیا هم د صبر اواستقلال لمنه نه پریښودل لویه معجزه ده . ددې باوجود چه کله دهغوی د غرق کیدلو حکم کیږی نو نوح علیه السلام په ډیراصرار سره دهغوی سفارش کوی چنانچه ارشاد دې ((لاتخاطبنی فی الذین ظلموا انهم مغرقون )) ثابته شوه چه نوح علیه السلام سفارش کړې ووچه دهغې نه بندولې کیږی اود بلاغت تقاضا ده چه د انکارد شدت مطابق جواب کښې شدت اوتاکید وی . یعنې د جواب په تاکید د انکار په تاکید باندې دلیل وی . (لا تخاطبنی فی الذین ظلموا) کښې ډیر تاکیدات دی . اول داچه د (لاتشفع) په ځائ (لاتخاطبنی) فرمائیل ډیر لوئ تاکید دې چه دهغوی په باره کښې څما سره هیڅ خبره مه کوه او (فی الذین ظلموا) سره دهغوی قباحت شان لره ذکرکولوسره نوح علیه السلام لره پوهول . بیا لفظ (ان) او جملې اسمیې سره مؤکد کول دا ټول امور په دې باندې دال دی چه د حضرت نوح علیه السلام انکار یعنې شفاعت باندې اصرار ډیر سخت وو مګر دهغې باوجود دا شفاعت قبول نه شو اود غرق حکم محکم شو مګر ددې باوجود هم نوح علیه السلام په دې تکل کښې وو چه کچرته د سفارش څه موقع او څه حیله پیدا شی نو ښه به وی چنانچه خپل ځوئ سره متعلق ئې لږ ګنجائش وموندلو نو فوراً ئې سفارش وکړو . دې ته د شفقتِ پدری خاصه نه شی وئیلې کیدلې . اول د دې وجه نه چه د نبی تعلق ټول امت سره د پلار په شان وی . دویم ددې وجه نه چه اولاد که چرته انکار کوی نو هغې باندې غیظ اوغضب د نورو په نسبت زیات وی . حضرت

نوح علیه السلام ته چه کله د خوئ په انکار باندې هم دومره شفقت وو نو په نورو باندې خو به ددې نه زيات وی .

غرض داچه د خوئ سفارش دې حيثيت سره نه وو چه هغه خوئ دې بلکه پدې وجه سره ووچه د بل چا دپاره څه گنجائش باقي نه وو ، دهغې نه پس د خوئ په سفارش کښې کښې هم چه کله حضرت نوح علیه السلام ته سخته تنبيه وکړې شوه او باربار سفارش کولو باندې د الله تعالى د ناراضګئ احتمال تيرشو نودهغې د تدارک دپاره اوخپلې رضا لره د الله تعالى په رضا کښې فناکولو دپاره يې عرض وکړو « **لا تذر على الارض من الكافرين دياراً** » نو دا دعا د الله تعالى د رضا حاصلولو دپاره وه ، او که چرته بالفرض دا تسليم هم کړې شی چه د نوح علیه السلام په بد دعا سره دا عذاب راغلې وو نو ډير افراد بلکه ډيرو قبائلو باندې دحضورصلی الله علیه وسلم بدعا کول هم ثابت دی ، پس د بدعا کولو يا نه کولو مواقع انبياء عليهم السلام ښه پيژنی ، که چرته حضورصلی الله علیه وسلم د حضرت نوح علیه السلام په مقام باندې وې نودوی به هم بدعا غوښتلې وې ، اوکه چرته په طائف کښې د حضورصلی الله علیه وسلم په ځائ باندې حضرت نوح علیه السلام وې نو يقيناً دوی به هم بدعا نه کوله ، فقطوالحمدلله اولا واخرا والصلوة والسلام على رسله الكرام خصوصا على سيد الانام ما اختلف الليالي والايام وهو خير ختام .

رشيد احمد ۸ محرم ۱۳۸۷ هجری يوم الاربعاء

# کتاب التفسیر والحدیث

## په ولاړه د خوراک نه د ممانعت حدیث

**سوال**: د نهی عن الاکل قائماً، په باره کښې د فقه عبارات خو موجود دی مگر حدیث باوجود تلاش کولو نه راته ملاؤ نه شو ، لهذا د جناب په نظر کښې که چرته یو حدیث وی نو تحریریې کړئ

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: عن قتادة عن انس رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم انه نهی ان یشرب الرجل قائماً قال قتادة فقلنا فالاکل فقال ذاک اشر او اخبث (مسلم ص[illegible] ج۲) وعند الترمذی فقیل الاکل قال ذاک اشد، هذا حدیث صحیح (ص[illegible]) په دې سره معلومه شوه چه د مسلم په روایت کښې قول د انس رضی الله عنه «ذاک اشر» هم مرفوع دې ، نورو روایاتو نه هم ددې تائید کیږی ((قال علی القاری رحمه الله تعالی ورواه الضیاء وزاد والاکل قائماً)) (مرقاة ص[illegible] ج[illegible]) او مفتاح کنوزالسنة کښې د «لایاکل ولایشرب قائما» ، لاندې د مسند احمد اوطیالسی حواله لیکلې شوې ده علاوه ددې نه شرب سره د نهی علت په اکل کښې بطریقِ اولی موجود دې او شرب قائما باندې دومره شدید تاکید وارد دې چه قئ کولو سره دې اوبه اوباسي ، بعضې احادیثو کښې د شرب قائما ثبوت دې .

تطبیق کښې امام نووی رحمه الله فرمائي ، اعلم ان هذه الاحادیث اشکل معناها علی بعض العلماء حتی قال فیها اقوالا باطلة وزاد حتی تجاسر ورام ان یضعف بعضها وادعی فیها دعاوی باطلة ولا غرض لنا فی ذکرها ولا وجه لاشاعة الاباطیل والغلطات فی تفسیر السنن بل نذکر الصواب ویشار الی التحذیر من الاغترار بما خالفه ولیس فی هذه الاحادیث بحمد الله تعالی اشکال ولا فیها ضعف بل کلها صحیحة والصواب فیها ان النهی محمول علی کراهة التنزیه واما شربه صلی الله علیه وسلم قائما فبیان للجواز فلا اشکال ولا تعارض وهذا الذی ذکرناه یتعین المصیر الیه واما من زعم نسخا او غیره فقد غلط غلطا فاحشا وکیف یصار الی النسخ مع امکان الجمع بین الاحادیث وانما یکون نسخا لو ثبت التاریخ وانی له ذلک والله اعلم (نووی علی مسلم کتاب الاشربة)

وفی عمدة القاری بعد نقل کلام النووی بالاختصار قال الطحاوی ما ملخصه انه صلی الله علیه وسلم اراد بهذا النهی الاشفاق علی امته لانه یخاف من الشرب قائما الضرر وحدوث الداء کما قال لهم اما انا فلا اکل متکئا انتهی قلت اختلفوا فی هذا الباب بحسب اختلاف الاحادیث فیه فذهب الحسن البصری وابراهیم النخعی وقتادة الی کراهة الشرب قائما وروی ذلک عن انس رضی الله عنه وذهب الشعبی وسعید بن المسیب وزاذان وطاوس وسعید بن جبیر ومجاهد الی انه لا باس به ویروی ذلک عن ابن عباس وابی هریرة وسعد وعمر بن الخطاب

وابنه عبدالله وابن الزبير وعائشة رضي الله تعالى عنهم (عمدة القاري ج كتاب الحج) فقط والله تعالى اعلم

محرم سنه هجری

## د پورتنۍ پوښتنې په شان يوه بله پوښتنه

**سوال** - آيا د نهى عن الاكل قائما متعلق يو مرفوع حديث شته . بينوا توجروا

**الجوا ب باسم ملهم الصواب** : جمع الفوائد کښې د حضرت انس رضي الله عنه نه دا روايت نقل دي (انس) نهى النبي صلى الله عليه وسلم عن الشرب قائما وعن الاكل قائما للبزار والموصلي (جمع الفوائد ص ج) فقط والله تعالى اعلم

محرم سنه هجری

## د حديث ((لا ترفع عنهم عصاک ادباً)) حواله

**سوال** :- د تربيت اولاد متعلق (**لاترفع عنهم عصاک ادباً**) مقوله ده او که حديث ؟ که چرته حديث وی نو دهغې حواله مطلوب ده ، بينوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : دا حديث دې : ((ولا ترفع عنهم عصاك ادبا واخفهم في الله)) رواه احمد (مشكوة جلد اول باب الكبائر وعلامات النفاق الفصل الثالث) فقط والله تعالى اعلم

ربيع الاول سنه هجری

## تحقيق د حديث ((لولاک لما خلقت افلاک))

ما ديو سوال په باره کښې لاندې جواب په يو خط کښې ليکلې دې دهغې په باره کښې ما دخپلې نظرئې نه خبرکړه

**سوال** :- يو مولوی صاحب وائي چه حديث (( لولاک لما خلقت افلاک )) موضوع او بې بنياد دې، ملاعلی قاری هغه موضوع ليکلې دې .

**الجواب** بيشک يو عالم صغانی هغې ته موضوع وئيلې دې او بعضې نورو علماؤ هم . مګر تولو محدثينو ورته موضوع ندې ويلې . سوا دهغوی نه که چرته بالفرض د صغانی محدث قول قبول کړې شی نو بيا هم هغه د ظاهری الفاظو متعلق دې نه د حقيقت او اصل معنې متعلق . ځکه چه بالمعنئ دا حديث صحيح دې کوم بزرګ چه صغانی طرف ته هغې لره د موضوع وئيلو نسبت کړې دې . هم هغه (د حضرت ملا علی قاری صاحب رحمه الله ) موضعات کبير مطبع مجتبائ دهلی صفحه ۵۹ کښې ليکلی دی چه ((حديث لولاك لما خلقت الافلاك)) قال الصغاني انه موضوع كذا في الخلاصة لكن معناه صحيح فقد روى الديلمي عن ابن عباس رضي الله عنهما مرفوعا اتاني جبرئيل فقال يا محمد

لولاك لما خلقت الجنة ولولاك لما خلقت النار وفي رواية ابن عساكر لولاك لما خلقت الدنيا۔

(۲) امام شهاب الدين احمد قسطلاني شارح بخاری کتاب مواهب لدنيه کښې نقل کړی دی
قال الله تعالى لآدم يا آدم يا ابا محمد ارفع راسك فرفع راسه فرأى نور محمد في سرادق العرش فقال يارب ما هذا النور قال هذا نور نبي من ذريتك اسمه في السماء احمد وفي الارض محمد لولاه ما خلقتك ولا خلقت سماء ولا ارضا

(۳) همدا روايت حضرت شيخ علامه يوسف بن اسماعيل بهانی هم په انوار محمديه کښې راوړی دی

(۴) ذکر شوو دوارو کتابونو (مواهب لدنيه او انوار محمديه) کښې د حضرت کعب احبار تابعی قول منقول دی. حضرت کعب د تورات او انجيل لوئ عالم وو او د قرآن او حديث هم لوئ ماهر وو. حضرت کعب فرمائی: ان آدم وجميع المخلوقات خلقوا لاجل محمد رواه البيهقي.

(۵) حق تعالى حديث قدسی کښې ارشاد فرمائی لولاك لما اظهرت الربوبية (عطر الوردة في شرح البردة از علامه مولانا ذو الفقار علی ديوبندی)

(۶) حضرت حکيم الامت مولانا شاه اشرف علی تهانوی رحمه الله په نشر الطيب کښې ليکی او فرمائی عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه قال قال النبي صلى الله عليه وسلم قال الله تعالى لآدم يا آدم لولا محمد ما خلقتك رواه الحاكم وصححه البيهقي والطبراني.

(۷) قال الله تعالى يا آدم لولا محمد ما خلقتك وهو آخر الانبياء (الدر العظيم في مولد النبي الكريم مصری)

(۸) علامه امام زرقانی شرح مواهب لدنيه جلد اول کښې ليکی عن ابي الشيخ والحاكم عن ابن عباس رضي الله تعالى عنهما اوحى الله تعالى الى عيسى بن مريم يا عيسى لولا محمد ما خلقت آدم ولا الجنة ولا النار وروى الحاكم مثله وصححه ورواه السبكي والبلقيني.

(۹) قال الله تعالى وعزتي وجلالي لولا محمد ما خلقت عرشا ولا كرسيا ولا سماء ولا ارضا ولا جنة ولا نارا ولا ليلا ولا نهارا وما خلقت جميع الاشياء الا اكراما الذي سميته محمدا (مولد النبي للقطب الرباني الشيخ عبد الرحيم البرعي) هذا ما ظهر لي في هذا الباب.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: زه دې تحرير سره متفق يم. فقط والله تعالى اعلم

رشيد احمد ۱۲ صفر ۷۵ هجری

## سورة فاتحه په کومه پاره کښې داخله ده

**سوال** آيا سورة فاتحه له ديرشو پارو نه علاوه ده او که په اوله يا کومه بله پاره کښې داخله ده

که چيري په اوله پاره کښې داخله وي نو دهغې نوم ولې الحمد» کيښودل شو اوکه په کومه بله پاره کښې داخله وي نو بيا يې د قرآن په اول کښې ولې ذکر کړه بينوا توجروا

**الجواب ومنه الصدق والصواب** :

د «الحمد لله» سورې په منزله د متن سره دې اونور ټول قرآن په منزله د شرح سره دې نو سورة فاتحه نه د ټول قرآن نه خارج ده اونه دقرآن په يو معين جزء کښې داخله ده بلکه د قرآن په ټولو اجزاؤ کښې مشترك ده ، همدارنګه د قرآن کريم د پارو ثبوت له رسول الله صلى الله عليه وسلم نه ندې راغلې اونه حضرت عثمان رضى الله عنه دا تجزيه او تقسيم کړې دې بلکه د نقل په سلسله کښې بغير له کوم نقل د مصاحفو نه اتفاقًا اوبغير له قصد نه ديرش اجزاء مرتب شوى دى، پس د قرآن خارج کيدل له دې ديرشو اجزاؤ نه جائز دى ځکه چه د قرآن انحصار په ديرش اجزاؤ کښې ثابت ندې . فقط والله تعالى اعلم. ۱۳ جمادى الاول سنه ۷۵ هجرى

## د حديث نجد تحقيق

**سوال** : نجد سره متعلق چه په حديث کښې راغلى دى «**هنالک الزلازل والفتن وبها يطلع قرن الشيطان**» ايا په دې سره د سلطان ابن سعود په کفريا فسق باندې استدلال کولې کيږى لهذا ددې حديث په تشريح کولو سره موږ مطمئن کړئ.

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : د حديث دا مطلب نه دې چه قيامته پورې به نجد کښې څوک صالح سړې بالکل نه پيدا کيږى بلکه ټول به کافريا فاسق وى بلکه حديث کښې دکثرت شرور اوغلبهٔ شيطان بيان دې چنانچه علامه عينى شرح بخارى کښې فرمائى . ((**وبنجد يطلع قرن الشيطان اى امته وحزبه قال کعب يخرج الدجال من العراق وان فتنته تکون من تلک الناحية وکذلک کانت وهى وقعة الجمل ووقعة صفين ثم ظهور الخوارج فى ارض نجد والعراق وما وراها من المشرق**)) علامه کرمانى شرح بخارى کښې دپورته ذکر شوى عبارت نه علاوه فرمائى ، «کذلک خروج الدجال وياجوج وماجوج منها» امام نووى رحمه الله شرح مسلم کښې فرمائى «والمراد بذالک اختصاص المشرق بمزيد من تسلط الشيطان ومن الکفر کما قال فى حديث آخر راس الکفرنحو المشرق» غرض داچه حديث نه د نجد د هرفرد کافر يا فاسق کيدل نه ثابتيږى، که چرته ديوسړى صالح اومتقى کيدل واضحه وى نوقبيله يابناريا ملک کښې د غلبهٔ شر د وجه نه هغه باندې د «لا تزروازرة اخرى» اود «ان اکرمکم عندالله اتقاکم» قانون سره څه قسم تهمت نه شى راتللې . دويم داچه د ټول ملک عرب دوه حصې دى ، حجاز او نجد . مکې مکرمې نه مدينې منورې پورې حجاز دې باقى ټول سره نه عراق بغداد ، بصره ، کوفه وغيره نه نجد دې . چنانچه شيخ عبدالحق محدث دهلوى رحمه الله شرح

مشکوة کښې فرمائی نجد ورائے حجاز راگویند، او ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی. نجد من المشرق وقال الخطابی نجد من جهة المشرق ومن کان بالمدینة کان نجده بادیة العراق ونواحیها وهی مشرق اهل المدینة.

علامه کرمانی رحمه الله فرمائی من کان بالمدینة الطیبة کان نجدها بادیة العراق ونواحیها وهی مشرق اهلها.

المصباح المنیر کښې دی تهامة من تهم اللبن واللحم تهما من باب تعب تغیر وانتن لانها انخفضت عن نجد فتغیرت ریحها. او د نجد په تحقیق کښې فرمائی «نجد ما ارتفع من الارض» وړاندې فرمائی. وقال الصغانی کل ما ارتفع من تهامة الی ارض العراق فهو نجد وقال فی التهذیب کل ما وراء الخندق الذی خندقه کسری علی سواد العراق فهو نجد الی ان تمیل الی الحرة فاذا ملت الیها فانت فی الحجاز انتهی کلام صاحب المصباح. ملا علی قاری جمع الوسائل کښې فرمائی. د حجاز منخفض (لاندې) حصې ته مکه مکرمه او دهغې جنوب ته تهامه وئیلې کیږی. د صاحب قاموس په تحقیق سره هم صفا ثابتیږی چه د نجد تخصیص چه کومې حصې سره نن سبا عرف عام کښې ګڼلې کیږی حقیقت نه بعید دې نجد په ډیر وسیع معنو کښې ماوراء حجاز ته شامل دې. چنانچه حضرت علی د کوفې په منبر باندې شهید شو او حضرت حسین میدانِ کربلا کښې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی اما نجد فهو کل مکان مرتفع وهو اسم لعشرة مواضع والمراد منها ههنا ما اعلاها تهامة والیمن واسفلها الشام والعراق. پس هغه حدیث سره چه کوم حکم په ابن سعود باندې لګولې کیږی جمله اهلِ بغداد، کوفه، یمن، عراق باندې به هم لازم وی. دویم دا چه حدیث کښې نجد نه مراد عراق دې. کنزالعمال کښې دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د صاع او مُد په باره کښې د برکت دعا وکړه او بیا ئې د شام او یمن دپاره د برکت دعا وکړه نو یو سړی عرض وکړو چه حضور زمونږ د عراق دپاره هم دعا وکړه. دوی سکوت کولو سره اوفرمائیل چه هغلته خو به د شیطانی ډلې اود فتنو ظهور کیږی او ظلم مشرق کښې دې.

او د مسندابن عساکر په روایت کښې دی چه دحضرت عمر رضی الله عنه د عراق په قصد باندې کعب احبار رحمه الله اووئیل ای امیرالمؤمنین! الله تعالی دې تاسو د عراق نه محفوظه وساتی. حضرت عمررضی الله عنه پوښتنه وکړه چه په هغې کښې څه خرابی ده؟ کعب وه وئیل نهه حصې د شر دی او سخت عیب په هغې کښې دې. او نافرمانو پیریانو او هاروت اوماروت او شیطان هغلته هګۍ اچولې دی. د علامه عینی اوکرمانی ذکرشوې تحقیق هم ددې مثبت دې. فقط والله الهادی الی الصواب والعاصم من موجبات الارتیاب

۲۹ صفر سنه ۷۴ هجری

## وجه تسمیه د آیت ، رکوع او د سورت

**سوال** آیت لره د آیت اورکوع لره د رکوع او سورت لره د سورت نوم ولې کیښودل شوې دې ؟

**الجواب ومنه الصدق والصواب**:

آیت په لغت کښې علامې اونښانې ته ویل کیږی او قرآنی آیت ښه اونښانه ده په انقطاع د مابعد باندې له ماقبل نه. او دقرآن کریم بعضو خاصو کلمو ته هم آیت ویل کیږی. ځکه چه د کلمات دغه خاص مجموعه نښانه ده په خپلې معنی باندې. او یا له دې وجهې نه چه دا جمله کلمات د انقطاع له نښانې سره یوځای او ملګری دی. او آیت په لغت کښې له (آی) نه نقل شوې دې چه لپاره د تمیز د یو شی راځی له بل شی نه. اولغوی علامت هم ممیز دې د ذی علامت له غیر نه . اویا له (اوی الیه) نه نقل شوې دې په معنی د رجوع سره . ځکه چه رجوع د علامې طرفته کول کیږی لپاره د معرف د ذی علامت. او دا هم ممکن دی چه قرآنی آیت له منقول عنه نه اخستلې شوې وې یا په دې سبب چه قرآنی علام ممیز ده د یوې طائفې له بلې طائفې نه او آیت په معنی د کلماتو د یوې ممیزې طائفې سره دې له بلې طائفې نه . او یا له (اوی الیه) نه اخستل شوې دې پدې سبب چه آیت قرآنی په منزله د منزل سره دی چه قاری هغې ته رجوع کوی . او آیت په معنی د طائفې مجاورې د دې منزل سره دې نو ځکه ورته همدا نوم کیښودل شو اویا په دې سبب چه د قاری منزل د دې طائفې کلماتو آخری لفظ دې ((فسمیت الطائفة بإسم جوئها الاخر. قال البیضاوی رحمه الله والایة فی الاصل العلامة الظاهرة ویقال للمصنوعات من حیث انها تدل علی وجود الصانع وعلمه وقدرته ولکل [۱] طائفة من کلمات القران المتمیزة عن غیرها بفصل واشتقاقها من ای لانها تبین ایا من ای اومن [۲] اوی الیه واصلها ایبه کثمرة فابدلت عینها الفا علی غیر قیاس اوایبة او اویة کرمکة فاعلت اوائیة کقائلة فحذفت الهمزة تخفیفا. وفی الحاشیة وفی ایة القران قولان فقیل انها العلامة لانقطاع الکلام الذی بعدها من الذی قبلها وقیل انها جماعة من القران وطائفة من الحروف وقول المصنف من حیث اشارة الی القول الاول وقوله لکل طائفة اشارة الی الثانی فکان علیه ان یجمع بین القولین ولذلك اعتراض علیه بانه لم یصب فی خلطهما. وایضا فیها قوله ایامن ای بالتشدید قیل معناه شیء یسال عنه بای فالمعنی یمیز امرا مجهولا من اخر وقیل ان العبارة ایامن ای بالمد ای شخصا من شخص لان الای بمعنی الشخص وفیه نظر قوله اومن اوی الیه لانها منزلة المنزل یاوی الیه القاری)) (تفسیر بیضاوی ص۱۰)

---

۱- لکونه علامة علی معناها

۲- لانه یرجع الیه لمعرفة ذی العلامة

رکوع په لغت کښې په معنی د اطمینان سره راغلې ده او د قرآن رکوعاتو ته چه رکوع ویل کیږی دهغې وجه داده چه قاری وروسته له طی کولو د سفر د منزلونو نه مطمئن کیږی هغې ته. او ظاهری وجه یې دا ده چه قاری په تراویحو کښې له دومره اندازې ویلو وروسته رکوع کوی ((وحکی عن القاضی الامام عماد الدین رحمه الله تعالی ان مشائخ بخارا جعلوا القرآن خمسمائة واربعین رکوعا وعلموا الختم بها لیقع الختم فی اللیلة السابعة والعشرین رجاء ان ینالوا فضیلة لیلة القدر اذا الاخبار قد کثرت بانها لیلة السابع والعشرین من رمضان وفی هذه البلدة المصاحف معلمة بالآیات وانما سموه رکوعا علی تقدیر انها تقرا فی کل رکعة (مبسوط ص۱۴۶ ج۲ عالمگیریه ص۹۴ ج۱) حاشیه علی هامش العالمگیریه ص۱۴۶ ج۱) ولم اطلع علی معیار مقدار الرکوعات ولعل قاریا ختم لیلة السابع والعشرین فوضعوا رکوعا علی ما اتفق له من القراءة فی کل رکعة والله اعلم)).

سورت له (سور البلد) نه اخستل شوې دې ځکه چه دا محیط دې په یوه طائفه د قرآن باندې او یا راګیرونکې دې د علم انواعو لره اویا له سور نه اخستل شوې دې په معنی د مرتبې سره ځکه چه سورة په مثل د منازلو او مراتبو سره دې چه قاری هغه قطع کوی. یا له دې سبب نه چه هر سورت په طول او قصر اوفضل او ثواب کښې جدا جدا مرتبه لری. او یا له (سوره) نه اخستل شوې دې چه په معنی د قطع سره دې ((قال البیضاوی وهی ان جعلت واوها اصلیة منقولة من سور المدینة لانها محیطة بطائفة من القرآن مفرزة محوزة علی حیالها او محتویة علی انواع من العلم احتواء سور المدینة علی ما فیها او من السورة التی هی الرتبة قال ولرهط حراب وقد سورة، فی المجد لیس غرابها بمطار. لان السور کالمنازل والمراتب یترقی فیها القاری اولها مراتب فی الطول والقصر والفضل والشرف وثواب القراءة وان جعلت مبدلة من الهمزة فمن السورة التی هی البقیة والقطعة من الشیء)) (تفسیر بیضاوی ص۳) فقط والله تعالی اعلم.

۲ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۰ هجری

## د رکوع او پارې تحقیق

**سوال** قرآن کریم کښې رکوع چا لګولې ده اودهغې معیار څه دې؟ ظاهراً دهغې څه معیار په نظر کښې نه راځی. ددې وجه نه چه دهغې مقدار مختلف دې اوکه چرته د مضمون په لحاظ سره وکتلې شی نو بعضې مواقع داسې هم دی چه مضمون ختمیدلو کښې یو دوه آیتونه باقی وی مګر رکوع ختمه شوې وی. یا د نوی مضمون یو دوه آیتونه تیریدلو سره نوې رکوع شروع شوی وی. که چرته د رکوع مقدار ته سماعی اوویلې شی نو آیا ددې څه ثبوت شته؟ ظاهراً د احادیثو به

ذریعې ددې څه ثبوت نه معلومیږي . همدغه شان د قرآن کریم دیرش پارې څنګه او کله شروع شوې . احادیثو کښې د پارو هم چرته ذکرنشته او که نه ؟. بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** د رکوع او سپارې ثبوت دحضورصلی الله علیه وسلم نه ندې راغلې . مشایخ بخارا قرآن کریم کښې پنځه سوه څلویښت رکوع ولګولې دې دپاره چه په تراویحو کښې هررکعت کښې یو رکوع ولوستلې شي چه اوه ویشتمې روژې پورې یو ختم وشی لکه څنګه چه متقدمینو د هرلسو آیتونو نه پس د تعاشیرعلامات لګولی دی چه په هغې سره دا فائده حاصلیږي چه د تراویحو په هررکعت کښې دومره مقدار وئیلوسره په پوره میاشت کښې قرآن کریم ختم شی ځکه چه په پوره میاشت کښې د تراویحو د رکعتونو شمیرشپږ سوه دې او ټول آیتونه د شپږو زرو نه څه زیات دی .

وروى الحسن عن ابى حنيفة رحمه الله تعالى ان الامام يقرأ فى كل ركعة عشر[1] آيات ونحوها وهو الاحسن لان السنة فى التراويح الختم مرة وبما اشار اليه ابوحنيفة رحمه الله تعالى يختم القران مرة فيها لان عدد ركعات التراويح فى جميع الشهر ستمائة وعدد اى القرآن ستة الاف وشىء فاذا قرأ فى كل ركعة عشر ايات يحصل الختم فيها . (مبسوط للسرخسى ص ج) الفصل السادس فى حق قدر القراءة فى التراويح عالمگیریه على هامش العالمگیریه ص ج)

وحكى عن القاضى الامام عماد الدين رحمه الله تعالى ان مشائخ بخارا جعلوا القران خمسمائة واربعين ركوعاً وعلموا الختم بها ليقع الختم فى الليلة السابعة والعشرين رجاء ان ينالوا فضيلة ليلة القدر اذا الاخبار قد كثرت بانها ليلة السابع والعشرين من رمضان وفى غير هذه البلدة المصاحف معلمة بالايات وانما سموه ركوعاً على تقدير انها تقرأ فى كل ركعة . (مبسوط ص ج عالمگیریه ج، خانیه على هامش العالمگیریه ص ج)

د رکوع د مقدار په باره کښې څه واضحه څیز دنظر نه ندې تیرې شوې . داسې معلومیږی چه یو مشهور قاری په تراویحو کښې قرآن کریم ختم کړو او څومره مقدار تلاوت کولو نه پس یې رکوع کړې وې هم هغومره مقدار باندې شاګردانو د رکوع علامت ولګول

د سپارو په باره کښې د بعضې حضراتو خیال دې چه دهغې تعیین قصدا نه دې کړې شوې بلکه حضرت عثمان رضی الله عنه چه کله قرآن کریم نقل کړو نو اتفاقاً په درې مساوی اجزاؤ کښې تکمیل شو مګر د دې خیال ثبوت چرته په نظر نه دې تیرشوې . همدارنګه بقول بعض فاتحه پرېښودلوسره د ټولو سپارو حروف برابر دی او نصف قرآن «نکرا» باندې دې . امراتفاقی کښې

---

[1] - فلذا وضعوا التعاشير ۱۲ منه

داسې مساوات بعید دی . د بنده په خیال کښې صحیح توجیه داده چه ختم قرآن سره متعلق روایات مختلف دی ، درې ورځې ، اوه ورځې ، اویو میاشت . یومیاشت کښې د قرآن کریم ختمولو پیشِ نظر دهغه دیرش پارې متعین کړې شوې څنګه چه یوهفته کښې ختمولودپاره اوه منزلونه جوړکړې شو ...... التسوية افردوا الاية الاولى من سورة الحجر اعتمادا على فهم القارى بأن الملال قد تم على اخر سورة ابراهيم ، والله سبحانه وتعالى اعلم

جمادى الاخر سنه ۱۴۰۰هجرى

## د ((قضاء بشهادة زور)) حدیث متعلق تحقیق

**سوال** :- د احنافو په نزد شهادتِ زور سره واقع شوی قضا باطناً هم نافذه ده ، پس د حدیث ((بعضکم الحن من بعض ـ الخ)) څِه مطلب دې ، په دې حدیث کښې خو د عدم نفاذ قضا تصریح ده . بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : په دې باره کښې د شاه صاحب تحقیق چه عرف شذی کښې منقول دې د ټولو نه زیات واضح دې ، وهو هذا ، قالوا ان حديث الباب يرد على الحنفية حين قالوا ان القضاء نفذ ظاهرا وباطناً وانكره البخاري رحمه الله في كتاب الحيل اشد الانكار اقول ليست المسالة ان ينكر ذلك الانكار فان عنوان المسالة هذا قضاء القاضى بشهادة الزور فى العقود والفسوخ لا فى الاملاك المرسلة اذا كان المحل قابلا للانشاء ولا يأخذ القاضى الرشوة نافذ ظاهرا وباطنا وقيود اخر ايضا . واما الاملاك المرسلة فهى ان يدعى ان هذا الشيء لى ولا يذكر سبب ملكه فانه قضاء ظاهرا لا باطنا واما وجه عدم نفاذه باطنا فذكر صاحب الهداية ان الشيء يتملك باسباب عديدة فاذا قضى فالقضاء يكون بدون السبب ولا وجه لترجيح بعض الاسباب على بعض فيكون ترجيحا بلا مرجح والوجه ان العقود والفسوخ فى يد القاضى وقدرته بخلاف الاملاك المرسلة فعلى ما ذكر قلنا انه اذا ادعى رجل نكاح امرأة وشهد شاهدان ان فحكم القاضى بنكاحه حل له الاستمتاع وزعم خصومنا انا اجترأنا هذا الارتكاب بلا نكير والحال ان هذا الزعم فاسد وعلى المدعى والشاهدين وزر الاخرة كما قال الشيخ فى الفتح وخلافه العراقيين والحجازيين فى ان النكاح صحيح ام لا والمرأة منكوحة ام لا فقال الحجازيون انها تقوم عنده ولا تمكنه من نفسها وقلنا انها تمكنه من نفسها ثم قال جماعة منا ان القضاء بمنزلة النكاح حتى قالوا انه يجب عند هذا القضاء شاهدان مثل ما يكون الشاهدان فى النكاح وقيل لا يجب الشاهدان لان القضاء ليس بنكاح صريح بل النكاح فى ضمنه واتفقنا على ان القضاء قائم مقام النكاح واما حديث الباب فلا يرد علينا فانه فيمن هو الحن بحجته ولا نقول بأن القضاء نافذ بمحض ذلك اللحن

بل بحسب الشاهدان وغيره من الشروط ونقول ايضا ان الحديث فى الاملاك المرسلة فانه فى الميراث كما اخرجه ابوداود ص ۳۰ ج ۲) وقد يدور بالبال انه مع الحل باطنا من النار لا فى الكذب ابتداء فقط بل مستمرا ونظيره ما ذكره فى رد المحتار فى نكاح الرقيق فى من وطى جارية ابنه وادعى الولد والاسهل ان يقال انه قطع له من النار من جهة السبب فهو فى نفس الدفع لا بعده فالسبب تحقق ابتداء والاتصاف مستمر كما قال بعض ارباب الفنون ان المشتق مرة يصدق الاطلاق العام مستمرا وانه حكم من جهة السبب وبمثله قالوا فى حديث عمار رضى الله عنه تقتله الفئة الباغية يدعوهم الى الجنة ويدعونه الى النار. واما مجمعا فذكر الطحاوى حين بوب على المسألة واتى بشيء لطيف من باب التفقه ويذكر ارباب تصنيفنا واقعة على رضى الله تعالى عنه انه ادعى عنده رجل نكاح امراة وشهد شاهدا الزور فحكم على رضى الله تعالى عنه انه ادعى عنده رجل نكاح امراة وشهد شاهدا الزور فحكم على رضى الله تعالى عنه بالنكاح فقامت امراة فقالت والله اعلم انه كاذب فانكحنى به امير المؤمنين كى لا يأثم فقال على رضى الله عنه شاهداك زوجاك الخ ذكره محمد رحمه الله فى الاصل ولا يذكرون سند هذه الواقعة ولم اجد السند وظنى انها لا تكون بلا اصل ومر الحافظ رحمه الله تعالى على الاثر ولم يرد بزيادة الرد ولم يقبله ايضا فدل على انه ليس بلا اصل (عرف شذى ص ۲۰۶)

امام طحاوى رحمه الله حديثِ متلاعنين اوحديث اختلاف المتبايعين في الثمن نه استدلال كړي دي . ونصه فقد علمنا ان رسول الله صلى الله عليه وسلم لو علم الكاذب منهما (اى الزوجين) بعينه لم يفرق بينهما ولم يلاعن لو علم ان المراة صادقة لحد الزوج بقذفه اياها. ولو علم ان الزوج صادق لحدت المراة بالزنا الذى كان منها فلما خفى الصادق منهما على الحاكم وجب حكم اخر فحرم الفرج على الزوج فى الباطن والظاهر ولم يرد ذالك الى حكم الباطن (الى قوله) وقد حكم رسول الله صلى الله عليه وسلم فى المتبايعين اذا اختلفا فى الثمن والسلعة قائمة انهما يتحالفان ويترادان فتعود الجارية الى البائع ويحل له فرجها ويحرم على المشترى ولو علم الكاذب منهما بعينه اذا يقضى بما يقول الصادق ولم يقض بفسخ بيع ولا بوجوب حرمة فرج الجارية المبيعة على المشترى الخ (شرح معانى الاثار للطحاوى ص ۱۰۰ ج ۲)

وقال فى فيض البارى قريبا مما مضى من العرف الشذى ونصه واورد عليهم (اى الحنفية) حديث الباب فانه لو نفذ باطنا ايضا لما وصفه النبى صلى الله عليه وسلم بالنار قلت وهذا وصف لا حكم ويمكن ان يكون شيء يوصف بالنارية ثم لا يدخل صاحبه فى النار كالسؤال فانه يترتب عليه النار ثم لا يلزم ان يكون كل سؤال كذلك بل قد يتخلى عنه لعارض فانه يصح وصف الشيء بحال الجنس ايضا واذا لا يلزم تحققه فى الافراد

کلها و تحققه فی البعض یصح وصفه به باعتبار الجنس وهو الملحظ فی قوله صلی الله علیه وسلم فانه لا صلوٰة لمن لم یقرء بفاتحة الکتاب فهذا وصف فی الفاتحة لا حکم بالوجوب علی المقتدی فی الحالة الراهنة وسیاتی تفصیله فی موضعه ان شاء الله تعالی (فیض الباری ص ۳۰ ج ۲)

وفی بذل المجهود ولا یخالف هذا الحکم الحدیث الوارد فیه فان الحدیث یقتضی من قضیت له من حق اخیه شیئا وفی العقود والفسوخ لا یقضی بحق اخیه شیئا بل یحکم بالعقد او الفسخ الذی هو حق الحاکم نعم اذا قضی القاضی فی غیر صورة العقد والفسخ لا ینفذ حکمه الا ظاهرا واما فی الباطن عند الله تعالی فلا ینفذ حکمه لانه حکم بحق اخیه وهو لیس تحت القضاء (بذل المجهود ص ۳۰۰ ج ۴) فقط والله تعالی اعلم

۳ ربیع الاول سنه ۱۴۰۰ هجری

## د سبعة احرف تشريح

**سوال** : حديث كښې راغلي دي «ان هذا القرآن انزل على سبعة احرف » اوس سبا چه كوم قرائتونه معروف دي هغه لسو پورې دي نو درې قرائتونه زيات څنګه شو . بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حديث كښې سبعة احرف نه معروف او د قراء تونه مراد نه دي بلكه د اختلاف قراءات اوه انواع مراد دي . (۱) صيغ اسماء (۲) صيغ افعال (۳) اختلاف اعراب (۴) كمي بيشي (۵) تقديم او تاخير (۶) الفاظ مترادفه (۷) صفات حروف

قال الحافظ رحمه الله تعالى وقد حمل ابن قتيبة وغيره العدد المذكور على الوجوه التي يقع بها التغاير في سبعة اشياء الاول ما تتغير حركته ولا يزول معناه ولا صورته مثل ولا يضار كاتب ولا شهيد بنصب الراء ورفعها الثاني ما يتغير بتغير الفعل مثل وبعد بين اسفارنا وباعد بين اسفارنا . بصيغة طلب والفعل الماضي الثالث ما يتغير بنقط بعض الحروف المهملة مثل ننشرها بالراء والزاء الرابع ما يتغير بابدال حرف قريب من مخرج الاخر مثل طلح منضود في قراءة علي وطلع منضود الخامس ما يتغير بالتقديم والتاخير مثل وجاءت سكرة الموت بالحق في قراءة ابي بكر الصديق وطلحة من المصرف وزين العابدين جاءت سكرة الحق بالموت السادس ما يتغير بزيادة او نقصان كما تقدم في التفسير عن ابن مسعود وابي الدرداء والليل اذا يغشى والنهار اذا تجلى والذكر والانثى هذا في النقصان واما في الزيادة فكما تقدم في تفسير تبت يدا ابي لهب في حديث ابن عباس وانذر عشيرتك الاقربين ورهطك منهم المخلصين السابع ما يتغير بابدال كلمة بكلمة ترادفها مثل العهن المنفوش في قراءة ابن مسعود وسعيد بن الجبير كالصوف المنفوش وهذا وجه حسن

وقال ابوالفضل الرازی الکلام لا یخرج عن سبعة اوجه فی الاختلاف، الاول اختلاف الاسماء من افراد وتثنية وجمع او تذكير وتانيث الثانی اختلاف تصریف الافعال من ماض ومضارع وامر الثالث وجوه الاعراب الرابع النقص والزيادة الخامس التقديم والتاخير السادس الابدال السابع اختلاف اللغات كالفتح والامالة والترقيق والتفخيم والادغام والاظهار ونحو ذلك (الملتقط) وقد اخذ كلام ابن قتيبة ونقحه (فتح الباری ص ۲۰ ج ۹)

د تنزیل په ابتداء کښې خلق د قرآن د اسلوبونه ناواقفه وو ، د مختلفو علاقو اود مختلفو قبیلو خلقو نه علاوه سپین ږیرو باندیچیان او ناخوانده خلقو په یو اسلوب باندې چلولو کښې حرج وو ددې وجه نه دحضورصلی الله علیه وسلم د خواهش مطابق الله تعالی د اوو قسمو الفاظو اجازت ورکړو هغه اوو اقسامو کښې هرسړی ته دا اختیار نه وو چه هغه پخپلې مرضئ سره قرآن کریم کښې رد اوبدل وکړی بلکه دا مختلف قراءات د الله تعالی د طرفه متعین وو وروستو چه کله خلق د قرآن د اسلوبو نه واقفه شو نوعرضهٔ اخیره یعنې حضرت جبرئیل علیه السلام سره دحضورصلی الله علیه وسلم د آخری دَوْر قرآن په وخت ډیر قراء تونه منسوخ کړې شو ، دهغې نه پس چه کوم قرائتونه باقی پاتې شو دهغې رعایت کولوسره حضرت عثمان رضی الله عنه د قرآن د جمع کولو په وخت رسم الخط داسې اختیاراوفرمائیلو چه په هغې کښې د ټولو قراء تونو مطابق وئیلو گنجائش وو ، مثلاً ملک لره مَلَکَ ، مَلِکِ او مالک درې واړه قسمه وئیلې کیدلې شی هم دغه شان «قل» لره په صیغه دامر او په صیغه دماضی دواړه قسمه د وئیلو گنجائش دې ، مصاحف عثمانیه کښې نقاط ، اعراب لره ترک کولو سره هغه رسم الخط کښې زیات وسعت پیدا کړې شو مثلا «ننشرها» باندې نقطې ونه لگولې شی نو هغه ننشرا وننشز دواړه قسمه وئیلې کیدلې شی ، بعضې قراءات په هغه رسم الخط کښې ځائ نه شو نوهغې لره ئې په بل مصحف کښې مستقلا ولیکل ، د داسې قسم اوه مصاحف لیکلوسره مختلفو اطرافو ته ئې ولیږل او هغه سره ئې قراء هم ولیږل چه خلق دهغه مصاحفونه دهغه قراؤ د تعلیم مطابق قراءات زده کړی ، په هغه زمانه کښې ذکر شوی اوو اقسامو کښې دننه د قراءتونو ډیر لوئ تعداد وو ، مگر وروستو په هغو کښې د لسو زیات شهرت وشو ، نورو ته هغه شهرت حاصل نشو ، بیا په هغه لسو قراءاتو کښې هم اوه زیات مشهور شو ددې وجه نه د سبع قراءات او عشرقراءات شهرت ډیر زیات شو .

په دې تفصیل سره معلومه شوه چه معروفه سبع قراءاتو لره د سبعة أحرف مصداق گڼل صحیح نه دي ، فقط والله تعالی اعلم

۴ جمادی الثانیه ۹۲ هجری

# په «ضربت عليهم الذلة ـ الايه» باندې د اشكال جواب

**سوال** : څه فرمائي علماء كرام په دې مسئلې كښې چه د قرآن كريم آيت «**وضربت عليهم الذلة والمسكنة وباءوا بغضب من الله**» نه خو په ظاهره دا معلوميږي چه قوم يهود به هميشه خوار اوذليل وي او فقراوفاقه كښې به مبتلاء وي اوقيامته پورې به دهغوى حكومت قائم نه شي . حالانكه مونږ ګورو چه يهود قوم مالداره راروان دى اودهغوى موجوده حكومت هم د اسرائيل په نوم سره قائم دې بلكه يوځلې عربو دهغوى نه شكست هو خوړلې دې

مهرباني وكړئ د آيت مطلب اود شبهاتو جواب مفصل او مدلل وليكئ اود ذلت اود مسكنت هم وضاحت وكړئ دې دپاره چه د كمزوري ايمان والو د زړونو نه د شكونو اغزى لرې شي .
بينواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د يهودو ذلت وغيره سره متعلق قرآن كريم كښې څلور ځايه ذكراغلې دې.

(۱) ﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَاءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ﴾ (۲، ۱۲)

(۲) ﴿وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ (۷، ۱۶۷)

(۳) ﴿ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَاءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ الْأَنبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ﴾ (۳، ۱۱۲)

(۴) ﴿إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَىٰ إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ (۳، ۵۵)

په دې آيتونو سره د يهودو دپاره دا لاندې امور ثابت شو
(۱) ذلت (۲) مسكنت (۳) د نورو قومونو ماتحت كيدل اودهغوى د لاسه دمختلفو مصائبو ښكار كيدل . (۴) مغلوبيت

(۱) ذلت نه مراد دقتل حكم دى . «الا بحبل من الله» نه مراد دادې چه راهب ، نابالغ او ښځې لره به نه ښي وژلې كيدې . او «حبل من الناس» نه مستامن اود اهل ذمه استثناء مقصود ده

(۲) د مسكنت معنى فقراوفاقه نه ده بلكه د لاندې والى معنى مراد ده لكه دعا ((اللهم احيني

مسکینا وامتنی مسکینا واحشرنی فی زمرة المساکین)) کښې مسکنت په معنی دفقراوفاقه سره نه دي بلکه د تواضع اود انکسار په معنی دي . د ښکته والی دوه قسمونه دی . یو د الله تعالی جلالت او عظمت شان دړاندې تواضع او انکسار . نو دا نعمت دي اوپه دعا کښې هم دا مراد دي

دویم د الله تعالی د نافرمانۍ د وجه نه ذلت کښې ابتلاء. دا عذاب دي یهودو باندې دویم قسم مسلط کړې شوې دي هغوی پخپله هم خپل ځان لره ذلیله ګڼی چه هغې ته په نورو الفاظو کښې احساس کمتری وئیلې کیږی ددې دواړو امورو بیان په آینده کښې راروان دي .

(۳) یهود قوم باندې بیخ همیشه دپاره څه داسې طاقتونه مسلط وی چه هغوی لره به رنګ په رنګې پریشانیانو او مصائبو کښې مبتلا کوی .

(۴) مسلمانان او نصاری به ترقیامته پورې په یهودو باندې غالبه وی . د حضرت عیسی علیه السلام په متبعینو کښې مسلمانان او نصاری دواړه داخل دی . نصاری کښې اتباع ناقصه ده او مسلمانانو کښې اتباع کامله ده . او آیتِ قرآنیه دواړه قسمه اتباع لره شامل دی . نتیجه دا راوتله چه د مسلمانانو اود نصاری دحکومتونو مجموعه به د یهودو په حکومت باندې غالبه وی . ددې تفصیل نه پس اوس هیڅ اشکال باقی نه پاتې کیږی . ځکه چه په قرآن کریم کښې د یهودیانو د حکومتونو نفی کړې شوې نده بلکه دمسلمانانو اود نصاری د حکومتونو دمجموعې په مقابله کښې د یهودو د مغلوبیت پیشګوئی کړې شوې ده چه دهغې په صدق کښې هیڅ شبهه نشته . هم دغه شان دهغوی د فقر اوفاقې اود تنګدستۍ څه پیشګوئی نشته بلکه د مغلوب اود ذلت اود ښکته والی پیشګوئی ده چه دهغې ذکر پورته وشو .

آیت نمبر ۴ سره متعلق دا هم وئیلې کیدلې شی بلکه همدا زیاته ظاهره ده چه اتباع نه کامله اتباع مراد ده او نصاری ټول په ټوله اود مسلمانانو اکثریت د اتباع کامل نه منحرف دي او په یو صفت باندې چه کله څه حکم لګولې کیږی نوهغه د اکثریت په لحاظ سره وی . کمافی قوله تعالی ((**وانتم الاعلون ان کنتم مؤمنین**)) وقوله صلی الله علیه وسلم : ((نعم اذا کثر الخبث)) پس که چرته خدانخواسته یو وخت د یهود حکومت د مسلمانانو اود نصاری د مجموعه حکومتونو په مقابله کښې هم غالبه شی نو بیا به هم د قرآن د فیصلې خلاف نه وی البته دومره ضرور ده چه یهودو باندې قیامته پورې دیونه یو قوم د طرف نه به څه ناڅه آفت راځی . فقط والله تعالی اعلم

۱۴ جمادی الاولی ۹۲ هجری

## د حدیث ((سبحان من زین الرجال ـ الخ)) حواله

**سوال** : عام طور باندې یو حدیث په اوریدل کیږی چه د فرښتو یو جماعت دا تسبیح ده چه ((سبحان من زین الرجال باللحی والنساء بالذوائب)) ددې حواله مطلوب ده . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

کنوزالحقائق لعبدالرؤف المنادی علی هامش الجامع الصغیر ص ۱۴۲ج ۱ کښې په حواله دحاکم سره صرف دومره حدیث منقول دي «سبحان من زین الرجال باللحی والنساء بالذوائب» او ص ۹۰ ج۲ کښې په حواله دمسندالفردوس للدیلمی دا الفاظ دی . « ملائکة السماء تستغفرلذوائب النساء ولحی الرجال » امام سرخسی رحمه الله تعالی مفصل روایت نقل فرمائیلي دي ((ونصه وروی عن النبی صلی الله علیه وسلم انه قال ان الله تعالی ملائکة تسبیحهم سبحان من زین الرجال باللحی والنساء بالقرون والذوائب)) (المبسوط ص ۰ ج ۳) فقط والله تعالی اعلم

۲ جمادی الاولی سنه ۱۴ هجری

## مودودی صاحب کښې د مفسر شرائط نشته

**سوال**:- (۱) د قرآن مجید تفسیر لیکلو د پاره د کومو خبرو کیدل لازمی دی ؟

(۲) مودودی صاحب کښې کومې خبرې موجود دی د اول سوال په حوالې سره .

(۳) یو عام فهم سړی او د عربئ نه ناواقفه د پاره به کوم تفسیر زیات موزون وی بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** . قال المولی احمد بن مصطفی المعروف بطاش کبری زاده فی ((مفتاح السعادة ومصباح السیادة)) (ثم اعلم) ان العلماء کما بینوا فی التفسیر شرائط بینوا فی المفسر ایضا شرائط لا یحل التعاطی لمن عری عنها اوهو فیها راجل (وهی) ان یعرف خمسة عشر علما علی وجه الاتقان والکمال (احدها) اللغة لانها یعرف شرح مفردات الالفاظ ومدلولاتها الوضعیة قال مجاهد لایحل لاحد یؤمن بالله والیوم الاخران یتکلم فی کتاب الله تعالی اذا لم یکن علما بلغات القران ونقل ایضا ذلک عن الامام مالک ولا یکتفی بمعرفة الیسیر منها اذ لایامن ان یکون اللفظ مشترکا وهو ذاهل عن احد المعنیین او المعانی والمراد المعنی الاخر (الثانی) النحو اذ یختلف المعانی ویتبدل باختلاف الاعراب کما روی عن الحسن انه قال تعلم العربیة فان الرجل یقرء الایة فیعتنی بوجهها فیهلک فیها (الثالث) التصریف لانه معرفة الابنیة والصیغ کما نقل عن ابن فارس انه قال کم من کلمة یجهل معناها فیتضح بمصادرها (وقال) الزمخشری من بدع التفاسیر قول من قال ان الامام فی قوله تعالی یوم ندعوا کل اناس بامامهم جمع ام وان الناس یدعون یوم القیامة بامهاتهم دون ابائهم قال وهذا غلط اوجبه جهله بالتصریف فان اما لا یجمع علی امام (الرابع) الاشتقاق لان الکلمة تختلف معناها باشتقاقها من مادتین مختلفتین کالمسیح هل هو من السیاحة او المسح (الخامس) (السادس) و(السابع) المعانی والبیان والبدیع اذ بالاول یعرف خواص الترکیب من جهة افادتها المعنی

وبالثاني خواصها من حيث اختلافها بحسب الزيادة في الوضوح والنقصان فيه وبالثالث وجوه تحسين الكلام وهذه العلوم الثلاثة هي علوم البلاغة الاولان ذاتيا والثالث عرضيا وهي من اعظم اركان المفسر لانه لابد له من مراعاة ما يقتضيه الاعجاز وانما يدرك بهذه العلوم الا ان ملاك الامر فيه اما السليقة كالاعراب الخلص ومن يحذو حذوهم او الذوق الذي هو الالة في اكتساب البلاغة ولا يمكن تحصيلها بدونه. قال السكاكي في حق المعاني والبيان فالويل كل الويل لمن تعاطى التفسير وهو فيها راجل (الثامن) علم القراءات اذبه يعرف كيفية النطق بالقران ويرجح بعض الوجوه المحتملة على بعض (التاسع) اصول الدين لان في القرآن اياتٍ لا يجوز ظاهرها في حق الله تعالى فالاصولي يأول ذلك ويحمله على ما يجوز في حقه تعالى فمعرفة ما يستحيل في حقه تعالى وما يجب وما يجوز لا يمكن الابه (العاشر) اصول الفقه اذبه يعرف وجوه الاستدلال على الاحكام والاستنباط (الحادي عشر) اسباب النزول والقصص اذ سبب النزول يعرف به معنى الاية بحسب انزل فيه (الثاني عشر) الناسخ والمنسوخ ليعلم المحكم من غيره (الثالث عشر) الفقه (الرابع عشر) الاحاديث المبينة لتفسير المجمل والمبهم (الخامس عشر) علم الموهبة وهو علم يورثه الله تعالى لمن عمل بما علم واليه الاشارة بحديث من عمل بما علم ورثه الله علم ما لم يعلم (واعلم) ان هذه العلوم هي العلوم التي لا مندوحة للمفسر عنها والا فعلم التفسير لا بدله من التبحر في كل العلوم. واما العلوم المستنبطة من القران فبحر لا ساحل له وان اخطرت بالبال ان العلوم الوهبية ليست في قدرة البشر بل ذلك امر حاصل بفضله سبحانه من غير كسب من العباد فنقول معنى العلوم الوهبية ان يحصل في الانسان حالة كشفية تنكشف معها العلوم والمعارف بلا تعمل واكتساب بل بمحض لطف الملك الوهاب لكن تحصيل تلك الحالة واخلة تحت القدرة وحاصلة بالمباشرة بان لا يكون في القلب بدعة وكبر وهوى وحب الدنيا والاصرار على الذنب وان لا يتحقق بالايمان او يتحقق به على ضعف وان لا يعتمد في باب التفسير على قول مفسر ليس عنده علم او راجع الى عقله القاصر وهذه العلوم كلها حجب عن حصول الكشف وموانع عنه بعضها اكد من بعض[1]

پورته عبارت سره معلومه شوه چه د تفسيرليکلو دپاره پنځلسو علومو کښې مهارت تامه لرل ضروري دي . (۱) لغت (۲) نحو (۳) صرف (۴) اشتقاق (۵) معاني (۶) بيان (۷) بديع (۸) علم القراءات (۹) اصول الدين (۱۰) اصول فقه (۱۱) اسباب النزول والقصص (۱۲) ناسخ منسوخ (۱۳) فقه (۱۴) احاديث (۱۵) علم الموهبة .

[1] - اي ان لا يكون غير متحقق بالايمان او ضعيف التحقيق كذا في الاتقان عن الزركشي

مودودی صاحب ته به ددې علومو نه څه حاصل شوی وی؟ هغه ته خو محض عربئ باندې هم پوره قدرت نه وو . دهغه د کتابونو عربی ترجمې مولانا مسعود عالم ندوی کړې دی که چرته هغه نه دیو علم سره څه واقفیت دې نوهغه صرف دهغه مطالعې پورې محدود دې .هغوی علم دیو مستندې درسگاه نه . نه دې حاصل کړې . د ماهر استاذانو زیرِ نگرانی دعلومو تحصیل نه بغیر صرف مطالعې سره یو فن حاصلیدلې نه شی . مثلاً یو سړې د ټولې دنیا د قدیم او جدید د طب کتابونو مطالعه وکړی نو بیا هم هغه ته د حکیم یا ډاکټر سند نه شی ورکولې اونه هغه ته د علاج معالجې کولواجازت ورکولې کیږی . ترڅوپورې چه یو معتبر اداره کښې د ماهر استاذانو په زیرِ نگرانئ کښې علم حاصل نه کړی . بیا مودودی صاحب کښې دعلم الموهبة د شرائطو د وجود به څه وې . نیز حضرات صحابه کرام رضی الله عنهم د قرآن مبین حاملین اولین دی ددې وجه نه دهغوی سره عداوت ساتلو والا اودهغوی په شان کښې گستاخئ کولو والو لره الله تعالی د علوم قرآن نعمت نه عطا کوی څنګه چه روافض د عداوتِ صحابه رضی الله عنهم د وجه نه د حفظِ قرآن د دولت نه محرومه دی . صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې بالخصوص حضرت عثمان رضی الله عنه جامع قرآن دې لهذا دوی سره بغض لرلو والو ته د قرآن دولت هیچرې نه شی نصیب کیدلې . د حضرت عثمان رضی الله عنه دیانت لره مخدوش کول په حقیقت کښې د قرآن کریم صداقت لره مجروح کول دی . فقط والله تعالی اعلم

۱۳جمادی الاخره سنه ۹۲ هجری

## د «لانکاح بین العیدین» حدیث تحقیق

**سوال** - آیا «لانکاح بین العیدین» حدیث دې او آیا واقعی د اخترونو په مینځ کښې دوو میاشتو شوال او ذی قعده کښې نکاح کول صحیح نه ده څنګه چه زمونږ په کلو کښې مشهوره ده ؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اخترونو په مینځ کښې یعنې د شوال او ذی قعده په مینځ کښې نکاح او زفاف دواړه بلاکراهت جائز دی هغې ته څنګه ناجائز وئیلې کیدلې شی چه هرکله حضورصلی الله علیه وسلم د ټولو نه محبوب ترینه بی بی حضرت عائشې رضی الله عنها سره هم شوال کښې نکاح اوکړه او په شوال کښې رخصتی اوشوه . باقی پاتې شو « لانکاح بین العیدین » اول خو دا حدیث صحیح نه دې او که چرته بالفرض هغه صحیح اومنلې شی نو به هغې کښې د عیدینو نه مراد عیدالفطر او عیدالاضحی نه بلکه جمعه او صلوٰة العید مراد دی او په هغې سره مقصد د قاعده کلیه بیان نه بلکه دا واقعه جزئیه ده چه دهغې حقیقت دادې چه د پخوا په زمانه کښې چه هرکله ورځې وروکې وې حضورصلی الله علیه وسلم د اختر مونځ نه فارغه شو نو چا نه د

نکاح کولو درخواست کړې وی نو دوی به دا ارشاد فرمائیلې وی چه د دوو مونځونو په مینځ کښې نه . مطلب دا وو چه د جمعې افضل وخت د نکاح نذر نه شی ددې وجه نه په هغې سره عدم جواز باندې استدلال صحیح نه دې . **قال ابن عابدین رحمه الله تعالی فی مستحبات النکاح (تنبیه) قال فی البزازیه والبداء والنکاح بین العیدین جائز و کره الزفاف والمختار انه لایکره لانه علیه الصلوة والسلام تزوج بالصدیقة (رضی الله تعالی عنها) فی شوال وبنی بها فیه وتاویل قوله علیه السلام لانکاح بین العیدین ان اصح انه علیه السلام کان رجع عن صلوة العید فی اقصر ایام الشتاء یوم الجمعة فقاله حتی لاتفوته الروح فی الوقت الافضل اه (شامیه ص ۳۰۳ ج ۲) فقط والله تعالی اعلم**

**۱۰ ذی الحجه سنه ۸۹ هجری**

## د نوح علیه السلام طوفان عام وو

**سوال** :- آیا طوفان نوح عام وو یا خاص ؟ ددې جواب ضروری عنایت اوفرمایئ !

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د الله تعالی ارشاد دې . ﴿ وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ ﴾ **وقوله** ﴿ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ﴾ **وقوله** ﴿ قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ ﴾ د دې نه دهغه طوفان عام کیدل معلومیږی ددې آیت په تفسیر کښې د ترمذی روایت هم ددې مؤید دې ددې وجه نه د جمهورو هم دا مسلک دې بعضو د خصوص قول هم روایت کړې دې او آیتونو کښې یې د حصر اضافی او د ارض معهود تاویل کړې دې مګر ددې قائلین ډیر لږ دی . که چرته عموم عذاب سره د بعثت عامه شبه اوکړې شی حالانکه بعثت عامه د حضورصلی الله علیه وسلم دپاره خاص دې نو دهغې دا جواب ورکولې شی چه :

(۱) **قال الالوسی رحمه الله تعالی ورایت فی بعض الکتب ولا ادری الآن ای کتاب هو ان نوحاً علیه السلام لم یرسل الا بالتوحید ونحوه من اصول العقائد ولم یرسل بفروع** . پس هرکله چه د نوح علیه السلام بعثت صرف توحید وغیره اصولِ دین سره اوشو او ټول انبیاء علیهم السلام په اصولِ دین کښې متحد دی نو دا سزا د توحید د مخالفت د وجه نه اوشوه .

(۲) د نبی بعثت اګرچه خاص وی مګر هرقوم باندې دهغه د نبوت تصدیق ضروری دې اګرچه التزامِ طاعت ضروری نه دې لهذا د تکذیب اود انکارِ نبوت د وجه نه عذاب عام شو

(۳) هغه وخت د دنیا آبادی محدوده وه او کومه آبادی چه وه هغه د نوح علیه السلام په قوم کښې وه ددې وجه نه عذاب په ټولو باندې نازل شو اود عموم بعثت معنی داده چه اقوام کثیره

طرف ته بعثت وی ورنه حضرت آدم علیه السلام باندې به هم د عموم بعثت اشکال وی فقط والله تعالی اعلم
۱۲ رجب المرجب سنه ۸۸ هجری

## د اوو زمکو تحقیق

**سوال** ارشاد باری تعالی « **الله الذی خلق سبع سموات ومن الارض مثلهن** » نه معلومه شوه چه څنګه آسمانونه اوه دی هم دغه شان زمکې هم اوه دی مګر آیا دا زمکې زمونږ د پاسه دی اوکه لاندې؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بعضې وائی چه زمکه هم یوه ده او مثلیت په بعضې صفاتوکښې مراد دې په عدد کښې ندې مراد. مګر دا قول صحیح نه دې ځکه چه د اوو زمکو وجود احادیث صحیحه سره ثابت دې . مګر شریعت دهغې ځایونه اونه ښودل ددې وجه نه په دې باره کښې اقوال مختلف دی:

(۱) اوه زمکې دیو بل دپاسه دی اودهرو دوو په مینځ کښې فصل دې.

(۲) رومبنی آسمان دپاسه دویمه زمکه ده بیا دویم آسمان دپاسه دریمه زمکه علی هذا القیاس د شپږم آسمان دپاسه اوومه زمکه ده اودهغې دپاسه اووم آسمان دې.

(۳) د دینه اقالیم سبعه مراد دی

(۴) د معادن یا د خاورې اووه طبقات مراد دی.

قول اول راجح دې ځکه چه دا د بعضې احادیثونه هم ثابت دې اود جمهورو قول هم دادې قال الالوسی رحمه الله تعالی والمثلیة تصدق بالاشتراك فی بعض الاوصاف فقال الجمهور هی ههنا فی کونها سبعا وکونها طبقا بعضها فوق بعض بین کل ارض وارض مسافة کما بین السماء والارض وفی کل ارض سکان من خلق الله عزوجل لایعلم حقیقتهم الا الله تعالی وعن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما انهم ما ملائکة اوجن (الی ان قال) کون ما بین کل ارضین خمسمائة سنة کما بین کل سمائین جاء فی اخبار معتبرة کما روی الامام احمد والترمذی عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه الحدیث (روح المعانی ص ۱۴۰ ج ۲۸)

د تحقیقات جدیده مطابق که چرته د سپوږمۍ وغیره سیارو د زمکې سره مماثلت ثابته شی نوهغه د قول مذکور مطابق دې سبعه سیارو کښې د نمرنه سوا د باقی سیاراتو د زمکې سره مماثلت ښودلې کیږی نودزمکې په شمول سره د اوو عدد پوره کیږی . او که چرته سیارات مزید ثابت شی نو شاید زمکې سره دهغوی مماثلت من کل وجه نه وی او من کل وجه مماثلت هم ثابت شی نو د اوو په عدد کښې احتمال د تکثیر دې . نیز عدداقل د اکثر نفی نه کوی.

او د دوو سیارو په مینځ کښې فصل که چرته د پنځو سوو کالو د مسافت مطابق نه وی نوهغه

عدد لره هم د تکثیر دپاره اخستلې کیدلې شي . وهومعروف فی کلام العرب . فتح الباری کښې یو روایت د یو اویاؤ یا د دوو اویاؤ هم منقول دې په هغې سره ددې تائید کیږی چه دا اعداد د تکثیر دپاره دی لکیلاتتضاد

بعضې روایاتو کښې دی چه باقی زمکې زمونږه د زمکې لاندې دی . ددې دا مطلب کیدلې شي چه په بعضې حالاتو کښې لاندې وی او په بعضو کښې پاس . چونکه د زمکې په مفهوم کښې تحتانیت متصور دې ددې وجه صرف لاندې کیدل بیان کړئ شو .که چرته څوک دا دعوی اوکړی چه سیاراتو باندې مخلوق نشته او نه هغلته دیو جاندار د ژوندې پاتې کیدلو امکان شته . نو ددې جواب دادې چه عدم وجدان د عدم وجود دلیل نه دې . بالخصوص چه هرکله ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی چه هغه مخلوق ملائکه یاجنات دی او دا امر مسلم اومشاهد دې چه د ملائکو او جناتو وجود وعدم اودهغوی د ژوند د مدار د فقدان فیصله انسان نه شی کولې . بهرکیف اسلم داده چه په دې تحقیق کښې اخته نه شې چه دا زمکې چرته دی ؟ صرف دومره عقیده ساتل کافی ده چه اووه زمکې دی. والله اعلم بمکانها وکیفیاتها وسکانها . فقط والله تعالی اعلم

۱۸ ربیع الاول سنه ۸۹ هجری

## تحقیق د حدیث ((فی کل ارض آدم کادمکم – الحدیث))

**سوال** : څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې باره کښې چه یو مولوی صاحب وائی چه حدیث کښې دی ان الله خلق سبع ارضین فی کل ارض ادم کادمکم ونوح کنوحکم وابراهیم کابراهیمکم وعیسی کعیسی ونبی کنبیکم -الخ آیا دا صحیح دی ؟ په ړومبئ زمکه او په دویمه زمکه کښې څومره فاصله ده ؟ آیا په هره زمکه کښې داسې نبی تیرشوې دې او داسې سړی دی ؟ د کتابونو حوالې او عبارات هم ولیکئ چه د مودودی صاحب قول غلط دې اوکه صحیح ؟ بینوا توجروا

قال الحافظ رحمه الله تعالی عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فی هذه الایة.ومن الارض مثلهن قال فی کل ارض مثل ابراهیم ونحو ما علی الارض من الخلق هکذا اخرجه مختصرا واسناده صحیح واخرجه الحاکم والبیهقی من طریق عطاء بن السائب عن ابی الضحی مطولا واوله ای سبع ارضین فی کل ارض ادم کادمکم ونوح کنوحکم وابراهیم کابراهیمکم وعیسی کعیسی ونبی کنبیکم قال البیهقی اسناده صحیح الا انه شاذ بمرة (فتح الباری ص-- ج-)

وقال الحافظ ابن کثیر رحمه الله تعالی وهکذا مایل کره کثیر من اهل الکتاب وتلقاه عنهم طائفة من علمائنا من ان هذه الارض من تراب والتی تحتها من حدید والاخری من حجارة من کبریت والاخری من کذا فکل

هذا اذا لم يخبر به ويصح سنده الى معصوم فهو مردود على قائله،وهكذا الاثر المروى عن ابن عباس انه قال فى كل ارض من الخلق مثل ما فى هذه حتى ادم كادمكم وابراهيم كابراهيمكم فهذا ذكره ابن جرير مختصرا واستقصاه البيهقى فى الاسماء والصفات،وهو محمول ان صح نقله عنه على انه اخذه ابن عباس عن الاسرائيليات (البداية والنهاية ص٢٠ ج١)

وقال العلامة الالوسى رحمه الله تعالى والمثلية تصدق بالاشتراك فى بعض الاوصاف فقال الجمهور هى هنا فى كونها سبعا و كونها طباقا بعضها فوق بعض بين كل ارض وارض مسافة كما بين السماء والارض وفى كل ارض سكان من خلق الله عز وجل لا يعلم حقيقتهم الا الله تعالى وعن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما انهم اما ملائكة اوجن واخرج ابن جرير وابن ابى حاتم والحاكم وصححه والبيهقى فى شعب الايمان وفى الاسماء والصفات من طريق ابى الضحى عنه انه قال فى الاية سبع ارضين فى كل ارض نبى كنبيكم وادم كادمكم ونوح كنوح وابراهيم كابراهيم وعيسى كعيسى قال الذهبى واسناده صحيح ولكنه شاذ بمرة الا اعلم لابى الضحى عليه متابعا وذكر ابوحيان فى البحر نحوه عن الحبر وقال هذا حديث لاشك فى وضعه وهو من رواية الواقدى الكذاب واقول لامانع عقلا وشرعا من صحته والمراد ان فى كل ارض خلقا يرجعون الى اصل واحد رجوع بنى آدم عليه السلام وفيهم افراد ممتازون على سائرهم كنوح وابراهيم وغيرهما فينا . واخرج ابن ابى حاتم والحاكم وصححه عن ابن عمر رضى الله تعالى عنهما مرفوعا ان بين كل ارض والتى تليها خمسمائة والعليامنها على ظهرحوت قدالتقى طرفاه فى السماء والحوت على صخرة بيد ملك والثانية مسجن الريح . والثالثة فيها حياتها . والسادسة فيها عقاربها والسابعة فيها سقروفيها ابليس مصفد بالحديد يد امامه ويد خلفه يطلقه الله تعالى لمن يشاء وهو حديث منكر كما قال الذهبى لا يعول عليه اصلا فلا تغتر بتصحيح الحاكم ومثله فى ذلك اخبار كثيرة فى هذا الباب لولا خوف الملل لذكرناها لك لكن كون مابين يكل ارضين خمسمائة سنة كما بين كل سمائين جاء فى اخبار معتبرة كماروى الامام احمد والترمذى عن ابى هريرة الخ (روح المعانى ص٢٠٠ ج٢٠)

په دې عباراتو سره دا لاندې امور ثابت شو .

(١) دا مضمون د حضور صلى الله عليه وسلم نه ثابت نه دې بلکه د حضرت ابن عباس رضى الله عنهما قول دې . بعضې حضرات هغه موقوف على السماء کيدلو د وجه نه بحکم مرفوع گرځولې دې مگر دهغې ددې وجه يقين نه شي کيدلې چه د اسرائيلياتو نه د اخستلو احتمال دې کما قال الحافظ عمادالدين ابن کثير رحمه الله تعالى

،۲، دهغې ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته دنسبت په صحت کښې اختلاف دې صحت راجع معلومیږی ځکه چه که څرته د حاکم تصحیح قابلِ اطمینان نه ده مگر د ذهبی تصحیح بلاشبه معتبره ده دهغې وجه دبنده په کتاب ارشاد القاری الی صحیح البخاری کښې اوګورئ

،۳، دهغې په روایت کښې ابو الضحی متفرد دې .

په ظاهره دا امر د روایت صحت لره مشکوک کوی چه داسې اعجب العجائب مضمون لره سوا د یو سړی نه بل څوک نه روایت کوی . مگر ددې جواب دا کیدلې شی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د فتنې له ویرې نه هغه پټوله ،چنانچه درمنثور کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی «لوحدثتکم بتفسیرها لکفرتم وکفرکم بتکذیبکم بها» .

خلاصه داچه ابن عباس رضی الله عنهما طرف ته دنسبت صحت راجع دې مگر بحکم مرفوع کیدلو کښې کلام دې

## یو مطلب

بعضو اکابرو لیکلی دی چه په نورو زمکو کښې دمخلوق کیدل ثابت دی او «لکل قوم هاد» نه ثابتیږی چه هغوی طرف ته انبیاء علیهم السلام هم مبعوث شوی دی . همدارنګه «یتنزل الامر بینهن» نه هم ثابت شو چه په ټولو زمکوکښې وحی نازلیږی ، ددې وجه نه اثر د ابن عباس رضی الله عنهما په حقیقت باندې مبنی دې یعنې په نورو زمکو کښې هم د انبیاء علیهم السلام بعثت شوې دې . وړاندې دوه احتماله دی یو دا چه دهغوی نومونه آدم . ابراهیم - الخ بطورتشبیه وی . دویم داچه واقعةً دهغوی هم دا نومونه وی «نبی کنبیکم» سره احتمال اول ته ترجیح معلومیږی

مگر نورو محققینو هغې سره اتفاق اونه کړو ځکه چه بقیه زمکوکښې د مخلوق کیدل په یو صحیح حدیث سره ثابت نه دی . اوکه څرته د مخلوق وجود تسلیم کړئ شی نو هغه بقول ابن عباس رضی الله عنهما ملائکه یا جنات دی او د نبی انسان کیدل لازم دی . اود انسان صرف جناتو طرف ته مبعوث کیدل اود نورو انسانانو جدا صرف هم د جناتو په کلی کښې اوسیدل بعید دی ددې برعکس د نورو زمکو د جناتو دهدایت ددې زمکې انبیاءعلیهم السلام سره متعلق کیدل او د هغوی دلته راتللو هدایت موندل څه بعید نه دی . او «یتنزل الامربینهن» کښې امرنه تکوینی امر مراد اخستلې کیدلې شی .

باقی پاتې شو صرف اثر د ابن عباس رضی الله عنهما نواولاً خو د شبه اسرائلیات د وجه نه دهغې محمل لټولو کښې دکوشش هیڅ حاجت نشته بالخصوص چه هرکله خود صاحب اثر هم هغه پټولو «کما مر من الدرالمنثور» ثانیاً دهغې محمل دا کیدلې شی چه څنګه زمونږ په زمکه کښې مبدء او ممتاز حضرات دی هم دغه شان په نورو طبقاتو کښې هم مبدء او ممتاز حضرات دی .

کمر من الروح او بي کښیکم ،، کښې نبي په لغوی معنی سره کېدلې شي

غرض دا چه اولا خو دا حدیث نه دې بلکه اثر دابن عباس رضی الله عنهما دې . بیا دهغې ثبوت د ابن عباس رضی الله عنهما نه مختلف فیه دې . بیا اسرائیلیاتو کښې د کیدلو شبه ده . بیا که صحیح هم تسلیم کړې شي نو دهغې محمل واضح دې . مګر د هوسِ نبوت د شرافت په جامه کښې ظلم اوګورئ چه دا سې کمزوری بنیاد باندې خومره لوئ عمارت اودروی چه کله د زمکې په نورو طبقاتو کښې هم انبیاء دی نو حضورصلی الله علیه وسلم خاتم النبین نه شو . ددې مثال بس هم هغه دې من اسس بنیانه علی شفا جرف هار فانهار به فی نارجهنم، . دنصِ قرآنی اود قطعی او اجماعی عقیدې ناقابلِ تسخیر قلعه لره د مچ په وزر باندې الوزول غواړی اللهم خذهم اخذعزیزمقتدر

که چرته په نورو طبقاتو کښې د انبیاء علیهم السلام وجود تسلیم هم کړئ شي نو دهغې نه دا څنګه ثابت شو چه هغه د حضور صلی الله علیه وسلم نه پس شوی دی یا په هغې کښې څوک د دوی دمرتبې دې . د تشبیه دپاره مساوات ضروری نه دې . د دوی د نبوت عموم اوختم نبوت نصوصِ قطعیه سره ثابتیدلو د وجه نه لازماً به هم دا وئیلې کیږی چه په نورو طبقاتوکښې که چرته انبیاء تیرشوی دی نودحضورصلی الله علیه وسلم نه وړاندې تیرې شوی دی . د دوی نبوت دجمیع طبقاتو دپاره عام دې . په هغې باندې دا اشکال نه شي کیدلې چه د دوی نه د نورو طبقاتو د استفادې څه صورت دې ؟ څکه چه هغلته هم اوسیږی جنات اوهغوی ته د استفادې دپاره زموږ زمکې ته راتللو کښې څه تکلیف نشته همدارنګه دا هم ممکن دی چه هغلته د حضورصلی الله علیه وسلم صورتِ مثالیه کار کوی . بلکه دا احتمال په ټولو انبیاء علیهم السلام کښې دې . هم دغه شان تشبیه اشتراک فی الاسم ته هم شامل شو . دا علی سبیل التسلیم تحریر کړې دی ورنه حقیقت هم هغه دې چه موږ پورته بیان کړو چه په نورو طبقاتو کښې د انبیاؤ علیهم السلام وجود ثابت نه دې . فقط والله تعالی اعلم

۲۷ صفر سنه ۹۷ هجری

## د حضرت موسی علیه السلام په قبر کښې مونځ کول

**سوال** آیا په یو حدیث کښې دموسی علیه السلام پخپل قبر کښې مونځ کول ثابت دی تفصیل سره بې ولیکئ . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**

حدثنا هداب بن خالد وشیبان بن فروخ قالا اخبرنا حماد بن سلمة البنانی وسلیمان التیمی عن انس بن مالک رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال اتیت وفی روایة هداب مررت علی موسی لیلة اسری بی عند الکثیب الاحمر وهو قائم یصلی فی قبره (صحیح مسلم ص۲۶۸ ج۲) مختلفو طرقو سره د حدیث مروی دې . فقط والله تعالی اعلم

۲۸ ربیع الاول سنه ۸۹ هجری

## د ټولو نه اول څه څيز پيدا کړې شول ؟

**سوال** يو حديث کښې دی چه حضور صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل چه د ټولو نه وړاندې چه کوم څيز الله تعالى پيدا کړې دې هغه ځما نور وو بيا دوی اوفرمائيل چه دټولو نه وړاندې چه کوم څيز الله تعالى پيدا کړې دې هغه ځما روح وو ، بيا دوی اوفرمائيل چه کوم څيز د ټولو نه وړاندې پيدا شو هغه ځما عقل وو . بيا دوی اوفرمائيل چه کوم څيز الله تعالى د ټولو نه وړاندې پيدا کړې وو هغه قلم وو نو اوس په دې څلورو حديثونو کښې بنده ته شک پيدا شو لهذا مهرباني کولوسره د بنده شک لره دې رفع کړې شي . بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** .

قال الملا علي القاري رحمه الله تعالى رايت فى الدر المنثور نقلا عن ابن عباس رضى الله تعالى عنهما ان اول شيء خلقه اله القلم (الى ان قال) وفى الدر ايضا عن ابي هريرة رضى الله تعالى عنه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول ان اول شيء خلق الله القلم ثم النون وهي الدواة (الى ان قال) وروى ان اول ما خلق الله العقل وان اول ما خلق الله نوري وان اول ما خلق الله روحي وان اول ما خلق الله العرش والاولية من الامور الاضافية فيؤول ان كل واحد مما ذكر خلق قبل ما هو من جنسه فالقلم خلق قبل جنس الاقلام ونوره قبل الانوار (الى قوله) ومنه اول ما خلق نوري وفى رواية روحي ومعناهما واحد اه (مرقاة ص ۱۶۷ ج ۱)

خلاصه داچه د روح او د نور هم يو معنى ده او بقيه اشياء کښې اوليت نه اوليتِ اضافيه مراد دې لهذا هيڅ تعارض نشته.فقط والله تعالى اعلم .　　　　۲۰ ربيع الآخر سنه ۸۹ هجری

## د ((من هذا الرجل – الخ)) حديث تشريح

**سوال** قبر کښې دمړی نه منکرنکير تپوسونه کوی . ((من هذا الرجل الذى بعث فيكم – الخ)) آيا په دې سره نبی صلى الله عليه وسلم په هر قبر کښې حاضريږی اوکه روضهٔ اقدس نه قبر پورې پرده د حجاب لرې کيږی يا د نبی کريم صلى الله عليه وسلم تصوير ښودلې کيږی . بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اگرچه احتمال داهم دې چه قبر کښې د حضور صلى الله عليه وسلم صورتِ مثاليه پيش کيږی يا دقبر او روضهٔ اطهر د مينځ نه پرده اوچتولې کيږی مگر د احاديثو د ظاهر او تبادرِ عقل نه دا معلوميږی چه دحضور صلى الله عليه وسلم دنوم او د صفاتو بيانولو نه پس پوښتنه کولې کيږی . بهذا الرجل ولم يقل برسول الله صلى الله عليه وسلم لئلا يكون تلقينا لحجة قال عياض يحتمل انه صلى الله عليه وسلم مثل للميت فى قبره والاظهر انه سمي له انتهى يعني لانه المتبادر

قوله فی الصحیحین عن انس رضی الله تعالی عنه فیقولان ما کنت تقول فی هذا الرجل محمد و کذا فی روایة ابن المنکدر عن اسماء رضی الله تعالی عنها عند احمد رحمه الله وله من حدیث عائشة رضی الله عنها ما هذا الرجل الذی کان فیکم (ارشاد القاری ص ۳۳) فقط والله تعالی اعلم      "ربیع الاول سنه "هجری

## د حدیث د کتابونو د تالیف تاریخ

**سوال** بخاري شریف . مسلم شریف . ترمذي شریف . ابن ماجه . موطا . موطا . نسائي مسند امام احمد . سنن ابوداود . سنن دارمي او سنن امام شافعي . دا کتابونه :چا لیکلي شوي دي او په کوم سن هجرئ کښې لیکلي شوي دي . بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** دمذکوره کتابونو مؤلفین پخپله په سوال کښې کتاب سره مذکور دي . موطا دوه دي . موطا امام مالک . موطا امام محمد . ددې محدثینو تواریخ وفات دا دي

(۱) موطا امام مالک بن انس متوفی سنه ۱۷۹ هجری

(۲) موطا امام محمد متوفی سنه ۱۸۹ هجری

(۳) مسند الامام الشافعي متوفی سنه ۲۰۴ هجری

(دا درې واړه کتابونه د دویمې صدئ دي)

(۴) صحیح بخاری متوفی سنه ۲۵۶ هجری

(۵) صحیح مسلم متوفی سنه ۲۶۱ هجری

(۶) سنن ابی داود متوفی سنه ۲۷۵ هجری

(۷) سنن الترمذی متوفی سنه ۲۷۹ هجری

(۸) سنن نسائی متوفی سنه ۳۰۳ هجری

(۹) سنن ابن ماجه متوفی سنه ۲۷۳ هجری

(۱۰) مسند امام احمد متوفی سنه ۲۴۱ هجری

(۱۱) مسند دارمي متوفی سنه ۲۵۵ هجری

دا ټول کتابونه د دریمې صدئ دي (ارشاد القاري ص ۲۵) فقط والله تعالی اعلم

۱۲ ربیع الاول سنه ۹۳ هجری

## تشریح دحدیث ((من رای منکم منکرا – الخ))

**سوال** دحدیث (( من رای منکم منکراً فلیغیره بیده – الخ)) څه تفسیردې ؟ بازار کښې عام خلق ډیره کټکوی او فسق اوفجورکښې مبتلاء په نظر راځی آیا هغه ټولو ته تبلیغ کول فرض دي . بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** حدیث کښې استطاعت نه حسّي استطاعت مراد نه دې . ځکه چه په هغه صورتونو کښې عدم استطاعت متصور کیدلې نه شی ځکه چه بادشاه لره هم د سپیرې ورکولو حسی استطاعت خو په ټولو کښې موجود دې ، ددې وجه نه د استطاعت نه مراد دادې چه چاته تبلیغ کول غواړې دهغه د شرنه محفوظه پاتې شې همدارنګه که چرته د قبول توقع نه وی نو تبلیغ ضروری نه دې . فقط والله تعالی اعلم . ۲۷ ذی الحجه سنه ۹۴ هجری

## تشریح دحدیث ‹للمسلم علی المسلم ستته حقوق›

**سوال** : حدیث ‹للمسلم علی المسلم ستة حقوق –الخ› څه تفسیر دې ؟ آیا په هر کلی وال باندې لازمه ده چه هغه په ورځ کښې کم ازکم یو ځلې هسپتال ته تللو سره د بیمارانو بیمارپرسی اوکړی؟ بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چرته د دنیا دهرمسلمان عیادت په هرمسلمان باندې واجب وې نو نه به عیادت کولو والو ته دیو بل کار فرصت ملاؤ شوې وې اونه به مریض ته دچین او سکون مهلت ورکول کیده لهذا حدیث خاص دې اهل تعلق او اهل معرفت سره . فقط والله تعالی اعلم .

۲۸ ذی الحجه سنه ۹۴ هجری

## د امر بالمعروف په شان نهی عن المنکر هم فرض ده

**سوال** : آیا امر بالمعروف کول او نهی عن المنکر نه کول مخرج عن عهدة الامر بالمعروف والنهی عن المنکر دې اوکه نه . او وجه دا وئیلې کیږی چه مقصود نصیحت کولو سره اصلاح الغیرده او نهی عن المنکر سره نفرت او ضد پیدا کیږی ددې وجه نه امربالمعروف کول کافی لاصلاح الغیر دی بلکه زیات مؤثر دی دهغې نه چه اجتماع بین الامر والنهی شی او وائی چه مونږ دهغې تجربه کړې ده . بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : امر بالمعروف او نهی عن المنکر هر دواړه مستقل مامور به دی . یو باندې عمل سره د بل نه فارغه الذمه نه شې کیدلې البته نهی عن المنکر کښې د همدردئ اظهار ضروری دې کما قال تعالی : ‹‹**ادع الی سبیل ربک بالحکمة والموعظة الحسنة**›› فقط والله تعالی اعلم

۷ محرم سنه ۹۵ هجری

## عاشوراء کښې توسیع علی العیال سره متعلق حدیث

**سوال** : عام طور باندې مشهوره ده چه کوم سړې دعاشورې په ورځ خپل اهل وعیال باندې فراخی کوی الله تعالی هغه ته د پوره کال فراخی او وسعت عطا کوی . آیا شرعاً ددې څه اصل شته؟ . بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې باره کښې يو حديث مشهور دې چه هغې لره امام احمد ، عقيلي ، ابن قيساني ابن جوزی ، ابن تيميه ،ابن قيم اواحافظ ابن حجر په شان جبالِ حديث غيرثابت گرځولې دې البته نورو بعضو د موضوع په ځای ضعيف وئيلې دې ، مگر فضائلو کښې هم دعمل بالضعيف دپاره دا شرط دې چه هغه په يو قاعده شرعی کښې داخل وی او هغې لره سنت اونه گڼلې شی ‹علانيه › دلته دا دواړه شرطونه مفقود دی ، دا ديو کليه شرعيه لاندې نه دې او عوام هغه سنت گڼی ، محرم سره متعلق د احاديثو موضوعه انبار هغه نور زيات مشکوک جوړوی ، علاوه ددې نه چه په هغې کښې نور هم زيات قباحتونه دی چه دهغې تفصيل د بنده په رساله «منکراتِ محرم» کښې دې ، فقط والله تعالی اعلم ٢٠ربيع الاخر سنه ٩٥ هجری

## د « والله يعصمک من الناس » وعده بعدالموت ته هم شامله ده

**سوال**: بعضې علماء اوواعظين دا قصه بيانوی چه سلطان نورالدين زنگی ته په خوب کښې حضورصلی الله عليه وسلم ارشاد فرمائيلې وو چه دوه سره سپی ځما په مرقدِ منور باندې حمله کوی دهغوی تعاقب اوکړه «اوکمال قال» همدارنگه دهغه سور رنگو يهوديانو مثالی حليه هم ښودلې شوې وه ، سلطان مرحوم سره د خپلو فوځيانو مدينې منورې ته رسيدلوسره دهغوی پته اولگوله او هغوی ئې پيژندلوسره اووژل «ملخصاً» ، آيا دا قصه حقيقت باندې مبنی ده ؟ او په کوم مستند اسلامی کتاب کښې موجود ده ؟ که چرته وی نو د « والله يعصمک من الناس » وعده د مابعدالموت دپاره هم شامله شوه نو سلطان ته د حفاظت څه ضرورت وو ؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا واقعه صحيح ده په ٥٥٧ هجری کښې ددې وقوع وشو او ترننه پورې په امت کښې په داسې تواتر سره راروانه ده چه چا هم انکار نه دې کړې ، اکثرو علماؤ هغې لره پخپلو کتابونو کښې په تفصيل سره ذکرکړه ده، چنانچه شيخ الحديث مولانا ذکريا صاحب فضائلِ حج کښې د سيرت معتبرومقبول عام کتاب وفاء الوفا جلد اول په حوالې سره هغې لره بالتفصيل نقل کړې ده ، د والله يعصمک من الناس په ذريعې د حضورصلی الله عليه وسلم د حفاظت چه کوم انتظام کړې شوې وو په ظاهره دا حيات وبعد الممات دواړو ته شامل دې ، والله يعصمک من الناس سره مافوق العادة ذرائع نه حفاظت مراد دې چه واقعهٔ مذکوره کښې حاصل دې لهذا دا واقعه دآيتِ مذکوره خلاف نه ده بلکه دهغې مظهر دې او په دې خاص ذريعه کښې حکمت دا معلومېږی چه د اسلام د معجزې اظهار وی ، که چرته د حضور صلی الله عليه وسلم جسدِ اطهر پورې د تللو چاته هم داسې قدرت نه وې نو د معجزې اظهار به نه کيدلو ددې يو نظير د حضرت حذيفه اوجابر بن عبدالله رضی الله عنهما کرامت دې .د ١٩٣٢ ء واقعه ده چه حضرت حذيفه رضی الله تعالی عنه په خوب کښې شاهِ عراق ‹ملک فيصل اول › ته اووئيل چه زمونږ قبرونه

بل ځای ته منتقل کړه دلته د دجلې اوبه راځي چنانچه په لوئ شان اوشوکت سره دهغه حضراتو جسدونه ئې دهغه ځای نه را وه ویستل او په لاکهونو کسانو دهغې مشاهده اوکړه او بې شمیره کافرانو کرامت لیدلو سره اسلام راوړو . د کتلو والو بیان دې چه د جسد مبارک کفن تردې چه د ږیرې مبارکې ویختوپورې بالکل صحیح حالت کښې وو . لیدلو والو ته داسې معلومیدله چه شاید د دوی دمرګ د دوو ساعتونو نه زیات وخت نه دې شوې . د دواړو حضراتو سترګې هم خلاصې وې او په هغې کښې دومره مزیدار چمک او صفائی وه چه کتلو والا دهغوی سره سترګې نه شوې ملاوولې . ددې واقعې یوعینی شاهد د لطافت حسین صاحب مکتوب ماهنامه ((صدق)) لکهنؤ ۱۱ دسمبر سنه ۱۹۴۴ء او ماهنامه ((دارالعلوم)) دیوبند ستمبر ۱۹۵۷ء مطابق صفر ۱۳۷۷هجری کښې شائع شوې ده . په هغې کښې هم دهغه معجزهٔ اسلام د اظهارحکمت دې ورنه الله تعالی په هغې باندې قادر وو چه د دریاب اوبه دهغوی قبرونو طرف ته نه راتللې . فقط والله تعالی اعلم ۲۳رجب سنه ۹۵ هجری

## د حدیث ((الدنیا جیفة)) حواله

**سوال** ((الدنیاجیفۃ وطالبوها کلاب)) آیا دا حدیث صحیح دې . که چرته وی نو په کوم کتاب کښې موجود دې ؟ هغه ولیکئ . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** . دا مضمون بلاشبهه د حدیث نه ثابت دې البته سرسری نظر سره بعینه دا الفاظ ملاؤ نه شو . اوحی الله الی داود علیه السلام یاداود مثل الدنیا کمثل جیفة اجتمعت علیها الکلاب یجرونها افتحب ان تکون کلبا مثلهم فتجر معهم (کنزالعمال ص۱۳ ج۲) فقط والله تعالی اعلم

جمادی الاولی سنه ۹۰هجری

## په ولاړه میتیازې کولوسره متعلق حدیث

**سوال** آیا رسول کریم صلی الله علیه وسلم کله د خلقو په ډیران باندې په ولاړه میتیازې کړې وې ؟ دهغې وجه څه وه او دا ذکر په کوم کتاب کښې دې دخلقو په ډیران باندې یا په هرځای ئې داسې کړی وو دهغې مکمل تفصیل تحریر کړئ . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** :عن حذیفة رضی الله تعالی عنه قال اتی رسول الله صلی الله علیه وسلم سباطة قوم فبال قائما ثم دعا بماء فمسح علی خفیه (رواه ابوداود فی باب البول قائما)

حدیث مذکور کښې ددې تصریح ده چه حضور صلی الله علیه وسلم په ډیران باندې په ولاړه میتیازې کړې وې . علماؤ ددې مختلف وجوهات بیان کړی دی

(۱) د دوی صلی الله علیه وسلم په ګونډو کښې درد وو

(۲) په ملا کښې درد وو . ددې دوارو دردونو دپاره په ولاړه میتیازې کول مفید ګڼلې کېدل
(۳) دوی صلی الله علیه وسلم زغره اچولې وه ددې وجه نه په کیناستلو باندې ئې قدرت نه وو .
(۴) په ناستې د میتیازو کولو په حالت کښې د کپړو دنجس کیدلو خطره وه .
بهرحال بلاعذره په ولاړه میتیازې کول شرعاً ممنوع دی اوحضور صلی الله علیه وسلم هغه فعل لره په یو عذر باندې محمول کړئ شوي دي . فقط والله تعالی اعلم
۴ذی قعده سنه ۹۲ هجری

## په ((رب اجعلني مقيم الصلوة)) باندې د اشکال جواب

**سوال:** حضرت ابراهیم علیه السلام دا دعا کړې وه ((رب اجعلني مقیم الصلوٰة ومن ذریتي)) په دې کښې منْ تبعیضیه دې چه مطلب ئې دا راؤځی چه ما او خما اولاد لره مونځ قائمولو والا جوړ کړې او د بعضې نورو په حق کښې دا دعا نه ده حالانکه پکار ده چه زمونږ تمام اولاد مصلی جوړ شی . آیا مونږ اوس وخت دا دعا وئیلې شو؟ . بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حضرت ابراهیم علیه السلام صاحبِ وحی وو . دوی ته د وحی په ذریعې سره معلومه کړئ شوې وه چه ستاسو به بعضې اولاد نیک نه وی . ((**لا ينال عهدي الظالمين ، ومن ذريتهما محسن وظالم لنفسه مبين**)) ددې وجه نه د دوی په دعا کښې ((من ذریتي)) کښې منْ د تبعیض دپاره دې تاسو په دې دعا کښې هیڅ تغیراونه کړئ بلکه منْ لره د ((تبیین یا ابتداء)) دپاره اخستلوسره دجمیعِ ذریت نیت کوئ . **قال العلامة الآلوسي رحمه الله تعالى في تفسير قوله تعالى ربنا هب لنا من ازواجنا وذرياتنا الخ ومن ابتدائيه متعلقه بهب اى هب لنا من جهتهم ويجوز ان تكون بيانية كأنه قيل هب لنا قرة اعين ثم بينت القرة وفسرت بقوله سبحانه من ازواجنا وذرياتنا وهذا مبني على مجيء من للبيان وجواز تقديم المبين على المبين (روح المعاني ص ۰۰ ج ۰۰) فكذلك يمكن التقدير هنا مثلا اجعل اقامة الصلوة من ذريتي او اجعل مقيمي الصلوة من ذريتي . فقط والله تعالى اعلم ،** ۰۰ذی الحجه سنه ۰۰هجری

## د عرضِ اعمال د حدیث تحقیق

**سوال:** د یوې رسالې یوه حصه ستاسو خدمت ته در لیږل کیږی چه په هغې کښې ئې لیکلی دی چه حضورصلی الله علیه وسلم باندې دعرضِ اعمال روایت په اجماع د محدثینو سره موضوع دې . په دې باره کښې دخپل تحقیق لیکلو سره مونږ مطمئن کړئ .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د محدثینو اجماع ده چه د عرضِ اعمال دا روایت دروغ دې .
روایت داسې دې . **عن ابن المبارك انا رجل من الانصار عن المنهال بن عمرو انه سمع سعيد بن المسيب**

**یقول لیس من یوم الا یعرض فیه علی النبی امته غدوة وعشیة فیعرفهم باسمائهم واعمالهم فلذالك یشهد علیهم.**

**ترجمه** : ابن المبارک اووئیل چه ځما نه یو انصاری سړی او هغه د المنهال ابن عمرو نه واوریدل چه هغه وئیل چه ما سعید بن مسیب (تابعی) لره دې وئیلو سره اوریدلی دی چه یو ورځ هم داسې نه تیریږی چه نبی ته د هغه امت سحر او ماښام نه پیش کیږی او دوی امت لره دهغوی نومونو او اعمالو سره پیژنی نه دې دپاره چه هغوی باندې ګواهی ورکړی . دا حدیث نه دې بلکه یو تابعی ته منسوب کیدلو والا غلطه خبره ده ، بیا د «رجلٌ من الانصار» سړی د نوم نه څه معلومات شته او نه د یو حدیثو په کتاب کښې ددې روایت ذکرشته ، قرآن کریم دا قاعده کلیه بیانوی ، **«ومن ورائهم برزخ الی یوم یبعثون»** (المؤمنون آیت ۱۰۰) ترجمه : د تولو (مړه کیدونکو) وروستو یو برزخ (واسطه) حائل دې ، د دویم ژوند تر ورځې پورې (المؤمنون آیت ۱۰۰)

**«وهم عن دعائهم غافلون»** (احقاف ایت ۵) او هغه دهغوی د آوازونو نه غافله دی.

هم دا خبره په صحیح بخاری کښې مختلفو مقاماتو باندې راغلې ده مثلاً **(یجاء برجال من امتی فیؤخذ بهم ذات الشمال فاقول یا رب اصیحابی فیقال انك لا تدری ما احدثوا بعدك فاقول کما قال العبد الصالح وکنت علیهم شهیدا ما دمت فیهم فلما توفیتنی کنت انت الرقیب علیهم (المائدة ۱۱۷) فیقال ان هؤلاء لم یزالوا مرتدین علی اعقابهم منذ فارقتهم (بخاری ص ۶۶۵)**

**ترجمه** : نبی اوفرمائیل چه د قیامت په ورځ به ځما د امت ځینو خلقو لره راوستلې کیږی او بیا به هغوی چپ طرف (جهنم طرف ته) راوستل شروع کړی نوزه به وایم چه ځما ربه! دا خو ځما امتیان دی (جهنم طرف ته چرته لاړ شی) هغه وخت به ماته خطاب کیږی چه تاته څه معلومه ده چه ستا نه پس دوی څنګه بدعتونه راویستلی وو . جواب کښې به هم هغه وایم چه د عبد صالح (عیسی علیه السلام) قول په قرآن کښې دې چه « زه ترڅوپورې په دوی کښې ووم د دوی د احوالو نګرانی مې کوله او چه کله تاسو زه وفات کړم نو صرف تاسو په هغوی باندې نګران باقی پاتې شوئ » بیا به ماته اوښودلې شی چه دا هغه خلق دی چه ستاسو رخصتیدلو نه پس ګمراه شو (بخاری ص ۲۲۵)

به دې سره معلومه شوه چه که چرته په نبی باندې د امت اعمال پیش کیدلې نو هغوی ته به دهغه بدعتیانو په معامله کښې تعجب نه وې ، د نبی په ژوند کښې دا حال وو چه هغه به فرمائیل **(تعرض الاعمال یوم الاثنین والخمیس فاحب ان یعرض عملی وانا صائم) (رواه الترمذی)** نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه اعمال د الله په دربارکښې په دوشنبه او پنجشنبې پیش کیږی ددې وجه نه زه خوښوم چه په دې دواړو ورځو کښې چه کله ځما اعمال د الله په دربار کښې پیش کیږی چه زه

د روزې په حالت کښې يم (ترمذی مشکوة ۱۸۰)

معلومه شوه چه اعمالِ انسانی د الله په دربار کښې پيش کيږی نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته نه پيش کيږی. پاتې شو هغه سړې چه په دې عقيده ساتلو باندې اصرار کوی چه اعمال رسول الله صلی الله عليه وسلم ته پيش کيږی نو هغه ښکاره مشرک دې هغوی نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته د الله تعالی صفت ورکړې دې.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تعجب دې چه محرر دهغه حديث په دروغ کيدلو باندې د محدثينو د اجماع دعویٰ خو اوکړه مگر دهغې د اثبات دپاره يې ديو محدث هم څه قول نقل نه کړو. د حديث موضوع کيدل خو لرې خبره ده دهغه ضعيف کيدلو باندې يې هم څه سند پيش نه کړو. طرزِ تحرير نه معلوميږی چه محرر د سختې غلو ښکار دې خکه چه هغه به دهغه حديث موضوع کيدلو يا ضعيف کيدلو سره متعلق د محدثينو اقوالو په لټون کښې څه قصر نه وی پريښودلې. سره د دې نه هغه ته به دخپل خواهش مطابق کوم قول نه وی ملاؤ شوې، ورنه هغه به هغه پخپل تائيد کښې ضرور پيش کولو. سرسری لټون سره لاندې احاديث د نظر نه تير شو چه په هغې کښې حضوراکرم صلی الله عليه وسلم باندې بلکه دهغې نه هم څه زيات دهرسړی په والدينو خپلوخپلوانو باندې هم د عرضِ اعمال تصريح ده

(۱) مرسل سعيد بن المسيب رحمه الله تعالی چه محرر بلاحواله نقل کړې دې. دچا په پوښتنې کولو باندې محرر د (التذکره للقرطبی) حواله ورکړه.

(۲) قال الحافظ رحمه الله تعالی اخرج ابن ابی حاتم والطبرانی وغيرهما من طريق يونس بن محمد بن فضالة عن ابيه ان النبی صلی الله عليه وسلم اتاهم فی بنی ظفر ومعه ابن مسعود وناس من اصحابه فامر قاريا فقرا فاتی علی هذه الاية فكيف اذا جئنا من كل امة بشهيد وجئنا بك علی هولاء شهيدا. فبكی حتی ضرب لحياه وجنتاه فقال يا رب هذا علی من انا بين ظهريه فكيف بمن لم اراه واخرج ابن المبارك فی الزهد من طريق سعيد بن المسيب قال ليس من يوم الا يعرض علی النبی صلی الله عليه وسلم امته غدوة وعشية فيعرفهم بسيماهم واعمالهم فلذلك يشهد عليهم ففی هذا المرسل ما يرفع الاشكال الذی تضمنه حديث ابن فضالة والله اعلم (فتح الباری ص۲۰۰ج۸)

(۳) فی المواهب مع شرحه للعلامة الزرقانی (وروی ابن المبارك) عبدالله الذی تستنزل الرحمة بذكره (عن سعيد بن المسيب) التابعی الجليل ابن الصحابی (قال ليس من يوم الا وتعرض علی النبی صلی الله عليه وسلم اعمال امته غدوة وعشيا فيعرفهم بسيماهم واعمالهم) فيحمد الله ويستغفر لهم فاذا علم المسیء منهم

لذ تحمله الاقلاع ولا يعارضه (ماروا ه الحكيم الترمذى وقد مناه عن الجامع الصغير) لجواز ان العرض على النبى صلى الله عليه وسلم كل يوم على وجه التفصيل وعلى الانبياء ومعهم نبينا على وجه الاجمال يوم الجمعة فيمتاز صلى الله عليه وسلم بعرض اعمال امته كل يوم تفصيلا ويوم الجمعة اجمالا (زرقانى ص ج۵)

د سعيد بن المسيب وفات په ۱۰۰ هجرى كښې شوې دې او د عبدالله بن المبارک ولادت په ۱۱۸ هجرى كښې اوشو ، لهذا دا سند مرسل كيدلو سره معلق هم دې . عدم قبول مرسل كښې امام شافعى رحمه الله تعالى متفرد دې مگر د سعيدبن المسيب رحمه الله تعالى مراسيلو لره امام شافعى رحمه الله تعالى هم حجت منى ( ....ص ۱۲۰ )

معلق دې شرط سره قبول دې چه راوى د روايت عن الثقه التزام اوكړى كتعليقات البخارى ، د عبدالله ابن مبارک د جلالت شان نه علاوه د اعتضاد بالروايات الأخرد وجه نه هغه روايت لره ساقط گرځول صحيح نه دى .

(۴) تعرض الاعمال يوم الاثنين والخميس على الله وتعرض على الانبياء وعلى الاباء والامهات يوم الجمعة فيفرحون بحسناتهم وتزداد وجوههم بياضا واشراقا فاتقوا الله ولا تؤذوا موتاكم . الحكيم عن والد عبد العزيز (ح) (الجامع الصغير ص ج۱)

(۵) يو عالم اووئيل چه جامع صغير كښې د حضرت عائشې رضى الله عنها نه هم دهغه مضمون روايت بحواله مسند الفردوس للديلمى دهغه د نظر نه تيرشوې دې چه هغه وخت سرسرى لټون سره ملاؤ نه شو .

(۶) وفى جمع الفوائد عن ابن مسعود رضى الله عنه قال صلى الله عليه وسلم حياتى خيرلكم تحدثون ويحدث لكم ووفاتى خيرلكم تعرض على اعمالكم فما رايت من خير حمدت الله عليه وما رايت من شر استغفرت الله لكم . للبزار . وفى حاشية اعذب الموارد قال الهيثمى رجاله رجال الصحيح كذا فى الفيض ۲/۴۰۱ وفى مجمع الزوائد ۹/۲۴ (رواه البزار ورجاله رجال الصحيح (جمع الفوائد ص ج۱)

(۷) قال العلامة للالوسى رحمه الله تعالى فى تفسير قوله تعالى (وجئنا بك شهيدا على هؤلاء) فان اعمال امته عليه الصلوة والسلام تعرض عليه بعد موته فقد روى عنه صلى الله عليه وسلم انه قال حياتى خيرلكم تحدثون ويحدث لكم ومماتى خيرلكم تعرض على اعمالكم فما رايت من خير حمدت الله تعالى عليه وما رايت من شر استغفرت الله تعالى لكم بل جاء ان اعمال العبد تعرض على اقاربه من الموتى .

(۸) فقد اخرج ابن ابى الدنيا عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه ان النبى صلى الله عليه وسلم قال لا تفضحوا

اموالکم بسیئات اعمالکم فانها تعرض علی اولیائکم من اهل القبور.

(۱) واخرج احمد عن انس رضی الله تعالی عنه مرفوعا ان اعمالکم تعرض علی اقاربکم وعشائرکم من الاموات فان کان خیرا استبشروا وان کان غیر ذلك قالوا اللهم لاتمتهم حتی تهدیهم کما هدیتنا.

(۲) واخرجه ابوداود من حدیث جابر رضی الله تعالی عنه بزیادة والهمهم ان یعملوا بطاعتك.

(۳) واخرج ابن ابی الدنیا عن ابی الدرداء رضی الله تعالی عنه انه قال ان اعمالکم تعرض علی موتاکم فیسرون ویساؤن فکان ابو الدرداء یقول عند ذلك اللهم انی اعوذبك ان یمقتنی خالی عبدالله بن رواحة اذا لقیته یقول ذلك فی سجوده. والنبی صلی الله علیه وسلم لامته بمنزلة الوالد بل اولی (روح المعانی ص ۳۰ ج ۲)

(۱۲) علامهٔ آلوسی رحمه الله تعالی په روح المعانی کښې د پاسنو حدیثونو نه پس فرمائی چه علامه مناوی رحمه الله تعالی هم د عرض الاعمال علی النبی صلی الله علیه وسلم روایت نقل کړې دې. احادیثِ مذکوره کښې د نمبر ۲ سند صحیح او د ۴ سند حسن کیدلو تصریح ده اود ۹، ۱۰ حدیث قوت د پاره هم د امام احمد اود امام ابوداود رحمهما الله تعالی نومونه ضمانت دې.

محرر پخپله دعویٰ باندې د قرآن کریم دوه آیتونه او یو حدیث پیش کړې دې، دهغې نه استدلال داسې بدیهی البطلان دې چه دهغې متعلق څه د لیکلو حاجت خو نشته مګر ددې وجه نه نی لیکم چه د محرر مبلغ علم په داګه شی.

(۱) درومبنی آیت پوره مضمون داسې دې. ﴿ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ ﴿٩٩﴾ لَعَلِّىٓ أَعْمَلُ صَٰلِحًا فِيمَا تَرَكْتُ ۚ كَلَّآ ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ۖ وَمِن وَرَآئِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٠٠﴾ ﴾

**ترجمه**: یعنې کله چه د نافرمانو د مرګ وخت راځی نو هغوی مهلت طلب کوی دې د پاره چه هغوی نیک عمل وکړی دهغې په جواب کښې ارشاد دې چه اوس د دوی د واپسئ هیڅ امکان نشته

ددې حاصل دا شو چه د مرګ نه پس هیڅوک واپس نه شی راتللې. دا مطلب هیچری نه دې چه ددې دنیا نه هم څوک عالم برزخ ته نه ځی، ددې ځائ نه خو د ارواحو او اعمالو د تللو سلسله جاری ده اود احادیثو مطابق وروستو د تللو والا د مخکښې تللو والو سره ملاقات هم کیږی. هم دغه شان د ایصالِ ثواب په صورت کښې مړو ته ثواب هم رسیږی.

(۲) دویم آیت دادې ﴿ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُۥٓ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ وَهُمْ عَن دُعَآئِهِمْ غَٰفِلُونَ ﴿٥﴾ ﴾ یعنې بت دخپلو تابعدارو د آوازونو نه بې خبره دې. ددې زیرِ بحث مسئلې سره څه تعلق دې؟

(۳) دحديث (يجاء برجال من امتي - الخ) نه معلومه شوه چه حضوراكرم صلى الله عليه وسلم بعضې خلقو لره به دهغوی په صورتونو سره نه پيژنی ، دا مضمون د عرضِ اعمال خلاف نه دي ، څکه چه عرضِ اعمال د امت په نومونو سره وی چه په هغې سره معرفتِ صورنه کيږی . دولسو رواياتو کښې په دوو کښې د «اسماء» په ځائې «سيماء» لفظ دي چه سهوه دناسخ معلوميږی

محرر په آخرکښې د عرضِ اعمال عقيده ساتلو والا پوره امتِ مسلمه په شمول د كبار صحابه كرامو اوجليل القدر محدثينولره مشرک گرځولی دی او ليکلی يې دی چه «هغوی نبی لره اله جوړکړي دي».

محرر باندې لازمه ده چه هغه رومبې د شرک جامع اومانع حدِتام بيان کړی او بيا دعرضِ اعمال په هغې کښې دخول ثابت کړی ، كه چرته مطلقا د لرې نه په يو څيز باندې خبريدل الوهيت وی خواه که هغه په هرې ذريعې سره وی نو نن چه کوم خلق په کور کښې ناست په ټيلی ويژن باندې د ټولې دنيا حالات گوری او آوری ، آيا دا ټول د محرر په خيال کښې اله دی ؟ فقط والله العاصم ،

جمادی الاولی ۹۷ هجری





(رسائل)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَمَا تَوْفِيْقِيْ اِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ

# دَفْعُ الْوَسْوَاسْ عَنْ قصة الْقِرْطَاسْ

## د قرطاس د قصې حقيقت

**سوال** - د حضورصلی الله عليه وسلم د وفات په وخت کښې د قرطاس د واقعې څه حقيقت دي ، او په هغې کښې حضرت عمررضی الله عنه باندې چه کوم اعتراض کولې کيږی دهغې تفصيل او تحقيق څه دي ؟ بينوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب** : حضورصلی الله عليه وسلم پخپلې آخری بيمارئ کښې د وفات نه څلور ورځې وړاندې د پنجشنبې په ورځ خپلو اصحابو رضی الله عنهم ته اوفرمائيل چه قرطاس يعنې کاغذ راوړئ چه زه يو خط اوليکم چه دهغې نه پس به تاسو کله هم گمراه نه شئ . حضرت عمررضی الله عنه اوفرمائيل چه حضورصلی الله عليه وسلم ته په دې وخت کښې د بيمارئ تكليف

زیات دي لهذا دوی ته تکلیف ورکول نه دي پکار او د ضروري احکامو دپاره کتاب الله کافي دي اود بعضې نامعلوم الاسم خلقو رائې داشوې چه لیکل پکار دی.هغه وخت بعضې خلقو چه دهغوی نومونه په کوم یو روایت کښې مذکور نه دی ، اووئیل (اهجر رسول الله صلی الله علیه وسلم استفهموه؟) یعنې آیا د دوی صلی الله علیه وسلم د جدائې وخت راغلو ؟ د دوی صلی الله علیه وسلم نه خو پوښتنه اوکړئ . بیا هغه وخت نه حضورصلی الله علیه وسلم د هغه تحریرلیکلو قطعي حکم اوکړو اونه دهغې نه پس په کوم بل وخت دهغې متعلق څه اوفرمائیل حالانکه څلورو ورځو پورې دهغې نه پس هم حیات او ژوندې وو .

قصه خو صرف هم دومره ده چه پورته بیان شوه . مگر اهلِ تشیع والو په دې قصه کښې حضرت عمررضی الله عنه باندې درې اعتراضات په ډیرزوراوشور سره کړی دی :

(۱) حضرت عمررضی الله عنه د حضورصلی الله علیه وسلم متعلق اووئیل چه داسې بې هوده خبرې کوی (نعوذبالله من ذلک) ، د هجر معنی په هذیان سره اخلی او هغې لره د حضرت عمررضی الله عنه مقوله گرځوی .

(۲) داسې ضروری خط چه دهغې نه پس ترقیامته پورې د گمراهئ ویره نه وی حضرت عمر رضی الله عنه لیکلو ته پرې نه ښودلو ، په دې کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نافرمانی هم اوشوه او د ټولو مسلمانانو نقصان هم اوشو .

(۳) حضرت عمررضی الله عنه حسبناکتاب الله اوفرمائیلو چه دهغې مطلب دادې چه د حدیثو ضرورت نشته دې .

**د اول اعتراض جواب** : (۱) لفظِ هجر د حضرت عمررضی الله عنه قول نه دې ، د اهلِ سنت په کتابونوکښې یو صحیح روایت هم ددې افتراء په ثبوت کښې نه ملاویږی ، حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله په فتح الباری کښې لیکی چه په یوروایت کښې هم دا نشته چه دا لفظ د حضرت عمررضی الله عنه مقوله ده ، شاه عبدالعزیز رحمه الله هم په تحفهٔ اثناء عشریه کښې هم دا لیکلی دی . شیعه علماء هم چه دهغوی د تجسس او د عیب لگولو خاص مشق کیږی د ډیرو کلونو راسې د داسې روایت په تلاش کښې دی مگر د مطالباتو باوجوډ ترننه پورې یو روایت هم پیش نه کړئ شو . لهذا که چرته یو عالم اهلِ حق هم دې لره مقوله د حضرت عمررضی الله عنه تسلیم کړی دی نوهغه دهوکه شوې دې ځکه چه شیعه گانو خپلو دروغو لره څه داسې شهرت ورکړې دې اوپه عوامو کښې ئې داسې خورکړې دې چه د هغه عام شهرت نه بعضو خواصو هم دهوکه خوړلې ده چه دهغې ډیر مثالونه موجود دی . مثلاً د امام مالک رحمه الله په مذهب کښې د متعې جواز دومره مشهورکړئ شو چه صاحبِ هدایه په شان محقیق دهوکه اوخوړله . د یو لوئ نه لوئ عالم په دهوکه راتلل څه لرې خبره نه ده ، هم ددې وجه نه مونږ مطالبه کړې ده چه یو معتبر روایت بسندصحیح

پیش کړئ . اول خو د هر سری بلاسنده یو خبره روایت معلق نه شی کیدلې . معلق هغې ته وائی چه یو محدث روایت کولو وخت کښې یو څیز لره د سند ذکر کولو نه بغیر بیان کړی . بیا د هر روایت معلق صحیح کیدل هم غلط دی ورنه بیا خو به سند یو بې کاره څیز شی . مولانا عبدالحی صاحب رحمه الله په ظفر الامانی کښې فرمائی :

((تلك الاخبار لا يعتبر بها مالم يعلم سندها ومخرجها (الى ان قال) المرسل انما هو ما ارسله راوى الحديث وترك الواسطة بينه وبين النبى صلى الله عليه وسلم لا مجرد قول كل من قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم والا لزم ان يكون قول العوام والسوقية قال رسول صلى الله عليه وسلم كلا مرسلا والوجه فيه ان الارسال والانقطاع ونحو ذلك من صفات الاسناد ويتصف الحديث به بواسطته فحيث لا اسناد فلا ارسال ولا انقطاع ولا اتصال وانما هو مجرد نقل اعتمادا على الغير ومن المعلوم ان صاحب الهدايه وغيره من اكابر الفقهاء ومؤلف احياء العلوم وغيره من اجلة العرفاء ليسوا من المحدثين ولا من المخرجين وان كانوا فى الفقه والتصوف وغيرهما من الكاملين)) (ظفر الامانى ص ۱۱۱)

(۲) د هجر معنی محض هذیان نه ده بلکه دا لفظ د جدائۍ په معنی هم راځی . **قال الله تعالى «واهجرهم هجراً جميلاً»** دا معنی د لغت علماء اود حدیثو شراح هم لیکی .

په فتح الباری ج ۸ ص ۱۰۱ کښې دی : **ويحتمل ان يكون قوله اهجر فعلا ماضيا من الهجر بفتح الهاء وسكون الجيم والمفعول محذوف اى الحياة وذكر بلفظ الماضى مبالغة لما راى من علامات الموت.**

او علامه محمدطاهر گجراتی په مجمع بحار الانوار (چه خاص د حدیثو لغت دی) ج ۲ ص ۴۷۵ کښې فرمائی . **(ويحتمل ان يكون معناه هجركم رسول الله صلى الله عليه وسلم من الهجر ضد الوصل)** بلکه تحقیق دادې چه ددې لفظ اصلی معنی هم د جدا کیدلو ده . د هذیان په معنی کښې هم ددې مناسبت نه راځی چه په دې کښې د عقل نه جدائی کیږی او هم دا معنی زیاته صحیح او متبادره ده اردو کښې هم هجر بمقابله وصل وئیلې کیږی او حدیث قرطاس کښې هم دا معنی چسپان کیږی . د هذیان معنی هغلته د دوو وجه نه . نه جوړیږی :

(الف) د هذیان شبهه هغه خبره باندې وی چه خلاف عقل وی . یو پیغمبر پخپل آخری وخت کښې فرمائی چه کاغذ راوړئ چه زه یو ضروری هدایت نامه اولیکم . په دې کښې کومه خبره خلاف عقل ده چه هغې ته هذیان اووئیلې شی .

(ب) روایت کښې د هجر نه پس د استفهموه لفظ دې . یعنې تاسو نه پوښتنه اوکړم که چرته د هجر معنی هذیان واخستلې شی نو استفهموه سره ربط بالکل غلطیږی . ځکه چه چاته هذیان اوشو اوس د هغه نه پوښتنه بالکل خلاف عقل ده . اوس اوګورئ د جدائۍ معنی په کومې خوبۍ

سره جوړیږي . چه هرکله حضورصلی الله علیه وسلم حالتِ مرض کښې هدایت نامه لیکلولره اوفرمائیل نود صحابه کرامو رضی الله عنهم په زړونو باندې د بجلئ د کرنټ په شان سخت اولګیدل چه شاید هغه د قیامت ساعت راغلو ، شعر :

حیف درچشم زدن صحبت یار آخرشد روئے گل سیرندیدیم وبہار آخرشد

څکه چه داسې تحریر په آخری وخت کښې لیکلې کیږي لهذا هغوی اوونیل «اهجراً استفهموه» یعنې آیا حضرت تاسو جدا کیږئ ، که تاسو نه پوښتنه اوکړو ، چه دا لفظِ هجر چاچه هم اوونیلو د محبت اود عشق په جذبه کښې ئې اوونیلو . مګر د چا زړونو چه د محبت د درد نه ناآشنا دی هغوی ددې څه قدر کولې شی ، شعر

چو دل بمہر نگارے نہ بستہ ای مہ تراز سوز درون دیا زما چہ خبر

(۳) فرضِ محال که چرته دا لفظ هم په معنی د هذیان وی نو دا د همزۀ استفهام سره دې . او استفهام انکاری دې ممکن دې چه دا قول دهغه جماعت وی چه د تحریرلیکلو مؤید وو هغوی دخپلې رائې د تقویت دپاره وئیلې وی چه د حضورصلی الله علیه وسلم د حکم په تعمیل کښې ولې توقف کوئ . آیا حضورصلی الله علیه وسلم ته معاذالله هذیان شوې دې ؟ دا مطلب هم د حدیثو شراحو بیان کړې دې . بخاری کښې دا روایت اوو ځایونوکښې راغلې دې . د کتاب الجهاد نه سوا باقی شپږ مواضعو کښې دا لفظ د همزۀ استفهام سره دې اود بخاری نه علاوه په نورو کتابونوکښې هم همزه موجود ده . پس که چرته په یوروایت کښې همزه نه وی نوحرج نشته . دیوې واقعې په متعدد اسانیدو کښې که چرته یولفظ په یو روایت کښې وی بل کښې نه وی نو یقیناً به هم دا ګڼلې کیږي چه په کوم کښې نه دې په هغې کښې د راوی نه هیرشوې دې هم ددې وجه نه حافظ رحمه الله په فتح الباری ج۸ ص ۱۰۱ کښې فرمائی . الراجح فیه اثبات الهمزة ، علاوه ددې نه بغیرد اداۀ استفهام نه هم استفهام وی . ددې دریو واړو جوابونو خلاصه داشوه چه اول خو لفظ هجر د حضرت عمررضی الله عنه مقوله نه ده . دویم بالفرض هغه تسلیم هم کړئ شی نو هجر بمعنی هذیان نه دې بلکه د جدائې په معنی ده چه د خاص محبت کلمه ده نه چه د ګستاخئ . دریم بالفرض هجر بمعنی هذیان وی نو همزۀ استفهام سره ده او استفهام انکاری دې . اوس اربابِ عقل دې غور اوکړی چه په دې اعتراض کښې څه روح باقی پاتې شو ترڅو پورې چه شیعه ګانو ددې دریو خبرو جواب رانه کړی یعنې په روایت کښې دې هم دا مقوله د حضرت عمررضی الله عنه اوښائی . بیا دې دا ثابته کړی چه د هجر معنی سوا د هذیان نه بل څه نه ده . یا دلته سوا د هذیان نه بله معنی چسپان کیږي نه . بیا دې دا هم ثابته کړی چه دا لفظ همزۀ استفهام سره نه نشته . یا دا استفهام انکاری نه شی کیدلې . دې وخته پورې دهغه اعتراض نوم اخستل سخته بې غیرتی ده

**د دویم اعتراض جواب** ددې نه وړاندې یوڅو امورغور طلب دی

۱) ﴿اَلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا﴾ بالاتفاق د قرطاس د قصې نه وړاندې نازل شوې وو ، پس اوس سوال دادې چه که چرته يو داسې ضروري تحرير باقي پاتې وو نو دين هيچرې کامليدلې نه شي او دا آيت معاذالله غلط ثابتيږي.

(۲) قصه د قرطاس د پنجشنبې په ورځ واقع شوه . اود حضورصلی الله عليه وسلم وفات په دوشنبې شوې وو نو څلورو ورځو پورې حضورصلی الله عليه وسلم دهغه قصې نه پس په دې عالم کښې تشريف راوړی ، پس که چرته يو داسې ضروري تحرير باقي پاتې وې نو دوی ته دهغې د ليکلو کافي موقع ملاؤ شوه ، دهغې باوجود دوی اونه ليکلو ، دا به يو ډير لوئ الزام په حضورصلی الله عليه وسلم باندې عائد وی (نعوذبالله من ذلک) د حضرت عمررضی الله عنه په منع کولوسره ياد هغه د ويرې نه نه ليکل يو مسلمان باور نه شی کولې ځکه چه هم داسې د چا د ويرې نه که چرته انبياء عليهم السلام د تبليغ نه بند شي نو د دين نه به امان اوچت شي او نبوت به د ماشومانو يو لوبه شي . خيال اوکړئ چه کله کافرانو دوی ته اوونيل چه که چرته تاسو ته د سلطنت خواهش يا د يو يوې ښائسته ښځې طلب وی نو سلطنت اود ټولو عربو نه ښائسته ښځه تاته درکوو . مگر زمونږ معبودانو ته بدې ردې مه وايه . د کافرانو سره د مقاطعې په وخت ابوطالب دوی ته پيغام راواستولو چه ای وراره ته ددې تبليغ نه منع شه ،زه يواځې د ټول عرب مقابله نه شم کولې نو دوی اوفرمائيل چه ای تره که چرته څما په يو لاس کښې نمر او بل لاس کښې سپوږمئ هم کيخودلې شي نو بيا به هم ددې حق کلمې نه هيچرې منع نه شم ، غرض داچه کومه ورځ دوی صلی الله عليه وسلم د ټولو عربو سره د دين په خاطر په جنگ وو هغه وخت خو دوی د دين ضروريأتو لره پرئ نه خودل نو اوس داسې اهم څيز لره څنگه پريخودلې شو ؟ بيا په دې څلورو پنځو ورځو کښې يا شپه کښې کوم وخت خو به حضرت عمررضی الله عنه تللې وی هغه وخت به دوی ليکلې وې .

(۳) دومره ضروري تحرير لره که چرته حضرت عمررضی الله عنه منع کړې وو نو حضرت علی او نورو صحابو رضی الله عنهم باندې فرض وو چه وربادندې ئې ليکلې وې مگر چا هم هغې طرف ته توجه اونه کړه . پس د حضرت عمررضی الله عنه نه زيات الزام خو به په حضرت علی رضی الله عنه وی . ځکه چه چه بزعم شيعه دوئ ته د حضورصلی الله عليه وسلم تقرب د ټولو نه زيات وو . نيز داسې حکم عموماً کوروالو ته وی . چه دهغې نه ظاهره ده چه حضرت علی رضی الله عنه ته به دا حکم ورکړئ شوې وی چه دهغې دوی تعميل اونه کړو ، مزيد په دې باندې د مسند احمد په روايت کښې تصريح موجود ده چه دا خطاب حضرت علی رضی الله عنه ته وو .

(۴) دومره لويه واقعه او په ټولو صحابو رضی الله عنهم کښې يو شخص هم سوا د ابن عباس رضی الله عنهما نه ددې روايت نه کوی او بيا د ابن عباس په لاکهونو شاگردانو کښې صرف د دوی

خامن عبید الله او سعید بن جبیر ددې ناقل دی .

(۵) د قرطاس د قصې نه څه ډیروړاندې حدیث ثقلین ارشاد شوې وو . په هغې کښې په خپله حضور صلی الله علیه وسلم وئیلی وو چه زه په تاسو کښې دوه قدرمند څیزونه پریږدم . که چرته تاسو هغه دواړه مضبوط اونیسئ نوتاسو به هیچرې گمراه نه شئ . پس که چرته د قرطاس د قصې والا تحریر یو ضروری فرض کړئ شی نود حدیث ثقلین تکذیب لازمیږی .

په دې امورو باندې د غور کولو نه پس عقلِ سلیم په دوو امورو کښې دیو په تسلیمولو باندې مجبوره کیږی :

(۱) یا خو دا قصه بالکل غلطه ده . دین کامل شوې وو . او هیچرې یوداسې ضروری تحریر باقی پاتې نه وو او هیچرې حضور صلی الله علیه وسلم د آیتِ قرآنیه خلاف د یو تحریر د لیکلو اراده ښکاره کړې نه وه . دا قصه محض بې بنیاده او د دین د دښمنانو چال دې او محض دې دپاره راپورته کړئ شوه چه د آیتِ قرآنیه الیوم اکملت لکم دینکم الخ اود حدیث ثقلین تکذیب اوشی . او حضور صلی الله علیه وسلم باندې هم تبلیغ رسالت کښې د کوتاهئ کولو الزام قائمولوسره ټول دین مشکوک شی مگر دامام بخاری رحمه الله په شان د محدثینو تخریج ددې نظرئې تردید کوی .

(۲) یا حضور صلی الله علیه وسلم محض دخپلو صحابو رضی الله عنهم د امتحان دپاره فرمائیلی وو چه په حقیقت کښې نه یو داسې ضروری تحریر باقی پاتې وو او نه په واقع کښې د دوی اراده وه محض امتحان مقصود وو چه دا خلق په ایمان کښې کوم حده پورې راسخ القدم دی . که چرته خدانخواسته اکابرصحابه رضی الله عنهم دهغه تحریرپه لیکلوباندې مستعد شوې وې نو حضور صلی الله علیه وسلم ته به ډیر غم ملاؤ شوې وو او فوراً به ئې فرمائیل چه د آیت الیوم اکملت لکم دینکم الخ نه پس اوس تاسو د کوم یو تحریر منتظر ئې او دین لره کامل نه گڼئ مگر الحمدلله صحابه کرام رضی الله عنهم په هغه امتحان کښې بدرجه اولی کامیابه شو او په هغه کامیابئ کښې روښانه حصه دحضرت عمررضی الله عنه ده . یو څو نامعلومو کسانو د لیکلو تائید کړې وو . قوی احتمال دې چه دا حضرات به جدید الاسلام والا وی . صحابه کرامو رضی الله عنهم کښې که چرته یو ممتازشخصیت دا قول کړې وې نو دهغه نوم به ضرور په روایت کښې مذکور وو . کما هو ظاهر من داب المحدثین . پس دهغه جدیدالاسلام خلقو اختلاف حضور صلی الله علیه وسلم ته خوښ رانغلو چه دهغې اظهار د «قوموا عنی» په الفاظو سره اوفرمائیلو . د حضور صلی الله علیه وسلم دا ارشاد بطریقِ امتحان وو په دې باندې دوه زبردست دلیلونه دی

(۱) چه هر کله آیت «الیوم اکملت لک دینکم - الخ» د اکمالِ دین اود اتمام نعمت خبر ورکړې وو نو نامکن وو چه حضور صلی الله علیه وسلم دهغې نه پس دیو تحریرحاجت ښکاره کولوسره دین لره ناقص او نعمتِ خداوندی لره ناتمام گرځولې

(۲) تاسو چه کوم صفت د قرطاس والا تحریر بیان فرمائیلې دې ، هم دغه صفت چه دوه څیزونه چه هرکله دوی امت ته په لاس ورکړی وو (چه دغې ذکر حدیث ثقلین کښې تیرشو) نو اوس دغه تحریرځه حاجت وو ؟ دغې حاجت خو هغه وخت کیدلې شی چه کله په هغه دواړو څیزونو کښې دا صفت نه وې ، لهذا ناممکن ده چه حضورصلی الله علیه وسلم دخپل حدیث خلاف داسې خبره اوکړی . د علامه ابن تیمیه وغیره دا خیال دې چه هغه موقع باندې حضورصلی الله علیه وسلم د حضرت صدیق اکبر رضی الله تعالی عنه دپاره خلافت نامه لیکل غوختل اود صحیحینو هغه روایت لره خپل دې خیال باندې قرینه واثی چه حضورصلی الله علیه وسلم پخپل دې آخری مرض کښې حضرت عائشې رضی الله عنها ته اوفرمائیل چه خپل پلار او ورور لره راوغواړه دې دپاره چه زه د ابوبکر دپاره تحریراولیکم چه خلق خما نه پس اختلاف اونه کړی ، ددې نه پس دوی اوفرمائیل ښه ده پریږدئ « یابی الله والمؤمنون الا لابی بکر - آه » پس دوی لره په وحی سره مطمئن کړئ شوی وو ددې وجه نه هغه ارادې لره ترک اوفرمائیله . که چرته دې لره تسلیم هم کړئ شی چه مطمئن کیدلو نه پس هم دوی خلافتِ صدیق لیکل غوختل دې دپاره چه خلق اختلاف اونه کړی نو وروستو د دوی سکوت د حضرت عمررضی الله عنه په موافقت کښې وو چه په هغې کښې راز دا وو چه د انتخاب خلیفه ښائسته اصول (تفویض الی اهل الحل والعقد) قائمولوسره لاړ شی اود ولیعهدی د رسم جاهلیت تصور په اسلام کښې باقی پاتې نه شی ، ډیرو موقعو باندې دوی د وحی الهی نه پس د حضرت عمررضی الله عنه موافقت کړې دې ، په دې موقع باندې هم د دوی سکوت اود حضرت عمررضی الله عنه موافقت وحی الهی سره وو ، دې لره شیعه هم تسلیموی چنانچه د شیعه ګانو په کتابونو کښې نهایت معتبرکتاب فلک النجات ص ۳۲۲ جلد اول باندې هم دا الفاظ موجود دی . ((واماسکوته علیه السلام بعد التنازع فما کان من عنده بل کان بوحی) شعر :

اپنے من میں ڈوب کر پاجا سراغ زندگی ۔۔۔ تو اگر میرا نہیں بنتا نہ بن اپنا تو بن

پس د حضرت عمررضی الله عنه دا اختلاف که چرته بالهام الله تعالی اختلاف نظروو (کما وقع فی مواضع شتی) نو ددې په مناقبو کښې شمیر کول بدیهی دی او که چرته د شدت مرض او د دوی د تکلیف مدنظر دا اختلاف حضرت عمررضی الله عنه کړې وو نو ددې نوعیت بعینه د صلح حدیبیه په موقع باندې د لفظ رسول اخواکولو نه د حضرت علی رضی الله عنه د انکار په شان به وی چه هغه شیعه ګان مناقبِ علی کښې شماری

د دریم اعتراض جواب : دا خو بعینه هغه قول دې چه هغې لره پخپله حضورکریم صلی الله علیه وسلم په حجة الوداع کښې دغې نه درې میاشتې وړاندې په لاکهونو مجمع کښې فرمائیلې وو یعنې «لن تضلوا ماتمسکتم به » د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه د «حسبنا کتاب الله » وئیلو

که چرته هم دا مطلب دې نو په قرآن کښې دی «حسبنا الله» پس ددې مطلب هم دا پکار دې چه الله تعالی کافی دې ، د رسول ضرورت نشته دې . فها هو جوابکم فهو جوابنا .

ربښتیا دادې چه دا بناسته نا آشنا مقوله یعني «حسبنا کتاب الله» د ایمان روح دې اود فاروق اعظم رضی الله عنه د هغه کمالاتو آئینه ده چه دهغې نمونه دې آسمان د دومره لوئ وزن سره هیڅکله ونه لیدله. فقط. وهذا آخر الکلام والحمد لله رب العالمین .





بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَمَا تَوْفِيْقِيْ إِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيْبُ

# مجالُ التحْرِیْر لخیالِ الزَمْهرِیْر

## د «اشتکت النار الی ربها» حدیث متعلق زور تحقیق

د حضرت الاستاذ العلام مولانا مفتی رشید احمد صاحب لدهیانوی ثم خیرپوری محدث دارالعلوم کراچی دامت برکاتهم تقریر بخاری نه یو اقتباس .

عن النبی صلی الله علیه وسلم انه قال اذا اشتد الحر فابردوا بالصلوة فان شدة الحر من فیح جهنم واشتکت النار الی ربها فقالت یارب اکل بعضی بعضا فاذن لها بنفسین نفس فی الشتاء ونفس فی الصیف وهو اشد ما تجدون من الحر واشد ما تجدون من الزمهریر ......... جامع بخاری ص ۷۶ ج ۱)

آیا په جهنم کښې د زمهریریه طبقې وجود هم شته : په تمام امت کښې عام طور سره دا مسلمه گڼلې شوې ده چه جهنم طبقهٔ ناریه او طبقهٔ زمهریریه دوو حصو باندې مشتمل دې .

د طبقهٔ زمهریریه ثبوت د کتابونو په ذخیره کښې او سنتو کښې چرته هم نه ملاویږی . بلکه قرآن کریم کښې خو ﴿ لَا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرْدًا وَلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾ إِلَّا حَمِيمًا وَغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ ﴾ فرمائیلې شوې دې . نکره تحت النفی راوړلو سره د جنهم نه ئې د برودت اود زمهریر سلب کلی اوکړو . د برداً تخصیص د نافع سره صحیح نه دې . ځکه چه برد د ضار استثناء نه ده ځنګه چه «الاحمیما وغساقا» سره د شراب ضار استثناء کړې شوې ده . که چرته تخصیص بالقرائن لره کافی گڼلې کیدلې نود شراب ضارد استثناء هم ضرورت نه وو . د قرآن او حدیثو په اصطلاح کښې خو جهنم مرادف د «نار» جوړ شوې دې . هم دا وجه ده چه کتاب وسنت کښې چرته چرته چه د جهنم تذکره ده هغلته دوزخ لره د

جهنم په لفظ سره کم او د «نار» په الفاظو سره زيات تعبير کړئ شوي دي.
چنانچه قرآن کښې ارشاد دې «فاتقوا النار التي وقودها الناس والحجارة» «عليهم نار مؤصدة» «كانها ترمي بشرر كالقصر» هم دغه شان فرمائيلې شوی دی «كلما نضجت جلودهم بدلنا هم جلودا غيرها» د نضج لفظ په دې خبره باندې واضح دليل دې چه د جهنميانو عذاب به صرف اور وی د د داغ ورکولو په باره کښې ارشاد دې «يوم تكوى بها جباههم وجنوبهم وظهورهم» دلته هم د کئ لفظ استعمال شوې دې چه معنى ئې ده داغول. حديث کښې دی چه عصاة المومنينو لره به د اور نه په داسې حال کښې راويستلې شی چه هغوی به سوزيدلو سره کوئله شوی وی او هغوی ته به په نهرحياة کښې غسل ورکولې کيږی او وې فرمائيل چه اور به دهغوی په زړونو باندې اثرنه شی کولې. ابوطالب به په زحزاح اورکښې وی. د «أريت النار، عرضت على النار حابسه هره» او اول من سيب السوائب متعلق ئې اوفرمائيل چه ما هغوی لره په اورکښې اوليدل او وې فرمائيل چه څما مثال د هغه سړی په شان دې چه هغه اور بل کړې وی په هغې کښې پتنګان پريوځی هغه. هغه پتنګانو لره د اور نه د بچ کولو کوشش کوی مګر دې په هغوی باندې غالب راځی او په اور کښې داخليږی. غلول باندې ئې وعيد اوفرمائيلو «ان الشملة التي اصابها يوم خيبر من المغانم لم تصبها المقاسم لتشتعل عليه نارا» او وې فرمائيل «هو الذي اوهو الذي من نار» غرض داچه بې شميره مثالونه په کتاب اوسنت کښې د داسې قسم موجود دی چه جهنم باندې د نار اطلاق کړې شوې دې. هغه ټولو مثالونو لره که چرته يوځائ کړې شی نودهغې نه يو غټ کتاب تياريدلې شی. زير بحث حديث کښې هم «اشتکت النار الى ربها» اوفرمائيلې شو. اشتکت الزمهرير ندی ويلې شوی، اود نفسين اذن هم نارته ورکړې شو. که چرته د زمهريريه طبقې وجود وې نود قرآن او د حديثو په دومره لويه ذخيره کښې چرته خو دهغې تذکره ضرور پکار وه ياکم ازکم د قرون مشهودلها بالخير صحابه، تابعينو يا د مذهب ائمو رحمهم الله نه بايد يوقول منقول وې.

بياداچه که چرته د زمهريريه طبقې وجود لره بالفرض تسليم هم کړې شی نويو زبردست اشکال مخې ته راځی چه کوم وخت د يخنئ شدت وی هغه وخت کښې هم د تاخيرصلوة حکم وې حالانکه حديث کښې صرف د «ابردوابالصلوة فان شدة الحر» ذکر دې، که چرته د زمهريريه طبقې وجود دې نوپه يخنئ کښې هم مونږ لره دموخرکولوحکم به وې ځکه چه يخنی هم دهغه دساه خارج کولو سره وی اوځنګه چه حرارت د غضب په آثارو کښې دې هم دغه شان برودت هم د غضب په آثارو کښې دې همدارنګه عنقريب به بيانوم چه شدت حرارت لنفس جهنم يا لقرب الشمس کښې منافاة نشته ددې وجه نه چه شمس هم د جهنم نه حرارت اخذ کوی، پس حرارت شمس بعينه حرارت د جهنم دې. په دې باندې به دا اشکال واردیږی چه که چرته جهنم کښې طبقهٔ زمهريريه هم ده

نو ځنګه چه شمس د جهنم نه حرارت اخذ کولو سره دنیا کښې شدتِ حرارت پیدا کوی هم دغه شان د یخنئ په موسم کښې به لازمیږی چه شمس د جهنم نه برودت اخذ کولو سره زمکه باندې واچوی چه د شدتِ زمهریریه باعث جوړ شی حالانکه د شدتِ یخنئ په موسم کښې هم شمس کښې برودت نه وی بلکه صرف حرارت وی.

**د حدیث مطلب**: اوس دا بحث باقی پاتې کیږی چه کله د زمهریریه طبقې ثبوت نشته نو بیا د «اشد ماتجدون من الزمهریر» مطلب څه دې؟ او په دنیا کښې د یخنئ وجه او سبب جهنم ځنګه دې؟ هغې باندې د پوهیدلو دپاره یو څو مقامات ضروری دی:

(۱) ګرمئ سره څیزونو کښې انبساط پیدا کیږی او یخنئ سره انقباض، هم دا وجه ده چه د ریلوې لائن دوو ټکړو لره د یوځائ کولو په وخت دهغوی په مینځ کښې څه خلا باقې ساتی ځکه که چرته پخپل مینځ کښې پیوست کولوسره هغه ملاؤ کړی نو د پایو په چلیدلو اود موسم په ګرمیدلو وغیره سره شدید حرارت پیدا کیدلو نه پس د لائن په اجزاؤ کښې انبساط کیدلو د وجه نه دهغې د پاسه د ښتلو خطره وی چه دهغې نتیجه د ګاری د الټه کیدلو یا د درونډ والی نه د لائن ماتیدلو په صورت کښې ښکاره کیدلې شی.

(۲) متخلخل څیز سپک وی او متکاثف درونډ لکه وانبه او اوسپنه

(۳) سپک څیز سریع الحرکت سهل الانجذاب وی او د محرک او جاذب اثر لره زر قبلوی او درونډ څیز بطئ الحرکت اومتعسر الانجذاب وی. د محرک او جاذب اثر لره زر نه قبلوی.

اوس په دې پوهه شئ چه کله جهنم خپله ساه بهر غورځوی نو د بهر هوا د ګرمئ د وجه نه متخلخل کیږی بیاد جهنم دویمه[1] ساه دننه کیږی بهرکیږی نه. ددې وجه نه چه کله هغه ساه دننه کړی نو ګرمه هوا د تخلخل د وجه نه چونکه سپکه وی لهذا د ساه سره دننه لاړه شی او یخه هوا چونکه متکاثف وی ددې وجه نه په هغې کښې سپک والې نه وی. درونډ والې وی لهذا هغه دنیا کښې پاتې شی اود یخنئ باعث جوړیږی، په هغه هوا کښې یو جانب نه د کرة الماء او دویم جانب نه د زمهریریه تلاصق هم د برودت باعث جوړیږی.

**حدیث باندې فلسفیانه اشکالات**:- په دې حدیث باندې د اهلِ فلسفه د جانب نه دا اشکال پیش کولې کیږی چه تجربې او مشاهدې سره دا امر ثابت دې چه د دنیا د یخنئ او ګرمئ سبب د نمر نزدې والې او لرې والې دې چه کله نمر د دنیا کومې حصې سره نزدې کیږی نو هغلته ګرمی وی اود کوم ځائ نه چه لرې کیږی هغلته یخنی وی. نو بیا د یخنئ او ګرمئ سبب د جهنم ساه لره ګرځول

---

[1] حضرت مولانا شبیر احمد صاحب عثمانی هم په فتح الملهم کښې هم دې لره اختیارفرمائیلی دی ۱۲منه

کوم حده پوري صحیح دی ؟

ددې دوه جوابونه دی : یوخو دا چه اسبابو کښې تزاحم نه وی ، د یو څیز اسباب مختلف او متعدد کیدلې شی چنانچه د یخنۍ اود گرمۍ په اسبابو کښې یو سبب څنګه چه د نمر قرب او بعد دې هم دغه شان هغه هم دې چه په حدیث کښې بیان کړۍ شو ، بلکه دهغې نور هم ډیر اسباب دی ، مثلاً اوچت ځاۍ باندې کیدل د یخنۍ باعث دې هم دغه شان د سمندر یا د غره قرب اوبعد ، صلابت اورخاوت کښې د قطعات ارض اختلاف ، د جنس ارض انواع شوره ، د گندهک وغیره د آثارو اختلاف ، د ریاح (بادونو) دباؤ او احتباس او احتقان وغیره ، که چرته صرف د نمر قرب او بعد سبب وې نود سبّی اود کوئټه په موسم کښې به دومره تفاوت نه وې حالانکه د دواړو په عرض البلد کښې صرف د ۴۳ د قیقو فرق دې ، ددې باوجود کوئټه یخه ده او سبی سخت گرم دې ، په دې جواب باندې بیا یوځو اشکاله واردیږی ، یو دا چه که چرته د جهنم د وجه نه موسم بدلیږی نو پکار دی چه قطب شمالی او قطب جنوبی (عرض تسعین) کښې هم شپږ میاشتې یخنی او شپږ میاشتې گرمی وی حالانکه هغلته همیشه یخنی ده گرمی نه ده، همدغه شان میل کلی یعنې د مدارسرطان اود مدارجدی (تقریباً ½ ــ ۲۳ درجه عرض البلد ) دننه اوسیدلو والا خلقو اته موسمونه وی ، هرفصل په کال کښې دوه ځله راځی نو داسې ولې دی، حرّ جهنم خو په ټوله دنیا باندې کیدل پکار دی ، ددې وجه نه د مدارسرطان اوجدی نه کم عرض البلد کښې هم د اتو فصلونو په ځاۍ څلور فصله کیدل پکار دی .

ددې جواب دادې چه ددې اعتراض ثبوت په دې امر باندې موقوف دې چه محققین دې عرض تسعین کښې د ټول کال موسم بالکل یوشان کیدل چه ذره برابرقدرې هم فرق نه راځی ، ثابت کړی ، که چرته ذره برابر هم فرق وی څنګه چه د عقل تقاضا ده ( څکه چه شپږو میاشتو پورې خو هغلته نمرراوتلې وی ، اګرچه هغه د افق نه تقریباً د (تقریباً ½ ــ ۲۳ درجې نه زیات اوچتیږی نه ) نو هیڅ اشکال نشته ، هم دغه شان ددې امر تحقیق دې اوکړۍ شی چه د میل کلی نه کم عرض البلد کښې مواسم ثمانیه کښې یو شتاء د دویمې شتاء نه او یو صیف د دویم صیف نه څه متفاوت دې یانه ، که چرته تفاوت دې نو هیڅ اشکال نشته او که چرته عدم تفاوت محقق شی نو د اصل اشکال د دفع کولو دپاره دویم جواب به متعین کیږی چه عنقریب راروان دې .

دویم اشکال دا کیږی چه نفسِ جهنم نه د حرارت دفعةً پیدا کیدل لازم وو ، حالانکه د موسم تبدیل په تدریج سره وی ، ددې جواب دادې چه د دفعةً حرارت پیدا کیدل اود موسم بدلیدل د صحت دپاره سخت مضر دې ددې وجه نه الله تعالی نفسِ جهنم نه خارجیدونکی حرارت لره یو ځاۍ باندې محقق کوی او په تدریج سره یې په زمکه باندې خوروی ، همدارنګه دا هم ممکن دې بلکه

ظاهر هم دادې چه نفس جهنم دفعةً نه خارجيږي بلکه بتدريج خارجيږي اودهغې د ظهور وجه داده چه کله دجهنم مشابهت د حيوان سره اوشو په تنفس کښې او دا هم معلومه شوه چه په ټول کال کښې دوه ساه ګانې د جهنم دی يو خارج او دويمه داخل نود حيوان په شان د تنفس د حرکاتو اتصال هله کيدلې شی چه هريو نفس شپږو مياشتو پورې بتدريج ممتد وی .

دريم اشکال دا کيږی چه د جهنم حرارت د شمس د قرب سره اود جهنم برودت د شمس د بعد سره متلازم ولې دې . کله ددې برعکس ولې نه کيږی ؟ ددې جواب دادې چه د شمس د حرارت د مناسبت د وجه نه حرارتِ جهنم هم په هغه زمانه کښې ښکاره کيږی په کومه زمانه کښې حرارتِ شمس . که چرته د بعدشمس په زمانه کښې حرارت جهنم اود قرب شمس په وخت کښې برودتِ جهنم پيدا کيدلې نو د حرارت او برودت په اجتماع سره به ټول کال موسم يوشان وې او مختلف فصلونه به نه پيدا کيدلې چه سراسرخلافِ حکمت دې . نيز موسمِ صيف کښې د حرارتِ شمس تحمل کولو دپاره قدرتِ الهيه باطن جسم کښې حرارت پيدا کوی .پس په کومه زمانه کښې چه دکوم څيز د تحمل اود مقابلې استعداد قدرت پيدا کړو دهغه هم په هغه زمانه کښې پيدا کيدل د حکمت او مصلحت مقتضی دې . د اصل اشکال دويم جواب دادې چه د آفتاب حرارت هم دجهنم نه ماخوذ دې او هغه د جهنم حرارت پخپل ځان کښې جذب کولوسره په زمکه باندې پريږدی څنګه چه د بجلۍ بلب د پاورهاوس نه بجلۍ لره جذب کولوسره رڼا کوی او آتشی شيشه د نمر شغلو لره جذب کولوسره مقابل څيز باندې غورځولوسره هغه سوزوی . پس سبب ظاهری خو هم دا نمر دې ليکن په هغې کښې چه کوم حرارت دې دهغې سبب جهنم دې لهذا د يخنۍ او ګرمۍ سبب جهنم لره ګرځول بالکل صحيح دی بيا په دې باندې هم دا اشکال کيږی چه دا تقرير هغه امر لره مستلزم دې چه نفسِ نمرکښې حرارت کم وبيش وی . په يخنۍ کښې دهغې حرارت کميږی او ګرمۍ کښې زيات . حالانکه حقيقت ددې خلاف دې . د يخنۍ په موسم کښې د يخنۍ دا معنی هيچرې نه ده چه د آفتاب نه حرارت کم شوې دې بلکه آفتاب کښې خو تمازت دومره قدرې وی څومره چه د ګرمۍ په موسم کښې وو مګر ددې وجه نه زيات محسوسيږی نه چه آفتاب د زمکې نه لرې کيږی ددې جواب دادې چه دا اشکال په هغه امر باندې موقوف دې چه د آفتاب په حرارت کښې د کمۍ بيشۍ عدم لره ثابت کړئ شی ممکن دې چه په يخنۍ اوګرمۍ کښې ذاتِ شمس کښې حرارت مختلف وی مګر مونږ ته دا فرق نه محسوسيږی . دويم داچه که چرته تسليم کړئ شی چه تفاوت نشته دې نو دا به ونيلې کيږی چه آفتاب د جهنم د نفسِ خارج نه حرارت لره جذب کولوسره دهغې داسې مستقر جوړيږی چه د جهنم نفس داخل هغه حرارت لره واپس نه شی راښکلې . پس نفس داخل محض ګرمې هوا لره راکاږی د آفتاب حرارت لره نه . که چرته په دې باندې دا شبه وارده کړې شی چه د شمس سابقه حرارت علی حالها قائم وی نو هر آئنده کال د نفس خارج د اثر نه په هغې کښې اضافه

كيدل پكار دى نو ددې جواب به دا وركولې كيږي چه د حرارت په يو خاص درجې سره د ترلې نه كولو دوه وجې كيدلې شي يو دا چه حرارت لره قبلولو والا جسم د يو خاصې او محدودې درجې استعداد لرى د هغې نه زيات استعداد بالكل نه وى لكه د بجلئ آتشى شيشه د خپل استعداد او د مخصوص درجې مطابق حرارت اخذ كولې شي دويمه وجه دا وى چه د منفعل درجۀ حرارت د موثره درجۀ حرارت نه زياتيدلې نه شى . مثلاً تهرماميتر يو منټ اينبودلو باندې چه كوم درجۀ حرارت ښكاره كوى يو گهنټې پورې ايخودلو پورې به هم هغه درجۀ حرارت وى په هغې كښې به اضافه نه كيږي پس جهنم خواه ساه دننه اخلي يايې بهر غورځوى، بهرصورت د آفتاب په گرموالى او حرارت كښې هيڅ تفاوت او كمى اوبيشى نه كيږي .لهذا دا وئيل بالكل صحيح شو چه د آفتاب حرارت د جهنم نه ماخوذ دې لهذا د يخنئ او گرمئ سبب حقيقى جهنم دې . فقط والله تعالى اعلم برموز كالامه.

قد ضبط هذا التقرير اللطيف النفيس فى حلقة درس الجامع للبخاري احقر تلامذة الشيخ واصغر محمد تقى العثمانى الديوبندى ثم كراچوى غفرالله تعالى له ولوالديه والمشائخه ولجميع المؤمنين والمؤمنات آمين.

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العالمين.                شهر ربيع الاخر سنه هجرى

تقرير مذكور سره متعلق د استاذ العلماء حبر نحرير حضرت مولانا شمس الحق صاحب افغانى رايه.

احقر د اشتكاءِ نار په حديث باندې د حضرت مولانا رشيد احمد صاحب املائى تقرير ملاحظه كړو ، څما په نظر كښې هغه قواعد د شرع خلاف نه دى بلكه مطابق دى او حديث باندې وارديدلو والا د ټولو عقلى اشكالاتو چه كوم جوابونه وركړې شوى دى هغه نهايتِ قيمتى دى . شارحينِ حديث هغې طرف ته ډيره كمه توجه اوكړه .الله تعالى دې جزاء خير وركړى چه ډيرې اهمې غوټې ئې حل كړې . آمين ›› احقر العباد شمس الحق صاحب .

## د تير شوى تقرير ضميمه

يو ملگرى طبقۀ زمهريريه سره متعلق لاندې ليكلې شوى روايات ماته راكړل .

(۱) فى تنوير المقباس انه قال امام المفسرين عبدالله بن عباس رضى الله عنهما فى تفسير قوله عزوجل حميم وغساق ((حميم) ماء حار قد انتهى حره (وغساق) زمهرير يحرقهم كما تحرقهم النار (مجموعة التفاسير ص ج)

(۲) قال العلامة ابو البركات النسفى رحمه الله فى مدارك التنزيل وقيل الحميم يحرق بحره والغساق يحرق ببرده (مجموعة التفاسير ص ج)

(۳) وقال العلامة الخازن رحمه الله تعالى فى تفسيره وقيل الغساق عين فى جهنم وقيل هو البارد المنتن

(مجموعة التفاسير ص۳۰ ج۶)

(۲) وقال الفاضل الشربيني رحمه الله ((لا يذوقون فيها برداً)) قال عطاء والحسن اى راحة وروحاً اى ينفس عنهم حر النار (وبعد سطرين) وروى عن ابن عباس رضى الله عنهما ان البرد النوم ومثله قال الكسائى وابو عبيدة تقول العرب منع البرد البرد اى اذهب البرد النوم (وبعد سطر) وعن ابن عباس رضى الله عنهما الغساق الزمهرير يحرقهم ببردة (السراج المنير ص۴۷۰ ج۴)

(۵) وقال الامام ابن كثير رحمه الله اما الحميم فهو الحار الذى قد انتهى حره واما الغساق فهو ضده وهو البارد الذى لا يستطاع من شدة برده المولم ولهذا قال عزوجل (واخر من شكله ازواج) اى واشياء من هذا القبيل الشيء وضده يعاقبون بها (وبعد سطر) وقال كعب الاحبار غساق عين فى جهنم يسيل اليها حمة كل ذات حمة من حية وعقرب وغير ذلك فيستنقع فيؤتى بالادمى فيغمس فيها غمسة واحدة فيخرج وقد سقط جلده ولحمه عن العظام ويتعلق جلده ولحمه فى كعبيه وعقبيه ويجر لحمه كله كما يجر الرجل ثوبه رواه ابن ابى حاتم (تفسير ابن كثير ص۴۳ ج۴)

(۶) وقال العلامة الالوسي رحمه الله واخرج ابن جرير عن كعب انه عين فى جهنم تسيل اليها حمة كل ذى حمة من حية وعقرب وغيرهما يغمس فيها الكافر فيه تساقط جلده ولحمه واخرج ابن جرير وابن المنذر عن ابن عباس رضى الله عنهما انه الزمهرير (وقال فى تفسير واخر من شكله ازواج) واخر اى ومذوق اخر وفسره ابن مسعود رضى الله عنه كما رواه عنه جمع بالزمهرير (روح المعانى ص۲۱۷ ج۲۳)

(۷) وقال ابو حيان رحمه الله عن ابن مسعود رضى الله عنه واخر من شكله هو الزمهرير (البحر المحيط ص۴۰۶ ج۷)

(۸) وقال الشيخ ثناء الله واختلفوا الى معناه قال ابن عباس رضى الله عنهما هو الزمهرير يحرقهم ببرده كما تحرقهم النار بحرها وعن مجاهد ومقاتل هو الذى انتهى برده (تفسير مظهرى ص۱۸۶ ج۸)

دي رواياتو لره ليدلو سره خوشحالى اوشوه چه کم ازکم څه منشاء خو شته . ددي رواياتو د سند تحقيق بنده ونه کړي شو بهرکيف اوس دا لاندي امور قابلِ غورردى

(۱) محدثينو ددي رواياتو تخريج نه دي کړي . پس صرف د مفسرينو تخريج به وزن دار نه وى . فانه لكل فن رجال.

(۲) دا تفسير نه حقيقةً مرفوع دي نه حكماً . که چرته غيرِ مدرک بالقياس او غيرِ مستنبطٌ من القرآن وغير مفهوم من اللغه وي نو واقعى بحكم رفع به وو .

(۳) که چرته دا تفسير د حضورصلى الله عليه وسلم نه ثابت وي نو په دي کښي به د صحابو او من بعدهم اختلاف نه وي

(۴) د حضرت کعب احبار رضی الله عنه تفسیراو دهغه بیانِ فرموده تفصیل د غیرِ مدرک بالقیاس کیدلو د وجه نه د مرفوع په حکم کښې دې. پس قول زمهریر، چه موقوف دې، دهغې د معارضې صلاحیت نه لري.

(۵) بعضې مفسرینو هغې لره په «قیل» سره نقل کړې دې چه دلیل د ضعیف دې.

(۶) قرآن اوحدیثوکښې د انذاراو تخویف دپاره د انواع عذاب تفاصیل نهایت په بسط وشرح سره مذکور دی مګر د زمهریرذکر چرته هم نه ملاویږي، معرض بیان کښې سکوت د دلیل عدم دې

(۷) د قرآن او حدیث په اصطلاح کښې نار اوجهنم مترادف دی، او «لایذقون فیها برداً» کښې چه کوم تاویلات کړې شوی دی، په هغې کښې بلاضرورت د خلافِ ظاهراو متبادر قول کړې شوي دي چه جائز نه دي.

(۸) د حدیث زیرِ بحث (اشتکاء نار) تقریربهرکیف قولِ زمهریرنه مستثنی دې (کمامر)

فقط والله تعالی اعلم بتفاصیل کائناته، اللهم اعذنا برحمتك من جهنم ومافیها مما نعلم من انواع عذابها ومالانعلم، آمین.

رشید احمد ۲۷ جمادی الاخره سنه ۷۹ هجری





بسم الله الرحمن الرحیم

﴿یٰاَیُّهَا النَّبِیُّ قُلْ لِّاَزْوَاجِكَ﴾ (الی قوله تعالی) ﴿اِنَّمَا یُرِیْدُ اللّٰهُ لِیُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَیْتِ وَیُطَهِّرَكُمْ تَطْهِیْرًا ۚ وَاذْكُرْنَ مَا یُتْلٰی فِیْ بُیُوْتِكُنَّ﴾

# عمدة التفسیر لآیة التطهیر

## د اهلِ بیت تحقیق

**سوال**: شیعه وائی چه هرکله د قرآن کریم آیت ﴿اِنَّمَا یُرِیْدُ اللّٰهُ لِیُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ اَهْلَ الْبَیْتِ وَیُطَهِّرَكُمْ تَطْهِیْرًا﴾ نازل شو نو حضور صلی الله علیه وسلم اهلِ بیت یعنې حضرت علی، حضرت فاطمه، حضرت حسن، حضرت حسین رضی الله عنهم لره پخپله کمبل کښې داخلولو سره اوفرمائیل: «اللهم هؤلاء اهل بیتی» اودهغوی دپاره ئې دعا اوکړه، حضرت عائشې رضی الله

عنها هم د شرکت درخواست اوکړو نو دوی صلی الله علیه وسلم هغې ته اجازت ورنه کړو . ددې قصې څه حقیقت دې؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: آیتِ کریمه «**انما یرید الله - الایه**» کښې د اهلِ بیت نه مراد ازواجِ مطهرات رضی الله عنهن دی او په دې باندې لاندې دلائل دی:

(۱) ددې آیت په سیاق او سباق کښې د ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن ذکر دې.

(۲) ددې آیتونو شانِ نزول دادې چه د فتوحاتو نه پس ازواجِ مطهراتو رضی الله تعالی عنهن په مصارفو کښې د څه فراخئ درخواست اوکړو. په هغې باندې دا آیتونه ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلًا وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا﴾ نازل شو په دې کښې ازواجِ مطهراتو رضی الله تعالی عنهن ته اختیارورکړې شو چه هغوی دینا لره خوښوی یاد حضورصلی الله علیه وسلم معیت لره، په دې امتحان کښې حضرت عائشه رضی الله عنها د ټولو نه ممتازه او اعلی کامیابی حاصله کړه، نورې بیبیانې رضی الله عنهن هم کامیابه شوې چه هغوی هم د دنیا په مقابله کښې د حضورصلی الله علیه وسلم معیت اختیارکړو، په دې امتحان کښې د اعلی کامیابئ، اود اوچتې حوصلې اود الله اود الله درسول صلی الله علیه وسلم د رضاساتلو په صله کښې الله تعالی ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن باندې بې شمیره انعامات وکړل چه دهغې تذکره په دې آیتونو کښې ده، فرمائی.

(۱) ﴿وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا﴾ په دې آیت کښې ددې انعام بیان دې چه د ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن دپاره هرنیک کار باندې دوه چنده اجر دې.

(۲) ﴿يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ إِنِ اتَّقَيْتُنَّ﴾ په دې کښې دویم انعام ذکردې چه د ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن رتبې ته د دنیا یو ښځه هم نه شی رسیدلې.

(۳) ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ دادریم انعام شو.

(۴) ﴿وَلَا أَن تَنكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِن بَعْدِهِ أَبَدًا إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِندَ اللَّهِ عَظِيمًا﴾ دا څلورم انعام دې چه ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن لره امهات المؤمنین گرځولو سره همیشه دپاره امت باندې حرامې کړې شوې.

(۵) ﴿لَّا يَحِلُّ لَكَ النِّسَاءُ مِن بَعْدُ وَلَا أَن تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنْ أَزْوَاجٍ وَلَوْ أَعْجَبَكَ حُسْنُهُنَّ﴾ په دې کښې د پنځم

انعام ذکردي.

د ﴿ لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَاءُ مِنْ بَعْدُ ﴾ دوه تفسیرونه کړي شوي دي: یوداچه ماقبل کښې ذکر شوی صفات چه په کومو ښځو کښې ونه موندلې شي هغوی تاسو دپاره حلالې نه دي، ماقبل کښې د اقاربو دپاره د مهاجرات قید دې اود مطلق نساء دپاره د مؤمنات قید دې. ارشاد دې چه

﴿ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَاجَكَ اللَّاتِي آتَيْتَ أُجُورَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَيْكَ وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّاتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَالَاتِكَ اللَّاتِي هَاجَرْنَ مَعَكَ وَامْرَأَةً مُؤْمِنَةً إِنْ وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَنْ يَسْتَنْكِحَهَا ﴾

حاصل دادې چه په رشته دارو زنانو کښې غیرمهاجر او په نورو زنانو کښې کتابیه تاسو دپاره حلالې نه دي.

دویم تفسیرداچه هغه ازواجِ مطهرات چه ددې آیت د نزول په وخت کښې ستاسو په عقد کښې وې دهغوی نه سوانورې تولې زنانه په تاسو باندې حرامې کړې شوې «**ولا ان تبدل بهن من ازواج**» مطلب دادې چه په موجوده بیبیانو کښې چاره د بدلولو په نیت سره طلاق ورکول حلال نه دي. په دې کښې ازواجِ مطهراتو باندې دا انعام دې چه همیشه دپاره د حضورصلی الله علیه وسلم ذات لره دهغوی دپاره مخصوص کړې شو.

غرض داچه امتحان د ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن اوشو او په دې باندې دا انعامات هم دهغوی دپاره بیانیږي په دې سره ثابته شوه چه د اهلِ بیت نه ازواجِ مطهرات دي.

(۳) که چرته د اهلِ بیت نه علی، فاطمه، او حسنین رضی الله عنهم مراد واخستلې شي نو اشکال لازمیږي چه کله الله تعالی د حضورصلی الله علیه وسلم د دعا نه بغیر د تطهیراهلِ بیت بشارت ورکړې وو نو اوس بیا هغوی لره جمع کولوسره دهغوی د پاره د تطهیردعا کول تحصیلِ حاصل بلکه لایعنی او فائدې دي.

حقیقت دادې چه د اهلِ بیت نه مراد ازواجِ مطهرات دي، حضورصلی الله علیه وسلم چه کله د رحمت سمندر لره په جوش کښې اوکتلو نو اولاد لره ئې هم توسعا په اهلِ بیت کښې داخلولوسره دهغوی دپاره ئې هم د تطهیردعا اوکړه، یعنې ازواجِ مطهرات خو د اهلِ بیت په مفهوم کښې حقیقةً داخلې وې اودهغوی د تطهیربشارت بغیر د دعا نه ملاؤ شوې وو او اولاد لره حضورصلی الله علیه وسلم د اهلِ بیت په مفهوم کښې توسعاً داخلولوسره دهغوی دپاره یې د تطهیردرخواست اوکړو.

چنانچه د ام سلمه رضی الله عنها اود بعضې نورو روایاتو مطابق حضرت عائشې رضی الله عنه چه کله د شمولیت درخواست اوکړو نوارشاد اوشو «انک علی خیر» یا «انک الی خیر» یعنې تاسو

دهغوی نه بهترحالت باندې ثې ، ځکه چه ستاسو تطهیرخو الله تعالی ځما د درخواست نه بغیر فرمائیلې دې .

**اشکال** : آیتِ تطهیر کښې دمذکرصیغې دی،دهغې نه ازواجِ مطهرات اخستل څنګه صحیح دی؟

**جواب** : د مؤنث دپاره د جمع مذکر صیغه استعمالول کلامِ عرب کښې معروف دی ، قرآن کریم کښې د حضرت موسیٰ علیه السلام په قصه کښې دی «**قال لاهله امکثوا**» شرح شواهد الکشاف کښې فرمائی **ربما خوطبت المرأة الواحدة بخطاب الجمع المذکر یقول الرجل عن اهله فعلوا کذا (الی قوله) ومنه قوله تعالی حکایة عن موسی علیه السلام قال لاهله امکثوا** . ددې نه پس ئې دوه شعرونه هم پیش کړی دی . شعر :

**فان شئت حرمت النساء سواکم — وان شئت لم اطعم نقاخا ولا بردا**

**فان تنکحی انکح و ان تتایمی — و ان کنت افتی منکم اتایم**

**(ص۳ طبع مصر)**

د ذکر شوی جواب نه علاوه دا جواب هم ورکړې شوې دې چه لفظ د «اهل» مذکر دې دده د رعایت د وجه نه مذکر صیغې راوړلې شوی دی .

دریم جواب دادې چه اهلِ بیت کښې په خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم هم دی ددې وجه نه په صیغه د تذکیرسره خطاب اوفرمائیلې شو .

شیعه ګان وائی چه آیتِ تطهیرپه اصل کښې بل مقام باندې وو ، جامعینِ قرآن هغه په ازواجِ مطهراتو باندې منطبق کولو دپاره ذکرازواج په مینځ کښې ایخودلې دې .

ددې جواب دادې چه شیعه پخپل قولِ مذکور کښې په خپله د تحریفِ قرآن د عقیدې اعتراف کوی او حقیقت هم دادې چه د شیعه په قرآن کریم باندې ایمان نشته ، د تفصیل دپاره د بنده رساله «حقیقتِ شیعه» اوګورئ ، پس هرکله چه شیعه په قرآن کریم باندې ایمان نه لری اودهغه د محرف کیدلو عقیده لری نو دقرآن ددې آیت نه هغوی دائمه د تطهیراو عصمت دپاره استدلال په کومه خله کوی ؟ بیا که چرته دهغوی قولِ مذکور بفرضِ محال تسلیم هم کړئ شی نو لفظ اهلِ بیت لره ائمه سره مخصوص کولو او ازواجِ مطهراتو رضی الله عنهن لره دهغې د مفهوم نه خارجولو باندې څه دلیل دې ؟

بعضې حضرات د اهلِ بیت تخصیص بالازواج دپاره لاندې دلائل بیانوی .

(۱) ﴿ قَالُوٓا أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ رَحْمَتُ ٱللَّهِ وَبَرَكَٰتُهُۥ عَلَيْكُمْ أَهْلَ ٱلْبَيْتِ إِنَّهُۥ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ﴾ کښې حضرت ساره علیها السلام ته اهلِ بیت سره خطاب کړې شوې دې .

(۲) ﴿ فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُ لَكُمْ وَهُمْ لَهُ نَاصِحُونَ ﴾ کښې اهلِ بیت نه ام موسی علیه السلام مراد دی.

(۳) عام عرف کښې ((اهلِ خانه)) ((اهلِ بیت)) ((اهلیه)) او ((کوروالا)) صرف هم ښځې ته وئیلې کیږی.

(۴) د کور په افرادو کښې د ښځې نه سوا بل چالره په کورکښې همیشه دپاره قیام نه وی چنانچه مذکر اولاد بالغیدلو نه پس خپل کور جدا جوړوی. بلکه هلکان چه ترڅو پورې والدینو سره وی هغه زمانه کښې هم دهغوی زیات وخت د کور نه بهر تیریږي. او جینکئ واده کیدلو نه پس د کور نه رخصتیږی. مګر دا دلائل وزنی نه دی.

د قرآن کریم. احادیثو اود کلام عرب په مواقع استعمال باندې نظر اچولو سره دا حقیقت مخې ته راځی چه توسعاً د اهلِ بیت اطلاق د کور په ټولو افرادو باندې بلکه په پوره خاندان باندې وی. اګرچه په کورکښې یوځائ نه اوسیږی. دحضرت ساره علیها السلام سره د ملائکو په خطاب کښې هم د اهلیت نه پوره خاندان مراد دې.

خلاصه د بحث داچه آیتِ تطهیرکښې د سیاق سباق او شانِ نزول مدنظر د اهلِ بیت خطاب هم ازواجِ مطهراتو سره مخصوص معلومیږی. حضوراکرم صلی الله علیه وسلم توسعاً اولاد لره هم په هغوی کښې شامل کړو بلکه پخپله آیت کښې هم صیغه د تذکیر هغه توسع طرف ته اشاره کیدلې شی ممکن ده چه حضوراکرم صلی الله علیه وسلم هم ددې اشارې په بناء باندې د اولاد دپاره دعا فرمائیلی وی. فقط والله تعالی اعلم.

۷جمادی الاخره ۹۲هجری

# کتاب السلوک

## رفع د تعارض په مابین دمختلفو عباراتو کښې

## په باره د اصلاح کښې له غیر اصلاح نه

**سوال** آیا دیو داسې سړی سره اصلاحی تعلق ساتل چه په فن کښې خو بصیرت لری مګر صالحه نه وی صحیح ده اوکه نه ؟ په دې باره کښې حضرت تهانوی رحمه الله تعالی په دوو مختلفو ځایونو کښې تحقیقی تحریرفرمائیلې دې:

(۱) فرمائی چه د شیخ ولی کیدل ضروری نه دی ، مقبول کیدل یې ضروری نه دی ، البته د فن پیژندل او په هغې کښې مهارت یې ضروری دې . لکه طبیب چه دهغه پرهیزګارکیدل ضروری نه دی د فن پیژندل البته ضروری دی ، هم دغه شان که چرته اعمالِ صالح وی ،تقوی وی . ولایت به حاصل شی اوکه نه نوشیخ نه وی. البته دا ضرور ده چه که چرته شیخ ولی هم وی نوډهغه په تعلیم کښې به برکت زیات وی ، (ملفوظات کمالات اشرفیه مطبوعه مکتبه تهانوی ص ۳۱ ملفوظ ص ۲۸).

(۲) کارِ مرداں روشنی وگرمی ست کاردوناں حیلہ وبے شرمی ست

پیژندل پکار دی چه څنګه د مرضِ ظاهری د علاج دپاره د داسې طبیب ضرورت دې چه پخپله هم صحیح اوتندرست وی مریض نه وی او د نورو علاج هم کولې شی ځکه چه که چرته پخپله مریض وی نوبیا دا طبی مسئله ده چه : «رائ العلیل علیل» . اګرچه هغه طبیب دې مګر دهغه رایه قابلِ اعتماد نه ده ، که چرته هغه صحیح او تندرست دې مګر دعلاج طریقه نه پیژنی نو بیا هم هغه دمریض مطلوب ندې اګرچه پخپله ښه دې ، هم دغه شان د امراضِ باطنی د علاج دپاره د داسې شیخ او مرشد حاجت دې چه پخپله هم متقی اوصالح وی . مبتدع اوفاسق نه وی اود نورو هم تکمیل اوکړې شی . ځکه چه که چرته بدې عقیدې او بدعمله وی نو اولاً په هغه باندې دا اطمینان نشته چه دې به خیرخواهئ سره تعلیم کوی بلکه غالبه خو هم داده چه په عقیده کښې دخپل ځان په شان د جوړولو کوشش به کوی او عمل کښې هغه ته به ددې وجه نه نصحیت نه شی کولې چه پخپله دهغې کوونکې دې . هم دا خیال به یې وی چه که چرته نصحیت اوکړم نو دا سړې به پخپل زړه کښې دا وائی بلکه غالبه داده چه خپل ځان نیک ثابتولو لره به خپلې بدعملئ لره په تاویل سره صحیح کول غواړی نو په دې کښې دلوئې ګمراهئ خطره ده . دویم دا چه دهغه په تعلیم کښې به انوار اوبرکات اوتاثیراو امداد غیبی نه وی . الخ . په دې کښې تطبیق یا ترجیح بیانولو سره تسلی اوکړئ . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : **وجه د توفیق** : اول عبارت نه مقصد دادې چه غیرولی ماهرفن نه

داسې خواص چه په صحيح او سقيم كښې امتياز كولې شي په دوو طريقوسره استفاده كولې شي.
(الف) تشخيص دمرض اوتجويز دعلاج كښې دهغه بيان شوى كلياتو لره پيش نظر ساتلوسره دخپلو حالاتو جائزه واخلى او د جزئياتو راتللو والا تشخيص او تجويز لره دهغه ماهرفن د بيان شوى كلياتو نه دې استنباط كړى.
(ب) دعلاج په غرض خپل حالات دې دهغه وړاندې پيش كړى اودهغه د تشخيص او تجويز د صحت اوبيمارئ جائزه دې واخلى ، كه چرته د ذوقِ سليم په وجه دهغه په تشخيص او تجويز باندې زړه مطمئن وى نو هغې باندې دې عمل وكړى والا فلا ، ددې مثال دهغه سړى په شان دې چه طبيب كامل خو نه دې مگر د طبيبِ كامل د رائې د صحت او بيمارئ معلومولو استعداد لرې ، حاصل دا چه غيرِ ولى په فن كښې كه هرڅنگه مهارت لرى په غرض دعلاج دهغه وړاندې كامل تسليم اوتفويض ، انقياد اواعتماد ، اطلاع او اتباع بدون له تفكر اوتدبر نه هيڅرې جائز نه ده ، د دويم عبارت همدا مطلب دې.

## د ترجيح وجوه

(۱) د كليدِ مثنوى مضمون مدلل دې اود ملفوظاتو غيرمدلل ، لهذا د كليد مثنوى مضمون به راجح وى ، ملفوظاتو كښې چه د طبيب سره بطورتمثيل دليل بيان كړې شوې دې هغه هم مخدوش دې ځكه چه د طبيب ولى كيدل اگرچه ضرورى نه دى مگر صحيح وتندرست كيدل ضرورى دى .
پس څنگه چه د طبيبِ ظاهرامراض ظاهره نه تندرست كيدل ضرورى دې بعينه هم دغه شان د طبيبِ باطن امراض د باطن نه تندرست كيدل ضرورى دى ، د رائ العليل عليلٌ اصول د مسلم او مشاهدومنقول كيدلو نه علاوه معقول هم دى ، په دې وجه چه د علاج دپاره كمالِ عقل وكمالِ سكون ضرورى دې اود مرض د وجه نه د بل قوى په شان قوةِ عقليه كښې هم ضعف راتلل لازم او مشاهد دې ، نيز د تكليف د وجه نه چه كوم انتشار پيدا كيږى په هغې سره قوةِ فكريه كښې دكاركولو پوره صلاحيت نه پاتې كيږى بعينه هم دغه شان مريضِ باطن د كمالِ عقل وسكونِ قلب نه خالى وى ، كمالِ عقل په هغه كښې ددې وجه نشته چه شريعت عينِ عقل دې ددې وجه نه قرآن كريم صرف كامل الايمان خلقو ته د «رجال» لقب وركړې دې ، وقال العارف الرومى رحمه الله تعالى :

در اشارتهاش را بينى زنى — مرد پندارى وچوں بينى زنى
اين قدر عقلے كه دارى گم شود — سركه عقل ازوے بپردوم شود

پس كوم حده پورې يې چه په شريعت كښې نقصان وى هغه حده پورې به په عقل كښې فتور لازم وى او سكونِ قلب ځكه نه شى كيدلې چه دهغې تحصيل منحصر دې په تعلق مع الله كښې بس

خومره چه دا تعلق کمزوري وی سکونِ قلب به ناقص وی اودهغې ضد یعنې انتشار به موجود وی نوثابته شوه چه غیرولی د کمالِ عقل وکمالِ سکون نه خالی وی . د ضعفِ عقل اود انتشار شکاروی لهذا په هغه کښې د معالج جوړیدلو صلاحیت نشته

(۲) د کلید مثنوی اوله حصه حضرت اقدس پخپله پخپل قلم سره لیکلې ده لهذا دهغې نسبت حضرت طرف ته بلاواسطه دي اود ملفوظاتو نسبت بواسطۀ ناقل دې چه په هغې کښې احتمال الخطا فی السماع والفهم والتعبیرموجود دې .

(۳) دا امرمسلم دې چه د یو کتاب په تصنیف باندې کوم حد، پورې تحقیقِ عمیق نظرسره کار اخستلې کیږی په عامو ملفوظاتو کښې دومره اهتمام نه وی اونه کیدلې شی . لهذا که چرته هغه ملفوظاتو لره حضرت د تصحیح په غرض کتلی هم وی نو بیا هم دهغې په مقابله کښې د کلیدمثنوی تحقیق به واجب القبول وی . والتوفیق احسن من الترجیح .

فقط والله تعالی اعلم وهو العاصم ولا حول ولاقوة الابه ولا ملجاولامنجامنه الاالیه

رشید احمد ۲۷جمادی الاخره سنه ۸۲هجری-

## جواب له طرفه د مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله تعالی:

بسم الله الرحمن الرحیم

د رفع تعارض چه کوم تقریر پورته ذکرکړې شوې دې هغه هم صحیح اومحتمل دې لیکن خما زړه ته په اول کرتې دا خبره زیاته نزدې ده چه کمالاتِ اشرفیه کښې یوعلمی تحقیق او امکانِ عقلی باندې بحث دې چه شیخ که چرته ماهرفن وی اود مرید تدبیرصحیح وکړی مگرپخپله عامل نه وی نو مرید دهغه د اتباع نه درجه کمال ته رسیدلې شی نه عقلاً څه څیز مانع دې نه شرعاً . «ان الله یؤید هذالدین بالرجل الفاجر» او امثال ددې دپاره کافی دی

او کلید مثنوی کښې هغه طریقه ښودلې شوې ده چه عادةً ضروری ده . تجربه او عادت په هغې باندې شاهد دې چه محض امکانِ عقلی سره چرته په دنیا کښې کار نه چلیږی ترڅوپورې چه اسباب مناسب اختیارنه کړې . فاسق سړې اگرچه ماهرفن وی په هغه باندې دا اعتماد نه شی کیدلې چه هغه به ددہ تدبیرصحیح اوکړی شی . چه هرکله اعتماد نشته نوعلاج بیکاره دې .

خلاصه داده چه ړومبیې مضمون د علمی تحقیق اود امکانِ عقلی اوشرعی بیان دې چه عموماً د اصلاحِ حال دپارهٔ عادةً اوتجربةً کافی کیږی نه او په دویم مضمون کښې صحیح طریقه اوښودلې شوه چه دهغې نه بغیر عادةً اصلاح نه کیږی

بنده محمدشفیع ازدارالعلوم کراچی

۲۸ رجب المرجب سنه ۸۶ هجری

## بیعت مقصود نه دي اصلاح مقصود ده

**سوال** : که چیرته زید د یو پیر مرید نه وي او هغه مړ شي یا په ټول عمرکښې چالره مرشد جوړ نه کړي نو څه قسمه ګناه خو به نه وي ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له بیعت نه مقصود اصلاح ده او هغه هلته کیږي چه دیو کامل سره اصلاحي تعلق اوساتي اګرچه بیعت نه وي ، بیعت مقصود نه دي اصلاح مقصود ده ، فقط والله تعالی اعلم . غره رمضان ۸۸ هجری

## د تصوف حقیقت

**سوال** : نن سبا عام طوریاندې دمدارسِ دینیه یوځو استاذان او طلبه او دهغوی نه علاوه نورو عام لره هم کتلې کیږي چه هغوئ تصوف او اهلِ تصوف ته د نفرت په نظرسره ګوري اوهغوی پورې خندا کوی لهذا دهغې وضاحت کولوسره موثر ته تسلي راکړئ چه د تصوف شرعاً څه حقیقت دې اودهغې د قرآن اوحدیثو نه څه ثبوت دې ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د آخرت نه د بې فکره د تصوف نه د برطرفئ سبب دادې چه چه د تصوف په ذریعې اصلاحِ باطن او فلاحِ آخرت حاصلیږي چه دعلم نه اصل مقصود دې ، چونکه تصوف حبِ جاه اومال کښې د مبتلا ملایانو د نفساني تقاضو خلاف دې ددې وجه نه هغوی ددې تحقیرکوی ، ددې مثال بعینه دادې چه په عوام الناس کښې هغه خلق چه په هغوی کښې د دین فکر نه وي او هغوی آزادانه ژوند تیرول غواړي هغوی علماءِ دین ته د نفرت په نظر سره ګوري او پخپلو مجالسو کښې هغوی پسې بدې ردې وائي چه دهغې وجه صرف همداده چه هغوی دخپلو نفساني خواهشاتو په تکمیل کښې علماءِ حق لره خنډ ګنې ، د تصوف ضرورت د قرآن او حدیثو نه ثابت دې علاوه ددې نه عقلاً هم دهغې ضرورت بدیهي او ښکاره دې ددې تفصیل دادې چه د احکامِ شریعت دوه قسمه دي : (۱) ظاهرسره متعلق (۲) باطن سره متعلق .

د اعمالِ باطنه وجود قرآن او حدیث نه ثابت دې اودهرسړي وجدان هم دهغې شهادت ورکوی ، علاوه ددې نه مسلمات عقلیه او متفق علیه حقائقو کښې دې ، قرآن کریم کښې ارشاد دې «**وذروا ظاهرالاثم وباطنه**» ددې نه علاوه حسد ، کبر ، ریا ، حب مال ، حبِ جاه وغیره رذائل اود دهغې متقابلات صفاتِ محموده ، اخلاق رذیله نه د تخلیه او اخلاق حمیده نه د تحلیه حکم ، د اول علاج اود دویم د تحصیل طریقې قرآن او حدیثو کښې باربار ډیر په کثرت سره ذکر دی ، بس هغه اعمال باطنه یعنې د رذائلو ازاله او اخلاق حمیده د تحصیل سره متعلق د علم نوم تصوف دې

که عقلی لحاظ سره هم وکتلې شي نو بیا هم د تصوف ضرورت بدیهي دې په دې وجه چه هرکله

امراضِ باطنه په نصوصِ شرعیه سره ثابت دی او مشاهده دی نو دا به هم تسلیمول پیښیږی چه الله تعالی به دهغې د اصلاح او د علاج طریقې هم ښودلې وی ورنه الله تعالی طرف ته به د ظلم نسبت کیږی چه اخلاق رذیله خو ئې پیدا کړه مگر دهغې علاج ئې ونه ښودولو .

حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله تعالی نه د فقه تعریف داسې منقول دې : «الفقه معرفة النفس مالها وماعلیها» «توضیح ص ۱۰» داتعریف تصوف ته هم شامل دې بلکه اعمالِ باطنه چونکه زیات اهم دی تردې پورې چه د اعمالِ ظاهره وجود وعدم اودهغه اعتبار هم اعمالِ باطنه باندې موقوف دې ددې وجه نه د تعریف مذکور مطابق د فقه اهمه شعبه تصوف شو . د فقه اعمالِ ظاهره سره تعلق ساتلو والا شعبه ثانوی درجه لری . د علم باطن د اهمیت پیشِ نظر د فقهې دهغه شعبې نوم «تصوف » کیخودلې شو مگر بې عمله مولیانو تصوف لره د فقه د مفهوم نه داسې اوچت کړو چه د فقه په لفظ کښې تصوف طرف ته د هیڅ قسمه التفات څه گنجائش پرئ نه خودلو .

غرض داچه د تصوف حقیقت صرف دومره دې چه اعمالِ باطنه سره متعلق علم حاصل کړې شی او دهغه ضرورت قرآن او حدیث . فقه او عقل سره ثابت شو . باقی د مصلح کار صرف دا پاتې کیږی چه هغه په یو سړی کښې د مرض تشخیص کولو سره نسخه تجویز کوی مرض اوعلاج خو منصوص دې . د مرض تشخیص اود نسخې تجویز خو مصلح کوی . ددې نه علاوه مصلح بعضې داسې تدابیر اختیاروی چه دهغې تعلق فراست او تجربې سره دې چونکه هغه تدابیرو لره مقصود نه گنلې کیدل بلکه ذریعه مقصود (اصلاح باطن ) دی ددې وجه نه دهغه تدابیرو ثبوت د قرآن اوحدیث نه ضروری پاتې نه شو .

داسې بې فکره ملایانو ته که چرته څوک د اصلاحِ باطن مشوره ورکوی نودهغوی نفسِ اماره دا عذر پیش کوی چه نن سبا یو بزرگ داسې نشته چه دهغه نه اصلاح وکړې شی هم دداسې خلقو په باره کښې حضرت رومی رحمه الله فرمائی ، شعر :

آب کم جو تشنگی آور بدست ‌ ‌ ‌ ‌ تا بجوشد آبت از بالا و پست

د معالج نه ملاویدلو شکایت د دې خبرې دلیل دې چه د علاج فکر نشته او مرض لره مرض نه گنلې کیږی . د امراضِ جسمانیه د علاج خو دا حالت دې چه لږ شانتې په خیته کښې درد وی نو هرسړی د معالج په لټه کښې شروع شی مگر د آخرت فکر نشته ددې وجه نه د معالج نه ملاویدلو شکایت کولې کیږی . آیا دا الله تعالی طرف ته د ظلم نسبت به نه وی چه امراضِ باطنه خو ئې پیدا کړه مگر معالج ئې یو هم پیدا نه کړو ، یا داسې تعبیر وکړئ چه د آخرت د تباهئ اسباب ئې پیدا کړه مگر دهغې نه د نجات حاصلولو یوه لاره یې هم پیدا نه کړه ، که چرته داسې اوونیلې شی چه هرکله د امراض باطنه علاج په قرآن او حدیثو کښې موجود دې نو علماء خپل علاج هم پخپله

کولې شي چا سره هم د اصلاحي تعلق ساتلو ضرورت نشته ، دا خیال دديٍ وجه نه صحیح نه دي چه اولاً قرآن او حدیث کښې مذکوره نسخو له صرف اهلِ فن پیژنی د نورو علماؤ هغه ځائ پورې رسیدل نه کیږی .ثانیاً د امراضِ جسمانیه علاج صرف د طب د کتابونو په مطالعې سره نه شي کیدلې بلکه دهغې دپاره یوماهرِ فن طرف ته رجوع کول ضروری دی هم دغه شان د امراضِ باطنه علاج هم بغیر د صحبتِ کامل نه نه شي کیدلې ، ضرورتِ صحبت باندې مزید دلائل د بنده په کتاب ارشاد القاری الی صحیح البخاری کښې مذکور دی ، الله تعالی دې مونږ تولو ته د آخرت فکر او د شوقِ وطن نعمت رانصیب کړی ، د نفس او شیطان د چالونونه دې پخپل امن کښې اوساتی ، والله العاصم ۱۵ جمادی الاخری سنه ۹۲ هجری

## دحضرت علی رضی الله عنه سره د حسنِ بصری رحمه الله ملاقات او حضرت علی رضی الله عنه نه د باطني سلسلو د ابتداء حکمت

**سوال** : له بعضې حضراتو نه معلومه شوې ده چه د حضرت حسن بصری رحمه الله ملاقات حضرت علی رضی الله عنه سره نه وو شوې لیکن سلسله چشتیه کښې دا لیکل کیږی چه حضرت علی رضی الله عنه د حضرت حسن بصری رحمه الله پیر(مرشد) وو او ددې وجه هم ولیکئ آیاچه صرف د نقشبندیه سلسلې نه سوا باقی تولې سلسلې دحضرت علی رضی الله عنه شروع شوې وې؟ د دوارو خبرو جواب په تفصیل سره ولیکئ . بینواتوجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

د حضرت حسن بصری رحمه الله تعالی ملاقات د حضرت علی رضی الله عنه سره ثابت دې (۱)
(تهذیب التهذیب) دیو صحابی څه جزئی فضیلت د بل صحابی دمطلقِ فضیلت سره منافی نه دې چنانچه حضرت صدیق اکبررضی الله عنه ته دمطلقِ فضیلت حاصلیدلو باوجود د فتوحاتو فضیلت حضرت عمر رضی الله عنه ته او د کثرتِ روایتِ حدیث فضیلت حضرت ابوهریره ، انس ، عائشه رضی الله عنهم ته دې ، هم دغه شان د اشاعتِ علمِ باطن جزئی فضیلت حضرت علی رضی الله عنه ته دې ، مشهور حدیث «انا مدینة العلم وعلی بابها» کښې شاید هم دا مراد وی ، ددې یوعقلی وجه دا هم ده هغه داچه د افادې او استفادې باطنی دپاره خاص مناسبت او مزاج ضروری دې او دا مر نسبی تعلق خصوصاً پرورش والا ماشوم کښې زیات ښکاره وی ، فقط والله تعالی اعلم

۱۱ جمادی الاخره سنه ۸۹ هجری

## د شیخ کامل علامات

**سوال:** دیو متبع سنت شیخ کامل علامات اود هغه پیژند څه دی ، آیا دشیخ اودهغه د مریدانو دپاره دشریعت اتباع ضروری ده ، اوآیا شریعت باندې د تللو نه علاوه هم معرفت حاصلیدلې شی ؟ آیا اصلاح باطن او تزکیه نفس د اتباع شریعت نه علاوه حاصلیدلې نه شی؟ اوکه دواړه څیزونه اتباع شریعت او شریعت باندې پوره پوره عمل کولو باندې موقوف دی که چرته څوک اووائی چه شریعت او معرفت دواړه څیزونه جدا جدا دی ، د داسې سړی په باره کښې دشریعت څه فیصله ده ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شیخ کامل علامات دادی:

(۱) دهغه د ژوند په هره شعبه کښې پوره طور باندې متبع سنت وی او خپل متعلقینو او مریدانو ته هم هره معامله کښې د اتباع سنت تلقین اوتاکید کوی.

(۲) د امیرانو او غنیانو (مالدارو) په ځائ صلحاء او علماء حق هغه طرف ته زیات متوجه وی اودهغه سره عقیدت لری.

(۳) هغه سره کیناستلوسره د الله تعالی یاد اود آخرت فکر او د دنیا نه بې رغبتی پیدا کیږی.

(۴) هغه سره د اصلاحی تعلق ساتلو والا اکثریت ظاهراً اوباطناً د شریعت پابند وی.

داتباع شریعت نه سوا د تزکیهٔ نفس او داصلاح باطن هیڅرې یو صورت ممکن نه وی قال الله تعالی: ﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣١﴾﴾ وقال الله تعالی ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ ۚ﴾ کوم سړې چه معرفت او طریقت لره د شریعت نه جدا ګرځوی هغه ملحد ، بې دینه او زندیق دې . حکومت اسلامیه باندې فرض دی چه د هغه د وژلو حکم ورکړی . فقط والله تعالی اعلم .

غره رمضان المبارک ۹۳هجری

## د کرامت پیژندنه

**سوال:** د کرامت صحیح تعریف څه دې . آیا هره اعجوبه کرامت دې ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کرامت داسې کار ته وائی چه د یو پابند شریعت او مکمل متبع سنت ولی الله نه بطور خرق عادت صادر وی . کوم سړې چه مکمل طورباندې د شریعت پابند نه وی هغه که چرته څه اعجوبه وښائی نو هغه به کرامت نه وی بلکه استدراج ، سحر یا مسمریزم وغیره به وی . فقط والله تعالی اعلم .

صفرسنه ۹۴ هجری

## شريعت ، طريقت ، حقيقت ، معرفت، جهاد اكبر

**سوال :** د تصوف اصطلاحات شريعت ، طريقت ، حقيقت ، او معرفت څه مطلب دي ؟ آيا دا څيزونه د شريعت نه جدا دي ؟ وضاحت سره يې وليکئ ! بينوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب :** شريعت د احكام ظاهري اوباطني مجموعه ده او طريقت صرف احكام باطنيه ته وئيلې کيږي ددې وجه نه طريقت د شريعت نه جدا يو څيز نه دې بلکه د شريعت يوه شعبه ده . د شريعت ټول د احكام ظاهريه اوباطنيه دكاملې اتباع په دولت سره د بعضې حقائق تكوينيه اوتشريعيه انكشاف کيږي دا حقيقت دې . د شريعت د اتباع اودعلومو د انكشافاتو د وجه نه دالله تعالى په معرفت او محبت كښې اضافه کيږي هغې ته معرفت وائى . الله تعالى دې مونږ ټولو لره محض د اصطلاحاتو د چکر نه ويستلو سره خپل معرفت او محبت عطاء كړى . آمين

فقط والله تعالى اعلم . ۷ذي قعده سنه ۹۲ هجري

## جهاد اكبر

**سوال :** عام طور باندې مشهوره ده چه صوفيای کرام د نفس مجاهدې ته جهاد اكبر وائى .آيا ددې د قرآن او حديث نه څه ثبوت شته ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اعدى عدوك نفسك التي بين جنبيك اخرجه البيهقي ( كنوز الحقائق ) ،وقال صلى الله عليه وسلم المجاهد من جاهد نفسه .رواه الترمذي وصححه واخرج الديلمي عن جابر رضي الله عنه قال عدم على النبي صلى الله عليه وسلم قوم غزاة فقال قدمتم خير مقدم قدمتم من الجهاد الاصغر الى الجهاد الاكبر مجاهدة العبد هواه ( كنز العمال ) واليه اشار العارف الرومي رحمه الله تعالى، شعر :

قد رجعنا من جهاد الاصغريم ۔۔۔ با نبی اندر جهاد اکبریم

ددې نصوص نه علاوه هسې خو هم ښکاره ده چه كافرانو سره دجهاد نه اصل مقصد د دين حفاظت دې او هغه مجاهدهٔ نفس او مخالفت كيدلو باندې موقوف دې .فقط والله تعالى اعلم

۲ربيع الاخر سنه ۹۷ هجري

## د صاحب نسبت تعريف

د بعضې بزرگانو په باره کښې وئيلې کيږي چه فلانې صاحب نسبت دې، ددې څه مطلب دې ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د هرمخلوق الله تعالى سره بې شميره نسبتونه دى ، مثلاً هغه

خالق دي مونږ مخلوق . هغه رازق دي مونږ مرزوق هغه قادر دي مونږ مقدور . هغه مکون دي مونږ مکوّن وغیره . ددي نسبتونو د استحضار اود اتباع شریعت په وجه انسان لره الله تعالی سره یو خاص تعلق پیدا کیږی هغې ته د صوفیه کرامو په اصطلاح کښې نسبت وئیلې کیږی . حضرت تهانوی رحمه الله تعالی دنسبت تعریف باللازم داسې فرمائیلې دي « دوام اطاعت اوکثرتِ ذکر» کوم سړی ته چه دا دوه امور حاصل شی هغه ته صاحبِ نسبت وائی ، اللهم اجعلنا منهم آمین . فقط والله تعالی اعلم . ۲۰ ربیع الاول سنه ۸۲هجری

## تشریح د حال اومقام

د بعضې بزرگانو نه مو اوریدلی دی چه فلانکې صاحبِ حال دې ، دهغې نه څه مراد دې ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په حقیقت کښې حال اومقام دوه متقابل اصطلاحګانې دی . «المقامات مکاسب والاحوال مواهب » یعنې مقام هغه ملکهٔ راسخه ده چه د کسب اوریاضت نه حاصله شوې وی . هغې لره عموماً دوام وی ،کالتوکل والصبر وغیرها . او حال بلااختیاره پیدا کیدلو والا وارد قلبی ته وئیلې کیږی چه اکثر زائل کیږی کالشوق والوجدوالاستغراق ، دمقام معامله صرف د الله تعالی سره وی د عوامو نه دهغې آثار پټ وی او حال اکثرخلق باندې هم ښکاره کیږی . کما قال العارف الرومی رحمه الله تعالی ، شعر :

حال چوں جلوہ ست زاں زیبا عروس — ویں مقام آں خلوت آمد با عروس
جلوہ بیند شاہ وغیر شاہ نیز — وقت خلوت نیست جز شاہ عزیز
جلوہ کردہ عام وخاصاں را عروس — خلوت اندر شاہ باشد با عروس
ہست بسیار اہل حال از صوفیاں — نادرست اہل مقام اندر میاں

بعضې وختونو کښې حال بالمعنی الاعم الشامل للمقام هم استعمالیږی . فقط والله تعالی اعلم
۲۰ ربیع الاول سنه ۸۲ هجری

## د حضرت علی رضی الله عنه نه د حسن بصری رحمه الله استفاده

**سوال** : اسماء الرجال کتابونوکښې تصریح ده چه د حضرت حسن بصری رحمه الله تعالی ملاقات دحضرت علی رضی الله تعالی عنه سره ثابت نه دې . په دې صورت کښې د سلسله چشتیه انقطاع لازمیږی . امید دې چه په دې باندې لږ تفصیل سره رڼا واچوئ او مونږ مطمئن کړئ. والاجر عندالله الکریم .

**الجواب باسم ملهم الصواب** . لاندې رواياتو نه دحضرت حسن بصرى رحمه الله تعالى د حضرت على رضى الله عنه سره لقاء اوسماع ثابت ده .

(۱) قال ابن سعد ولد (الحسن البصري) لسنتين بقيتا من خلافة عمر رضى الله تعالى عنه ونشأ بوادى القرى وكان فصيحا راى عليا (تهذيب التهذيب)

(۲) روى عن ابى بن كعب وسعد بن عبادة وعمر بن الخطاب ولم يدركهم وعن ثوبان وعمار بن ياسر وابى هريرة وعثمان ابن ابى العاص ومعقل بن سنان ولم يسمع منهم وعن عثمان وعلى الخ (تهذيب التهذيب)

که چرته د حضرت على رضى الله عنه نه هم روايت بدون سماع وي نو دلته به د عدم سماع تصريح وه .

(۳) عن يونس بن عبيد سالت الحسن قلت يا ابا سعيد انك تقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم وانك لم تدركه قال يا ابن اخى لقد سالتنى عن شىء ما سالنى عنه احد قبلك ولولا منزلتك منى ما اخبرتك انى فى زمان كما ترى (اى فى عهد الحجاج) كل شىء سمعتنى اقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فهو عن على بن ابى طالب غير انى فى زمان لا استطيع ان اذكر عليا .(حاشية تهذيب التهذيب من تهذيب الكمال)

او په لاندې رواياتو كښې د سماع نفى ده :

(۱) عن قتادة قوله ما حدثنا الحسن عن بدرى مشافهة (تهذيب التهذيب)

(۲) حدثنا حماد بن زيد عن ايوب قال ما حدثنا الحسن عن احد من اهل بدر مشافهة (تهذيب التهذيب)

(۳) سئل ابوزرعة هل سمع الحسن احدا من البدريين قال راهم رؤية راى عثمان وعليا قيل هل سمع منهما حديثا قال لا ، راى بالمدينة وخرج على الى الكوفة والبصرة ولم يلقه الحسن بعد ذلك وقال الحسن رايت الزبير يبايع عليا (تهذيب التهذيب)

(۴) قال على بن المدينى لم ير عليا الا ان كان بالمدينة وهو غلام (تهذيب التهذيب)

(۵) وفيها ان الحسن صحب عليا وهذا باطل باتفاق اهل المعرفة فانهم متفقون على ان الحسن لم يجتمع بعلى وانما اخذ عن اصحاب على اخذ عن الاحنف بن قيس بن عباد وغيرهما عن على وهكذا رواه اهل الصحيح (منهاج السنة جلد۴)

د نفى د رواياتو جوابونه

(۱) په رومبنو دوو روايتونو كښې د تحديث للراوى نفى نشته . د مطلقاً تحديث نفى ده

(۲) د اثبات په رواياتو كښې په دريم روايت كښې تيرشوى دى چه حضرت حسن بصرى رحمه

الله تعالی روایت کښې عمداً د حضرت علی رضی الله عنه ذکر نه کولو . لهذا انکارِ سماع په عدم علم باندې مبنی دې .

(۳) اصولاً نفی باندې اثبات راجح دې .

(۴) پنځم روایت کښې د مطلقاً لقاء اود صحبت نفی مقصود نه ده بلکه د لقاء ممتد نفی مقصود ده . « لکی تتحد معانی الاثار ولا تتضاد » چنانچه روایتِ رابعه کښې د دوارو مدینه منوره کښې په یو وخت موجودیدلو لره تسلیمولو باوجود د عدم رؤیت محمل صرف هم دا کیدلې شي چه د رؤیتِ طویله نفی مقصود ده . په هغه روایت کښې لفظ غلام قادح نه دې ځکه چه غلام مختص بالصغیرنه دې . دوی د حضرت عمررضی الله عنه د شهادت نه دوه کاله وړاندې پیدا شو نودحضرت علی رضی الله عنه دانتقال الی الکوفه په زمانه کښې به دوی بالغ یا مراهق وې .

حضرت عمررضی الله تعالی عنه په ۲۴هجری کښې او حضرت عثمان رضی الله تعالی عنه په ۳۵ هجری کښې شهید شو . او په ۳۶هجری کښې حضرت علی رضی الله عنه د مدینې منورې نه کوفې طرف ته تشریف یوړو په دې حساب سره هغه وخت دحضرت حسنِ بصری رحمه الله تعالی عمر به څوارلس کاله وو . حریص علی الخیر کیدلو باوجود دومره عمره پورې هم په یو مقام کښې عدم لقاء او عدم سماع ډیره بعیده ده . غرض داچه دوی ته صحبتِ طویله حاصله نه شوه . دباطنې استفادې دپاره اگرچه بالعموم صحبتِ طویله ضروری ده مگر دا قاعده کلیه نه ده .

که چرته بالفرض عدمِ سماع هم تسلیم کړې شي نودحضرت علی رضی الله عنه نه به ئې استفاده بالواسطه کړې وی . په دې کښې څه حرج دې ؟ فقط والله تعالی اعلم .

۵جمادی الاخره سنه ۹۷هجری

## مسئله دوحدة الوجود

**سوال** : بعضې جاهل صوفیان « همه اوست » وائی ددې څه مطلب دې ؟ وضاحت سره یې بیان کړئ . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : « همه اوست » د مسئله وحدة الوجود یو عنوان دې . څنګه چه د صوفیانو په اصطلاح کښې توحید . عینیت اومظهریّت وغیره هم ددې مسئلې مختلف عنوانونه دی . حاصل ددې دا دې چه د الله تعالی وجود کامل دې اودهغه په مقابله کښې د ټولو ممکناتو وجود دومره ناقص دې چه کالعدم دې . عامه محاوره کښې دکامل په مقابله کښې ناقص لره معدوم سره تعبیرولې کیږی لکه دیو لوئ علامه په مقابله کښې معمولی تعلیم یافته لره یا د یو مشهور پهلوان په مقابله کښې معمولی شخص ته وئیلې کیږی چه دی خو دهغه په مقابله کښې هیڅ څیز نه دې . حالانکه دهغه ذات او صفات موجود دی مگر د کامل په مقابله کښې هغه معدوم گرځولې کیږی . هم دغه شان د الله تعالی د وجودِ کامل وړاندې د تمام مخلوق وجود لره حضرات

صوفیه معدوم گرځوي ، حضرت شیخ سعدي په دوو مثالونو کښې ددې ښه وضاحت کړې دې ارشاد دې : اول مثال : ع :

مگر دیده باشی که درباغ وراغ — بتابد بشب کرمکے چوں چراغ

یکے گفتش اے مرغک شب فروز — چه بودت که بیروں نیائی بروز

ببیں کاتشیں کرمک خاک زاد — جواب از سرِ روشنائی چه داد

که من روز وشب جز بصحرانیم — ولے پیش خورشید پیدانیم

دویم مثال بیانوي : ع :

یکے قطره از ابر نیساں چکید — خجل شد چو پہنائے دریا بدید

که جائیکه دریاست من کیستم — گراوهست حقا که من نیستم!

همه هرچه هستند ازاں کمترند — که با هستیش نامِ هستی برند

ذکر شوی تقریر سره معلومه شوه چه د وحدة الوجود دا معنی نه ده چه د ټولو ممکناتو وجود د الله تعالی د وجود سره متحد دې بلکه دهغې مطلب دادې چه وجودِ کامل صرف واحد دې ، بقیه موجودات کالعدم دي ، د «همه اوست» هم دا مفهوم دې لکه چه څوک د الله په دربار کښې درخواست پیش کړي ، بادشاه هغه ته وړوکو حکامو طرف ته د رجوع مشوره ورکړي او دې په جواب کښې اووائی چه جناب هم تاسو ټول هرڅه یئ . نو ددې دا مطلب نه دې چه ټول حکام تاسو سره متحد دي بلکه مطلب دا دې چه ستاسو وړاندې ټول حکام کالعدم دي .

هم دغه عینیّت اصطلاحِ صوفیه کښې بمعنی احتیاج دې ، په دې معنی سره جمله مخلوق عینِ خالق دې یعنې دهغه محتاج دې . بیا کله په عینیت کښې دا قید لګوي چه دهغه احتیاج معرفت هم وي . په دې معنې سره صرف د عارف دپاره عینیت ثابتوي . بیابعضې وختونو کښې یو قید مزید زیاتوي چه هغه معرفت کښې دومره استغراق وي چه جمله مخلوق تردې پورې چه خپل ذات طرف ته هم التفات پاتې نه شي وبهذا المعنی قال العارف الرومی رحمه الله تعالی ، ع :

آں یکے راروئے اوشد سوئے دوست — وں یکے را روئے اوخودروئے دوست

د جاهلو صوفیانو د فتنې نه د امت د حفاظت دپاره اهلِ ارشاد د وحدة الوجود اصطلاح لره په وحدة الشهود سره بدله کړې ده . په هغې کښې د فتنې خطره نشته . ځکه چه په هغې کښې دغیر د وجود نفی نشته بلکه دهغې مفهوم دادې چه جمله موجوداتو کښې شهود او التفات صرف یو ذات طرف ته دې . فقط والله تعالی اعلم — ۵جمادي سنه ۹۷ هجري

## د فناء اوبقاء تشریح

**سوال** د فناء د مقام څه معنی ده؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:**

دالله تعالی دذات اوصفاتو د غلبهٔ شهود د وجه نه خپل د ذات اوصفات نه بې خبرئ ته فنا وائی . فناءِ صفات ته قربِ نوافل . او فناءِ ذات ته قربِ فرائض ونیلې کیږی . چونکه حدیثِ قدسی (( ومایزال عبدی یتقرب الی بالنوافل حتی احببته فاذا احببته کنت سمعه الذی یسمع به وبصرہ الذی یبصر به ویده التی یبطش بها ورجله التی یمشی بها (رواه البخاری) )) کښې فناءِ صفات لره تقرب بالنوافل باندې مرتب کړې شوې دې ددې وجه نه صوفیه دې درجې ته قربِ نوافل وائی اود فرائضو درجه دنوافلو نه زیاته ده . چنانچه هم ددې حدیث په شروع کښې دی « وما تقرب الی عبدی بشیء احب الی مما افترضت علیه » ددې وجه فناءِ ذات لره چه افضل ده فناءِ صفات نه قربِ فرائض وائی .

بیا دهغه فناء هم علم پاتې نه شی نو دا فناء الفناء ده څنګه چه ویده دخپل خوب نه هم بې خبره دی . بعضې حضرات بقاء یعنې فناء نه افاقه ته فناء الفناء وائی .

فناء اوبقاء په یو بله معنی کښې هم استعمالیږی . زوالِ رذائل ته فناء او حدوثِ فضائل ته بقاء ونیلې کیږی . فقط والله تعالی اعلم .

۲ جمادی الاخره سنه ۹۷ هجری





## (رساله)

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ

فکر آں باشد کہ بکشاید رہے      راہ آں باشد کہ پیش آید شہے (رومی)

# استيناس الابد بشرح فضل العالم على العابد

## بسم الله الرحمن الرحيم

## د تاليف وجه

يو خلې د لاهور په سفر جامعه اشرفيه کښې زما حاضري وشوه دهغه ځائ يو عالم اووئيل چه «خما په خيال کښې علماؤ ته د ذکر اوشغل او نوافلو اوتلاوت په ځائ درس اوتدريس او افتاء اوارشاد کښې مشغوليدل زيات ضروري دي» .

هغوی دخپل دې خيال په تائيد کښې حديث «فضل العالم على العابد كفضلي على ادناكم» اووئيلو بنده عرض اوکړو چه « کوم عالم ذکراوتلاوت وغيره عبادات نافله کثرت سره نه کوی هغه د شرع په اصطلاح کښې عالم نه دې» ما په دې باندې دکتاب الله اوسنت رسل الله څه دلائل بيان کړل . دا قصه د مازيګر اود ماښام په مينځ کښې راغله . د ماښام د مونځ نه پس هغه عالم تشريف راوړو او وې فرمائيل چه : « ستاسو د بيان نه متاثر کيدلو سره زه نن اوابين کوم »

ما د کراچئ نه واپس راتللو په وخت کښ د سفر په حالاتو کښې دا قصه هم ذکرکړه . هغه وخت يو صاحب تيپ ريکاډ لګولې وو ، په هغې کښې دا بيان محفوظ شو اوريدلو والا ډير خوښ کړو اودهغې د اشاعت ضرورت ئې بيان کړو .بنده ته هم خيال اوشو چه « څه لرې نه ده چه الله تعالى د عالم مذکور په شان په هغه غلط فهمئ کښې مبتلا نورو علماؤ لره هم دا بيان نافع جوړ کړي »

چنانچه ما دا مضمون د تيپ نه نقل کولو سره د استاذمحترم حضرت مولانا مفتي محمد شفيع صاحب رحمه الله تعالى په خدمت کښې په غرض د اصلاح پيش کړو . دوی ډير خوشحاله شو . په هغې باندې ئې خپل تاثر وليکلو او وې فرمائيل چه «د دارالعلوم ټولو استاذانو لره جمع کولوسره دې دا مضمون واروليې شي . » د حضرت مفتي صاحب په نظر کښې دومره اهميت ثابتيدلو نه پس دهغې د اشاعت فيصله اوکړې شوه . الله تعالى دې قبول کړی اومونږ ټولو دپاره دې نافع جوړ کړی . وفقنا الله الجميع لما يحب ويرضى . آمين

**رشيد احمد** ۷ صفر سنه ۹۷ هجري

## دحضرت مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمه الله تعالی تاثر

بسم الله الرحمن الرحيم

**د عزیز محترم** مولانا رشید احمد صاحب زاده الله تعالی فضلاً وکمالاً د «فضل العالم علی العابد» حدیث سره متعلق مضمون ما په شوق واوریدلو ماشاء الله د حجت په اعتبارسره سنګین اود اثر په اعتبارسره رنګین دې.

دا حقیقت دې چه د فقهاء کرامو داسې اقوال چه هغې سره ثابتیږی چه د علم دین د کتابونو مطالعه یادرس اوتدریس، قیام اللیل نه افضل دې په دې سره ډیر اهلِ علم په دې مغالطه کښې مبتلاکیږی چه تهجد او نوافل او اورادو لره بالکلیه ترک کولوسره ټول وخت تبلیغ اوتعلیم کښې خرچ کړی . لیکن په خپله د حضراتِ فقهاء ، محدثینو او د ټولو علماؤ سلفوخلفو تعامل اوکتلې شی نو هم دا ثابتیږی چه په هغوی کښې چا هم اهم نوافل تهجد وغیره او اهم اذکارو لره پریخودلو سره علمی خدماتو لره اختیار کړی نه دی بلکه علمی خدماتو سره د اورادو اذکار او تهجدو او نوافلو سلسله یی هم برابره جاری ساتله.

ما دخپلو بزرګانو نه اوریدلی دی چه حضرت امام قاضی ابویوسف عینِ هغه زمانه کښې چه کله هغه د قاضی القضاة په عهده باندې مامور اودهغې د فرائضو په اداء کولو کښ مشغول وو د شپې به ئې درې سوه رکعته نوافل کول ، کوم حده پورې چه ماته یاد دی خلاصة الفتاوی کښې یو ځائ لیکلی دی ، چه هغه وخت سرسری لټون سره ملاؤ نه شو ، چه د سلفو علماؤ تعامل دا وو چه دورځې وخت به ئې زیات تر علمی خدمات درس اوتدریس، تبلیغ اوتعلیم یا تصنیف اوفتوی کښې صرف کول مګر د شپې لوئ عمل دهغوی تهجد او تلاوت وو او حقیقت دې چه د تعلیم اوتبلیغ خدمت هم مؤثر او مفید هغه وخت وی چه هرکله د تعلق مع الله اود ذکر الله لازمی تاثرات په هغې کښې موجود وی . والله المستعان.

بنده محمدشفیع عفاالله عنه دارالعلوم کراچی نمبر ۱۴ ، ۸۵ھ ۱۶ / ۱۲

بسم الله الرحمن الرحيم

**قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : (فضل العالم علی العابد کفضلی علی ادناکم).**

ددې حدیث پیشِ نظر بعضې علماء په دې غلط فهمئ کښې مبتلاشوی دی چه اهلِ علم ته دنفلی عباداتو په ځائ علمی مشغله ساتل پکار دی . اوابین تهجد او ذکر اوشغل وغیره کښې مشغولیدل صحیح نه دی . دا وخت د علم دین په خدمت کښې واشاعت کښې صرف کول افضل دی مګر دا محض مغالطه اود نفس او شیطان کید دې ، ددې وجه د حدیث مذکور د تشریح ضرورت پیښ شو

اولاً په دې پوهیدل ضروري دي چه د شریعت په نظر کښې علم څه ته وائي ؟ نو واضحه دې وي چه د شریعت په نظر کښې علم هغه معتبر دې چه په هغې سره خشوع اوخضوع او تقوی اوفکرآخرت او دحساب اوکتاب استحضار اود دنیا ومافیها نه زهد او آخرت طرف ته رغبت پیدا وي . لکه چه الله تعالی فرمائی : «انما یخشی الله من عباده العلماء » په دې سره معلومه شوه چه علم سره خشیت پیدا کیږي **وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم انا اتقاکم واعلمکم بالله ای انا اتقاکم لانی اعلمکم بالله**، په دې سره معلومه شوه چه زیادتِ علم د زیادتِ تقوی مورث دې . او وې فرمائیل «**فخرج علی قومه فی زینته ، قال الذین یریدون الحیاة الدنیا یالیت لنا مثل ما اوتی قارون ، انه لذو حظ عظیم ، وقال الذین اوتوالعلم ویلکم ثواب الله خیر لمن امن وعمل صالحا ، ولایلقاها الاالصابرون** » په دې آیتونو سره د جهل وعلم حقیقت معلوم شو چه حیاتِ دنیا باندې نظر ساتل جهل او ثواب الله باندې نظر کیدل علم دې او دا هم ثابته شوه چه د ثواب الله خیرٌ صرف اعتقاد حاصلیدل علم نه دې بلکه د تحققِ علم دپاره دهغې استحضار اودهغې مطابق عمل کول ضروري دي «**ولا یلقاها الاالصابرون**» سره ددې ئې نور زیات تاکید اوفرمائیلو لهذا خواه څوک د ټولې دنیا علوم حاصل کړي مگر بغیر د تقوی نه هغه د شریعت په نظر کښې د « کمثل الحمار یحمل اسفاراً » اود « چارپائے بروکتاب چند » مصداق به وي . عقلاً هم دا امر مسلم او بدیهی دې چه حقیقی علم معرفت خالق دې . ع

فکر آں باشد کہ بکشاید رہے  راہ آں باشد کہ پیش آید شہے

او دا هم مسلمه ده چه د یو څیز د صفاتو چه کوم حده پورې معرفت اوشی هم هغه حده پورې دهغې آثار به هم مرتب کیږي . پس د الله تعالی د شانِ جلالی اوجمالی معرفت نه پس غلبه شوق اوغلبه خوف اودهغه د آثارو ترتب لازم دې . دویمه خبره دا په ذهن کښې کینوئ چه تقوی او خشوع څنگه حاصلیږي ؟ د دې د تحصیل قرآن کریم په مختلفو ځایونو کښې متعدد طریقې بیان کړي دي . ارشاد دې چه : ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ ددې مضمون د تقریرخلاصه داده چه توجه الی الاخرة موقوف ده په زهد عن الدنیا پورې. څکه چه تحلیه بلا تخلیه ناممکن ده ؟

حضرت رومی رحمه الله فرمائی . ع

آئنت دانی چرا غماز نیست  زانکہ زنگار از رخش ممتاز نیست

رو تو زنگار از رخ او پاک کن  بعد ازیں ایں نور را ادراک کن

او زهد عن الدنیا نوم دې د حبِ دنیا د ازالې چه شامله ده حبِ مال اوحبِ جاه ته . پس فرمائی

چه د حبِ مال علاج صبر يعني ترک لذات اوشهوات سره اوکړه ، ددې وجه نه چه د تحصيلِ لذاتو دپاره به د مالِ ضرورت پيښيږي نو د مال طلب به زياتيږي . لهذا نفس لره د ترکِ لذات عادي جوړ کړه دې دپاره چه د مالِ کثير ضرورت پيښ نه شي قال البوصيري . ع .

النفس کالطفل ان تهمله شب على حب الرضاع وان تفطمه ينفطم

او د حبِ جاه علاج په مونځ سره اوکړئ . ددې وجه نه چه مونځ کښې سراسر عجز او انکسار دې او د مونځ د قيمتي کولو علاج خشوع يعني سکونِ قلب دې . داسې چه د اعضاء حرکات د زړه د حرکاتو (خيالات وارادات) تابع وی . ځکه چه مونځ کښې د سکونِ اعضاء قيود (يعنی تللو گرځيدلو وئيلو کتلو خوراک څکاک نه ممانعت ، هغه وخته پورې به گران معلوميږي ترڅو پورې چه په زړه کښې سکون پيدا نه شي او سکونِ قلب (خشوع) حاصلولو طريقه بيانوی چه د خپل رب نه د لقاء او حساب اوکتاب . جزا اوسزا مراقبه کوه .

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْۚ إِنَّ زَلْزَلَةَ ٱلسَّاعَةِ شَىْءٌ عَظِيمٌ يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ عَمَّآ أَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى ٱلنَّاسَ سُكَٰرَىٰ وَمَا هُم بِسُكَٰرَىٰ وَلَٰكِنَّ عَذَابَ ٱللَّهِ شَدِيدٌ﴾

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمْ وَٱخْشَوْاْ يَوْمًا لَّا يَجْزِى وَالِدٌ عَن وَلَدِهِۦ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِۦ شَيْـًٔا﴾ په دې دواړو آيتونوکښې د تقوى امر کولو سره دهغې د تحصيل طريقه ئې بيان کړه چه د قيامت او د هغه د خطرناکو منازلو مراقبه کوئ .

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱتَّقُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَٰحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَآءً﴾ په دې کښې د تحصيلِ تقوى دپاره د باری تعالى د قدرتِ قاهره د مراقبې حکم يې اوفرمائيلو

﴿وَإِنَّهُۥ لِحُبِّ ٱلْخَيْرِ لَشَدِيدٌ أَفَلَا يَعْلَمُ إِذَا بُعْثِرَ مَا فِى ٱلْقُبُورِ وَحُصِّلَ مَا فِى ٱلصُّدُورِ إِنَّ رَبَّهُم بِهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّخَبِيرٌۢ﴾ په دې کښې ئې د حبِ مال علاج دا بيان کړو چه د حشراوحساب اوکتاب مراقبه کوئ .

حضور صلى الله عليه وسلم د تقوى او د آخرت فکر پيدا کولو دپاره د مرگ د مراقبې تعليم اوفرمائيلو ((اکثروا من ذکر هازم اللذات الموت)). ((کفى بالموت واعظا زوروها)) (القبور) فانها تذکر الاخرة. ((ان تعبدالله کانك تراه فان لم تکن تراه فانه يراك)). کښې يې د ذاتِ حق د مراقبې حکم اوفرمائيلو . ((حقيق بالمرء ان يکون له مجالس يخلو فيها ويذکر ذنوبه فيستغفر الله منها (هب) سره يې د

محاسبې تاكيد اوفرمائيلو.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَلْتَنظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ﴾ دلته يې د تقوى اختيارولو دپاره د اعمالو د محاسبې حكم اوفرمائيلو.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴾ په دې آيت كښې يې د تحصيلِ تقوى طريقه دا بيان اوفرمائيله چه د صادقينو سره اوسيږئ ، يعنې كثرتِ صحبتِ صادقين.

﴿ أَلَا بِذِكْرِ ٱللَّهِ تَطْمَئِنُّ ٱلْقُلُوبُ ﴾ په دې سره معلومه شوه چه د ذكرالله په كثرت سره زړه ته اطمينان او سكون حاصليږى اود پورته آيتِ كريمه «**واستعينوا بالصبروالصلوة**» په تفسير كښې بيان اوشوچه سكونِ قلب سره مونځ آسانيږى ، چه په هغې سره حب جاه زائليږى او فكر آخرت پيدا كيږى . «**ذكرالله خاليا ففاضت عيناه**» يعنې كوم سړې چه په خلوت كښې د الله ذكر اوكړى اودهغه د ستر گونه اوښكې روانې شى هغه ته الله داسې قرب وركوى چه د قيامت په ورځ به هغه ته دخپل عرش په سورى كښې ځائ وركوى چه هركله خلق به د تپش نه پريشانه وى او په خولو كښې به ډوب وى . غرض داچه صحبتِ اولياء الله او كثرتِ ذكرسره علم اومعرفت كښې ترقى كيږى چه په هغې سره تقوى خشوع او تعلق مع الله پيدا كيږى ددې وجه د كثرتِ ذكر حكم وركړې شوې دې.

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا (٤١) وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا (٤٢) ﴾ ، ﴿ وَٱذْكُر رَّبَّكَ فِى نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ ٱلْجَهْرِ مِنَ ٱلْقَوْلِ بِٱلْغُدُوِّ وَٱلْءَاصَالِ وَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْغَٰفِلِينَ ﴾

**وقال العارف الرومى رحمه الله تعالى: شعر :**

| | |
|---|---|
| ايں قدر گفتيم باقى فكر كن | فكر گر جامد بود رو ذكر كن |
| ذكر آرد فكررا در اهتزاز | ذكر را خورشيد اں افسرده ساز |

نتيجه دا را اوتله چه علم موقوف دې كثرتِ ذكر ، محاسبه ، مراقبه او صحبتِ اولياء الله باندې د سيد دوعالم صلى الله عليه وسلم نه هم شوورځو پورې مراقبه او تخليه ورباندې كولو نه پس علم او عرفان سره د دوى تخليه اوكړې شوه . پس ابتداءً خو دا اذكار او اشغال د مرضِ جهل نه د نجات حاصلولو دپاره بطور علاج ضرورى دى مگر چه كله دهغې په وجه علم او هغه سره تقوى اوخشوع هم ملاؤ شى نو دا اذكار او اشغال پخپله مرض جوړيدلو سره عاشق باندې مسلط كيږى . څنگه چه د يو مرض دپاره افيون يا تمباكو استعمالولې كيږى چه په هغې سره خو د اصل مرض علاج اوشى مگر پخپله د افيونو يا د تمباكو عادى جوړيدلو سره لا علاجه مرض كښې مبتلا شى . ابتداء كښې انسان دعلاج په طور باندې خدانخواسته هغه څيزونو لره اختياروى مگر څه وخت پس دا

اذکار و اشغال انسان لره داسې نېسي چه دهغې نه بچ کېدل ناممکن کېږي . شعر

مکتب عشق کا دنیا سے نرالا دستور — اس کو چھٹی نہ ملی جس کو سبق یاد رہا

هم ددې حالت په باره کښې مجذوب فرمائي . شعر :

اب تو چھوڑے سے بھی نہ چھوٹے ذکر ترا اے میرے خدا

حلق سے نکلے سانس کے بدلے ذکر ترا اے میرے خدا

اذکار او اشغال کښې دا فرق دې چه اشغال پخپله مقصود نه دي صرف ذریعه دمقصود ده او اذکار ذریعهٔ مقصود دیدلو نه علاوه بذاتِ خود هم مقصود دي . ارشاد دي

﴿وَإِذَا سَمِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَى الرَّسُولِ تَرَىٰ أَعْيُنَهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ﴾ ، ﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ﴾ ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ﴾ ، ﴿قُلْ آمِنُوا بِهِ أَوْ لَا تُؤْمِنُوا إِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ مِن قَبْلِهِ إِذَا يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ يَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ سُجَّدًا وَيَقُولُونَ سُبْحَانَ رَبِّنَا إِن كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا﴾ ، ﴿إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمَٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا﴾ یعني کثرتِ ذکر او مراقباتو سره په هغوی باندې داسې رقت قلب راځي چه دخپل محبوب خبرې اوریدلو سره دهغوی په زړونو باندې زلزله راشي د مرئ د رګونو وینه ګرمیږي . د ویرې نه اودرېږي . په ژړا سره بې اختیاره په سجدې کښې غورځیږي او د سترګونه ئې اوښکې جاري کیږي چه په دومره اندازه بهیږي چه ګویا پخپله سترګې بهیږي . شعر

کوئی نہیں جو یار کی لادے خبر مجھے — اے سیل اشک تو ہی بہادے ادھر مجھے

از حال خود آگہ نیم جز ایں قدر دانم کہ تو — ہرگہ بخاطر بگذری اشکم زداماں بگذرد

محبوب حقیقي دخپلو عشاقو د مراقبې ، محاسبې ، کثرتِ ذکر ، کثرتِ صلوة اود قیام لیل تذکره په قرآن کریم کښې بار بار ذکر کړې ده . فرمائي :

﴿يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ﴾ یعني د قیامت دخطرناکو منازلو مراقبه کوي .

﴿وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ﴿٦٠﴾﴾ دخپلو اعمالو محاسبه کوي او ویرېږي چه آیا زما حسنات قبول هم شو او که نه ؟

﴿وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا ﴿٦٤﴾﴾ ، ﴿كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴿١٧﴾﴾ ، ﴿وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿١٨﴾﴾

په دې کښې اول ماده قلت . دویم دهغې تنکیر لپاره د تقلیل. دریم من تبعیضیه . څلورم ما لپاره د تاکید . دې راوړلو سره یې په کوم شان سره دهغوی د قیام لیل تذکره کړې ده چه د شپې ډیر کم ویده کیږي او شپه چه ختمیدلو ته نزدې کیږي نو د ټولې شپې د عبادت محاسبه کوي او داسې ګڼي چه هیڅ عبادت مو ونه کړو (ماعبدناک حق عبادتک) چه کله یې دخپل عبادت نقص مخې ته راځي نو په هغې باندې استغفار کوي . شعر :

نیکیاں یا رب مری بدکاریوں سے بد ہوئیں      وہ بھی رسوا کن ترے دربار میں بے حد ہوئیں

دا عشاق دخپل ځان نذرانه پیش کولو سره هم خپل ځان لره قصوروار ګڼي . شعر :

جان دی دی ہوئی اسی کی تھی      حق تو یہ ہے حق ادا نہ ہوا

﴿وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا﴾ ، ﴿الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ یعنې په کثرت ذکر اومراقبه د قدرت کښې لګیاوي .

﴿أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۗ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ۝٩﴾ په دې کښې اهلِ علم هغه ته وئیلې شوی دی چه د شپې دخشوع وخضوع اود خوف ورجا په حالت کښې په کثرت سره نوافل اوکړي ، بلکه د آیت ذیل د ظاهر نه معلومیږي چه په کومو خلقو کښې غلبهٔ خشیت ، خشوع وخضوع ، کثرتِ ذکر ، کثرت قیام لیل نه وي هغه مؤمن دې نه .

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ﴾

﴿إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا الَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِهَا خَرُّوا سُجَّدًا وَسَبَّحُوا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ۝١٥ تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ ۝١٦﴾ په دې آیتونو کښې (انما) کلمه د حصر ده . یعنې ترڅو پورې چه صفات مذکوره ونه موندلې شي دایمان وجود نه شي کیدلې . ددې آیتونو ظاهر اودحضورصلی الله علیه وسلم نه واخله ترننه پورې د رجال الله په تعامل سره د کثرتِ ذکر اوقیام لیل فرضیت بلکه شرط ایمان کیدل مفهومیږي . حقیقت دادې چه د فرض دوه قسمونه دی (۱) د ضابطې فرض (۲) د رابطې فرض .

مثلاً د خاوند په ذمه د ښځې د علاج مصارف اود ښځې په ذمه د خاوند خدمت ضابطهٔ شرعیه کښې فرض نه دی مګر د رابطې په حیثیت سره دا داسې اهمه فریضه شمیرلې کیږي چه په دې کښې کوتاهي کولو والا خاوند یا ښځې لره دزوجیت لائق نه ګڼلې کیږي . اګرچه د ضبطې په لحاظ سره دا ښځه خاوند دی . هم دغه شان د ضابطې په لحاظ سره اګرچه یو سړې مسلمان دی

مگر د مسلمان وئیلو لائق او د رابطې مسلمان به هله جوړیږي چه کله د رابطې فرائض اوشرائط (خشوع اوخضوع) کثرت ذکر اوقیام لیل لره ادا کوی . ددې پوره تقریر حاصل دادې چه ترڅو پورې مراقبه محاسبه . خشوع وخضوع کثرتِ ذکر وقیام لیل متحقق نه وی هغه وخته پورې عالم جوړیدل خو لرې خبره ده صحیح معنو کښې مسلمان هم نه شی جوړیدلې .

اوس د حدیث مطلب واضحه شو چه د عالم نه مراد هغه دې چه د شرع په نظر کښې عالم وی او کامل مؤمن وی . یعنی کم ازم دومره عبادت کوی چه د حقیقت علم او کمال ایمان دپاره شرط دې . چه دهغې تفصیل پورته بیان شو . ورنه هغه عالم نه دې بلکه ددې لائق هم نه دې چه هغه ته مؤمن اووئیلې شی اگرچه په حقیقت کښې مؤمن وی . پس د عالم نه مراد هغه سړې دې چه کم ازکم دومره عبادت کوی چه د حقیقت علم دپاره موقوف علیه وی او زیات وخت مشاغلِ علمیه کښې صرف کوی اود عابد نه مراد هغه دې چه درجهٔ موقوف علیه نه هم زیات عبادت کوی او علم بقدرِ ضرورت نه زیات نه وی حاصل کړې . پس دواړه عالمان هم دی او عابدان هم . فرق دومره دې چه یو علم بقدر ضرورت یعنې بقدرفرض عین حاصلولو سره فرض کفایه طرف ته د متوجه کیدلو په ځای کثرتِ عبادت کښې مشغولیږی او دویم عبادت بقدرضرورت (چه د حقیقت علم اوکمال ایمان دپاره موقوف علیه دې) کوی او علم نه د فرض کفایه درجه هم حاصلوی حقیقتِ علم منکشف کیدلو دپاره د درد محبت ضرورت دې . شعر :

در درونِ خود بیفزا درد را تا ببینی سبز وسرخ وزرد را

دهغه درد په دولت سره داسې علوم منکشف کیږی چه عقل ورته حیران پاتې کیږی . شعر

بینی اندر خود علوم انبیاء بے کتاب وبے معید واوستا

کوم خلق چه دهغه درد د لذت نه ناخبره دی هغوی د علم د حقیقت نه څه خبر دی . شعر

تو ندیدی گہے سلیماں را چه شناسی زبان مرغاں را

آگاه نۀ تپ درون را نشتر چه زنی رگ جنوں را

هغوی لره خو خود پرستی محبوبِ حقیقی طرف ته د راتللو اجازت نه ورکوی . شعر .

اے قوم بحج رفته کجائید کجائید معشوق درین جاست بیائید بیائید

د داسې خلقو په باره کښې حضرت رومی رحمه الله فرمائی . شعر .

صد ہزاراں فضل دارد ازعلوم جانِ خود را مے نہ داند ایں ظلوم

جان جملہ علمہا این ست واین کہ بدانی من کیم در یوم دین

ایها القوم الذی فی المدرسه کل ما حصلتموہ وسوسه
علم نبود الا علم عاشقی ما بقی تلبیس ابلیس شقی

د خدمتِ علمِ دین بهانه جوړولوسره د عبادت نه ځان خلاصولو والو نه زه پوښتنه کوم چه آیا هغوی د حضورصلی الله علیه وسلم اسوهٔ حسنه اود صحابه کرامو رضی الله عنهم ژوند او ترننه پورې د رجالِ امت د سلسلې طرز عمل د دنیا د سترګو نه پناه کولې شی ؟ تاسو خلق خو پخپل ګمان صرف د علم دین محافظ اومبلغ یئ . حضورکریم صلی الله علیه وسلم او خلفاءِ راشدینو رضی الله عنهم باندې خو مبلغ کیدلو نه علاوه د حکومت ذمه داریانې هم وې بیا هغه نفوسِ قدسیه کښې د تبلیغ جذبه اود ذمه دارئ احساس کوم حده پورې وو . دا زمونږ د وهم او ګمان نه هم خارج دی ، شعر

وکیف یدرک فی الدنیا حقیقته قوم نیام تسلوا عنه بالحلم

سره ددې نه دوی قیام لیل کوم حده پورې کولو . ملا به ئې ترله . احیاءِ لیل به ئې کولو . خپې به ئې اوپړسیدلې او په کثرت سره به ئې نفلی روژې نیولې او هر وخت به په ذکرالله کښې مشغوله وو . دوی دا خیال ولې اونه کړو چه د کثرتِ نوافل په ځائ دا وخت هم تبلیغ علمِ دین اود حکومت په نظم او اقامت کښې صرف کیدل پکار دی . امام ابوحنیفه رحمه الله تعالی څلویښتو کالو پورې مسلسل د ماسخوتن په اودس سره د سحر مونځ ادا کړو . یو قرآن به ئې روزانه ختمولو . علامه برهان الدین مرغینانی مصنف هدایه دیارلسو کالو پورې مسلسل روژه اونیوله او په چا باندې ئې ښکاره نه کړه . آیا ستاسو جذبهٔ حفاظت واشاعتِ علم دین دهغه مقدس هستو نه هم زیاته ده ؟ د مثال په طور باندې د دې دوو هستو ذکر اوکړو . ورنه ددې سلسلې دهر فرد دا کیفیت دې . شعر :

زفرق تابقدم ہر کجا کہ مے نگرم کرشمہ دامن دل میکشد کہ جا اینجاست

یو ځلې امام احمد رحمه الله تعالی دخپل استاذ حضرت امام شافعی رحمه الله سره میلمه شو د امام شافعی رحمه الله لور د میلمنو له نورو ضروریاتو سره د تهجد د وخت دپاره د اودس اوبه هم کیښودلې . سحر ئې چه کله وکتل چه اوبه هم هغسې پرتې دی نو امام شافعی رحمه الله ته ئې داسې شکایت وکړو چه « طالب علم لیس له حظ فی الصلوٰة » دا څنګه طالب علم دې چه هغه ته د تهجد و هم توفیق نه کیږی ؟ د یو جلیل القدر امام د لور دا جمله د مدعیانِ علم دپاره یو عبرت دې . د امام شافعی رحمه الله په پوښتنه باندې امام احمد عرض وکړو چه د شپې مې کومه روټئ خوړلې وه دهغې انوار دومره محسوس شو چه ټوله شپه په عبادت کښې تیره شوه دیولمحې دپاره هم غفلت ونه شو . لهذا د اودس کولو ضرورت پیښ نه شو . لږ موده مخکښې داسې رجال تیرشوی دی چه په امت مسلمه باندې یو دینی یا دنیوی ادنی شان آفت هم دوئ پریشانه کول . چه په هغې

سره دعوی خوب به ختمیدلو ، یو درد وو چه یو وخت ئې هم آرام ته نه پرېښودل دعوی جذبهٔ اشاعت د دین مدعیانِ حفاظت علم ته خو هوا هم نه ده لګیدلې ، یو طرفته د جهاد ، وعظ اوتقریر ، تبلیغ اواشاعت ، تدریس اوافتاء ، تصنیف اوتالیف په میدان کښې دا حضرات وراندې وو ، بل طرف ته مراقبه ، محاسبه ، کثرتِ ذکر اوشغل ، نوافل اوقیام لیل کښې ممتاز او د امراضِ باطنه طبیبِ حاذق وو ، یوجانب بلاواسطه علم نبوت حاصلولو والا په زرګونو شاګردان اود مواعظو وملفوظاتو اوتصانیفو نه مستفید کیدلو والا په کروړونو افراد او بل جانب ته دعوی مطب روحانی سره صحتیاب کیدلو والا د زرګونو په شمیرکښې دی . دغه حضراتو د فقهی . قرآن . حدیث ، د علومِ نقلیه اوعقلیه ، ظاهریه اوباطینیه داسې کتابونه لیکلی دی چه مدعیانِ علم اوفراست پوهولو باندې هم پوهه نه شو ، مدعیانِ علم اواشاعتِ علم دغه عشاقو د تبلیغ اواشاعتِ دین په شان یو ادنی شانتې نمونه خو پیش کړئ ، شعر :

اولئك اسلافی فجئنی بمثلهم اذا جمعتنا یا جریر المجامع

حقیقت دادې چه ترڅو پورې تعلق مع الله حاصل نه وی ، هغه وخته پورې د تبلیغ او اشاعت فریضه ادا کیدلې نه شی . نن سبا خطرناک ضلالت دادې چه د علم حقیقی مدعیانِ علم خندا شروع کړې ده اوخپلو کسانو لره دغې نه بندوی . شعر :

منعم کنی زعشق دے اے مفتی زمن معذور دارمت کہ تو او را ندیدهٔ

خواجہ پندارد کہ دارد حاصلے حاصل خواجہ بجز پندار نیست

د عوام کالانعام واه واه انسان لره تباه کوی ، د عوامو په عقیدت او لاس ښکلولو باندې عجب او غرور مهلک دې ، د یو صاحبِ نظر نه دې تشخیص اوکړی ، شعر :

بنما بصاحب نظرے گوهر خود را عیسی نتواں گشت بتصدیق خرے چند

ہمیں کہتی ہے دنیا تم ہو دل والے جگر والے

ذرا تم بھی تو دیکھو کہ ہو تم بھی تو نظر والے

دا خلق د صورةً علم او حقیقةً جهل په غرور کښې مبتلادی ، شعر :

ناز ہے گل کو نزاکت پہ چمن میں اے ذوق

اس نے دیکھے ہی نہیں ناز ونزاکت والے

دوی د علم په لذت او د اهلِ دل په درد باندې څه پوهیږی؟ شعر :

لطف مے تجھ سے کیا کہوں زاہد ہائے کمبخت تو نے پی ہی نہیں

ع : ذوق این باده ندانی بخدا تا نہ چشی

چوں دل بمہر نگارے نہ بستہ اسماہ ترا ز سوزِ درون ونیاز ماچہ خبر ؟

د اهلِ انصاف دپاره دومره قدرې مضمون كافي دې . چنانچه يو معروف اهلِ علم چه په دې غلط فهمئ كښې مبتلا دې دومره متاثره شو چه ددې مضمون صرف خلاصه اوريدلوسره هغه د اوابينو او اشراقو وغيره نوافل شروع كړه او د اهلِ اعتساف په خدمت كښې دا دوه شعرونه پيش كوم . شعر :

| | |
|---|---|
| بامدعی مگوئید اسرار عشق ومستی | بگذار تا بمیرد در رنج خود پرستی |
| تو وطوبے وما وقامت یار | فکر ہر کس بقدر ہمت اوست |

په آخره كښې دعا ده چه الله تعالى دې مونږ ټولو لره د علم حقيقي دولت راكړي . آمين ثم آمين

اللهم نور قلوبنا بنور معرفتك ابدا ، آمين

**رشيد احمد**

اوائل ذى الحجه سنه ۸۵ هجرى

## تكمله

چاته اشكال كيدلې شي چه د علماؤ دپاره تدريس ،تبليغ . افتاء او تصنيف په شان متعدى خدمات سرته رسول فرض كفايه دې . او ذكر . شغل . مراقبه اومحاسبه وغيره عباداتِ نافله دى . اود فرضو اهميت اوثواب د نفلو نه زيات دې . بيا زه علماؤ ته د كثرتِ ذكر اوفكر تبليغ ولې كوم؟ ددې دوه جوابه دى يو الزامى اوبل تحقيقى :

**الزامي جواب** : ما په نصوصِ قرآنيه سره ثابته كړې ده چه كوم عالم د عبادتِ نافله او د ذكر وفكر كثرت نه كوى هغه د شرع په نظر كښې عالم خو لرې خبره ده د مؤمن وئيلو لائق هم نه دې . بيا دحضور صلى الله عليه وسلم اود علماءِ امت په اقوالوسره دهغې اهميت ثابت كړې دې او وئيلى مې دى چه د حضورصلى الله عليه وسلم نه واخله دعلماءِ امت هم دا تعامل راروان دې چه هغوى د اشاعتِ دين د متعدى خدماتو سره دخپلو وختونولويه حصه عبادت نافله او ذكر اوفكر كښې صرف كوله . اې علماءِ آبدين په دې باندې غور كولوسره جواب راكړئ !

**تحقيقي جواب** : نورو ته تبليغ اودهغوى د اصلاح كوشش كول فرض كفايه دى . مگر خپله اصلاح فرض عين ده . د اصلاح مطلب دادې چه د ظاهرى او باطنى گناهونو نه احتراز وكړې شى او دا موقوف دې د ذكر اوفكر او دمحاسبې او مراقبې په اهتمام باندې . بس د فرض عين موقوف عليه به هم فرض عين وى . د ذكر اوفكر او دمحاسبې او مراقبې اود صحبت كامل د معتدبه درجه

نه سوا د گناهونو نه د بچ کیدلو فکر نه وی بلکه باطنی گناهونو کښې د اکثرو خو علم او احساس قدرې هم نه وی . که د کوم یو مرض څه احساس هم وی نو وخت باندې دهغې استحضار نه کیږی او که استحضار وی هم خو دهغې نه د بچ کیدلو فکر اود علاج خیال نه وی . لهذا د ذکر، محاسبې ، مراقبې اودیو کامل د صحبت کم ازکم هغه درجه فرض ده چه د ظاهری گناهونو نه د حفاظت سره یې د باطنی گناهونونه هم پاک کړی ، د رذائلو نه د تخلیه اود فضائلو نه د تحلیه موجب وی ، په دې مقصد کښې دکامیابئ نه پس هم د ذکر اوفکر دهغه درجې التزام ځکه ضروری دې چه په هغې کښې غفلت سره د امراضو د واپس کیدلو سخته خطره وی .

ددې نه علاوه د ذکر اوفکر درجه مذکوره باندې اضافه هم لازم ده ځکه چه په هغې سره د زړه صلاحیت زیاتیږی ، محبت او اخلاص کښې ترقی پیدا کیږی او محبت اواخلاص کښې چه کوم حده پورې ترقی کیږی هم په هغه درجه کښې به د اعمالو اجراء او نورو ته به د تبلیغ په اثر کښې اضافه کیږی او په علم کښې به نور او په تصنیف او تالیف کښې به برکت وی .

حضورصلی الله علیه وسلم د بیعت رضوان نه پس اودفتح مکه نه وړاندې اسلام راوړلو والا صحابه کرامو ته اوفرمائیل چه که په تاسو کښې څوك د احد دغر برابر د الله په لاره کښې طلاء (سره زر) خرچ کړی نو هغه بیا هم د متقدمینو صحابو کرامو رضی الله عنهم دیومد (۵. ۸۴۴گرام) اوربشې بلکه دهغې نیمایی پورې هم نه شی رسیدلې . د فتح مکې نه پس د اسلام راوړلو والا صحابو کرامو رضی الله عنهم درجه دهغې نه هم کمه ده او د غیرصحابی درجه د ادنی صحابی نه هم زیاته کمه ده په دې حدیث کښې د لفظ اصحابی نه ثابته شوه چه د کثرتِ مجاهدې نه علاوه صحبت هم د زیات اجر باعث دې . د حضورصلی الله علیه وسلم د صحبت مبارک په دولت سره دهغوی په زړونو کښې چه کوم صلاحیت او محبت او اخلاص وو هغه په غیرکښې نه شی کیدلې .

په دې سره ثابته شوه چه د زړه په صلاحیت سره په اجر کښې اضافه او په کار کښې برکت وی ، هم دا وجه ده چه د علماء عابدینو کار اوپه تبلیغ کښې چه کوم برکت دې هغه په آبدینو کښې نشته اود اجر د فرق کولو مشاهده به په آخرت کښې وی . بلکه اهلِ بصیرت ته دهغې اثر په دنیاکښې هم مشاهده کیږی . اللهم ارزقنا حبك وحب من یحبك وحب عمل یقرب الی حبك، اللهم اجعلنا ممن یعبدك كانه یراك آمین.

رشید احمد ۲ جماذی الاولی ۱۴۰۰ هجری

## د محمد احمد ((درسِ قرآن)) اوریدل، ویل جائزنه دی

مامؤلف ته د راجستر په ذریعه دا اطلاع لیږلې وه چه که چرته تاسو (( درسِ قرآن )) سره متعلق څما د تحریر څه جواب لیکئ یا په چا باندې یې لیکئ نوزه به دهغې هیڅ جواب نه درکوم

چه کله هغوئ د څلورو علماؤ نه د کتاب اصلاح کولو تحریر ولیکه او د څلورو مشهورو علماؤ نومونه ئې هم ولیکل نو خما مقصد پوره شو ددې وجه نه ما په هغه سلسله کښې څه ونیل اوریدل بالکل بند کړه.

مگر مؤلف خپله وعده پوره نه کړه، دهغه څلورو مشهورو علماؤ د اصلاح کولو نه بغیر کتاب شائع کوی، ددې وجه نه عوامو لره دهغه فتنې نه د بچ کولو کوشش جاری ساتل فرض دی. خما د مفصل تحریر خلاصه دا ده:

(۱) مؤلف عالم نه دې. ددې وجه نه دهغه خپل نوم سره «مولانا» لګول جائز نه دی په هغې سره عوام دهوکه کیږی

(۲) ما په «درس قرآن» باندې د تقریظ لیکلو نه انکار کړې وو دهغې باوجود هغوی خما نوم په کتاب کښې شائع کړو او خما په نوم سره امت ته د پنځلسو کالوراسې دهوکه ورکوی.

(۳) ما خو صرف د تقریظ نه انکار کړې وو مگر حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب رحمه الله تعالی او حضرت مولانا مفتی محمد عاشق الهی صاحب خوخما نه هم څه زیات دکتاب د اشاعت نه منع کړې وه. دهغې باوجود هغوی کتاب شائع کړو. ورسره ئې مزید جرئت دا وکړو چه د حضرت شیخ الحدیث نوم ئې هم شائع کړو.

(۴) مولانا محمد تقی صاحب عثمانی لیکی: «محمد احمد صاحب احقرته رایه حاصلولو دپاره کتاب یا دهغې مسوده نه وه رالیږلې، اونه ئې د اظهارِ رائے دپاره ونیلی وو. لیکن په کتاب کښې ئې خما نوم شائع کړو. د احقر نه ئې نه رایه واخستله او نه ئې ورسره مشوره وکړه، نه ئې کله د کتاب ذکر کړې دې. د حضرت د طرف نه «درس قرآن» باندې د اعتراضاتو نه پس احقر ډیر خلې هغه ته وه ونیل چه که چرته تاسو د احقر نه واقعةً رایه اخستلې وې نو احقر به دا مشوره درکوله چه تاسو ددې کتاب د تالیف اقدام مه کوئ»

(۵) که چرته دا معامله د حضرت حکیم الامة په خدمت کښې پیش شوې وې چه ستاسو د سلسلې یو غیرعالم خلیفه تفسیرلیکلې دې یو څو مشهورو علماؤ هغه لره دهغه کتاب د اشاعت نه منع کړې وو چه په هغوی کښې حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب هم دې مگر هغه خپل نوم سره «مولانا» لګولوسره کتاب شائع کړو او له دې نه زیات ظلم ئې داوکړو چه کتاب کښې دهغه علماؤ نومونه شائع کولوسره پنځلسو کالو نه را په دیخوا امت ته دهوکه ورکوی. او بعضې د داسې علماؤ نوم ئې هم شائع کړې دې چه هغوی ته کتاب یا دهغې مسوده ښودل خو لرې خبره ده هغوی ته یې دهغې خبر قدرې هم ورنه کړو. نو آیا حکیم الامة به داسې شخص ته توبه او دهغه علماءِ کرامو نه دمعافئ غوښتلو اود کتاب اشاعت بندولو باندې نه مجبور کولو؟ او د انکار په صورت کښې د سلسلې نه د اخراج اعلان نه به یې نه کولو؟ او آیا اوس د سلسلې موجوده

اکابرو باندې دا فرض نه عائد کیږی ؟

(۲) که چرته دعفوی دا پنځم نمبر مقدمه کښې د مذکوره تفصیل مطابق عدالت شرعیه کښې پیش کړې شی نو آیا عدالت به داسې سړی ته سخت تعزیر او کتاب باندې بندیز و نه لګوی؟

(۷) په سابق مفصل تحریر کښې مې دا وضاحت کړې دې چه ما دهغه تحریر نه وړاندې دوه خلې هغه لره په ډیرې نرمۍ سره پوهه کړو او دریم خلې مې د مخ د پردې په مسئله باندې لږې سختۍ سره اووئیل نو دې ډیر سخت غصه شو او هغه بې پردګۍ لره تفسیرعثمانی سره دثابتولو کوشش ئې کولو . چه کله دهغه نه د قبول څه توقع باقی پاتې نه شوه نو ما علماؤ لره د جاهل مفسرینو د خطرناکو فتنو په طرف متوجه کول فرض وګڼل .

**الحمدلله تعالی** دبنده په متوجه کولو باندې ټوله دنیا کښې مشهورو علماء کرامو دهغه فتنې خلاف بنه ښکاره ولیکل . مؤلف ته ئې ډیره سخته تنبیه ورکړه . دعلماؤ هغه دکتاب په اصلاح کولو باندې مجبور کړو .مګر هغه د اصلاح له طریقې سره متعلق دعلماؤ دهدایاتو قبلولو نه انکار وکړو . د علماؤ تحریرونه په دارالافتاء کښې محفوظ دی .

(۸) مؤلف د علماؤ د هدایاتو نه د انحراف د وجه نه انتهائی کوشش او د لوئ مالی پیشنهاد باوجود مشهورو او مسلمو علماؤ کښې یو لره هم د کتاب په اصلاح باندې آماده نه کړې شو . دیو غیرمعروف او غیرمسلم عالم اصلاحی نظر معتبر نه دې. ددې وجه نه دهغه کتاب کتل جائزنه دی

دغه تنبیه چه څومره زیاته کیدې شی هغه شائع کړئ او د قرآن کریم د تحریف نه د بچ کولو فریضه ادا کړئ دغفلت په صورت کښې د الله تعالی د ګرفت او د دنیا او آخرت دعذاب نه وه ډیریږئ

**رشید احمد**

دارالافتاء والارشاد ناظم آباد ۱۵ جمادی الآخره ۱۴۱۲ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب الطهارة

## په ژبې سره د اوداسه نیت کول مستحب دی

**سوال:** د اوداسه د کولو په وخت کښې چه کوم نیت کیږي آیا په ژبې سره کول ئې ثابت دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هو! مستحب دی. قال في التنوير ومن آدابه الجمع بين نية القلب وفعل اللسان وفي الشرح هذه رتبة وسطى بين من سن التلفظ بالنية وبين من كرهه لعدم نقله عن السلف. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۸) . فقط والله تعالى اعلم ۸ رمضان سنه ۹۳ھ

## پرته له نیت څخه د لامبلو په صورت کښې اودس کیږي

**سوال:** که چیرته یو څوک پرته له کوم نیت څخه ولامبي یا په سمندر کښې لامبو ووهي نو آیا اودس ئې پخپله ورسره کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس سره له مسحې صحیح کیږي. البته د نیت د نه شتون له وجې ثواب نه ورکول کیږي.

قال في العلائية وصرحوا بانه بدونها ليس بعبادة وفي الشامية اى الوضوء بدون النية ليس عبادة وذلك كان دخل الماء مدفوعاً او مختار القصد التبرد اولمجرد ازالة الوسخ كما في الفتح. (رد المحتار ج۱، ص۹۹)

فقط والله تعالى اعلم ۲۱ جمادى الآخر سنه ۸۳ھ

## تر اوداسه مخکښې د اعوذ بالله د ویلو حکم

**سوال:** له اوداسه څخه مخکښې اعوذ بالله من الشيطان الرجيم لوستل څه حکم لري؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** له اوداسه څخه مخکښې د بسم الله الرحمٰن الرحيم لوستل سُنت دي له بسم الله څخه مخکښې د اعوذ بالله د ویلو هم یو ضعیف قول راغلی دی. غوره دا ده چه و ې نه لولي.

قال في الشامية: وقيل الافضل بسم الله الرحمن الرحيم بعد التعوذ وفي المجتبى يجمع بينهما (رد المحتار ج۱، ص۱۰۱)

فقط والله تعالى اعلم ۲۵ جمادى الاولى سنه ۹۱ھ

## په اوداسه کښې د هر غړي په پرېمنځلو باندې د بسم الله د لوستلو حکم

**سوال:** په اوداسه کښې د هر غړي په پرېمنځلو سره د بسم الله لوستل مستحب دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه کښې د صحیح حدیث له مخې دا دُعا ثابته ده چه ((اللهم اغفر لي ذنبي ووسع لي في داري وبارك لي في رزقي)).

**د فقهې په کتابونو کښې لاندینۍ دُعاګانې هم راغلي دي:**

{۱} د هر غړي د پرېمنځلو په وخت کښې دا دعا وېل: **بسم الله العظيم والحمد لله على دين الاسلام.**

{۲} په هر غړي باندې د شهادت د کلمې وېل.

{۳} په هر غړي باندې درود شريف وېل.

{٤} د خولې د پرېمنځلو (مضمضه) کولو په وخت کښې دا دعا وېل: **اللهم اعني على تلاوة القرآن و ذكرك وشكرك وحسن عبادتك.**

{۵} په پوزه کښې د اوبو اچولو په وخت کښې دا دعا وېل: **اللهم ارحني رائحة الجنة ولا ترحني رائحة النار.**

{٦} د مخ د مینځلو په وخت کښې دا دعا وېل: **اللهم بيض وجهي يوم تبيض وجوه وتسود وجوه.**

{۷} د ښي لاس د پرېمنځلو په وخت کښې دا دعا وېل: **اللهم اعطني كتابي بيميني وحاسبني حسابا يسيرا.**

{۸} د کیڼ لاس د پرېمنځلو په وخت کښې دا دُعا وېل: **اللهم لا تعطني كتابي بشمالي ولا من وراء ظهري.**

{۹} د سر د مسح په وخت کښې دا دُعا وېل: **اللهم اظلني تحت عرشك يوم لا ظل الا ظل عرشك.**

{۱۰} د غوږونو د مسح په وخت کښې دا دُعا وېل: **اللهم اجعلني من الذين يستمعون القول فيتبعون احسنه.**

{۱۱} د غاړې د مسح په وخت کښې دا دُعا وېل: **اللهم اعتق رقبتي من النار.**

{۱۲} د ښي پښې د پرېمنځلو په وخت کښې دا دعا وېل: **اللهم ثبت قدمي على الصراط يوم تزل الاقدام.**

{۱۳} د کیڼې پښې د پرېمنځلو په وخت کښې دا دعا وېل **اللهم اجعل ذنبي مغفوراً و سعيي مشكوراً وتجارتي لن تبور.**

په دغو کښې یوه دُعا هم له کوم صحیح روایت څخه ثابته نه ده او په ضعیف حدیث باندې د عمل کولو د جواز له درېو شرطونو څخه یو شرط دا هم دی چه هغه به سُنت نه ګڼي

**(رد المحتار ج۲، ص۱۱۹).**

په دې زمانې کښې د جهالت (ناپوهۍ) د زیاتوالي له وجې عوام بلکه اکثره خواص هم دا دُعا

ګانې سُنت ګڼي. له دې امله له دې ښځه خان وساتي

برسيره پر دې په دغو دُعا ګانو پاندې د مشغوليدو له امله د صحيح حديث له مخې د ثابتې

شوې دُعا (اللهم اغفرلي ذنبي -الخ) پريښودل بلکه له هغې ښځه د مخ ګرځولو لامل ګرځي

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ ذي الحجة سنه ۱۳۹۶ھ

## په کور کښې اودس کول او بيا مسجد ته راتلل بهتر دي

**سوال** زيد وايي چه مسجد ته د راتللو او اودس کولو په ځای په کور کښې اودس کول او بيا مسجد ته راتلل زيات ثواب لري. آيا د زيد دا خبره صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د زيد دا خبره صحيح ده. په کور کښې اودس کول او بيا مسجد ته د راتللو فضيلت په حديثو کښې راغلی دی.

عن ابي هريرة ﷜ قال قال رسول الله ﷺ صلوة الرّجل في الجماعة تضعّف على صلوته في بيته وسوقه خمسا وعشرين ضعفاً وذلك انه اذا توضأ فاحسن الوضوء ثم خرج الى المسجد لا يخرجه الا الصلوة لم يخط خطوةً الا رفعت له بها درجة وحط عنه بها خطيئة فاذا صلى لم تزل الملائكة تصلّي عليه ما دام في مصلاه اللهم صل عليه اللهم ارحمه ولا يزال احدكم في صلوة ما انتظر الصلوة. (متفق عليه)

وعن ابي امامة ﷜ قال قال رسول الله ﷺ من خرج من بيته متطهرا الى صلوة مكتوبة فاجره كاجر الحاج المحرم ومن خرج الى تسبيح الضحى لا ينصبه الا اياه فاجره كاجر المعتمر وصلوة على اثر صلوة لا لغو بينهما كتاب في عليين. (رواه احمد وابو داؤد)

وعن عبد الله بن مسعود ﷜ (في حديث طويل) وما من رجل يتطهر فيحسن الطهور ثم يعمد الى مسجد من هذه المساجد الا كتب الله له بكل خطوة يخطوها حسنة ورفعه بها درجة وحط عنه بها سيئة. (رواه مسلم)

وعن سهل بن حنيف ﷜ مرفوعاً من تطهر في بيته ثم اتى مسجد قباء فصلى فيه صلوة كان له كاجر عمرة (ابن ماجة)

د عقل له مخې هم په کور کښې اودس کول او بيا د مسجد خوا ته د تللو فضيلت ښکاره دی ځکه چه په دې کښې دمسجد او د جماعت د لمانځه درناوی دی چه کله يو څوک کوم دربار ته حاضريدل غواړي نو د هغه د عظمت غوښتنه دا ده چه په کور کښې دې ځان پاک او صف کړي او بيا دې د هغه خوا ته لاړ شي. نه دا چه دربار ته ورسيږي او هلته اوبه غواړي دا د دربار د عظمت لوړوالي خلاف ده. لکه څرنګه چه حرم شريف ته د داخليدونکو لپاره له موافق ځخه د حرم

ترلو له حکم څخه هم د بیت الله شریف د عظمت ښکارول مقصود دی.

له دې څخه ثابته شوه چه نن صبا مسجدونو ته تلل او هلته د اودس کولو چه کوم رواج جوړ شوی دی دا صحیح نه دی. البته که چیرته مسافر یا معذور او داسې نور وي بیا د هغو لپاره پروا نه کوي. فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۳ ربیع الآخر ۱۳۸۷ هجری

## د غاړې د مسح تحقیق (څېړنه)

**سوال:** له روایتونو څخه څرګندیږي چه د غاړې مسح باید د غوږونو له مسحې څخه مخکښې د سر له مسحې سره یو ځای وشي او د (حتی یبلغ القفا) الفاظ په عامو روایتونو کښې شته او د فقهې په کتابونو کښې د غاړې مسح د غوږونو له مسحې څخه وروسته راغلې ده. نو د دې د تطبیق صورت به څه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د (حتی یبلغ القفا) له الفاظو څخه د غاړې مسح نه ثابتیږي. په قفا او رقبه کښې فرق دی. قفا د سر برخه ده او رقبه یوه بله مستقله او بیله عضو ده. فرض کړی که چیرته له قفا څخه د رقبه معنیٰ واخیستل شي نو بیا هم په هغې باندې په قصد سره مسح نه ثابتیږي بلکه د سر د استیعاب (د ټول سر په مسح کښې د را تیولو) په غرض سره راغلی دی. د رقبه (غاړې) د مسح په ثبوت باندې حضرت مولانا عبد الحی لکهنوی قدس سرّه رساله "تحفة الطلبة في تحقيق مسح الرقبة" د قدر وړ دی. په دې رسالې کښې لاندیني روایتونه هم شته.

۱ــ ذکر ابن السکن فی کتاب الحروف حدث مصرف بن عمرو یبلغ به عمرو کعب رضی الله عنه قال رأیت رسول الله ﷺ توضأ فمسح لحیته وقفاه.

۲ــ روی ابو نعیم فی تاریخ اصبهان من حدیث ابن عمر رضی الله عنهما ان النبی ﷺ قال من توضأ ومسح عنقه وقی الغل یوم القیامة.

۳ــ روی الدیلمی فی مسند الفردوس من حدیث ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما مسح الرقبة امان من الغل یوم القیامة.

۴ــ روی ابو عبید فی کتاب الطهور عن عبد الرحمٰن بن مهدی یبلغ به موسی بن طلحة رضی الله عنه انه قال من مسح قفاه مع رأسه وقی الغل یوم القیامة قال العینی فی شرح الهدایة هذا وان کان موقوفاً لکن له حکم الرفع لان هذا لا مجال للرأی فیه انتهی.

۵ــ حکی ابن همام من حدیث وائل فی صفة وضوء رسول الله ﷺ ثم مسح علی رأسه ثلاثاً وظاهر اذنیه ثلاثاً و

ظاهر رقبته الخ رواه الترمذي.

و قال قدس سره في حاشية رسالته المذكورة (قوله رواه الترمذي) هكذا ذكر في الفتح و تبعة الشيخ لدهلوي في شرح سفر السعادة لكن لم اجده في النسخ المتداولة من جامع الترمذي و ذكر العيني في الهداية و الجمال الزيلعي في تخريج احاديث الهداية المسمى بنصب الراية و ابن حجر العسقلاني في ملخص تخريج الزيلعي المسمى بالدراية هذه الرواية مسندة الى البزار آه.

د دغو روايتونو په سند كښې اګر كه څه خبره شته ليكن په فضائلو كښې په فضائلو كښې په ضعيف حديث باندې هم عمل جائز دی. همدارنګه د طُرُق د تعدد (ډيروالي) له وجې په روايت كښې قوت راتلی شي اګر كه د سند له مخې ضعيف وي.

په نورو رسالې كښې د (حتى بلغ القفا او حتى بلغ القذال) روايتونه هم موجود دي ليكن له هغو څخه استدلال تام نه دی كما مرّ. په پورتنيو روايتونو كښې په لومړني او څلورم روايت كښې اګر كه د قفا يادونه شوې ده ليكن د هغه په مستقله توګه له يادونې څخه ښكاريږي چه له هغه څخه يو اخې د غاړې مسح مراد ده. فقط والله تعالى اعلم، سلخ جمادى الآخر ۹۰ھ

## په اوداسه كښې د ګوتو خلالول سُنت مؤكد دي

**سوال:** آيا په اوداسه كښې د ګوتو خلالول مؤكد سُنت دي او كه نه؟ او د مؤكدو سنتو پريښودل كبيره ګناه ده او كه صغيره؟ او آيا په مكروه تحريمي كښې راځي او كه مكروه تنزيهي كښې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ګوتو خلال سُنت مؤكد دي او له عذر پرته هر وخت پريښودل ئې د مكروه تحريمي د كيدو له وجې ګناه كبيره ګرځي.

قال في شرح التنوير و تخليل (الاصابع) اليدين بالتشبيك و الرجلين بخنصر يده اليسرى بادياً بخنصر رجله اليمنى وهذا بعد دخول الماء خلالها فلو منضمة فرض قال في الشامية (قوله و تخليل الاصابع) هو سنة مؤكدة اتفاقاً سراج (رد المحتار ج ۱، ص ۱۰۹) و في موضع آخر منه في الحديث من ترك سنتي لم ينل شفاعتي فترك السنة المؤكدة قريب من الحرام قال ابن عابدين تحت (قوله و في الزيلعي) و مقتضاه ان ترك السنة المؤكدة مكروه تحريماً لجعله قريباً من الحرام و المراد بها سنن الهدى كالجماعة و الآذان و الاقامة فان تاركها مضلل ملوم و المراد الترك على وجه الاصرار بلا عذر (رد المحتار ج ۵، ص ۲۲۷) و في واجبات الصلوٰة و لها واجبات لا تفسد بتركها و تعاد وجوباً في العمد و السهو ان لم يعدها يكون فاسقاً آثماً قال الشامي (قوله يكون فاسقاً) اقول صرح العلامة ابن نجيم في رسالته المؤلفة في بيان المعاصي بان كل مكروه تحريماً من الصغائر و صرح ايضا بانهم

شرطوا الاسقاط العدالة بالصغيرة الادمان عليها. (رد المحتار ج۱، ص۴۲۵)

فقط والله تعالیٰ اعلم۔ جمادی الآخر سنه ..ھ

## په اوداسه کښې د وِلاء (پرله پسې والی) او په هر اندام باندې د دُعا لوستلو حکم.

**سوال:** په اوداسه کښې بيړه کول مستحب دی او که څنګه؟ که چيرته مستحب وي نو د هر اندام د پريمنځلو په وخت کښې بسم الله، د شهادت کلمه او د هر اندام لپاره مستقله ماثوره دُعا. د هر اندام تر مينځلو وروسته درود شريف، برسيره پر دې د رب اغفرلي ذنبي الخ دُعا څنګه لوستل کيدلی شي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه او غسل کښې وِلاء سنت دی، يعني دومره ځنډ دې پکښې نه کوي چه په معتدله هوا کښې د بل اندام تر مينځلو مخکښې لومړی اندام وچ شي همدارنګه تر مسح وروسته او په تيمم کښې دومره ځنډ کول چه په هغه کښې که چيرته کوم اندام پريمنځل شي او بيا وچ شي د سنتو خلاف دی. كذا حرر العلامة ابن عابدين رحمه الله و قال فاغتنم هذا التحرير. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۳) د ولاء د نوموړي تعريف لاندې په دومره وخت کښې خو ډير څه لوستل کيدلی شي. برسيره پر دې د فقهې په کتابونو کښې د دغو دعا ګانو له جملې څخه د يوې دعا لوستل راغلي دي او حقيقت دا دی چه د اللهم اغفرلي ذنبي الخ څخه پرته يوه دُعا هم په صحيح حديث سره نه ده ثابته. په فضائلو کښې په کوم ضعيف حديث باندې د عمل کولو د جواز له شرائطو څخه يو شرط دا هم دی چه هغه به سُنت نه ګڼل کيږي. په دې زمانې کښې د جهالت د غلبې له وجې ئې خلک سُنت بولي. له دې امله له داسې امورو څخه بايد پرهيز وشي.

قال فی الشامية تحت (قوله و التسمية كما مرّ) فصار مجموع ما يذكر عند كل عضو التسمية و الشهادة و الدعاء و الصلوة على النبی ﷺ لكن قال صاحب الهداية فی مختارات النوازل و يسمی عند غسل كل عضو او يدعوا بالدعاء المأثور فيه او يذكر كلمة الشهادة او يصلی علی النبی ﷺ فاتی فی الجميع بأو لكن رأيت فی الحلية عن المختارات و يدعوا بالواو و بأو فی البواقی فليراجع. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۸) و قال العلامة الرافعی رحمه الله راجعت النوازل فرأيته عبر بأو فی جميع المعاطيف. (التحرير المختار ج۱، ص۱۸)

وفی هذا البحث من العلائية قال محقق الشافعية الرملی فيعمل به فی فضائل الاعمال و ان انكره النووی (فائدة) شرط العمل بالحديث الضعيف عدم شدة ضعفه و ان يدخل تحت اصل عام و ان لا يعتقد سنية ذلك الحديث. (رد المحتار ج۱، ص۱۱۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم۔ ۲۸ شعبان سنه ..ھ

## مسواک د یو لویشت په اندازه اوږدوالی مستحب دی

**سوال** په لومړي سر کښې له یوې لویشتې څخه د لنډ مسواک استعمالول صحیح دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** له پیل څخه د مسواک له یوې لویشتې څخه کموالی د استحباب خلاف دی چه په استعمال سره کم شي نو بیا پروا نه لري. (لما في العلائية وندب امساكه بيمناه وكونه لينا مستويا بلا عقد في غلظ الخنصر وطول شبر وفي الشامية (قوله وطول شبر) الظاهر انه في ابتداء استعماله فلا يضر نقصه بعد ذلك بالقطع منه لتسويته تأمل وهل المراد شبر المستعمل او المعتاد الظاهر الثاني لانه محمل الاطلاق غالباً) (رد المحتار ج۱ ص۱۰۴) داسې مستحبات په عمومي دول په آسانتیا او داسې نورو پورې مبني وي، شرعي حکم باید و نه ګڼل شي. **فقط والله تعالیٰ اعلم.** ۱۷رجب ۱۳۸۸هـ

## د اندامونو تر دریو ځله زیات د پرېمنځلو حکم

**سوال** ځینې خلک په اوداسه کښې درې ځله لاسونه تر څنګلو پورې مینځي بیا درې وارې اوبه پرې تیروي چه ټول شپږ وارې کیږي. په اوداسه کښې داسې کول صحیح دي او که مکروه یا ناجائز او داسې کول به شپږ وارې ګڼل کیږي او که درې وارې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د دې اعتقاد له مخې تر درې ځله زیات کوم اندام پرېمینځي چه ثواب دی یا سنت دی نو دا مکروه تحریمي دی. او که چیرته ئې اعتقاد نه وي لیکن پرته له کومې داعیې څخه ئې کوي نو د عبث والي له وجې مکروه تنزیهي دی. او که چیرته د شک د لرې کولو او د زړه د تسلي لپاره ئې خپل اندامونه تر درې ځله زیات مینځه نو بیا کوم کراهیت نه لري. البته د مسجد او مدرسې د وقف په اوبو سره تر درې ځله زیات مینځل حرام دي

قال في شرح التنوير والاسراف ومنه الزيادة على الثلث فيه تحريماً لو بماء النهر والمملوك له اما الموقوف على من يتطهر به ومنه ماء المدارس فحرام وقال في الشامية (قوله والاسراف) اى بان يستعمل منه فوق الحاجة الشرعية لما اخرج ابن ماجة وغيره عن عبد الله بن عمرو بن العاص ان رسول الله ﷺ مر بسعد وهو يتوضأ فقال ما هذا السرف فقال أفي الوضوء اسراف فقال نعم وان كنت على نهر جار حليه (قوله ومنه) اى من الاسراف الزيادة على الثلاث اى في الغسلات مع اعتقاد ان ذلك هو السنة لما قدمنا من ان الصحيح ان النهي محمول على ذلك فاذا لم يعتقد ذلك وقصد الطمانينة عند الشك او قصد الوضوء على الوضوء بعد الفراغ فلا كراهة كما مر تقريره وافادنا الكراهة تنزيهية فذكرها تحت قوله تحريماً. (رد المحتار ج۱ ص۱۲۲)

**فقط والله تعالیٰ اعلم** ۲۰ ربیع الاول سنه ۱۳۸۸هـ

## په اوداسه کښې د ږيرې د ويښتانو د لمدولو حکم

**سوال** په اوداسه کښې که چيرته د ږيرې له ويښتانو څخه څه وچ پاتې شي نو اودس کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چيرته ږيره دومره کمه يا سپکه وي چه د مخ څرمن ترې ښکاريدله نو تر څرمنې پورې اوبو رسول ضروري دي او که نه وي نو نه دی او هغه ويښتان کوم چه د مخ په حد کښې د ننه دي د هغو پريمينځل فرض دي او کوم چه تر زنې لاندې زړيږي د هغو پريمينځل ضروري نه دي ليکن بهتر دي

لانه فرض عند الشافعی رحمه الله قال فی شرح التنویر لا خلاف ان المسترسل لا یجب غسله ولا مسحه بل یسن و ان الخفیفة التی تری بشرتها یجب غسل ما تحتها کذا فی النهر. و فی الشامیة (قوله ان المسترسل) ای الخارج عن دائرة الوجه وفسره ابن حجر فی شرح المنهاج بما لو مد من جهة نزوله لخرج عن دائرة الوجه و علی هذا فالنابت علی اسفل الذقن لا یجب غسل شیء منه لانه بمجرد ظهوره یخرج عن حد الوجه لان ذلک جهة نزوله وان کان لو مد الی فوق لا یخرج عن حد الجبهة و کذا النابت علی اطراف الحنک من اللحیة و اما النابت علی الخدین فیجب غسل ما دخل منه فی دائرة الوجه دون الزائد علیها (قوله بل یسن) ای المسح لکونه الاقرب لمرجع الضمیر و عبارة المنیة صریحة فی ذلک الخ. (رد المحتار ج۱ ص۷۳)

فقط والله تعالی اعلم. ۲۰ جمادی الاولی سنه ۷۳ھ

## تر اوداسه وروسته د اسمان خوا ته د کتلو حکم

**سوال** د اوداسه تر کولو وروسته د آسمان خوا ته د کتلو حکم څه دی؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** تر اوداسه وروسته د شهادت د کلمې د ويلو په وخت کښې د آسمان خوا ته کتل له نبي کريمﷺ څخه ثابت دی کما فی رواية ابی داؤد

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله وان یقول بعده) وزاد فی المنیة ایضاً وان یقول بعد فراغه سبحانك اللهم و بحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك و اتوب الیك و اشهد ان محمداً عبدك و رسولك ناظرا الی السماء (رد المحتار ج۱ ص۸۴)

فقط والله تعالی اعلم. صفر سنه ۸۰ھ

له دې څخه د رجوع تفصيل په تتمه کښې دی.

## د اوداسه په حالت کښې د قبلې خوا ته د توکلو حکم

**سوال** قبلې ته مخامخ کيناستل د اوداسه کولو په صورت کښې د قبلې خوا ته لاړې هم

توكي: په داسې حال كښې چه بل وخت كښې خلك قبلې ته له توكلو څخه منع كيږي. د دې شرعي حيثيت څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قبلې خوا ته توكل مكروه دي. كه چيرته مخ د قبلې خواته وي ليكن لاړې كښته د زمكې خوا ته تو كړي نو په دې كښې كوم كراهيت نشته. لكه څرنګه چه په حديث كښې دي چه كه چيرته په لمانځه كښې د لاړې د توكلو ضرورت پيښ شي نو تر پښو لاندې دې لاړې تو كړي په داسې حال كښې چه په دې وخت كښې لمونځ كوونكى قبلې ته مخامخ وي. له دې سره سره د لاندې خوا ته د توكلو اجازه وركړ شوې ده. فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۱ رجب سنه ۹۲هـ

## د چا لاسونه كه چيرته پرې شوي وي هغه به اودس څنګه كوي؟

**سوال:** كه چيرته د كوم سړي لاسونه دواړه پرې شوي وي هغه به اودس څنګه كوي؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اوداسه په اندامونو دې اوبو وبهوي، كه چيرته ئې دا هم نه شوى كولى نو بيا دې تيمم وكړي. كه چيرته ئې لاسونه زخمي وي يا څنګل تول پرې وي او په مخ باندې په هيڅ ډول د اوبو د بهولو قدرت نه وي نو مخ دې په زمكې يا ديوال او داسې نورو باندې د تيمم په نيت سره ومښي، كه چيرته په مخ باندې د زخم له وجې په دې باندې هم قدرت و نه لري نو بيا دې له اوداسه پرته لمونځ وكړي.

قال في التنوير مقطوع اليدين والرجلين اذا كان بوجهه جراحة يصلي بغير طهارة ولا يعيد على الاصح. وفي الشامية (قوله وبوجهه جراحة) والامسحه على التراب ان لم يمكنه غسله. (رد المحتار ج۱، ص۲۳۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم. ۲۲ ربيع الآخر سنه ۹۰هـ

## د جرمانې په لوټو (بدنيو) باندې اودس كول

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء كرام او د شرع متين مفتيان كرام د لاندينۍ مسئلې په اړه چه د كميټې غړو صاحبانو د كوم ديني يا دنيوي قصور له وجې په زيد باندې دا جرمانه ولګوله چه مسجد ته به شل دانې لوټې اخلي او د خلكو د اودسو لپاره به ئې ږدي. نو اوس پوښتنه دا ده چه جرمانه خو د حنفيه وو په نزد ناجائزه ده ليكن په زيد باندې چه اوس كومه جرمانه اېښودل شوې ده او هغه له همدې امله لوټې واخيستلې او مسجد كښې ئې كيښودلې آيا په دغو لوټو سره اودس جائز دی او كه نه؟ او چه څوك په داسې اوداسه لمونځ وكړي نو آيا دا لمونځ ئې له كراهيت پرته صحيح دی او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چيرته زيد د لوټې په اخيستلو باندې د زړه له منځه خوښ او راضي وي نو د داسې لوټو استعمالول جائز دي او كه نه وي نو نه دی. د زيد له خوښې پرته اګر كه

د داسې لوټو استعمالول ګناه ده لیکن اودس او لمونځ له کراهیت پرته صحیح کیږي. یو اخې د لوټو د استعمالولو ګناه به وي. فقط و الله تعالی اعلم. ۲ ذی القعدة ۸۹ھ

## د جنازې د تلاوت د سجدې لپاره په شوی اوداسه باندې لمونځ کیدلی شي؟

**سوال:** یوه سړي د جنازې د لمانځه یا د تلاوت د سجدې لپاره اودس وکړ نو آیا په همدې اوداسه سره ئي لمونځ هم کیږي او که نه؟ بینُوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هو! کیږي بلکه د اوبو د نه شتون یا د کومې بیمارۍ له وجې که چیرته د جنازې لپاره تیمم هم شوی وي نو په هغه سره هم د نورو لمونځونو کول جائز دي.

قال ابن عابدین رحمه الله (قوله بخلاف صلوة جنازة) ای فان تیممها تجوز به سائر الصلوات لکن عند فقد الماء و اما عند وجوده اذا خاف فوتها فانما تجوز به الصلوة علی جنازة اخری اذا لم یکن بینهما فاصل کما مر ولا تجوز به غیرها من الصلوات افاده ح. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۲۶) فقط والله تعالی اعلم. ۲۴ صفر سنه ۹۰ هجری

## په اخبارونو کښې لیکل شوي د قرآن ایتونو ته بې اودسه دلاس لګولو حکم

**سوال:** د اخبار په کوم مخ باندې چه د قرآن آیت لیکل شوی وي هغه ته بې اودسه لاس لګول څنګه دي؟ بینُوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه په کوم ځای باندې د قرآنکریم آیت لیکل شوی وي په هغه ځای باندې بې اودسه لاس لګول منع دي. په نورو ځایونو باندې لاس لګول جائز دي. البته که چیرته له کوچني څخه کوچنی یعنې له شپږو حروفو څخه هم کم آیت وي نو د یوه قول مطابق په هغه باندې هم د لاس لګولو ګنجائش شته.

قال فی شرح التنویر و یحرم به ای بالاکبر و بالاصغر مس مصحف ای ما فیه اٰیة کدرهم و جدار و فی الحاشیة تحت (قوله ای ما فیه آیة الخ) لکن لا یحرم فی غیر المصحف الا المکتوب ای موضع الکتابة کذا فی باب الحیض من البحر و قید بالاٰیة لانه لو کتب ما دونها لا یکره مسه کما فی حیض القهستانی و ینبغی ان یجری هنا ما جری فی قرائة ما دون آیة من الخلاف و التفصیل المارین هناك بالاولی لان المس یحرم بالحدث و لو اصغر بخلاف القرائة فکانت دونه تأمل. (رد المحتار ج ۱، ص ۱۲۰) فقط والله تعالی اعلم. ۲۷ رجب سنه ۹۲ هجری

## د قران کریم ټیپ یا پلیټ یعنې ټالی ته بې اودسه د لاس لګولو حکم

**سوال:** په فونو ګرام ،هغه تلاوت چه د تار یا ټیلفون په ذریعې سره کیږي ...

كوم تلاوت كيږي او په كـوم چيني، پليټ يا تالي يا ټيپ ريكارډ كښې چه قرآنكريم وي هغو ته بې اودسه لاس لګول او سجدهٔ تــلاوت او داسې نورو كښې د قرآنكــريم غوندې حكم لري او كه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په راډيو كښې كه چيرته د سجدې آيت تلاوت شي نو په اوريدونكي باندې سجده واجبيږي. په كيسټ يا ټيپ ريكارډ كښې نه قرآنكريم ليكلى وي او نه د هغه آواز د قرآنكريم آواز دى بلكه د آواز د بيرته راګرځيدو (انعكاس) غوندې د غږ نقل دى. له دې امله حكم ئې د قرآنكريم غوندې نه دى. بې اودسه لاس لګول ورته جائز دي او د سجدې د آيت په اوريدو سره سجده نه واجبيږي. فقط و الله تعالى اعلم. ۹صفر ۱۴۰۳ هجرى

## د قرانكريم په تش مخ باندې لاس لګول جائز نه دي

**سوال:** بې اودســه د قرآنكريم په هغه مخ باندې لاس لګول چه كوم آيت پكښې ليكل شوى نه وي لكه د قرآنكريم د پيل په صفحه كښې قرآني حروف لیکل شوي نه وي نو د دې شرعي حكم څه دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د قرآنكريم خالي يا تش مخ ته هم بې اودسه لاس لګول جائز نه دي. بلكه په جلد يا ګټې باندې ئې هم لاس لګول منع دي.

قال في التنوير ويحرم به اى بالاكبر وبالاصغر مس مصحف الا بغلاف متجاف. (ردالمحتار ج۱ ص۱۶۰) وفي الحيض منه ومسه الا بغلافه وفي الشرح المنفصل عنه وفي الحاشية (قوله ومسه) اى القرآن ولو في لوح اودرهم اوحائط لكن لا يمنع الامن مس المكتوب بخلاف المصحف فلا يجوز مس الجلد وموضع البياض منه. (ردالمحتار ج۱ ص۲۰۰) فقط والله تعالى اعلم. ۲۸ رجب المرجب ۱۳۹۶ هجرى

## د روغني رنګ د لرې كولو پرته اودس نه كيږي

**سوال:** كوم خلك چه د رنګسازي يا تاركول (قير) كارو بار كوي د هغو په اړه دا پوښتنه كيږي چه كوم رنګ يا قير د هغو په لاسونو يا پښو باندې لګيدلي وي هغه په مينځلو سره نه پاكيږي او د اودسه په كولو سره لاندې څرمنې ته اوبه نه ورځي نو آيا د هغو په لاسونو او پښو كښې د داسې نښانو په شتون سره د دوى اودسونه كيږي او كه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** رنګمال كوم چه د جامو د رنګولو كار كوي د هغه په لاسونو باندې چه كوم رنګ لګيدلى وي د هغه د لرې كولو ضرورت نشته. البته د ترګو او اوسپنې او داسې نورو څيزونو د رنګ لګولو روغني رنګ كوم چه د سوكي غوندې په بدن پورې نښلي كه چيرته په

لاسونو او داسې نورو باندې ولګیږي نو د هغه له لرې کولو پرته اودس نه کیږي البته که جیرے د پټوکي غوندې کلک نه وو نښتی او یوازې رنګ په نظر راته نو بیا اودس کیږي ځکه چه دې ځای ته د اوبو د رسیدو کوم مانع نشته.

قال فی شرح التنویر ولا یمنع ما علی ظفر صباغ ولا طعام بین اسنانه او سنه المجوف به یفتی وقیل ان صلبا منع وهو الاصح وفی الشامیة (قوله وهو الاصح) صرح به فی شرح المنیة وقال لامتناع نفوذ الماء مع عدم الضرورة والحرج آه. (ردالمحتار ج۱، ص۱۴۳) فقط والله تعالی اعلم. ۲ شعبان ۹۵ هجری

## په شرمګاه کښې د ګوتې په داخلولو او بیا را ایستلو سره اودس ماتیږي

**سوال:** زید د خپلې بي بي په شرمګاه کښې له جامې سره یا پرته له جامې ځکه ګوته ننه ایسته نو آیا د بي بي اودس ئې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس ئې ماتیږي که په ګوتې باندې کومه جامه وي یا نه وي ځکه چه کله ګوته را و ایستل شي نو په هغې باندې به خامخا نجاست لګیدلې وي او د نجاست را وتل د اوداسه ماتوونکی دی. البته که چیرته ګوته د فرج داخل یعنې د ګرد (ګول) سوري ته د ننه لاړه نه شي نو بیا اودس نه ماتیږي فقط و الله تعالی اعلم ۱۰ ذی الحجة ۹۶ هجری

## د زکام او رمد (یو ډول بیماري ده چه سترګې ورسره سرې شي) د اوبو حکم

**سوال:** د زکام په حالت کښې چه له پوزې ځکه کومې اوبو بهیږي آیا اودس پرې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فی الدر المختار فی مباحث المعذور وصاحب عذر من به سلس بول (الی ان قال) او بعینه رمد او عمش او غرب وکذا کل ما یخرج بوجع ولو من اذن وثدی وسرة وقال فی الشامیة (قوله وکذا کل ما یخرج بوجع الخ) ظاهره یعم الانف اذا زکم ط (ردالمحتار ج۱، ص۲۲۳)

له پورتني عبارت ځکه څرګندیږي چه د زکام له وجې چه کومې اوبو له پوزې ځکه بهیږي د اودس ماتوونکي دي او چه کوم سړي ته داسې زکام لګیدلی وي هغه معذور دی. په هغه باندې د معذور احکام جاري کیږي

علامه شامی لیکي (لکن صرحوا بان ماء فم النائم طاهر ولو منتنا فتأمل) ځکه اشکال وارد کړی دی چه خواب ئې دا دی چه د خولې اوبو د علت له مخې نه وي او د زکام اوبو د علت له مخې وي دا فرق ښکاره هم دی او علامه رافعي په التحریر المختار کښې د دې تصریح هم کړی ده

و نصه (قوله لکن صرحوا بان ماء فم النائم الخ) ای مقتضی ما صرحوا ان لا یکون الزکام ناقضاً بالاول لانبعاثه من الرأس الذی لیس محل النجاسة و انبعاث الاول من الجوف الذی محلها لکن یفرق بینهما بان الزکام خارج بعلة بخلاف ماء فم النائم ولو منتناً آهـ (التحریر المختار ج۱، ص۲۰)

وجع ضروري نه دی د علت په سبب سره وتونکې اوبو نجسې او د اودس ماتوونکې دي (کما فی الشامیة تحت القول المذکور. فقط والله تعالٰی اعلم). ۱۳ ذی القعدة ۱۴۰۸ هجری

## د پورتنۍ مسئلې اصلاح

له ژورې څیړنې څخه دا څرګندیږي چه د رمد او زکام اوبه ماتوونکې نه دي څکه چه د خولې غوندې پوزه او سترګې د اصلي رطوبت (لمدوالي) محل دي. په خولې کښې د زخم په صورت کښې چه تر څو پورې زوې یا وینې تر سترګو نه شي تر هغه وخته پورې د خولې لارې ماتوونکې نه دي اګر که د کوم عارض (تکلیف) له وجې لارې ډیرې وبهیږي. همدا حکم باید د پوزې، غوږونو او سترګو وي. د فن د ماهرینو ډاکټرانو څخه د څیړنې په نتیجه کښې څرګنده شوه چه د زکام او رمد اوبو په زخم پورې کوم تعلق نه لري. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۶ شوال ۱۴۰۳ هجری

## د غټو متیازو له ځایه د چینجي وتل د اودس ماتوونکی دی

**سوال:** که چیرته د لمانځه په حالت کښې د غټو متیازو له ځایه چینجی را ووځي نو آیا لمونځ یا اودس ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اودس پرې ماتیږي له دې امله لمونځ هم نه کیږي (کما فی نواقض التنویر وریح اودودة اوحصاة من دبر). (ردالمحتار ج۱، ص۱۲۶) فقط والله تعالٰی اعلم. ۲ ذی القعدة ۱۴۰۱ هجری

## د ناست سړي په خوب سره د اودس د ماتیدو صورتونه

**سوال:** په ناستې سره د ویده کیدلو کوم کوم صورتونه د اودس ماتوونکي نه دي، د دې تفصیل مطلوب دی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قال فی الدر (نوم یزیل مسکته) ای قوته الماسکة بحیث تزول مقعدته من الارض وهو النوم علی احد جنبیه اورکبه اوقفاه اووجهه و(الا) یزل مسکته (لا) ینقض و ان تعمده فی الصلاة او غیرها علی المختار کالنوم قاعداً و لو مستندا الی ما لو ازیل لسقط ولی المذهب و ساجداً علی الهیئة المسنونة ولوفی غیر الصلاة علی المعتمد ذکره الحلبی او متورکا او محتبیاً و رأسه علی رکبتیه او شبه المنکب

(الی قوله) ولو نام قاعداً یمایل فقط ان التمه حین سقط فلا نقض به یفتی وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله علی المذهب) ای علی ظاهر المذهب عن ابی حنیفة و به اخذ عامة المشائخ و هو الاصح کما فی البدائع و اختار الطحاوی و القدوری و صاحب الهدایة النقض و مشی علیه بعض اصحاب المتون و هذا اذا لم تکن مقعدته زائلة عن الارض و الا نقض اتفاقاً کما فی البحر و غیره. (قوله او شبه المنکب) ای علی وجهه و هو کما فی شروح الهدایة ان ینام واضعاً الیتیه علی عقبیه و بطنه علی فخذیه و نقل عدم النقض به فی الفتح عن الذخیرة ایضاً ثم نقل عن غیرها لو نام متربعاً و رأسه علی فخذیه نقض قال و هذا یخالف ما فی الذخیرة و اختار فی المنیة النقض فی مسألة الذخیرة لارتفاع المقعدة و زوال التمکن و اذا نقض فی التربع مع انه اشد تمکنا فالوجه الصحیح النقض هنا ثم ایده بما فی الکفایة عن المبسوطین من انه لو نام قاعداً و وضع الیتیه علی عقبیه و صار شبه المنکب علی وجهه قال ابو یوسف علیه الوضوء. (رد المحتار ج۱، ص۱۳۲)

**له پورتني تفصیل څخه لاندیني امور ثابت شول.**

- که چیرته له کوم شي سره تر څنګ لګولو پرته ویده شو او و نه لویده یا په لویدو سره فوراً را ویښ شو نو اودس ئي مات نه شو.

- د سجدې په مسنونه هیئت سره ویده کیدل د اودس ماتونکي نه دي اګر که له لمانځه څخه د باندې هم وي.

که چیرته ټول مقعد په زمکې پوري لګیدلې نه وي او تکیه ئي لګولې وي او ویده شوی وي اګر که پڅپل ورانه یا بل شي باندې هم وي نو اودس ماتیږي. له دې امله په دوارو زنګنونو باندې کښیناستل او په ورانه باندې د تکیه لګولو په صورت کښې په ویده کیدو سره اودس له منځه ځي همدارنګه پلترۍ وهل او په ورانه باندې تکیه لګول او دومره ټیټیدل چه ټول مقعد په زمکې باندې لګیدلی پاتې نه شي نو بیا هم اودس ماتیږي. البته که چیرته ټول مقعد په زمکې باندې قائم پاتې شي مثلاً زنګنونه ودرول شي او په لاسونو ونیول شي یا په کمربند. تو کړی او داسې نورو سره له ملا سره وتړل شي او په زنګنونو باندې سر ولګوي او ویده شي یا پلترۍ کښیني او څنګلې په ورنونو تکیه کړي یواځې دومره ټیټ شي چه مقعد ټول په زمکې باندې قائم پاتې شو نو اودس نه ماتیږي

که چیرته ټول مقعد په زمکې باندې قائم (کلک لګیدلی) وي او د تکیې په لګولو سره دومره زور ویده شي چه هغه شي چه تکیه ئي پرې لګولې ده لرې کړی شي نو ولویږي په دې صورت کښې اختلاف دی. نه ماتیدل مفتی به دی. فقط و الله تعالی اعلم ۲۰ ذي الحجة ـــــ هجری

## د رګ ستن د اودس ماتوونکې ده

**سوال:** حضرت صاحب ويلي وو چه د رګ په ستن کښې د وينې د وتلو له وجې اودس ماتيږي نو آيا په هرې ستنې کښې د وينې وتل ضروري دي او که څنګه؟ همدارنګه که چيرته وينه ووتله او هغه په پيچکارۍ کښې له دوا سره د يو ځاى کيدو په صورت کښې بيرته بدن ته داخله شوه. نو که چيرته دا وينه خارج (وتلې) ومنل شي نو آيا په داسې صورت کښې علاج په حرامو نه راغی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د رګ په ستن کښې د ستنې په رګ کښې د برابريدو د يقين حاصلولو يو اځې همدا ذريعه ده چه پيچکارۍ ته وينه راشي، تر څو چه وينه په پيچکارۍ کښې تر سترګو نه شي تر هغه وخته پورې دوا بدن ته نه ور داخلوي. د غوښې او عضلاتو په ستن کښې وينه نه راووځي نو څکه يو اځې د رګ ستن د اوداسه ماتوونکې دی او د غوښې ستن نه دی.

پاتې شوه د علاج په حرامو مسئله نو اګرکه پيچکارۍ ته وينه را ووځي او له دواسره يو ځاى کيږي چه له مخې ئې دوا مرداريږي ليکن انجکشن (ستن) په خارجي استعمال کښې داخله ده همدا وجه ده چه په ستنې سره روژه نه ماتيږي او د داسې متنجسه مائع چه مغلوب النجاسة وي (يعنې داسې مائع لکه ستن او داسې نور چه نجاست پکښې کم او بل شی پرې زيات وي) استعمال جائز دی فقط و الله تعالى اعلم.

۲۲/جمادی الاولی ۹۶ هجری

## د اوداسه په دوران کښې د زنګنونو د ښکاريدلو حکم

**سوال:** که چيرته د اوداسه په دوران کښې د يوه سړي زنګنونه ښکاره شي نو آيا په دې سره په اوداسه کښې کوم تاوان خو نه راځي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه کښې هيڅ تاوان نه راځي، البته د نورو خلکو له مخې د زنګنونو ښکاره کول سخته ګناه ده. فقط و الله تعالى اعلم.

۱۱/صفر ۹۸ هجری

## د چا د ستر په ليدلو سره اودس نه ماتيږي

**سوال** که چيرته د اوداسه په حالت کښې يا د اوداسه د کولو په وخت کښې د چا د ستر په ځاى باندې سترګې ولګيږي نو آيا په اوداسه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بله دا چه په دې کښې د محرم او نامحرم لپاره څه فرق شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په اوداسه کښې کوم فرق نه راځي فقط و الله تعالى اعلم

۱۱/صفر ۹۸ هجری

## په لمانځه کښې د خندا په غږ سره اودس ماتيږي

**سوال:** ما يوه ورځ په جماعت سره لمونځ کاوه، په مسجد کښې ناڅاپه د صفونو منځ ته يوه پيشو را ننوتله چه له مخې ئې ماته خندا راغله. ما ئې ډير د بندولو کوشش وکړ ليکن د خولې له بندولو سره له پوزې څخه د خندا غږ ووت. په دې سره په لمانځه او اوداسه کښې فساد راځي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته دومره غږ ووځي چه يواځې د څنګ سړی ئې واوري نو يواځې لمونځ فاسديږي اودس نه ماتيږي. او که چيرته د خندا غږ دومره لوړ وي چه د څنګ له سړو پرته د ښا او خوا څه نور خلک ئې هم واوري نو اودس هم ماتيږي. دا حکم د بالغ لپاره دی. د نابالغ هلک اودس په لمانځه کښې په خندا سره نه ماتيږي.

په دې کښې اختلاف دی چه د بالغ اودس په مطلقه توګه ماتيږي او که دا چه يواځې د لمانځه په حق کښې دی بې اودسه ګڼل کيږي او د قرآنکريم لاس لګول او داسې نور ورته جائز دي. په دې کښې دويم قول راجح دی. يعنې قرآنکريم ته لاس وروړل او داسې نور ورته جائز دي.

فی نواقض الوضوء من شرح التنویر (وقهقهة) هی ما یسمع جیرانه (بالغ) ولو امرأة سهواً (یقظان) فلا یبطل وضوء صبی ونائم بل صلاتهما.

وفی الشامیة قیل انها من الاحداث وقیل لا وانما وجب الوضوء بها عقوبة وزجراً وفائدة الاختلاف فی مس المصحف یجوز علی الثانی لا الاول کما فی المعراج قال فی النهر وینبغی ان یظهر ایضاً فی کتابة القرآن واما حل الطواف بهذا الوضوء ففیه تردد والحاق الطواف بالصلوة یؤذن بأنه لا یجوز فتدبره ورجح فی البحر القول الثانی وایده فی النهر. (رد المحتار ج۱،ص۱۴۳) فقط والله تعالی اعلم.

مربیع الاول ۸۴ھ هجری

## تر اوداسه وروسته په تولیې (لاس پاک یا رومال) سره د اندامونو وچول

**سوال:** د اوداسه تر کولو وروسته دې اندامونه په کومې کپړې سره وچول صحيح دي او که همداسې پرېښودل ئې صحيح دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر اوداسه وروسته په رومال سره د اندامونو وچول پروا نه لري ليکن بهتره دا ده چه زيات ئې وچ نه کړي تر څو چه د اوداسه کوم اثر باقي پاتې شي.

قال فی الشامیة تحت (قوله والتمسح بمندیل) ففی الخانیة ولا بأس به للمتوضئ والمغتسل روی عن رسول الله ﷺ انه کان یفعله ومنهم من کره ذلك ومنهم من کرهه للمتوضئ دون المغتسل والصحیح ما قلنا الا انه ینبغی ان لا یبالغ ولا یستقصی فیبقی اثر الوضوء علی اعضائه. (رد المحتار ج۱،ص۱۲۱) فقط والله تعالی اعلم.

۱۱/رمضان ۸۹ھ هجری

## په فرج باندې برسيره ګوتې لګول د اودس ماتوونکې نه دي

**سوال:** آيا دا کيدلی شي چه د سيلان په مرض کومه مريضه ښځه د لمانځه يا تلاوت په دوران کښې د وقفې په صورت کښې د پوستکي د تنه ځای په ګوتې باندې مس کړي چه اوبو وتلي دي او که نه. که چيرته هغې په دې طريقې سره وکتل ليکن هغه ځای با لکل پاک وو نو په دې صورت کښې د هغې شرمګاه ته په کتلو او مس کولو سره اودس ماتيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې سره اودس نه ماتيږي. البته که چيرته مخکښې ګول سوري ته د تنه ګوته داخله کړې نو په دې سره اودس ماتيږي ځکه چه له ګوتې سره د تنه نجاست هم د باندې راووځي. فقط و الله تعالی اعلم. ١٠شوال المکرم ١٣٩٤هجري

## که چيرته اوبه او خاوره دواړه نه وي نو څه به کوي؟

**سوال:** زيد په موټر کښې سفر کوي او بې اودسه دی د لمانځه وخت راغی او اوبو هم نشته همدارنګه د لمانځه د ادا کولو لپاره په موټر کښې ځای هم نشته. نو آيا بې اودسه په اشارې سره لمونځ کولی شي او که نه؟ په دويم صورت کښې که چيرته اودس ئې وي ليکن د لمانځه ځای نه وي نو د ځای د نشت والي له وجې په اشارې سره لمونځ کولی شي او که نه؟ په نوموړيو دواړو صورتونو کښې د لمانځه د قضا کيدو ويره هم موجوده ده. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دواړو صورتونو کښې چه څنګه ممکنه وي لمونځ دې وکړي ليکن وروسته دې بيا قضائي راوړي. فقط و الله تعالی اعلم. ٢ربيع الاول ١٣٩٩هجري

## د نوکانو پالش د اوداسه او غسل دواړو مانع دی

**سوال:** د شرع متين علماء کرام او مفتيان د دې مسئلې په باره کښې څه فرمايي چه په دې زمانې کښې ښځې چه د نوکانو کوم پالش لګوي، چه کله ورته ووېل شي چه د نوکانو پالش لګول ناراو دي، چه په نوکانو لګيدلی وي اودس نه کيږي کوم چه د لمانځه لپاره شرط دی او لمونځ د اسلام له ارکانو څخه يو رکن دی، چه کله اودس و نه شي نو لمونځ هم نه کيږي ځکه چه لمونځ په اوداسه باندې مرتب کيږي هغه به څنګه صحيح شي. نو په ځواب کښې وائي چه دا د ښائست لپاره لګول کيږي کوم چه د ښځې لپاره ضروري دی. فقهاء کرام هم وايي چه ښځه بايد هر وخت د خاوند لپاره تياره او ښائسته و اوسي. بيا نوځنګه و نه لګول شي. نو آيا لګول ئې جائز دي او که ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې ښائست حرام دی کوم چه د شرعي فرائضو د صحت لپاره خنډ وي. کوم شی چه بدن ته د اوبو رسولو څخه مانع وي د هغه په موجودوالي کښې اودس او

غسل نه صحيح کيږي که چيرته د ويښته په اندازه ځای هم وچ پاتې شي نو اودس او غسل نه کيږي حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالى وچ شوي وړه د اوداسه د صحت مانع بللی دی په داسې حال کښې چه هغه د نوکانو د پالش غوندې سخت هم نه وي او ضرورت ئې هم شته نو د نوکانو د پالش اجازه څرنګه ورکول کېدلی شي. څومره لمونځونه چه د نوکانو له پالش سره ادا شوي وي د هغو بيرته راګرځول واجب دي او له دې سره سره به استغفار هم غواړي

قال فی الشامية (قوله بخلاف نحو عجين) ای كعلك و شمع و قشر سمك و خبز ممضوغ متلبد جوهرة لكن فی النهر ولو فی اظفاره طين او عجين فالفتوى على انه مغتفر قرويا كان او مدنيا آه نعم ذكر الخلاف فی شرح المنية فی العجين واستظهر المنع لان فيه لزوجة و صلابة تمنع نفوذ الماء. (رد المحتار ج۱، ص۱۳۲) فقط والله تعالى اعلم.

۱۳/جمادى الاولى ۹۸ھ هجرى

## د تفاسيرو او احاديثو کتابونو ته بې اودسه لاس ور وړل

**سوال:** د قرآنکريم تفسير او د حديثو کتابونه يعنې بخاري، مشکوة او داسې نور بې اودسه را اخيستلی او ويلی شي او که نه؟ د دې ځواب راکړی مهرباني به مو وي.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته په تفسير کښې د قرآنکريم تر آيتونو تفسير زيات وي نو هغه ته بې اودسه لاس ورووړل جائز دي ليکن چه په کوم ځای باندې د قرآنکريم آيت ليکلی وي له هغه ځای سره به لاس نه لګوي. د حديثو د کتابونو بې اودسه مس کول جائز دي. فقط و الله تعالى اعلم.

۲/جمادى الآخر ۹۸ھ هجرى

## د وينې ايستل د اوداسه ماتوونکی دی

**سوال:** آيا د وينې را ايستل (کوم چه په شفاخانو کښې رواج دی) د اودس ماتوونکی دی او که نه؟ ځکه چه وينه پخپله نه ده وتلې بلکه را ايستل شوې ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د اودس د ماتولو لپاره د وينې وتل يا را ايستل دواړه برابر دي لهذا لکه څرنګه چه د وينې په وتلو سره اودس ماتيږي همدارنګه په را ايستلو سره ئې هم اودس ماتيږي. له همدې وجې د رګ انجکشن (ستن) هم د اودس ماتوونکې ده ځکه چه په دې سره وينه بيچکاری ته راځي.

قال فی العلائية والمخرج والخارج بنفسه سيان فی حكم النقض على المختار. كذا فی البزازية قال لان فی الاخراج خروجا فصار كالفصد وفی الفتح عن الكافی انه الاصح واعتمده القهستانی وفی القنية وجامع الفتاوى انه الاشبه ومعناه انه الاشبه بالمنصوص رواية والراجح دراية فيكون الفتوى عليه. (رد المحتار ج۱، ص۱۲۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم۔ ۱جمادی الاخریٰ ۱۴۰۰ هجری

## په ولاړې وینې سره د اودس د ماتیدو تفصیل

**سوال:** په یوه زخم باندې وینه هر وخت ولاړه وي او په جامو باندې بار بار لګیږي لیکن بهیږي نه. آیا داسې وینه د اودس ماتوونکې ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په یوه مجلس کښې څو وارې له جامو سره لګیدلې وینه اندازه کړې. که چیرته سره یو ځای شي او دومره ډیره وي چه که چیرته جامو نه وای جذب کړې نو وینه به بهیدله نو اودس ماتیږي او که نه وي نو نه ماتیږي. که چیرته په یوه مجلس کښې څو دومره وینه په جامو پورې و نه لګیده لیکن په مختلفو مجلسونو کښې ئې مجموعه دومره شوه نو اودس نه ماتیږي.

قال ابن عابدين رحمه الله (قوله لو مسح الدم كلما خرج الخ) و كذا اذا وضع عليه قطناً او شيئاً آخر حتى ينشف ثم وضعه ثانياً و ثالثاً فانه يجمع جميع ما نشف فان كان بحيث لو تركه سال نقض و انما يعرف هذا بالاجتهاد و غالب الظن، و كذا لو القى عليه رماداً او تراباً ثم ظهر ثانياً فتربه ثم و ثم فانه يجمع، قالوا وانما يجمع اذا كان في مجلس واحد مرة بعد اخرى فلو في مجالس فلا تاتارخانية، و مثله في البحر. اقول و عليه فما يخرج من الجرح الذي ينز دائماً وليس فيه قوة السيلان ولكنه اذا ترك يتقوى باجتماعه ويسيل عن محله فاذا نشفه او ربطه بخرقة و صار كلما خرج منه شيء تشربته الخرقة ينظر ان كان ما تشربته الخرقة في ذلك المجلس شيئاً فشيئاً بحيث لو ترك و اجتمع لسال بنفسه نقض و الا لا، و لا يجمع ما في المجلس الى ما في مجلس آخر و في ذلك توسعة عظيمة لاصحاب القروح و لصاحب كي الحمصة، فاغتنم هذه الفائدة، و كانهم قاسوها على القيء و لما لم يكن هنا اختلاف سبب تعين اعتبار المجلس فتنبه. (رد المحتار ج۱، ص۱۳۵) فقط والله تعالیٰ اعلم۔

۱رجب المرجب ۱۳۹۸ هج

## د ګرمۍ په موسم کښې بدن باندې د را وتونکو دانو د اوبو حکم

**سوال:** د دوبي یا ګرمۍ په موسم کښې اکثره په بدن باندې دانې را خیژي او په تینګولو سره اوبو ترې را ووځي. آیا اودس پرې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د دانې په چاودلو سره اوبو پخپله و نه بهیدلې بلکه د لاس یا جامو په لګیدلو سره اوبو خورې شوې نو اودس نه ماتیږي. او که چیرته اوبو له زخم څخه پورته شي او برسیره راشي او د دانې له سورې څخه شا او خوا خورې شي لیکن تر پورته کیدلو

وروسته کښېنه را نه شي نو د اوداسه په ماتوالي کښې اختلاف دی. راجح قول دا دی چه نه ماتيږي.

قال في العلائية لو مسح الدم كلما خرج ولو تركه لسال نقض والا لا، وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله وعن السيلان) اختلف في تفسيره ففي المحيط عن ابي يوسف انه يعلو وينحدر وعن محمد اذا انتفخ على رأس الجرح وصار اكثر من رأسه نقض والصحيح لا ينقض آه. قال في الفتح بعد نقله ذلك وفي الدراية جعل قول محمد اصح و مختار السرخسي الاول وهو اولى آه. اقول وكذا صححه قاضي خان وغيره وفي البحر تحريف تبعه عليه فاجتنبه (ردالمحتار ج۱، ص۱۲۵) فقط والله تعالى اعلم. ۱۹/رجب ۹۸ هج

## تر اوداسه وروسته شک اعتبار نه لري

**سوال:** يوه سړي ته تر اوداسه وروسته شک ور ولويده چه اودس مې صحيح شوی دی او که نه؟ اوس د ده لپاره څه حکم دی آيا د اوداسه بيرته را ګرځول ورته ضروري دي او که نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اعاده يعني بيرته را ګرځول ورته ضروري نه دي.

قال العلائي رحمه الله شك في بعض وضوئه اعاد ما شك فيه لو في خلاله ولم يكن الشك عادة له والا لا، وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله والا لا) اي وان لم يكن في خلاله بل كان بعد الفراغ منه وان كان اول ما عرض له الشك او كان الشك عادة له وان كان في خلاله فلا يعيد شيئاً قطعاً للوسوسة عنه كما في التاتارخانية وغيرها. فقط والله اعلم.

۲۱/جمادی الآخر ۹۹ هج

## د اوداسه په ماتوالي او نه ماتوالي کښې د شک حکم

**سوال:** د مسئلې صورت دا دی چه يو سړی دا يقين لري چه اودس ئې کړی دی ليکن وروسته ئې په ماتوالي کښې شک ور ولويده. د دې برعکس يو بل سړی په بې اودسي يقين لري ليکن د اوداسه په کولو او نه کولو کښې شک ور لويدلی دی. يعنې دا يقين ئې نشته چه ما اودس کړی دی او که نه. په دواړو صورتونو کښې شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لومړي صورت کښې ئې اودس باقي يعنې په ځای دی او په دويم صورت کښې بې اودسه ګڼل کيږي.

قال شارح التنوير رحمه الله ولو ايقن بالطهارة وشك بالحدث او بالعكس اخذ باليقين (رد المحتار ج۱، ص۱۰۳) فقط والله تعالى اعلم.

۲۶/جمادی الآخر ۹۸ هجری

# باب الغسل

## د جنب لپاره د خولې د پریمینځلو پرته داوبو څښل مکروه دي

**سوال:** دغسل تر کولو مخکښې د جنب سړي لپاره د څه شي خوړل او څښل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د خولې له پریمینځلو مخکښې د اوبو څښل مکروه تنزیهي دي لیکن د کوم بل شي په خوړلو او څښلو کښې هیڅ کراهیت نشته. د اوبو هم لومړی غړپ مکروه دی ځکه چه دا اوبو د خولې د جنابت په لرې کولو کښې استعمال شوې. همدارنګه د لاسونو تر پریمینځلو مخکښې هم څه خوړل او څښل مکروه تنزیهي دي.

قال العلاء ویکفی الشرب عبا لان المج لیس بشرط فی الاصح وفی الشامیة (قوله لان المج الخ) ای طرح الماء لیس بشرط للمضمضة خلافا لما ذکر فی الخلاصة نعم هو الاحوط من حیث الخروج عن الخلاف وبلعه ایاه مکروه کما فی الحلیة (ردالمحتار ج۱،ص۱۳۱) وقال العلاء ولا اکله وشربه بعد غسل ید وفم وفی الشامیة (قوله بعد غسل ید وفم) اما قبله فلا ینبغی لانه یصیر شاربا للماء المستعمل وهو مکروه تنزیها ویده لا تخلو عن النجاسة فینبغی غسلها ثم یاکل بدائع. (ردالمحتار ج۱،ص۱۶۳) فقط والله تعالی اعلم.

۱۹ ذی الحجة ۸۵ھ

## په غسل کښې غړغړه ضروري نه ده

**سوال:** په فرض غسل کښې که چیرته یواځې مضمضه وشي او اوبو غړغړه نه کړې شي نو آیا د روژې د درلودلو له وجې غسل صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په غسل کښې غړغړه ضروري نه ده. په ډکه خوله باندې مضمضه کول ضروري دي. که چیرته چا په ډکه خوله مضمضه وکړه نو غسل ئې وشو، او د روژې په حالت کښې باید غړغړه و نه شي.

قال ابن عابدین رحمه الله (قوله غسل کل فمه الخ) عبر عن المضمضة والاستنشاق بالغسل لافادة الاستیعاب. (ردالمحتار ج۱،ص۱۳۱) والله تعالی اعلم.

۲۵/جمادی الاولی ۹۶ھ

## په ډکه خوله سره د اوبو په څښلو سره د مضمضې (خولې پریمینځلو) فرض ادا کیږي

**سوال** که چیرته کوم جنب سړی پرته له مضمضې څخه یواځې اوبو وڅښلې نو آیا د مضمضې

ضرورت پاتې دی او که نه؟ او که غسل ئې وکړ او مضمضه ئې و نه کړه نو غسل ئې صحیح شو او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنب لپاره په مضمضه کښې اوبو څښل مکروه تنزیهي دي. که چیرته ئې وڅښلې او په دکه خوله ئې وڅښلې نو دا د مضمضې قائم مقام ګرځي، د دې لپاره د مستقلې مضمضې حاجت ورته نشته لیکن بیا هم مضمضه کول بهتر دي.

قال فی العلائیة ویکفی الشرب عبًّا لان المج لیس بشرط فی الاصح قال فی الشامیة (قوله ویکفی الشرب عبًّا) ای لامصًّا فتح وهو بالعین المهملة والمراد به هنا الشرب بجمیع الفم وهذا هو المراد عما فی الخلاصة ان شرب علی غیر وجه السنة یخرج عن الجنابة والا فلا وعما قیل ان کان جاهلا جاز وان کان عالما فلا ای لان الجاهل یعب والعالم یشرب مصًّا کما هو السنة. (قوله لان المج) ای طرح الماء من الفم لیس بشرط للمضمضة خلافا لما ذکر فی الخلاصة نعم هو الاحوط من حیث الخروج عن الخلاف وبلعه اياه مکروه کما فی الحلیة. (رد المحتار ج۱، ص۱۳۱) فقط والله تعالی اعلم. ۲۲ ذی الحجة ۹۶ هج

## په خلوت (داسې ځای چه څوک نه وي) کښې بربنډ غسل کول جائز دي

**سوال:** اوریدلي مو دي چه که چیرته د غسل خانې چت نه وي نو هلته بربنډ غسل کول جائز نه دي او ملائکو ته حیا ورځي. نو آیا دا خبره صحیح ده او که نه، او غسل کول به جائز وي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په بې چته غسلخانه کښې بلکه که چیرته یو اځې وي نو په خلاصه فضا کښې هم بربنډ غسل کول جائز دي. البته شا او خوا پرده بهتره ده او د پورته طرف د پردې هیڅ حاجت نشته.

روی البخاری رحمه الله عن ام هانئ رضی الله تعالی عنها بنت ابی طالب انها ذهبت الی رسول الله ﷺ عام الفتح فوجدته یغتسل وفاطمة تستره الحدیث وعن میمونة رضی الله تعالی عنها قالت سترت النبی ﷺ وهو یغتسل من الجنابة فغسل یدیه الحدیث.

وعن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال کانت بنو اسرائیل یغتسلون عراة ینظر بعضهم الی بعض وکان موسی یغتسل وحده فقالوا والله ما منع موسی ان یغتسل معنا الا انه ادر فذهب مرة یغتسل فوضع ثوبه علی الحجر ففر الحجر بثوبه الحدیث وعنه رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال بینا ایوب یغتسل عریاناً. الحدیث

نبي کریم ﷺ خپل بدن په جامو باندې د پټولو په ځای شا او خوا د توکرې یا کپړې پرده جوړه کړې او د هغې شاته ئې غسل کړی دی. له دې څخه ثابته شوه چه لنګ یا کوم بل شی اغوستل او

بیا د غسل کولو په ځای د پردې شاته غسل کول افضل دي. فقط و الله تعالی اعلم.

۵ جمادی الاولی ۸۸ھج

## د نفاس په حالت کښې که چیرته د کومې ښځې احتلام وشي نو غسل پرې فرض نه دی

**سوال:** که چیرته د کومې ښځې د نفاس په حالت کښې احتلام وشي نو آیا غسل پرې واجب دی او که نه؟ یا تر پاکیدو ورسته یواځې یو غسل کافی دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر پاکیدو وروسته یواځې یو غسل ورته کافی دی.

قال فی الخانیة المرأة اذا اجنبت ثم حاضت ان شاءت اغتسلت وان شاءت اخرت الاغتسال لانه لا فائدة فی التعجیل فانها ان کانت تخرج من الجنابة لا تخرج من الحیض وحکمهما واحد. (خانیة ج۱، ص۲۲) فقط والله تعالی اعلم.

۱۷/ صفر ۸۸ ھجری

## په غسل کښې د مصنوعي غاښونو لګولو حکم

**سوال:** د ځینو خلکو غاښونه ښوریږي او د ځینو خو با لکل لویږي نو په دې صورت کښې دا خلک د سرو زرو پوښ ور اغوندي. اوس چه کله دوی ته د غسل ضرورت پیښ شي نو آیا د غسل په وخت کښې به د غاښ د پوښ ایستل ضروري وي او که نه؟ او اکثره دا پوښونه ډیر مضبوط وي د ډاکټر له را ایستلو پرته نه ووځي او ډیر مشکل وي. نو آیا دا پوښ په نوکانو کښې په خیرو او اورو باندې قیاس کیدلی شي او که نه؟ د اورو لرې کول خو آسان وي لیکن دا د تکلیف ما لا یطاق (د هغه تکلیفونو چه طاقت نه ورته کیږي) له جملې څخه دی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې پوښ لګول په ضرورت کښې داخل دی او په لرې کولو کښې ئې حرج او تکلیف دی وهو مدفوع شرعاً. له دې امله له لرې کولو پرته غسل صحیح کیږي.

ونظائرها مشهورة وفی کتب القوم مسطورة بل نصوا علی جواز اتخاذ الاسنان من الذهب وشدها به ولو کان مانعاً عن صحة الغسل لما افتوا به. فقط والله تعالی اعلم.

۲۶/ رمضان المبارک ۸۸ ھجری

## په غسل کښې د مضمضې د هیریدلو حکم

**سوال:** په غسل کښې له یوه سړي څخه مضمضه هیره شوه او وروسته ور په زړه شوه نو آیا له سره به غسل کوي او که یواځې مضمضه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله هم ور په زړه شي نو مضمضه دې وکړي د بیا غسل کولو ضرورت نشته.

ولو ترکها (ای المضمضة) ناسیاً فصلی ثم تذکر یتمضمض ویعید ما صلی. (منیة ص ۳۲) فقط والله تعالی اعلم.

۳۰ محرم ۸۹ هجری

## د جنابت په حالت کښې د سلام اچولو حکم

**سوال:** د جنابت او حیض په حالت کښې چا ته سلام اچول، لاس ورکول (مصافحه)، خوړل، څښل، غوږل او داسې نورو ته داخلیدل شرعاً منع دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنابت په حالت کښې لمونځ کول، د کلام پاک تلاوت کول یا له غلاف پرته لاس ورلګول او جومات ته داخلیدل منع دي. له دغو پرته نور کارونه تول ورته جائز دي. د حیض په حالت کښې هم له نوموړي کارونو، روژې او جماع پرته هر څه ورته جائز دي.

فقط والله تعالی اعلم.

۱۴ رجب المرجب ۹۱ هجری

## که چیرته مني په لاس سره بنده شي او د شهوت تر ختمیدو ورسته را ووځي

**سوال:** په احتلام کښې چا ته دا محسوسه شوه چه مني وتونکې ده لیکن سترګې ئې وغړیدې او خپله آله ئې په لاس کښې ټینګ ونیوه او د مني را وتل ئې منع کړل تر دې پورې چه شهوت ئې بالکل ختم شو. نو تر پریښودلو وروسته تر کافي څند کښې مني را ووتله. آیا په دې صورت غسل پرې فرض دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د را وتلو په وخت کښې شهوت نه وو نو د امام ابو یوسف رحمه الله په نزد غسل پرې فرض نه دی. په سفر او داسې نورو ضرورتونو په وخت کښې د دې قول مطابق د عمل کولو اجازه شته.

قال فی التنویر وفرض عند منی منفصل عن مقره بشهوة وان لم یخرج بها. وفی الشرح وشرطه ابو یوسف وبقوله یفتی فی ضیف خاف ریبة او استحیی کما فی المستصفی وفی القهستانی والتاتارخانیة معزیا للنوازل وبقول ابی یوسف نأخذ لانه ایسر علی المسلمین قلت ولا سیما فی الشتاء والسفر. وفی الحاشیة (قوله وشرطه ابو یوسف) ای شرط الدفق وثمرة الخلاف یظهر فیما لو احتلم او نظر بشهوة فامسک ذکره حتی سکنت شهوته ثم ارسله فانزل وجب عندهما لا عنده (قوله قلت الخ) ظاهر المیل الی اختیار ما فی النوازل ولکن اکثر الکتب علی خلافه حتی البحر والنهر ولا سیما قد ذکروا ان قوله قیاس وقولهما استحسان وانه الاحوط فینبغی الافتاء بقوله فی مواضع الضرورة فقط تأمل وفی شرح الشیخ اسمعیل عن المنصوریة قال الامام قاضیخان یؤخذ بقول ابی یوسف فی صلوات ماضیة فلا تعاد وفی مستقبلة لا یصلی ما لم یغتسل. اهـ (رد المحتار ج ۱ ص ۱۳۹) فقط والله تعالی اعلم.

۲۰ ربیع الآخر ۹۷ هجری

## که چیرته له شهوت پرته مني را ووځي نو غسل فرض نه دی

**سوال:** یو سړی متیازې وکړي او تر متیازو وروسته د زور په لګولو سره سپین رنګه ماده ښه په کافي اندازه تړي را ووتله چه دا نه ده ورته معلومه چه دا مني ده او که ودي. نو په داسې سړي باندې غسل واجب دی او که نه؟ په داسې حال کښې چه دا ماده بغير له شهوته تري را ووځي. بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر متیازو وروسته را وتونکې ماده اګر که مني هم وي چه بغير له شهوته را ووځي نو غسل پرې نه فرض کیږي.

قال فی العلائیة خرج منی بعد البول وذکره منتشر لزمه الغسل قال فی البحر ومحمله ان وجد الشهوة وفی الشامیة ان عدم وجوب الغسل بخروجه بعد البول اتفاقاً اذا لم یکن ذکره منتشراً الخ. (ردالمحتار ج۱،ص۱۶۹)

فقط والله تعالیٰ اعلم. ۲۰ جمادی الآخر ۹۲ هجری

## د جنابت په حالت کښې داودس کولو څه فائده ده؟

**سوال:** د جنابت په غسل کښې لومړی اودس کول څه ګټه لري؟ آیا د ناپاکۍ له لړې کولو پرته اودس کیږي؟ همدارنګه دا خبره هم په کتابونو کښې تر سترګو کیږي چه نبي کریم ﷺ نصیحت وکړ چه تر مباشرت (کوروالي) وروسته باید اودس وکړی او بیا ویده شي او صحابهٔ کرامو ﷺ عمل پرې کړی دی. نو په دې ناپاکۍ کښې د اوداسه څه معنیٰ؟ دا خبره مې په فکر کښې نه راځي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنابت په حالت کښې د اوداسه په کولو سره خو پاکوالی نه حاصلیږي لیکن په حدث (ناپاکي) کښې څه تخفیف (کموالی) راځي. که چیرته کوم شرعي حکم په عقل کښې را نه شي نو څه حرج دی؟ فقط و الله تعالی اعلم. ۲۱/جمادی الآخر ۹۳ هجری

## په ناستې سره غسل کول بهتر دی

**سوال:** غسل په ناستې سره بهتر دی او که په ولاړې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ناستې سره غسل کول بهتر دي ځکه چه په دې کښې پرده زیاته ده له روایتونو څخه څرګندیږي چه نبي کریم ﷺ به په ناستې سره غسل کاوه. فقط و الله تعالی اعلم ۲۱ ربیع الآخر ۹۶ هجری

## د غسل له کولو پرته دویم ځل جماع کول

**سوال:** یو ځل تر جماع کولو وروسته پرته له اوداسه یا غسل څخه دویم ځل جماع کول څنګه دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** جائز دی لیکن غسل، اودس یا استنجاء کول افضل او مستحب دي. قال فی شرح التنویر ویکره معاودة اهله قبل اغتساله الا اذا احتلم لم یأت اهله قال الحلبی ظاهر الاحادیث انما یفید الندب لانفی الجواز المفاد من کلامه. (ردالمحتار ج۱،ص۱۶۳) فقط والله تعالی اعلم.

۳۰ جمادی الاولی ۹۵ هجری

## په غسل کښې د ښځې د ویښتانو حکم

**سوال:** د ښځې په فرض غسل کښې که چیرته د سر په ویښتانو کښې څه وچوالی پاتې شي نو آیا فرض ئې ادا کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته ویښتان ئې خلاص وي نو لمدول ئې فرض دي او تر بیخونو پورې به ئې اوبو رسوي. او که چیرته ئې ویښتان کوڅې کړي وي نو خلاصول ئې ضروري نه دي یواځې د بیخونو لمدول ئې فرض دي. البته که چیرته له خلاصولو پرته ئې بیخونو ته اوبه نه رسیدلې نو بیا ئې خلاصول او د ټولو ویښتانو پریمینځل فرض دي.

قال فی شرح التنویر (و کفی بل اصل ضفیرتها) ای شعر المرأة المضفور للحرج اما المنقوض فیفرض غسل کله اتفاقاً ولو لم یبتل اصلها یجب نقضها مطلقاً هو الصحیح. (ردالمحتار ج۱،ص۱۳۲) فقط والله تعالی اعلم.

۳۰ جمادی الاولی ۹۵ هجری

## د جنابت په حالت کښې کوچني ته پې ورکول او د خوړو پخول جائز دي

**سوال:** آیا د جنابت په حالت کښې ښځه خپل کوچني ته پې ورکولی شي او که نه؟ او همدارنګه خواړه پخولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بچي ته پې هم ورکولی شي او خواړه او داسې نور هم پخولی شي. فقط و الله تعالی اعلم.

۱۷ ذی القعدة ۹۶ هجری

## د جنب لپاره د تفسیر، حدیث او د قرانکریم په ترجمې باندې لاس لګول

**سوال:** د جنب سړي لپاره د تفسیر او حدیث په کتابونو لاس لګول یا ویل یا د قرآن او حدیثو ترجمه لیکل یا په ژبې سره ویل ئې ورته جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د جنب لپاره د حدیثو او فقهې په کتابونو لاس لګول او ویل

صحيح دي ليکن دا اولی خلاف دي. او د تفسير په کتابونو کښې که چيرته تفسير غالب وي نو بيا لاس لګول صحيح دي او که نه وي نو نه دی.

د قرآنکريم د ليکلو په جواز کښې په دې صورت کښې اختلاف دی. په داسې حال کښې چه که چيرته کتابت يا ليکل داسې وو چه له کاغذ سره لاس نه لګيده نو د ضرورت په وخت ئې ګنجائش شته ليکن په کاغذ باندې لاس لګول په هيڅ صورت کښې هم جائز نه دی. د قرآنکريم ترجمې ته هم لاس لګول فقهاء کرامو رحمهم الله قرآنکريم ته د لاس لګولو په حکم کښې شمارلی دی.

قال في الدر المختار وقد جوز اصحابنا مس كتب التفسير للمحدث ولم يفصلوا بين كون الاكثر تفسيرا او قرآنا ولو قيل به اعتبارا للغالب لكان حسنا قلت لكنه يخالف ما مر فتدبر. قال العلامة ابن عابدين (قوله فتدبر) لعله يشير الى انه يمكن ادعاء تقييد اطلاق المتن بما اذا لم يكن التفسير اكثر فلا ينافي دعوى التفصيل. (رد المحتار ج۱،ص۱۶۳) وفي الدر ولا تكره كتابة قرآن والصحيفة او اللوح على الارض عند الثاني خلافا لمحمد وينبغي ان يقال ان وضع على الصحيفة ما يحول بينها وبين يده يؤخذ بقول الثاني والا فبقول الثالث قاله الحلبي. (رد المحتار ج۱،ص۱۶۲) وفي باب الحيض منعه وقراءة قرآن بقصده ومسه ولو مكتوبا بالفارسية في الاصح. (رد المحتار ج۱،ص۲۰۰) فقط والله تعالى اعلم.

۲۹ ذی قعده ۸۷ هجری

## په غسل کښې د فرج خارج (باندنۍ شرمګاه) پريمينځل فرض دي

**سوال:** د ښځې په فرض غسل کښې د شرمګاه د ننني برخې پريمينځل هم ضروري دي او که د عام رواج مطابق يو اځې استنجاء کافي ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ښځې شرمګاه دوه برخې لري، يوه باندينۍ برخه کوم چه مستطيل شکل لري تر دې وروسته لږ ژور ګرد (ګول) سوری دی. له دې سوري څخه د باندې برخې ته فرج خارج او د ننني برخې ته فرج داخل ويل کيږي. په فرض غسل کښې د فرج خارج پريمينځل فرض دي يعنې تر ګول سوري پورې اوبو رسول ضروري دي چه پرته له دې څخه غسل نه صحيح کيږي. البته د فرج داخل د ننه اوبو رسول ضروري نه دي.

قال في التنوير ويجب غسل سرة وشارب وحاجب ولحية وفرج خارج وفي الشرح لانه كالفم لا داخل لانه باطن. (رد المحتار ج۱،ص۱۴۱) فقط والله تعالى اعلم

۶ شوال ۹۸ هجری

## غسل خانې ته د داخليدو او راوتلو طريقه او دُعاء

**سوال:** غسل خانې ته د داخليدو او له هغې څخه د وتلو مسنونه طريقه کومه ده او په دې وخت

کښې د کومې دُعاء ویل مسنون دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په غسل خانه کښې په عمومې توګه پاکوالی نه وي د دې لپاره د بیت الخلاء غوندې غسل خانې ته هم د داخلیدو په وخت کښې دې لومړۍ کینه پښه او د راوتلو په وخت کښې دې لومړۍ ښۍ پښه را وباسي. تر غسل مخکښې بسم الله ویل سُنت دي لیکن غسل خانې ته دې تر داخلیدو مخکښې وايي او له فارغیدو وروسته له غسل خانې څخه د باندې په راوتلو سره دې د اوداسه دُعا ووايي. که چیرته غسل خانه ښه صفا او پاکه وه او بیت الخلاء پکښې نه وه نو بیا د داخلیدو او راوتو په وخت کښې چه کومه پښه مخکښې ږدي کیښودلی ئې شي او بسم الله دې هم د ننه د جامو تر را ایستلو مخکښې وايي او د غسل په حالت کښې د اوداسه دُعا ګانې هم ویلی شي.

قال فی العلائیة وسننه کسنن الوضوء سوی الترتیب وآدابه کآدابه وقال ابن عابدین رحمه الله (قوله کسنن الوضوء) ای من البداءة بالنیة والتسمیة والسواك والتخلیل والدلك والولاء الخ. وافاد ذلك فی البحر من قوله ثم یتوضأ (قوله سوی الترتیب) ای المعهود فی الوضوء والا فالغسل له ترتیب آخر بیّنه المصنف بقوله بادئا الخ ط عن ابی السعود واقول ویستثنی الدعاء ایضا فانه مکروه کما فی نور الایضاح (قوله وآدابه کآدابه) نص علیه فی البدائع قال فی النهر بلالی ویستحب ان لا یتکلم بکلام مطلقاً اما کلام الناس فلکراهته حال الکشف واما الدعاء فلانه فی مصب المستعمل ومحل الاقذار والاوحال آه. اقول قد عدّ التسمیة من سنن الغسل فیشکل علی ما ذکره تأمل. (رد المحتار ج ۱ ص ۱۰۵) قلت ویشکل علی التعلیل بکونه فی مصب الماء التسمیة والدعاء فی الوضوء. فقط والله تعالی اعلم ۲۲ ذی القعده ۹۸ هجری

## د جنابت په حالت کښې د نوکانو او ویښتانو د پرې کولو حکم

**سوال:** د جنابت په حالت کښې د ویښتانو او نوکانو پرې کول مکروه تحریمي دي او که تنزیهي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د مطلق کراهیت قول راغلی دی چه له هغه څخه په عمومي توګه کراهت تحریمي مراد وي. لیکن دلته له قرائنو څخه کراهیت تنزیهي معلومیږي.

قال فی الهندیة حلق الشعر حالة الجنابة مکروه وکذا قص الاظافیر کذا فی الغرائب. (عالمگیریه ج ۵ ص ۳۵۸) فقط والله تعالی اعلم ۳۰ شوال ۸۸ هجری

## د جنابت په حالت کښې د ذکر او تلاوت حکم

**سوال:** د جنابت په حالت کښې د کلمهٔ طیبه، درود شریف او قرآنکریم لوستل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** کلمهٔ طیبه، درود شریف او هر ډول ذکر جائز دی لیکن د قرآنکریم تلاوت جائز نه دی. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۹ ربیع الآخر ۹۹ هجری

## په غسل کښې د پوزې داخل ته د اوبو رسولو اندازه

**سوال:** د غسل له دريو فرائضو څخه یو فرض پوزې ته د اوبو اچول دي. زما یو ملګرې وايي چه اوبو د پوزې تر نرم هډوکي پورې رسول ضروري دي داسې چه په ورغوي کښې اوبو واخلي او په سپږمو سره ئې د دماغو خوا ته کش کړي یعنې د ساه په ذریعه اوبو پوزې ته ننه باسي، نو آیا دا صحیح ده او که څنګه چه په اوداسه کښې پوزې ته اوبو اچول کیږي هغه صحیح ده. ځکه چه پوزې ته د اوبو د کش کولو په وخت کښې تکلیف هم سړي ته محسوسیږي.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هډوکي ته د اوبو رسول ضروري نه دي بلکه له کوم ځایه چه هډوکی شروع کیږي تر هغه ځایه اوبو رسول فرض دي کوم چه په لږ غوندې اهتمام سره په آسانۍ سره ور رسیدلی شي. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۹ ربیع الآخر ۹۹ هجری

# باب المياه

## کوهي ته چه ناپاک شئ ولیږی او را ایستل ئی ممکن نه وی

**سوال** که چیرته کوهي ته کوم مردار یا نجس شی ولویږي او ایستل کیدلی نه شوای نو د پاکولو به ئې څه طریقه وي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** کوهي ته چه مردار شی ولویږي او د ایستلو طریقه ئې نه وي نو بیا ئې ایستل ضروري نه دي یواځې د اوبو په ایستلو سره کوهی پاکیږي. البته که چیرته عین نجاست ور ولویږي نو د هغه له ایستلو پرته کوهی نه پاکیږي که چیرته ئې په هیڅ صورت کښې ایستل ممکن نه وي نو کوهی به تر هغو پورې نه استعمالوي تر څو پورې چه د نجاست د خاورې کیدو ظن غالب نه وي راغلی د دومره مودې له تیریدو وروسته د کوهي د اوبو په را ایستلو سره کوهی پاکیږي د ځینو فقهاوو قول دی چه شپږ میاشتې دې انتظار وشي، په شپږو میاشتو کښې د غالب ظن له مخې لویدلی شی خاورې کیږي.

قال فی شرح التنویر الااذا تعذر كخشبة او خرقة متنجسة فينزح الماء الى حد لا يملأ نصف الدلو يطهر الكل تبعاً. وفی الشامیة تحت (قوله متنجسة) و اشار بقوله متنجسة الى انه لا بد من اخراج عين النجاسة كلحم ميتة وخنزير آه قلت فلو تعذر ايضاً ففى القهستانى عن الجواهر لو وقع عصفور فيها فعجزوا عن اخراجه فما دام فيها فنجسة فتترك مدة يعلم انه استحال و صار حمأة وقيل مدة ستة اشهر آه. (رد المحتار ج) فقط والله تعالى اعلم

غرة محرم الحرام ۷۳ ھجری

(په ماشین سره هر وخت د اوبو په را ایستلو سره اوبو پاکیږي، تفصیل ئې په تتمه کښې دی)

## کوهي ته د چپلې یا څپلې د لویدلو حکم

**سوال** که چیرته کوهي ته چوته (چپل) ولویږي کوم چه د پاکوالي او نجس والي هیڅ علم ئې نه وي نو کوهی پاک دی او که مردار؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته د چپل د نجس والي غالب یقین نه وي نو کوهی پاک دی

قال فی الشامية ناقلا عن البحر وقيدنا بالعلم لانهم قالوا فى البقر ونحوه يخرج حيا لا يجب نزح شیء وان كان الظاهر اشتمال بولها على افخاذها لكن يحتمل طهارتها بان سقطت عقب دخولها ماء كثيراً مع ان الاصل الطهارة الخ (رد المحتار ج) ومثله فى الفتح ايضاً. فقط والله تعالى اعلم

۳۰ ذی الحجة ۷۱ ھجری

## د مستعملو اوبو حکم

**سوال:** په اوداسه یا غسل کښې د استعمال شویو اوبو څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په اوداسه او غسل کښې استعمال شوې اوبه پاکې دي او څښل او خوراکي شیانو کښې ئې استعمالول مکروه تنزیهي دي او بیا اودس یا غسل پرې کول صحیح نه دي. البته د حقیقي نجاست لپاره پاکوونکي دي یعنې که چیرته مردار شی پرې پریمینځل شي نو هغه پرې پاکیږي.

قال فی العلائیة وهو طاهر ولو من جنب وهو الظاهر لکن یکره شربه والعجن به تنزیها للاستقذار وعلی روایة نجاسته تحریماً وحکمه انه لیس بطهور لحدث بل لخبث علی الراجح المعتمد. وفی الشامیة (قوله علی الراجح) مرتبط بقوله بل لخبث ای نجاسة حقیقیة فانه یجوز ازالتها بغیر الماء المطلق من المائعات خلافاً لمحمد رحمه الله. (ردالمحتار ج۱، ص۱۸۵) فقط والله تعالی اعلم

۲۹ ذی الحجة ۸۹ هجری

## د جنب سړي اوبو سره د لاس لګولو حکم

**سوال:** جنب سړی که چیرته بالټۍ (سطل) یا د اوبو کوم بل لوښي ته لاس ننه باسي او د غسل لپاره اوبو واخلي نو دا اوبه پاکې دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د جنب سړي په لاس کښې ښکاره نجاست نه وي لګیدلی نو اوبه پاکې دي لیکن د لاس په داخلولو سره د مستعمل والي له وجې په همدغو اوبو سره غسل نه صحیح کیږي. له دې امله دې لومړی لاس پریمینځي او بیا دې سطل ته ننه باسي. البته که چیرته پرته د لاس د داخلولو د اوبو د را اخیستلو بل هیڅ صورت نه وي نو په داسې مجبورۍ کښې اوبه مستعملې نه بلل کیږي. په ځینو فتاواوو کښې دي چه که چیرته یواځې ګوتې ور داخلې شي او ورغوی ئې پکښې ډوب نه شو نو اوبه مستعملې نه ګرځي. لیکن د دې وجه غیر معقوله ده.

اللهم الا ان یوجه بتعسر الصون منه. قال فی شرح التنویر بان یغسل بعض اعضائه او یدخل یده او رجله فی جب لغیر اغتراف ونحوه فانه یصیر مستعملا وفی الشمیة تحت (قوله بان یغسل) فی الخلاصة وغیرها ان کان اصبعاً او اکثر دون الکف لا یضر قال فی الفتح ولا یخلو من حاجته الی تأمل وجهه (ردالمحتار ج۱، ص۱۸۳)

فقط والله تعالی اعلم

غرة ذی قعده ۹۳ هجری

(په دې تحقیق باندې اشکال او ځواب په تتمه کښې دی)

## په داسې لوښي کښې د جنب سړي لاس ننه ایستل چه هغه ته د نلکی اوبه لوېږي او بهېږي

**سوال:** د اوبو کوم لوښي ته د نلکی اوبه لوېږي او بهېږي او جنب سړي لاس وروړي غسل وکړي نو اوبو پاکې دي او که ناپاکې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا اوبه پاکې دي او غسل پرې صحیح دی ځکه چه دا اوبو جاري دي

قال فی الهدایة والماء الجاری اذا وقعت فیه نجاسة جاز الوضوء به اذا لم یر لها اثر وقال والجاری ما لا یتکرر استعماله. (هدایة ج۱، ص۳۶) فقط والله تعالی اعلم غرۂ ذی قعدة ۹۳ ھجری

## د غسل د اوبو د څاڅکو حکم

**سوال:** د غسل په وخت کښې له ځمکې څخه څاڅکي پورته کيږي او د اوبو لوښي ته لوېږي نو آیا دا اوبو پاکې دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اوبو پاکې دي او غسل هم پرې صحیح دی ځکه چې کله مستعملې اوبو له نورو اوبو څخه کمې وي نو هغه اوبو پاکوونکې وي. البته که چیرته مستعملې اوبو زیاتې وي یا دواړه برابرې وي نو بیا غسل پرې صحیح نه دی.

قال فی العلائیة فان المطلق اکثر من النصف جاز التطهیر بالکل والالا. (ردالمحتار ج۱، ص۱۲۸) فقط والله تعالی اعلم غرۂ ذی قعدة ۹۳ ھجری

## د کوچني هلک اوبو ته د لاس ننه ایستلو حکم

**سوال:** که چیرته کوم کوچنی بچی اوبو ته لاس ننه باسي نو آیا اوبو پرې مرداریږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د کوچني اوبو ته په لاس ننه ایستلو سره اوبو نه مرداریږي. البته که چیرته ځرګنده شي چه لاس ئې په نجاست ککړ وو نو بیا مرداریږي. لکه څرنګه چه د کوچنیانو د لاسونو د پاکوالي اعتبار نه وي له دې وجې که چیرته نورې اوبو وي نو په هغو سره اودس کول بهتر دي

ولو ادخل الکفار او الصبیان ایدیهم لا یتنجس اذا لم یکن علی ایدیهم نجاسة حقیقیة فلو ادخل الصبی یده فی الاناء لا یتوضأ به استحسانا ولو توضأ به جاز. (منیة) فقط والله تعالی اعلم ۷ صفر ۸۶ ھجری

## له کوهي څخه د ووزې د ژوندي را وتلو حکم

**سوال:** که چیرته کومه ووزه کوهي ته ولویږي او ژوندی را و ایستله شي نو کوهی پاک دی او که مردار؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د ووزې په جسم باندې کوم ښکاره نجاست نه وي نو کوهی پاک دی خو سره له دې هم له کوهي څخه د شلو ډولچو اوبو ایستل بهتر دي

قال في العلائية لو اخرج حيا وليس بنجس العين ولا به حدث او خبث لم ينزح شيء الا ان يدخل فمه الماء فيعتبر بسوره فان نجسا نزح الكل والا لا هو الصحيح نعم يندب عشرة في المشكوك لاجل الطهورية. كذا في الخانية.

قال ابن عابدين (قوله وليس بنجس العين) اي بخلاف الخنزير وكذا الكلب على القول الآخر فانه ينجس البئر مطلقاً وبخلاف المحدث فانه يندب فيه نزح اربعين كما يذكره وبخلاف ما اذا كان على الحيوان خبث اي نجاسة وعلم بها فانه ينجس مطلقاً قال في البحر وقيدنا بالعلم لانهم قالوا في البقر ونحوه يخرج حيا لا يجب نزح شيء وان كان الظاهر اشتمال بولها على افخاذها لكن يحتمل طهارتها بان سقطت عقب دخولها ماء كثيراً مع ان الاصل الطهارة آه. ومثله في الفتح (قوله لم ينزح شيء) اي وجوباً لما في الخانية لو وقعت الشاة وخرجت حية ينزح عشرون دلواً لتسكين القلب لا للتطهير حتى لو لم ينزح وتوضأ جاز وكذا الحمار والبغل لو خرج حياً ولم يصب فمه الماء وكذا ما يؤكل لحمه من الابل والبقر والغنم والطيور والدجاجة المحبوسة. آه ومثله في مختارات النوازل (رد المحتار ج۱ ص۱۹۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۵ صفر ۸۶ هجری

## کوهي ته د خوشایو د لویدلو حکم

**سوال:** که چیرته کوهي ته د خوشایو سپتې (هغه خوشایي چه ښځې ئې لمدوي او په دیواله پورې ئې د وچولو لپاره تپي) توله یا نیمه ولویږي او په اوبو کښې وره شي نو کوهي برې مرداریږي او که نه؟ او که چیرته مردار شي نو څومره اوبو به ترې ایستل کیږي؟ همدارنګه که چیرته کوهي ته د خره یا اس د خوشایو دوه ورسنې ولویږي نو برې مرداریږي او که نه؟ د ناپاکوالي په صورت کښې به څومره اوبو ترې ایستل کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته کوهی په داسې ځای کښې وي چه هلته په عمومي توګه د څناورو تګ او راتګ وي او ساتنه ئې ترې ګرانه وي نو د نوموړو څناورو کم نجاست معاف دی په څانګړې توګه چه وچ هم وي او که چیرته کوهی په محفوظ ځای کښې وي شاذ و نادر کله کله هلته د څناورو په راتګ سره کوهي ته خوشایي یا پچې او داسې نور ولویږي نو داسې کوهی برې

مرداريږي او د ټولو اوبو ايستل ضروري ګرځي.

قال في الشامية تحت (قوله وبعر في ابل وغنم) وفي التاتارخانية ولم يذكر محمد في الاصل روث الحمار والخثي واختلفوا فيه فقيل ينجس ولو قليلا او يابسا وقيل لو يابسا فلا واكثرهم على انه لو فيه ضرورة وبلوى لاينجس والا نجس آه. (فائدة) قال نوح افندي الروث للفرس والبغل والحمار والخثي بكسر فسكون للبقر والفيل والبعر للابل والغنم والخرء للطيور والنجو للكلب والعذرة للانسان. (ردالمحتار ج۱،ص۲۰۳) فقط والله تعالى اعلم

۹رجب المرجد ۸۷ هجری

## د کوڅه ګشتي چرګې پس خورده يا جوټه مکروه ده

**سوال** د چرګې پس خورده پاکه ده او که مکروه تنزيهي يا تحريمي؟ په داسې حال کښې چه نجاست ئې په مښوکه کښې نه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د چرګې پس خورده پاکه ده ليکن په نجاست خورونکو چرګانو کښې تفصيل دا ده چه که چيرته ئې د مښوکې د پاکوالي يقين وي نو اوبو پاکې دي او که ئې د ناپاکوالي يقين وي نو بيا ناپاکې دي. او که چيرته ئې يوې خوا ته هم يقين نه وي نو بيا مکروه تنزيهي دي.

قال في الشامية تحت (قوله طاهر للضرورة) واما المخلاة فلعابها طاهر فسؤرها كذلك لكن لما كانت تأكل العذرة كره سؤرها ولم يحكم بنجاسته للشك حتى لو علمت النجاسة في فمها تنجس ولو علمت الطهارة انتفت الكراهة وقال تحت (قوله في الاصح) انها كراهة تنزيه الخ. (ردالمحتار ج۱،ص۲۰۷) فقط والله تعالى اعلم

۲۵رجب ۸۷ هجری

## په لمر باندې د ګرمو شويو اوبو د کراهيت شرائط

**سوال**: په حديث کښې د لمر د اوبو له استعمال څخه منع راغلې ده. اوس پوښتنه دا ده چه د لمر د اوبو تعريف څه دی؟ آيا هغه اوبو کومې چه د ټينکۍ د ننه د تيز لمر له وجې ګرمې شوي وي په دې کښې راځي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د احنافو په نزد د لمر د اوبو د استعمالولو کراهيت مختلف فيه دی يعنې اختلاف پکښې دی. راجحه دا ده چه مکروه تنزيهي دی. دا کراهيت هم هلته دی چه په ګرم ځای او ګرم وخت کښې وي او د سرو او سپينو زرو له لوښي پرته د کومې بلې اوسپنې په لوښي کښې وي او د ګرموالي په حالت کښې استعمالې شي.

قال في العلائية وبماء قصد تشميسه بلا كراهة وكراهته عند الشافعية طبية وفي الشامية وذكر شروط

كراهته عندهم (الشافعية) وهى ان يكون بقطر حار وقت الحر اذا مشمس في اناء منطبع غير نقد وان يستعمل وهو حار (الى قوله) وفي القنية كره بالمشمس في قطر حار في اواني منطبعة (الى قوله) ان المعتمد الكراهة عندنا لصحة الاثر وان عدمها رواية والظاهر انها تنزيهية عندنا ايضاً بدليل عدها في المندوبات فلا فرق حينئذ بين مذهبنا ومذهب الشافعي. (ردالمحتار ج۱، ص۱۶۸) فقط والله تعالى اعلم

۲۲ رجب ۸۸ هجرى

## كومې اوبه چه د رنګ بوى واخلي اودس پرې صحيح دى

**سوال:** درم، دبې او داسې نورو ته د رنګ په لګولو سره څو ورځې په اوبو كښې د رنګ بوى محسوسيږي او په خوند كښې ئې هم څه ناڅه فرق راځي. آيا د دغو اوبو په اوداسه او غسل كښې استعمالول جائز دي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** كه چيرته دا رنګ د خنزير د ويښتانو په برش باندې نه وي لګيدلى نو د داسې اوبو استعمالول جائز دي اګر كه په اوبو كښې د رنګ بوى او خوند راشي. فقط و الله تعالى اعلم.

يكم صفر ۸۹ هجرى

## لوښي ته د ووزې يا ميږې د پچو د لويدلو حكم

**سوال:** د ووزې يا اوښ وچې يا لمدې پچې كه چيرته د اوبو كوم لوښي لكه ټينكى، مټى، او داسې نورو ته ولويږي نو آيا اوبو پرې مرداريږي او كه نه؟ په داسې حال كښې چه په ټينكى كښې پنځه منه يا تر دې كمې اوبو ځائيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ټينكى او مټى اوبو پرې مرداريږي. البته كه چيرته ټينكى په زمكه كښې ښخه وي يا په داسې ځاى كښې ايښې وي چه له پچو او داسې نورو څخه ئې ساتنه ګرانه وي او اوبو هم پكښې ډيرې وي نو بيا يوه يا دوه پچې معاف دي.

قال شارح التنوير في فصل البئر ويعفى في ابل وغنم كما يعفى لو وقعتا في محلب وقت الحلب فرميتا فور اقبل تفتت وتلون وقال ابن عابدين رحمه الله (قوله وقت الحلب) فلو وقعت في غير زمان الحلب فهو كوقوعها في سائر الاواني فتنجس في الاصح لان الضرورة انما هي في زمان الحلب لان من عادتها ان تبعر ذلك الوقت والاحتراز عنه عسير ولا كذلك غيره آه. شارح منية (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۳) فقط والله تعالى اعلم

۲۴ ربيع الآخر ۸۸ هجرى

## د لس په لسه حوض اندازه

**سوال:** يو حوض دى كوم چه اوږدوالى، سور او ژوروالى ئې په لاندې ډول دى

څکوالي ديارلس فټه څلور انچه، سور يوولس نيم فټه او ژوروالی دوه فټه او اته انچه آيا دا حوض د شرعي لس په لسه حوض په حکم کښې راځي او که نه؟ که چيرته شرعي حوض نه شي نو په دې صورت کښې تر اوسه پورې چه څومره خلکو له دې حوض څخه اودسونه کړي وي يا ئې په نورو ضرورتونو کښې اوبو استعمال کړي وي د هغو په باره کښې څه حکم دی؟ آيا هغه خلک به لمونځونه بيرته را ګرځوي؟ د حوض لپاره لس په لسه کيدل لازمي دی او که دا د شرعي حوض د پيژند ګلوي صورت دی او همدارنګه د شرعي حوض صحيح تعريف څه دی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د لس په لسه حوض تعريف دا دی چه د هغه ټوله رقبه (مساحت يعنې د اوږدوالي او سور د ضرب حاصل سل ذراعه (شرعي گز) چه برابر دی له ۲۲۵ فټه يا ۲۰/۹ متره سره. د ګول (دائروي شکل) حوض د مساحت د معلومولو طريقه دا ده. مربع قطر ۱/۲ پائ د دې لپاره که چيرته د ګول حوض قطر ۱۶/۹۳ فټه چه برابر دی له ۵/۱۶ متره سره وي نو داسې حوض به لس په لسه وي. ژوروالی اعتبار نه لري. د نوموړي حوض مساحت له سلو ذراعو څخه کم دی له دې امله که چيرته هغه ته د نجاست د ور لويدو يقين وي نو مرداريږي او چه تر څو پورې د نجاست د لويدو يقين نه وي تر هغه وخته پورې هغه ته د نجس ويلو هيڅ وجه موجوده نه ده. فقط و الله تعالی اعلم.

۱۷ جمادی الآخر ۸۹ هجری

## په کوچني حوض کښې د پاک سړي د داخليدلو حکم

**سوال:** يو حوض دوه ګزه سورور او دوه نيم ګزه اوږد دی. په دې حوض کښې زيد د سړوالي د حاصلولو لپاره غسل وکړ نو آيا دا حوض پاک دی او که نه؟ په داسې حال کښې چه سړی له جنابت او نورو نجاستونو څخه پاک دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته زيد په اوداسه کښې وي او يواځې د سړوالي د لاس ته راوړلو لپاره ئې غسل کړی وي او د تازه اوداسه نيت ئې هم نه وو نو دا اوبه پاکې دي بلکه مستعملې هم نه دي. له دې امله اودس کول پرې صحيح دي. البته که چيرته ئې له مخکښې څخه اودس نه وي يا ئې د اوداسه د درلودلو تر څنګ د نوي اودس نيت کړی وي نو بيا اوبه مستعملې شوې کومې چه پاکې دي ليکن اودس او غسل پرې نه صحيح کيږي او چښل ئې مکروه تنزيهي دي

قال فی التنویر واستعمل لقربة او رفع حدث وفی الشرح ولو مع قربة کوضوء محدث ولو للتبرد فلو توضأ متوضئ لتبرد او تعليم او لطين بيده لم يصر مستعملاً اتفاقاً وقال فی شرح قول الماتن او اسقاط فرض هو الاصل فی الاستعمال کما نبه عليه الکمال بأن يغسل بعض اعضائه او يدخل يده او رجله فی جب لغير اغتراف ونحوه فانه يصير مستعملا لسقوط الفرض اتفاقاً وفی الحاشية (قوله بأن يغسل) ای المحدث او الجنب بعض

اعضائه التی یجب غسلها احترازاً عن غسل المحدث هو الفضل. (رد المحتار ج ۱، ص ۱۸۳) فقط واللہ تعالیٰ اعلم
۳ جمادی الاولی ۹۳ ہجری

## له شیعه یا مرزائي څخه د اوداسه لپاره د اوبو لاس ته راوړل

**سوال**: د شیعه، مرزائي یا کافر له کور څخه د اوبو په را اخیستلو سره اودس کیږي او که نه او لمونځ کیږي او که نه او همدارنګه د دغو خلکو د کور خوراک او څښاک جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شیعه ګان او قادیانیان زندیق دي له دې امله دوی د خپلو مالونو هیڅ ډول مالکان نه دي، د دوی ټول مالونه د بیت المال دي کوم چه د مسکینانو لپاره حلال دي. د غني لپاره د دوی یو شی هم حلال نه دی او ذبیحه د دوی په لاس حلال شوی څناور، ئې په مسکینانو باندې هم حرامه ده. البته له دوی څخه اوبو لاس ته راوړل د مسکینانو او غنیانو ټولو لپاره جائز دي.

لانه قبل قبض الزندیق ان لم یکن مملوکا لاحد فللاباحة الاصلیة والا فللاذن دلالةً.

د عامو کفارو ذبیحه حرامه ده او نور مالونه ئې د غنیانو او مسکینانو ټولو لپاره حلال دي و الله تعالی اعلم. ۲۳ صفر ۹۰ ہجری

## حکم ماء المراحیض اذا تکرر و تحلل

من مدینة الرسول ﷺ

**سوال**: ما یقول العلماء المحققون و ارباب الفتوی فی ماء المراحیض ای اذا تکرر و تحلل هل یجوز استعماله للوضوء والغسل ما هو القول المصحح عند کم؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال فی الهندیة: والماء الجاری بعد ما تغیر احد اوصافه وحکم بنجاسته لا یحکم بطهارته ما لم یزل ذلك التغیر بأن یرد علیه ماء طاهر حتی یزیل ذلك التغیر. (عالمگیریه ج ۱، ص ۱۰)

وفی التنویر و بجار وقعت فیه نجاسة (الی قوله) ان لم یر اثره و هو طعم او لون او ریح. وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله لو سال دم رجله مع العصیر لا ینجس خلافاً لمحمد وفی الخزانة اناءان ماء احدهما طاهر والأخر نجس فصبا من مکان عال فاختلطا فی الهواء ثم نزلا طهر کله ولو اجری ماء الانائین فی الارض صار بمنزلة ماء جار آه و نحوه فی الخلاصة و نظم المسئلة المصنف فی منظومته تحفة الاقران و فی الذخیرة لو اصابت الارض نجاسة فصب علیها الماء فجری قدر ذراع طهرت الارض والماء طاهر بمنزلة الماء الجاری ولو اصابها المطر و جری علیها طهرت ولو کان قلیلاً لم یجر فلا. (رد المحتار ج ۱، ص ۱۴۳) وقال ایضا اذا رسب الزبل فی القساطل

لم يظهر اثره فالماء طاهر واذا وصل الى الحياض فى البيوت متغيراً ونزل فى حوض صغير او كبير فهو نجس وان زال تغيره بنفسه لان الماء النجس لا يطهر بتغير بنفسه الا اذا جرى بعد ذلك بماء صاف فانه حينئذ يطهر فاذا انقطع الجريان بعد ذلك فان كان الحوض صغيراً او الزبل راسب فى اسفله تنجس مالم يصر الزبل حمأة وهى الطين الاسود فانه اذا جرى بعد ذلك بماء صاف ثم انقطع لا ينجس. (رد المحتار ج ا ص ۱۴۲)

ثبت من العبارات المذكورة ان الماء النجس الذى لم يتغير احد اوصافه بالنجاسة يطهر بمجرد جريانه بالماء الطاهر والماء المتغير لا يطهر الا ان يزول التغير ثم جرى بعد ذلك بماء طاهر واما الجريان بدون الاختلاط بالماء الطاهر فلا يطهر اصلاً. فقط والله تعالى اعلم ۲۲ شعبان ۹۵ هجری

## د چینه لرونکي کوهي د پاکولو طریقه

**سوال** د یوه جامع جومات کوهي ته یو کونګری ولوید او مړ شو او د را ایستلو سامان نه وو چه را ایستل شوی وای. دا کوهی چینه لرونکی دی. د اوبو په را ایستلو سره ئي تل نه وچیږي. یوه مولوي صاحب د دريږ سوه بوکو یا ډولچو ایستلو فتوی راکړې ده چه په دې سره کوهی پرته له شک او شبهې څخه پاکیږي د دې فتوی له مخې دريږ سوه ډولچې ترې و ایستل شوې او پاک و ګڼل شو اوس یو بل مولوي صاحب وایي چه د دريږ سوه ډولچو په را ایستلو سره کوهی هیڅکله نه پاکیږي بلکه د ټولو اوبو په را ایستلو باندې اصرار کوي چه د دې کوهي ژوروالی او ګول والی اندازه کړی او په همدې اندازې سره یو بل کډی و کینی او بیا له کوهي څخه اوبو وباسی او نوموړي کډي ته ئي واچوی چه کله کډی ډک شي نو کوهی پاکیږي. همدارنګه بله طریقه دا بیانوي چه د اوبو ژوروالی اندازه کړی او د اوبو را ایستل شروع کړی په یو ساعت کښې چه اوبو څومره کښته لاړې شي په هم هغه اندازې سره هم هغومره ساعته اوبو وباسی د مثال په توګه اوبو لس لاسه ژورې دي او د یوه ساعت په را ایستلو سره یو لاس کم شو نو لس ساعته باید را و ایستل شي که څیرته د خلکو په را ایستلو کښې تکلیف وي نو د موجوده زماني مشیني پمپ را وغواړی او ټولې اوبو پرې وباسی دا دویم مولوي صاحب وائي چه په بهشتي زیور او تعلیم الاسلام نومي کتابونو کښې د دريږ سوه ډولچو را ایستلو هیڅ یادونه نشته او د بریلوی مسلکه کتاب بهار شریعت نومي کتاب کښې هم د ټولې اوبو را ایستل لیکلي دي او د دريږ سوه بوکو یادونه پکښې نشته اوس په دغو دواړو کښې د کوم یوه په خبرې باندې موږ عمل وکړو؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** چه کله د اوبو د وچولو امکان نه وي نو د کوهي د پاکولو دا دری واړه صورتونه صحیح دي کوم چه په سوال کښې ذکر شوی دي. په بهشتي زیور کښې د دريږ سوه ډولچو یادونه راغلې ده فقط و الله تعالى اعلم ۲۷ ربیع الآخر ۸۹ هجری

## د کوچني حوض د پاکولو طریقه

**سوال:** د کور په حویلۍ، سرای یا په بام باندې که چیرته د اوبو جوړه شوې ټینکۍ مرداره یا ناپاکه شي نو د هغې د پاکولو څه طریقه ده؟ که چیرته د زمکې ټینکۍ او د بام ټینکۍ او د دغو دواړو تر منځه غزیدلي پیپونه او بیا د بام له ټینکۍ څخه تر غسل خانو او داسې نورو ځایونو پورې غزیدلي پیپونه که چیرته د دغو د مجموعه اوږدوالي او سور یا پلنوالي ټول مساحت سل لاسه شي نو آیا د لس په لسه په حکم کښې داخلیږي او که نه چه د نجاست په لویدو سره ناپاک و نه بلل شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دواړو ټینکیو تر منځ غزیدلي پیپونه او د برسیره ټینکۍ څخه تر غسلخانو او داسې نورو پورې غزیدلي پیپونه په لس په لسه کښې شمارول صحیح نه دي ځکه چه طول او عرض (اوږدوالی او پلنوالی) هغه معتبر دی کوم چه پورته له بام سره لګیدلی نه وي پیپونه لکه څرنګه چه له اوبو څخه هر وخت ډک وي د دې لپاره د دې مثال د هغه مسقّف حوض په شان دی چه اوبو ئې له چت سره لګیدلې وي. همدارنګه له لاندینۍ ټینکۍ څخه د پورتنۍ ټینکۍ خوا ته غزیدلی پائپ یا نل چه په کوم ځای کښې پورتنۍ ټینکۍ ته رسیږي هلته د هغه اوبو له پورتنۍ ټینکۍ سره نه وصل کیږي نو ځکه د دواړو ټینکیو مساحت با لکل جلا جلا شمارل کیږي.

د دغو ټینکیو د پاکوالي طریقه دا ده چه په زمکې کښې خښې ټینکۍ ته چه کله له باهر څخه اوبو راځي په دې وخت کښې ئې سرپوښ لرې شي یا دروند شی وغیره ورسره وتړل شي تر څو چه سرپوښ له اوبو سره پورته شي او له باهر څخه د اوبو د راتلو مخه و نه نیسي او په دې ډول سره اوبو را رواني وي. چه کله ټینکۍ ډکه شي او له خولې څخه ئې وبهیږي نو د جاري کیدو له وجې ټینکۍ پاکیږي. برسیره ټینکۍ داسې پاکیدلی شي چه د ماشین په ذریعه دا ټینکۍ دومره ډکه شي چه له پورتني پائپ څخه اوبو وبهیږي. په ظاهره کښې خو د پاکوالي په دې صورت کښې څه اشکال معلومیږي چه د اوبو د را خیژولو له ماشین څخه واخله د زمکې د ټینکۍ تر بیخه پورې پیپونه وي کوم چه له نجسو اوبو څخه ډک وي. همدا ډول چه کله برسیره ټینکۍ نجسه شي نو له هغې څخه غسلخانو او نورو ته په غزیدونکو پیپونو کښې مردارې اوبو وي، د دغو ټینکیو له سر څخه د اوبو په جاري کولو سره د پیپونو په منځ کښې اوبو باندې هیڅ اثر نه لویږي نو د پیپونو د ننه اوبو به څرنګه پاکې شي؟ د دې ځواب دا دی چه د اوبو د پاکوالي مسئله له قیاس څخه د باندې ده، د قیاس تقاضا خو دا ده چه کوم شی یو ځل ناپاکه شي نو بیا په هیڅ صورت کښې هم باید پاک نه شي د دې لپاره د دې د پاکوالي لپاره چه کومې نورې اوبو ورسره ګډې شوې هغه پخپله هم ناپاکې شوې د پاکوالي د شرعي قاعدې مطابق د مردارو اوبو په جاري کولو سره له هغو سره نګیدلې اوبو هم پاکیږي. لکه څرنګه چه که چیرته حوض ډیر ژور وي چه په سر باندې ئې د اوبو په بهولو

سره د هغه تل ته د بهولو د اثر رسیدلو هیڅ امکان نه وي نو په اتفاق سره د هغه برسیره د اوبو په جاري کولو سره د هغه تر تل پورې ټولې اوبه پاکیږي. همدارنګه د پیپونو په منځ کښې اوبو چونکه د ټینکۍ له اوبو سره لګیدلې وي د دې لپاره د ټینکۍ د اوبو په بهولو سره د پیپونو په منځ کښې اوبه هم پاکې ګڼل کیږي.

د ټینکۍ د پاکوالي یو بل صورت دا هم کیدلی شي چه کله د زمکې ټینکۍ مرداره شي نو کوم وخت چه دې ته اوبه راځي په هم هغه وخت کښې د ماشین په ذریعې سره له ټینکۍ څخه د اوبو ایستل شروع شي نو دا جاري اوبه شماریږي. او د بام ټینکۍ داسې پاکه کړی چه د ماشین په ذریعې سره هغې ته د اوبو اچول شروع کړی او له دې څخه غسلخانو او داسې نورو ته غزیدلې پیپونه خلاص کړی. په دې صورت کښې د زمکې ټینکۍ ته له پورتنۍ ټینکۍ څخه اوبه له پاسه داخلیږي لیکن ماشین د دې ټینکۍ له تل څخه اوبه باسي. همدارنګه پورتنۍ ټینکۍ ته د مشین په ذریعې سره اوبه له پاسه داخلیږي او له هغې څخه د غزیدلو پیپونو په خلاصولو سره د هغې له آخرنۍ حصې څخه اوبه ووځي.

په دې طریقې سره د اوبو جاري کیدل د پاکوالي لپاره کافي دی او که نه؟ په دې کښې فقهاء کرامو رحمهم الله تردّد ښکاره کړی دی.

قال فی الشامیة تحت (قوله و یخرج من آخر) ثم ان کلامهم ظاهر ان الخروج من اعلاه فلو کان یخرج من ثقب فی اسفل الحوض لا یعد جاریاً لان العبرة لوجه الماء (الی قوله) ولم ار المسألة صریحا نعم رأیت فی شرح سیدی عبد الغنی فی مسألة خزانة الحمام التی اخبر ابو یوسف برؤیة فارة فیها قال فیه اشارة الی ان ماء الخزانة اذا کان یدخل من اعلاها و یخرج من انبوب فی اسفلها فلیس بجار آه. و فی شرح المنیة یطهر الحوض بمجرد ما یدخل الماء من الانبوب و یفیض من الحوض هو المختار لعدم تیقن بقاء النجاسة فیه و صیرورته جاریاً آه. و ظاهر التعلیل الاکتفاء بالخروج من الاسفل لکنه خلاف قوله و یفیض فتأمل و راجع. (رد المحتار ج۱، ص۱۸۸)

علامه ابن عابدین رحمه الله د رد المحتار په منهیه کښې د اشباه له حاشیې څخه لاندینۍ جزئیه را نقل کړې ده.

اقول رأیت بعد کتابتی لهذا المحل فی حاشیة الاشباه و النظائر فی اخر الفن الاول للعلامة الکفیری التی تلقاها عن شیخه الشیخ اسمعیل الحائک مفتی دمشق ما نصه مسألة اذا کان فی الکوز ماء متنجس فصبّ علیه ماء طاهر حتی جری الماء من الانبوب بحیث یعد جریاناً و لم یتغیر الماء فانه یحکم بطهارته آه. منه (رد المحتار ج۱، ص۱۸۰)

له دې جزئې څخه د دې تائید لاس ته راځي چه د ټینکۍ د پاکوالي لپاره له لاندې څخه د اوبو

جاري کېدل کافي دي ځکه چه د بدنې يا لوټې چوښکې د لوټې په منځنۍ برخې کښې وي. فقط و الله تعالیٰ اعلم.

۱۸ جمادی الآخر ۹۶ هجری

## د لاسي نلکۍ د پاکوالي حکم

**سوال**: له زمکې څخه د اوبو ايستونکې لاسي نلکۍ (هينډ پمپ) کښې که چيرته نجاست ولوېږي نو هغه به څنګه پاکېږي؟ آيا د لږ غونډې اوبو په را ايستلو سره د جارې اوبو په حکم کښې د کېدو په صورت کښې پاکېږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لاسي نلکۍ سره د اوبو په را ايستلو سره دا اوبو د جارې اوبو په حکم کښې نه راځي ځکه چه د نلکۍ له بيخه چه کومې اوبو را روانې دي هغه د زمکې له مساماتو (هغه رګونه چه اوبو ترې را ووځي) څخه په را کش کولو سره راځي او دا شرعاً د دخول په جکم کښې نه دی. لکه څرنګه چه د دې فرق په بناء سره ستن د روژې ماتوونکې نه ده ګڼل شوې همدارنګه په کوهي کښې د زمکې له رګونو څخه اوبو هر وخت داخلېږي د دې ترځنګ له کوهي څخه د څو بوکو په را ايستلو سره يا د ماشين په ذريعې سره د څه اوبو په را خيژولو سره په اتفاق سره کوهی نه پاکېږي. همدارنګه د لاسي نلکۍ د پاکوالي لپاره د لږ غونډې اوبو را ايستل کافي نه دي.

خينو حضراتو لاسي نلکۍ د کوهي په حکم کښې د شمارلو په صورت کښې دا وايي چه د نلکۍ د ننه د ټولو اوبو په را ايستلو سره نلکۍ پاکېږي ليکن نلکۍ لره په کوهي باندې په قياس کولو کښې دا اشکال دی چه د کوهي اوبو د زمکې له رګونو څخه په را وتلو سره د خپل طبعي جريان (بهيدلو) پورې محدود وي او نلکۍ دا اوبو را اخلي او د زمکې له سطحې څخه ئې هم پورته خيژوي. په دې لحاظ سره نلکۍ د لوښي په حکم کښې څرګندېږي. برسيره پر دې د کوهي د تل او ديوالونو پاکوالی متعذر (ډير سخت چه محال ته نژدې وي) دی او د نلکۍ پاکوالی متعذر خو پرېږده متعسر (لږ مشکل) هم نه دی. د دې لپاره د لاسي نلکۍ د پاکوالي طريقه دا ده چه څومره اوبو پکښې دي د هغو تر را ايستلو وروسته نورې دومره اوبو پرې را و ايستل شي چه په هغو سره ټول پيپ درې خله پريمنينځل کېدلی شي. د پائپ په منځ کښې د اوبو د اندازې د معلومولو طريقه دا ده چه مربع (۱/۲) قطر × پائپ × عمق. په دې ډول سره د اوبو د حجم په معلومولو سره د دې اندازې مطابق اوبو را و ايستل شي. که چيرته د اوبو ژوروالی څرګند نه شي نو په ظن غالب باندې دې عمل وشي تر ټولو آسانه طريقه دا ده چه د نلکۍ له پاسه دومره اوبو واچول شي چه پائپ ډک شي او له سره ئې ابو وبهيږي په دې صورت کښې دا اوبو د جاري والي له وجې پاکېږي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله ان دلوا تنجس فافرغ فيه رجل ماء حتى امتلأ وسال من جوانبه هل يطهر

بعد ذلك ام لا و الذي يظهر لي الطهارة اخذا مما ذكرناه هنا و مما مر من انه لا يشترط ان يكون الجريان بمدد (و قال في المنية) اقول رأيت بعد كتابتي لهذا المحل في حاشية الاشباه والنظائر في آخر الفن الاول للعلامة الكفيري التي تلقاها عن شيخه الشيخ اسمعيل الحائك مفتي دمشق ما نصه مسألة اذا كان في الكوز ماء متنجس فصب عليه ماء طاهر حتى جرى الماء من الانبوب بحيث يعد جريانا ولم يتغير الماء فانه يحكم بطهارته آه منه.

(ردالمحتار ج۱ ص۱۸۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ جمادی الآخر ۹۶ هجری

(زياتي تحقيق په تتمه کښې دی)

## د متی (چاټی یا منګی) په ناپاکو اوبو باندې د پاکو اوبو په بهولو سره متی پاکيږي

**سوال:** دا خبره عامه مشهوره ده چه متی ته کارغه مښو که وروري نو هغې ته دې دومره اوبه نوري ور واچولې شي چه متی ښه ډکه شي او څه اوبه ترې تويې شي نو متی پاکيږي. دا خبره تر کومه ځايه صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې صورت کښې د متی اوبو په جاري کيدو سره پاکيږي

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله ان دلوا تنجس فافرغ فيه رجل ماء حتى امتلأ و سال من جوانبه هل يطهر بعد ذلك ام لا و الذي يظهر لي الطهارة اخذا مما ذكرناه هنا و مما مر من انه لا يشترط ان يكون الجريان بمدد (و قال في المنية) اقول رأيت بعد كتابتي لهذا المحل في حاشية الاشباه والنظائر في آخر الفن الاول للعلامة الكفيري التي تلقاها عن شيخه الشيخ اسمعيل الحائك مفتي دمشق ما نصه مسألة اذا كان في الكوز ماء متنجس فصب عليه ماء طاهر حتى جرى الماء من الانبوب بحيث يعد جريانا ولم يتغير الماء فانه يحكم بطهارته آه منه.

(ردالمحتار ج۱ ص۱۸۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۸ ربيع الآخر ۹۷ هجری

## د ګټر (هغه کنډی چه مردارې او مستعملې اوبه پکښې يو ځای کيږي) خوا ته د کوهي کيندل

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه يو کنډی چه په هغه کښې اوداسه مستعملې اوبو جمع کيدلې کله کله به نجاست هم ور اچول کيده اوس له څو مودو راهيسې هغه وچ شوی دی او د خاورو په اچولو سره ډک شوی دی او د دې ډک شوي کنډی څخه تقريباً اوه ۷ فټه لرې يو بل کوهی وکيندل شو چه خوږې اوبو ترې را ووځي چه حلک سړی

خخه تقریبا اودسونه. غسلونه هم کوي او چښي ئې هم. يو بل دریم کوهی له دي دوهم کوهي ځخه تقريبا اودسونه. غسلونه هم کوي او چښي ئې هم. يو بل دريم کوهی له دي دوهم کوهي ځخه تقریبا شپاړس فټه لرې له مخکښې ځخه موجود دی کوم چه د اوس وخت د اوداسه اوبو ور لويږي او كله كله ناپاكي يا نجاست هم ور لويږي. اوس پوښتنه دا ده چه د دويم كوهي د اوبو په پاکوالي کښې ځيني خلک شک کوي او ځيني ئې په مطلقه توگه د پاکوالي قائل دي، فيصله كوونكي قول كوم يو دی. په ځانگړې توگه چه دلته د اوبو ډير کموالی هم دی.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې اصل معيار دا دی چه په اوبو کښې د نجاست اثر یعنې رنگ، بوی یا خوند ښکاره نه شي. کومو خلکو چه د زمکې د مسافې ځه اندازه مقرره کړي ده هغو د خپلو زمکو د تجربو په بناء دا تحدید بيان کړی دی کوم چه د هر ځای لپاره نه دی ځکه چه زمکه په نرموالي او کلکوالي کښې مختلف وي.

قال في الدر قبيل احكام السؤر (فرع) البعد بين البئر والبالوعة بقدر ما لا يظهر للنجس اثر، وفي الشامية اختلف في مقدار البعد المانع من وصول نجاسة البالوعة الى البئر ففي رواية خمسة اذرع وفي رواية سبعة، وقال الحلواني المعتبر الطعم او اللون او الريح فان لم يتغير جاز والا لا ولو كان عشرة اذرع وفي الخلاصة والخانية و التعويل عليه وصححه في المحيط بحر والحاصل انه يختلف بحسب رخاوة الارض وصلابتها ومن قدره اعتبر حال ارضه. (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۳) فقط والله تعالى اعلم

۱۳ جمادی الآخر ۹۹ هجری

## د خره او اس د پس خوردې حکم

**سوال**: د خره او اس د پس خوردې ځه حکم دی؟ آیا پاکه ده او که مکروه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اس پس خورده پاکه هم ده او پاکوونکې هم ده او د خره د پس خوردې پاکوالی او طهوریت مشکوک دی. د دې لپاره چښل ئې هم جائز نه دي او اودس هم پرې صحیح نه دی. که چیرته پرته له دې ځخه نورې اوبو پیدا نه شي نو په دغو اوبو سره دې اودس هم وکړي او تیمم دې هم ووهي، که چیرته کوهي ته ور ولویږي نو ټولې اوبو به ئې تري را ایستل کیږي

قال في شرح التنوير وما كول لحم ومنه الفرس في الاصح ومثله ما لا دم له طاهرا الفم قيد للكل طاهر طهور بلا كراهة وفي التنوير وسؤر حمار وبغل مشكوك في طهوريته لا في طهارته آه وزجح ابن عابدين رحمه الله تعالى الشك في الطهارة ونقل عن الفتح انه تظافر كلامهم على انه ينزح منه جميع ماء البئر. (رد المحتار ج۱، ص۲۰۹) فقط والله تعالى اعلم

۵ رمضان المبارك ۹۹ هجری

# باب التيمم

## د اوبو په موجودوالي کښې د لمانځه د قضا کيدو له ويرې د تيمم حکم

**سوال:** که چيرته اوبو موجودې وي ليکن د اوداسه د کولو په صورت کښې د لمانځه د قضا کيدو ويره وي نو د تيمم په کولو سره لمونځ کول صحيح دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** لمونځ نه صحيح کيږي. البته بهتر صورت ئې دا دی چه د تيمم په کولو سره دې لمونځ وکړي او بيا دې وروسته اودس وکړي او د همدې لمانځه قضائي دې راوړي.

قال في التنوير من عجز عن استعمال الماء لبعده ميلا. (الى قوله) تيمم وفي الشامية (قوله لبعده) الضمير يرجع الى من ط وقيد بالبعد لانه عند عدمه لا يتيمم وان خاف خروج الوقت في صلوة لها خلف خلافا لزفر وسيذكر الشارح ان الاحوط ان يتيمم ويصلى ثم يعيد ويتفرع على هذا الاختلاف مالو ازدحم جمع على بئر لا يمكن الاستقاء منها الا بالمناوبة او كانوا عراة ليس معهم الا ثوب يتناوبونه وعلم ان النوبة لا تصل الا بعد الوقت فانه لا يتيمم ولا يصلى عاريا بل يصبر عندنا وكذا لو اجتمعوا في مكان ضيق ليس فيه الا موضع يسع ان يصلى قائما فقط يصبر ويصلى قائما بعد الوقت كعاجز عن القيام والوضوء في الوقت ويغلب على ظنه القدرة[1] بعده وكذا من معه ثوب نجس وما يلزمه غسل الثوب وان خرج الوقت بحر ملخصا عن التوشيح. (شامية ج۱)

وايضا في شرح التنوير لا يتيمم لفوت جمعة ووقت ولو وترا لفواتها الى بدل وقيل يتيمم لفوات الوقت قال الحلبي فالاحوط ان يتيمم ويصلى ثم يعيد. وفي الشامية تحت (قوله قال الحلبي) ونظير هذا مسألة الضيف الذي خاف ريبة فانهم قالوا يصلى ثم يعيد. (شامية ج۱) فقط والله تعالى اعلم ۲۶ ذي الحجة

## په ژمي کښې د اوبو د ګرمولو له وجې د لمانځه د قضا کيدو حکم

**سوال:** د ژمي موسم دی او په يوه سړې باندې د شپې په نيمائي کښې غسل فرض شو او دا فکر ئې وکړ چه ويده به شم او له سهار څخه به نبه مخکښې را ويښ شم او غسل به وکړم. چه کله ويد شو نو له صبح صادق څخه ډير وروسته يعنې د لمر تر را ختلو تقريباً پنځلس دقيقې مخکښې را ويښ شو. اوس که چيرته دی فوراً د نلکي په اوبو سره ولامبي نو د لمر تر ختلو مخکښې لمونځ کولی شي ليکن د نلکي اوبو دومره سړې دي چه د غسل کولو په صورت کښې په يقيني توګه مريض کيږي. او که چيرته اوبو ګرموي نو په پنځلسو دقيقو کښې د اوبو په ګرمولو سره غسل نه

---

[1] - اى قبل خروج الوقت الثانى كمن عرض له العذر بعد دخول الوقت ثم انقطع فى اثناء الوقت الثانى فانه يعيد تلك الصلوة. ۱۲ رشيد احمد

شي کولی. نو آیا په دې صورت کښې که به نوموړی ځرنګه او څه وخت لمونځ ادا کوي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په نوموړي صورت کښې دې دا سړی د بلکې په اوبو غسل وکړي او ځان دې فوراً په ګرمو جامو کښې ونغاړي. که چیرته سره له دې هم د مریض کیدو ظن غالب وي نو اوبو دې ګرمې کړي او غسل دې وکړي که نې لمونځ قضا شو بیا دې قضائي را وګرځوي. البته بهتره دا ده چه د تیمم په کولو سره دې لوموړی لمونځ وکړي او وروسته دې بیا په ګرمو اوبو غسل وکړي او د لمونځ دې بیا را وګرځوي.

کما حررناه فی من یخاف فوت الوقت لو اشتغل بالوضوء. فقط والله تعالیٰ اعلم ۷ صفر ۹۶ هجری

## په ریل ګاډي کښې د تیمم حکم

**سوال** په ریل ګاډي یا موټر کښې که چیرته د لمانځ د قضا کیدو ویره وي نو تیمم کول جائز دي او که نه؟ د ریل په تختې باندې یا د موټر د اوسپنې په چادر باندې به تیمم جائز وي او که نه په داسې حال کښې چه موټروان سره د ویلو د لمانځه لپاره موټر و نه دروي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** په ریل ګاډي او موټر کښې په تیمم سره د لمانځه د صحت لپاره لاندیني شرط. نه ضروري دي.

۱ د ریل ګاډي په کومې بلې ډبې یا کوټې کښې اوبو موجودې نه وي.

۲ په لاره کښې د سره شرعي میل، ۸۳، ۱ کیلو متر په اندازه چیرته د اوبود موجودوالي علم نه وي

۳ که چیرته د ریل ګاډي یا موټر په تختې باندې دومره ګرد پروت وي چه په ښه توګه په لاس کښې ښکاره شي نو تیمم پرې روا دی

۴ په ولاړې دې لمونځ وکړي

۵ قبلې نه دې مخامخ لمونځ وکړي. که چیرته قبله معلومه نه وه نو له ښه فکر څخه دې وروسته چه کومې خوا ته نې زړه ګواهي ورکړي هغې خوا ته دې لمونځ وکړي. که چیرته په دغو شرطونو کښې په یوه شرط باندې هم قدرت و نه لري نو بیا چه څنګه ور ته ممکنه وي لمونځ دې وکړي لیکن وروسته به نې قضائي راوړي

قال فی الدر المختار (او خوف عدو) کحیة او مار علی نفسه ولو من فاسق او حبس غریم او ماله ولو امانة ثم ان نشأ الخوف بسبب وعید تمد اعاد الصلاة والا لا لانه سماوی. وقال فی رد المحتار تحت (قوله ثم ان نشأ خوف الخ) اعلم ان المانع من الوضوء ان کان من قبل العباد کاسیر منعه الکفار من الوضوء ومحبوس فی السجن ومن قیل له ان توضأت قتلتك جاز له التیمم ویعید الصلاة اذا زال المانع کذا فی الدرر والوقایة. (رد المحتار ج۱ ص۲۱۰) فقط والله تعالیٰ اعلم

غرة ذی الحجة ۸۶ هجری

## د غسل تیمم د اوداسه لپاره هم کافي دی

**سوال** یو جنب سړی مریض دی او اودس تاوان نه ور رسوي لیکن غسل ورته تاوان کوي. په داسې صورت کښې د غسل په نیت سره دې اودس وکړي او که لومړی دې د غسل په نیت سره تیمم وکړي او بیا دې اودس وکړي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د غسل او اوداسه دواړو لپاره یو تیمم کافي دی. له دې وروسته چې کله چیرته بیا اودس مات شي نو بیا دې د دویم ځل لپاره اودس وکړي.

قال فی الشامیة وفی القهستانی اذا کان للجنب ماء یکفی لبعض اعضائه اوللوضوء تیمم ولم یجب علیه صرف الیه "الا اذا تیمم للجنابة ثم احدث فانه یجب علیه الوضوء لانه قدر علی ماء کاف الخ. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۱۴) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۲ محرم ۹۵ هجری

## که چیرته جنب ته له یخنی څخه د مرض ویره وي نو تیمم ورته جائز دی

**سوال** زید ته احتلام وشو نبکس د یخ له وجې ورته د سخت نقصان خطر دی آیا تیمم کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته ګرمې اوبه نه وې یا وي خو بیا هم د تکلیف ظن غالب موجود وي نو تیمم ورته جائز دی

قال فی التنویر من عجز من استعمال الماء لبعده میلاً اولمرض اوبرد وفی الشرح یهلك الجنب اویمرضه ولو فی المصر اذا لم تکن له اجرة حمام ولا مایدفئه. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۱۶) فقط والله تعالیٰ اعلم

۱۶ رمضان المبارك ۸۷ هجری

## که چیرته د چا په لاسونو کښې زخم وي نو تیمم دې وکړي

**سوال** د یوه سړي په لاسونو کښې دانې دي نو آیا دا سړی تیمم کولی شي او که په اوداسه کښې له بل چا څخه کومک وغواړي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته ئې په دواړو لاسونو کښې زخمونه یا دانې وي او اوبو ورته تاوان کاوه نو تیمم صحیح دی البته که چیرته کوم بل څوک د اوداسه ورکوونکی موجود وي نو بیا د تیمم په جواز کښې اختلاف دی ارجح او احوط (تر ټولو ښه او احتیاطي قول) د نه جواز دی

قال فی شرح التنویر ولو بیده (ای شقاق) ولا یقدر علی الماء یتیمم وقال ابن عابدین رحمه الله زاد فی الخزائن وصلاته جائزة عنده خلافاً لهما. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۰) وفی تیمم شرح التنویر تیمم لو الجرح بیدیه وان وجد

من يوضعه محلاً فأنهما. وقال ابن عابدين رحمه الله لكن عبر عن هذا في القنية والمبتغي بقيل جازماً بالتفصيل و هو الموافق لما مرّ في المريض العاجز من انه لو وجد من يعينه لا يتيمم في ظاهر الرواية فعليه المعول. (رد المحتار ج۱ ص۲۲۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۰ ربيع الآخر ۹۷ هجری

## تیمم په کومو کومو شیانو جائز دی؟

**سوال:** آیا په لاندیني شیانو باندې تیمم کیدلی شي؟

په شیشه. گري. متي. او داسې نور که له اوبو ډکه شوي وي او که نه وي بلکه وچه وي او گرد پرې نه وي لویدلی.

په داسې دیوال چه سپین شوی وي که په خالصې چونې سره وي او یا له چونې سره نې نیل یاکوم بل رنگ گډ کړی وي.

بنځې اکثره خته خیشتوي او بیا ئې سره یو ځای کوي او له وچیدو وروسته تیمم پرې وهي.

د تناره یا نغري په ایرو باندې که د لرگو یا داسې نورو پاکو شیانو ایره وي او که د خوشایو د سپتیو یا موټو کوم چه له وچوالي وروسته په سوځولو سره ایره شوي وي.

د ریل گاډي. بس او موټر کار په سیټ باندې که گرد پرې وي یا نه وي. یا ډیر لږ گرد وي بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په لومړني درې شمارو کنبې چه د کومو شیانو یادونه شوې ده په هغو تیمم جائز دی. په څلورم نمبر شي باندې جائز نه دی او په پنځم نمبر باندې که گرد وي پرې جائز دی او که نه وي نو نه دی. قاعده دا ده چه کوم شی په سوځولو سره و نه سوځي او په ویلې کولو سره ویلې نه شي په هغه باندې تیمم جائز دی لیکن په ایرو باندې جائز نه دی او کوم شی چه وسوځي یا ویلې شي په هغه باندې تیمم جائز نه دی لیکن په چونې باندې جائز دی

قال في التنوير بمطهر من جنس الارض وان لم يكن عليه نقع فلا يجوز بمنطبع و مترمد وفي الشرح الارماد الحجر فيجوز كحجر مدقوق او مغسول و حائط مطين او مجصص و اوان من طين آه وقال في الشامية (قوله من جنس الارض الخ) الفارق بين جنس الارض وغيره ان كل ما يحترق بالنار فيصير رماداً كالشجر والحشيش او ينطبع ويلين كالحديد والصفر والذهب والزجاج ونحوها فليس من جنس الارض ابن كمال عن التحفة آه. (رد المحتار ج۱ ص۲۲۰) فقط والله تعالیٰ اعلم

۳۰ ربيع الثاني ۸۹ هجری

## په تیمم کنبې د ږیرې خلالول سنت دي

**سوال:** په تیمم کنبې د ږیرې خلالول مستحب دي او که سنت یا واجب؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په تیمم کښې د ږیرې خلالول سُنت دي.

قال فی الشامیة وفی الفیض ویخلل لحیته واصابعه ویحرك الخاتم والقرط کالوضوء والغسل آه قلت لکن فی الخانیة ان تخلیل الاصابع لابد منه لیتم الاستیعاب وقال فی البحر وکذا نزع الخاتم او تحریکه آه فبقی تخلیل اللحیة من السنن. (ردالمحتار ج۱، ص۲۱۳) فقط والله تعالی اعلم ۱۰ ذی القعدة ۸۹ هجری

## د اوداسه په اکثرو اندامونو باندې چه زخم وي نو تیمم دې وکړي

**سوال:** د یوه سړي په لاسونو، پښو او مخ باندې د خارش دانې وي او اوبو ورته نقصان کوي نو آیا نوموړی د غسل او اوداسه لپاره تیمم کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته د اوداسه اندامونه یعني په مخ، دواړه لاسونه، دواړو پښو په اکثره برخو باندې ئې زخمونه وو نو تیمم دې وکړي او که نه وو نو روغ اندامونه دې پرېمینځي او په زخمونو دې مسح وکړي. د غسل ئې هم همدغه حکم دی لیکن په غسل کښې د اندامونو د شمارلو په ځای دې د ټول بدن اندازه وکړي. که چیرته له نیم بدن څخه په زیاتې برخې باندې ئې زخمونه وو نو تیمم دې وکړي او که ئې په نیم بدن یا له دې څخه په کم باندې زخمونه وو نو په دغو دې مسح وکړي او نور بدن دې پرېمینځي. او که چیرته په روغو ځایونو باندې د اوبو په تیرولو سره د زخمونو له اوبو څخه ساتل مشکل وو نو هغومره روغ ځای هم په زخم کښې شمارل کیږي.

قال فی شرح التنویر تیمم لو کان اکثره ای اکثر اعضاء الوضوء عدداً وفی الغسل مساحة مجروحاً او به جدری اعتباراً للاکثر وبعکسه یغسل الصحیح ویمسح الجریح وکذا ان استویا غسل الصحیح من اعضاء الوضوء ولا روایة فی الغسل ومسح الباقی منها وهو الاصح لانه احوط فکان اولی وفی الشامیة (قوله وبعکسه) وهو لو کان اکثر الاعضاء صحیحاً یغسل الخ لکن اذا کان یمکنه غسل الصحیح بدون اصابة الجریح والا تیمم حلیة فلو کانت الجراحة بظهره مثلا واذا صب الماء سال علیها یکون ما فوقها فی حکمها فیضم الیها کما بحثه الشرنبلالی فی الامداد. وقال تحت (قوله ولا روایة فی الغسل) ورجح فی البحر تصحیح الثانی (ای الغسل والمسح) بانه احوط وتبعه فی المتن. (ردالمحتار ج۱، ص۲۳۶) فقط والله تعالی اعلم ۲۴ ربیع الثانی ۹۷ هجری

## د جنازې د لمانځه او مؤکدو سنتو لپاره د تیمم حکم

**سوال** که چیرته د جنازې لمونځ تیار وي او د اوداسه په کولو سره د لمانځه د تیریدو ویره وي نو په داسې صورت کښې د تیمم په کولو سره د جنازې په لمانځه کښې شریکیدل جائز دي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قاعده دا ده چه که چیرته د کوم عبادت د فوت کیدو ویره وه او د هغه قضائي هم نه راورل کیدله نو د اوبو د موجودوالي تر څنګ هم هغه ته تیمم روا دی. د دې لپاره که چیرته د جنازې له آخري تکبیر څخه مخکښې هم د شریکیدو هیله موجوده وه نو تیمم جائز نه دی. او که ئې هیله نه وه نو بیا د تیمم وکړي په لمانځه کښې دې شریک شي. د اختر د لمانځه هم همدغه حکم دی که چیرته له لمانځه څخه د امام د فارغیدو ویره وه نو تیمم دې وکړي او شریک دې شي. همدارنګه لکه څرنګه چه د مؤکدو سنتو قضائي هم نشته له دې وجې د هغو د فوت کیدو ویره وي نو بیا هم د اوبو د موجودوالي سره سره دې تیمم وکړي او سنت دې وکړي.

قال في شرح التنوير وجاز لخوف فوت جنازة اى كل تكبيراتها او فوت عيد بفراغ امام او زوال شمس (الى قوله) لان المناط خوف الفوت لا الى بدل لجاز لكسوف وسنن رواتب. (رد المحتار ج۱، ص ۲۲۲)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۵ ربیع الثانی ۹۷ هجری

## کوم تیمم چه د تلاوت لپاره وشي په هغه باندې لمونځ صحیح نه دی

**سوال:** د یوه مریض لپاره اوبو تاواني دي. هغه د قرآنکریم د تلاوت لپاره تیمم وکړ نو آیا په همدې تیمم سره لمونځ کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې کښې قاعده دا ده چه که چیرته د داسې عبادت لپاره ئې تیمم وکړ چه هغه پخپله مقصود بالذات وي او اودس هم ورته ضروري وي نو په هغه تیمم سره لمونځ صحیح دی او که نه وي نو نه دی. که چیرته نوموړي دوه شرطونه پکښې موجود وي نو لمونځ کیږي او که دواړه نه وي یا یو په دواړو کښې نه وي نو په داسې تیمم سره لمونځ نه شي کولی

پس که چیرته بې اودسه سړي یواځې په ژبې سره د تلاوت لپاره تیمم وکړ نو په دې کښې دویم شرط نشته یعنې اودس ورته ضروري نه دی. او که چیرته ئې په قرآنکریم باندې د لاس لګولو لپاره اودس وکړ نو په دې کښې لومړی شرط نشته یعنې دا عبادت مقصود بالذات نه دی. د دې لپاره په دغو دواړو صورتونو کښې په داسې تیمم سره لمونځ نه شي کولی. البته که چیرته ئې د تیمم په وخت کښې د تلاوت د نیت په ځای د کامل اوداسه نیت وکړ نو بیا لمونځ ئې هم پرې صحیح دی. که چیرته جنب سړي د تلاوت په نیت سره تیمم وکړ نو هغه په دې تیمم سره لمونځ هم کولی شي ځکه چه د ده په حق کښې تلاوت مقصودي عبادت دی او د هغه لپاره له جنابت څخه هم پاکوالی شرط دی

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله (قوله لم تجز الصلوة به) اى لفقد الشرط وهو امران كون المنوي عبادة مقصودة وكونها لا تحل الا بالطهارة اما في دخول المسجد فلغى المحدث فقد الامران وفي الجنب فقد الاول واما في القراءة للمحدث فلفقد الثاني ولا يراد الجنب هنا لما تقدم قريبا من قوله او جنبا فكالثاني اى فتجوز الصلوة به واما المس مطلقا فلفقد الاول. (رد المحتار ج۱، ص ۲۲۹) فقط والله تعالىٰ اعلم

۲۵ ربیع الآخر ۹۷ هجری

# باب المسح على الخفين و الجبيرة

## په موزو باندې د مسح د جواز شرطونه

**سوال** په جرابو باندې د مسح کوم شرطونه دي او په کوم ډول جرابو باندې مسح جائزه ده؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب: في شرح التنوير الثخينين بحيث يمشي فرسخا ويثبت على الساق بنفسه ولا يرى ما تحته ولا يشف.**

له دې روايت څخه څرګندېږي چه موزې که د وړې وي او که د تار وي چه لاندیني شرائط پکښې موجود وي نو مسح پرې جائزه ده.

۱ - دومره ډبلې او پريړې وي چه که چيرته پرته له بوټونو يا څپلۍ څخه واغوستل شي نو درې ميله مزل پرې وشي او پرې نه شي. شرعي ميل د راجح قول له مخې څلور زره ذراعه دی. او فقهاء کرامو رحمهم الله يو قدم له يونيم قدم سره برابر شمار کړی دی. په دې حساب سره درې شرعي ميله ۸ زره قدمه راځي.

۲ - چه کله واغوستل شي نو په پنډۍ باندې له ترلو پرته له پښو څخه و نه ووځي او دا نه را لويدل ئې د هغو د ډبل والي يا پريړوالي له وجې وي. که چيرته له تنګ والي يا د پلاستيکي تسمې د درلودلو له وجې و نه ووځي نو دې ته هيڅ اعتبار نشته.

۳ - اوبه ور جذبې نه شي.

۴ - پښې ترې ښکاره نه شي (رد المحتار ج۱، ص۲۴۸) فقط و الله تعالى اعلم

۲ ذي الحجة ۸۵ هجری

## په موزو باندې د مسح احکام

**سوال** لاندینۍ عبارت له يوه محقق کتاب څخه ليکم لږ غوندې ئې ووايئ او که زه غلط پوه شوی وم نو اصلاح ئې کړی د نافع، عبد الله بن عامر، حفص، کسائي او د يعقوب په قرائت کښې ((أَرْجُلَكُمْ)) په فتح (زور) سره دی چه له مخې ئې د پښو پريمينځل ثابتيږي او د عبد الله بن کثير، حمزه بن حبيب، ابو عمر و بن العلاء او عاصم قرائت ((أَرْجُلِكُمْ)) په کسره (زير) سره دی چه له مخې ئې په پښو باندې د مسح حکم ترې را ووځي د نبي کريم ﷺ له عمل څخه ښکاريږي چه په اصل کښې دې کښې تضاد نشته بلکه دا د دوو مختلفو حالتونو لپاره د دوو جلا جلا حکمونو خوا نه

اشاره کوي بې اودسه سړی که چیرته اودس کوي نو هغه باید پښې پریمینځي او که با اودسه سړی اودس تازه کوي نو هغه یو اخې په مسح باندې اکتفاء (بسوالی) کولی شي. د اوداسه په کولو سره که چیرته سړی د پښو تر مینځلو وروسته موزې واغوندي نو بیا د مقیم والي په حالت کښې یوه شپه او ورځ او د سفر په حالت کښې درې شپې او ورځو پورې په موزو باندې مسح کولی شي په دې کښې دا پوښتنې مخې ته راځي

۱ - د مقیم والي په حالت کښې به ئې څلورویشت ساعته لکه پیره دار او داسې نورو خلکو غوندې پرته له ایستلو څخه پرله پسې موزې اغوستې وي؟

۲ - د درې شپو او ورځو څه معنی؟ آیا درې شپې او درې ورځې؟ آیا په همدومره موده کښې به ئې پرله پسې له ایستلو پرته موزې اغوستې وي؟

۳ - که چیرته موزې وباسي نو مسح ئې ساقطیږي؟

۴ - د دغو مسحو له کیفیتونو څخه آیا زه سهار تر لامبلو وروسته (له اوداسه پرته په ترتیب سره دا وکړم) جامې او بوټونه واغوندم. دفتر ته ورسیږم او د قرآنکریم د تلاوت لپاره د فرصت په وختونو کښې په جګو جګو واش بیسنونو (د اوبو هغه نلکی چه په دفترونو کښې له ځمکې څخه د فټ دوه فټه په اندازه جګې لګیدلې وي) کښې لاسونه او خوله پریمینځم او په سر او پښو باندې مسح وکړم نو آیا له کامل اوداسه څخه برخمن کیږم او که نه؟

۵ - له موزو څخه څه مراد دي آیا بند بوټونه او خپلی پکښې شاملې دي؟

۶ - آیا په مسح کښې به د ویښته په اندازه ځای د نه پاتې کیدو شرط شته. آیا په دې کښې تیمم او د موزې مسح سره برابر دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

۱ - هو! د اوداسه د ماتیدو له وخت څخه تر څلورویشتو ساعتونو پورې.

۲ - هو! تر دریو ورځو او شپو پورې د اوداسه د ماتیدو له وخته.

۳ - هو! د موزو په ایستلو سره مسح ساقطیږي او د پښو پریمینځل فرض کیږي.

۴ - هو! که چیرته تا شرعي موزې پښو کړې وي چه مسح پرې جائزه وي او په کامل اوداسه کښې دې اغوستې وي نو په موزو باندې د مسح په کولو سره د کامل اوداسه ثواب درکول کیږي

۵ - له موزو څخه مراد د څرمن جرابې یا بوټونه دي کوم چه له بښنګرو څخه تر پورتني ځای پورې بالکل داسې بند وي چه یو ځای هم ښکاره نه وي

۶ - په مسح کښې شرط نه دی لیکن په تیمم کښې شرط دی.

د مسائلو د تفصیل لپاره د بهشتي زیور تل مطالعه کول ضروري دي فقط و الله تعالی اعلم

۲۱ جمادی الثانی ۹۳ هجری

## په پلستر باندې مسح جائزه ده

**سوال:** یوه چا په زخم یا داني باندې پلستر لګولی وي که چیرته ئې د اوداسه یا غسل په وخت کښې لرې کړي نو څه نقصان نه ورکوي لیکن کومه دوائي ئې چه لګولې وي هغه د پلستر په لرې کولو سره نه پاتې کیږي یا پاتې کیږي لیکن د پلستر په لرې کولو سره هغه د مرض لپاره ګټمنه نه ثابتیږي. یا دا چه بیا پلستر نه پیدا کیږي او که پیدا کیږي نو ډیر ګران او قیمته پیدا کیږي نو آیا د پلستر په لرې کولو سره د دې اندام پریمینځل ضروري دي او که نه؟ همدارنګه د دوا د ګرانوالي اندازه څه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قال فی الدر المختار اولم یجد من یغسله فان وجد ولو باجر مثل وله ذٰلك لا یتیمم. (ردالمحتار ج۱،ص۲۱۵) وقال ابن عابدین رحمه الله (فرع) فی جامع الجوامع رجل به رمد فداواه وامر ان لایغسل فهو کالجبیرة. (ردالمحتار ج۱،ص۲۶۰)

له پورتني عبارت څخه څرګندیږي چه که چیرته د پلستر لرې کول د زخم لپاره نقصاني وي نو د هغه په خلاصولو سره د اندام پریمینځل ضروري نه دي بلکه په پلستر باندې د پاسه مسح کافي ده او دا پلستر د جبیره (پټی) په حکم کښې دی او که چیرته د پلستر لرې کول نقصاني نه وي لیکن پلستر له عام مروج قیمت څخه ډیر ګران پیدا کیده یا ئې قیمت زیات نه وو لیکن د مسکیني له وجې ئې په اخیستلو باندې قادر نه وو نو بیا هم مسح ورته جائزه ده. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۰ ربیع الآخر ۸۶ هجری

## په پټۍ باندې تر مسح وروسته د پټۍ د لویدلو حکم؟

**سوال:** که چیرته یو څوک د زخم په پټۍ باندې مسح وکړي او بیا ولویږي بیا دویمه پټۍ ولګوي نو آیا دوباره به مسح کوي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** قال فی التنویر و المسح یبطله سقوطها عن برء و الا لا. (رد المحتار ج۱،ص۲۵۹) له دې عبارت څخه څرګندیږي چه د لومړني پټۍ په لویدلو سره مسح نه ماتیږي. البته که چیرته د زخم تر جوړیدو وروسته پټۍ ولویږي نو لومړنۍ مسح ساقطیږي او د همدې ځای پریمینځل ضروري ګرځي. فقط و الله تعالی اعلم

۲۳ صفر ۸۷ هجری

## د برسیرنې پټۍ په لویدلو سره په لاندینۍ پټۍ باندې د مسح بیرته راګرځول واجب نه دي

**سوال** که چیرته لومړنۍ پټۍ ولوېږي نو آیا په دویمې پټۍ باندې د مسح بیرته را ګرځول شته او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په دې صورت کښې په لاندینۍ پټۍ باندې د مسح بیرته را ګرځول ضروري نه دي بلکه مندوب یعني مستحب دی

قال العلاء ولو بدلها باخری اوسقطت العلیا لم یجب اعادة المسح بل یندب وفی الشامیة (قوله لم یجب) وعن الثانی انه یجب المسح علی العصابة الباقیة نهر. (رد المحتار ج۱،ص۲۵۸) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۳ صفر ۸۷ هجری

## په پنبې باندې د مسحې حکم

**سوال** د زید په خولې کښې زخم یا دانه ده او د انګریزي ملهم پنبه ئې پرې لګولې ده آیا اوس دې دا پنبه لرې کړي اودس دې وکړي او که د پنبې په سر دې اوبو تیرې کړي په داسې حال کښې چه د پنبې په لرې کولو سره تکلیف وي یعنې په څرمن پورې کلکه لګیدلې وي. بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته زخم ته اوبو نقصان کوي یا د پنبې په لرې کولو کښې تکلیف وي نو پرته له لرې کولو څخه دې مسح پرې وکړي

قال فی التنویر و حکم مسح جبیرة و خرقة قرحة و موضع فصد و نحو ذلك کغسل لما تحتها. (رد المحتار ج۱،ص۲۵۶) فقط والله تعالیٰ اعلم ۸ ربیع الاول ۹۱ هجری

## که چیرته د زخم لپاره اوبه نقصاني وې نو مسح دې وکړي

**سوال** د ځا به لاسونو یا پښو باندې چه زخم وي او اوبه نقصان ورته کوي نو اودس به څنګه کوي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د زخم په ځای دې مسح وکړي. که چیرته مسح هم تاوان ورته کوي نو بیا معاف دی مسح دې هم نه کوي

قال فی العلائیة فی اعضائه شقاق غسله ان قدر والا مسحه والا ترکه ولو بیده ولا یقدر علی الماء یتیمم. (رد المحتار ج۱،ص۲۵۰) فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ ذی القعدة ۸۷ هجری

## په منعلو (تلي لرونكو) جرابو باندې د مسحې حكم

**سوال** د منعل جرابو حد (اندازه) څه دی. د عامو ديسي بوټونو غوندې په پنجو او تليو پورې د څرمنې لګول ترې مراد دي او كه نور څه؟ همدارنګه په منعلو جرابو كښې چه په كومې برخې كښې ئې څرمن نه وي د هغه لپاره د مضبوطي او پړيړوالي او داسې نورو لپاره كوم شرط شته او كه هر ډول چه وي مسح پرې جائزه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د بوټونو چه پواخې تلی د څرمنې وي نو هغو ته منعل ويل كيږي كه چيرته تر دې څخه په زياتې برخې پورې ئې څرمن لګيدلې وي ليكن په ټولو جرابو باندې تر ښنګرو پورې نه وي لګيدلې نو هغه هم د منعل په حكم كښې راځي.

((قال فی المغرب مُنَعَّل و مُنْعَل وهو الذی وضع علی اسفله جلدة کالنعل للقدم وفی شرح المنیة منعلین ای جعل الجلد علی ما یلی الارض منهما خاصة کالنعل للرجل)). په عربو كښې نعل پواځې تر قدم لاندې رواج وو او د پاسه به پرې لكه د چپلو غوندې پواځې تسمې وې. ((وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله تحت قول الدرر والمنعلین ما جعل علی اسفله جلدة ای الی قدم دون الکعبین)). (طحطاوی ج۱ص۱۴۰)

د منعلو جرابو له څرمنې بغير پخپله كپړه ئې كه چيرته دومره سخته او كلكه وه چه د مسح د جواز شرائط پكښې موجود وو نو په اتفاق سره مسح پرې جائزه ده او كه عامه د مزي يا تار كپړه وه نو په اتفاق سره مسح پرې جائزه نه ده او كه چيرته د وړيو كپړه وه او ښه مضبوطه او ډبله وه ليكن د مسح د جواز شرائط پكښې موجود نه وو نو په مسح كښې ئې د متاخرينو تر منځ اختلاف دی. د نه جواز قول له ډيروالي سره سره احوط هم دی.

والتفصیل فی رسالة نیل المآرب فی المسح علی الجوارب للشیخ المفتی محمد شفیع رحمه الله . فقط والله تعالی اعلم

۲۴ رمضان ۹۸ هجری

## د څرمنې د موزو لاندې كه چيرته جرابې وې نو مسح پرې جائزه ده

**سوال** د څرمنې د موزو لاندې كه چيرته يو څوك د وړيو يا كپړې جرابې واغوندي نو آيا په موزو باندې مسح جائزه ده او كه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** جائزه ده ((قال فی البحر بعد ذکر الاختلاف ومنهم من افتی بالجواز وهو الحق لما قدمناه عن غایة البیان وایده العلامة ابن عابدین رحمه الله فی منحة الخالق بقوله شارح المنیة یعلم منه جواز المسح علی خف لبس فوق مخیط من کرباس او جوخ ونحوهما مما لا یجوز علیه المسح)). (البحر الرائق ج۱ص۱۹۱) فقط والله تعالی اعلم

۲۴ رمضان ۹۸ هج

## د پلاستيکي موزو برسيره که چيرته جرابې وي نو مسح جائزه نه ده

**سوال:** که چيرته يو سړی پلاستيکي موزې واغوندې او برسيره پرې تاري جرابې واغوندي نو آيا مسح پرې جائزه ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته پلاستيک له جرابو سره وګنډل شي نو مسح پرې جائزه ده او دې ته مبطن (هغه موزې چه د ننه له خوا څخه کلکې او مضبوطې وي) ويل کيږي.

ان ما کان رقيقاً منها (ای من الجلد الرقيق) لا يجوز المسح عليه اتفاقاً الا ان يکون مجلداً او منعلاً او مبطناً.

(شرح المنية ص ۱۲۱)

او له ګنډلو پرته په جرابو باندې مسح جائزه نه ده د دې لپاره چه مسح په چرمي موزې باندې روا ده او په جرابو باندې د مسح په کولو سره په موزې باندې مسح متحققه نه شوه. په خلاف د مبطن څکه چه په هغې کښې کپړه او چمړه د ګنډلو په ذريعې سره يو شوي دي نو څکه مسح پرې روا ده. فقط و الله تعالى اعلم. ۲۴ رمضان ۹۸ هجری

# باب الحيض

## د حيض په حالت کښې ذکر جائز دی

**سوال:** آيا ښځه د حيض په حالت کښې ذکر، تسبيح او داسې نور ادا کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د حيض په حالت کښې د قرآنکريم له تلاوت پرته هر ډول ذکر ورته جائز دی. د قرآنکريم کوم آيت هم د دُعا په نيت سره ويل جائز دي. فقط و الله تعالی اعلم.

۲ ذی الحجة ۸۹ ھجری

## د حائضه ښځې لپاره د قرانکريم د تعليم (ورښوولو) حکم

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه حائضه ښځه که چيرته کوچنيانو ته قرآنکريم ور ښوده نو آيا په دغو ورځو کښې به ور ښوول پريږدي او که څنګه؟ همدارنګه نورې دُعا ګانې او درود شريف ويل ورته جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

**جواب:** قال فی شرح التنوير ويمنع قراءة القرآن بقصده ومسه (الی ان قال) ولا بأس لحائض وجنب بقراءة ادعية ومسها وحملها وذکر الله تعالی وتسبيح وفی الشامية (قوله قراءة قرآن) ای ولو دون آية من المرکبات لا المفردات لانه جوّز للحائض المعلّمة تعليمه کلمةً کلمةً (قوله بقصده) فلو قرأت الفاتحة علی وجه الدعاء او شيئاً من الأيات التی فيها معنی الدعاء ولم ترد القراءة لا بأس به (رد المحتار ج۱، ص۲۰۰) وفی غسل شرح التنوير ويحرم به تلاوة القرآن ولو دون آية علی المختار بقصده وفی الشامية (قوله علی المختار ای من قولين مصححين ثانيهما انه لا يحرم ما دون آية (الی قوله) الاول ومحله اذا لم تکن طويلة فلو کانت طويلة کان بعضها کآية لانها تعدل ثلاث آيات ذکره فی الحلية عن شرح الجامع لفخر الاسلام. (رد المحتار ج۱، ص۱۵۹)

### له دغو عبارتونو څخه لانديني امور را ووځي

۱ــ د حائضه لپاره يو آيت يا تر دې زيات د تلاوت په نيت سره ويل په اتفاق سره جائز دي.

۲ــ د آيت يوه برخه په دې شرط چه له کوچني څخه کوچنی آيت يعنې د شپږو حروفو په برابر نه وي د ويلو په جواز کښې اختلاف دی او نه جواز راجح دی

۳ــ له مفرداتو څخه يوه يوه کلمه ويل په اتفاق سره جائز دي.

۴ــ د دُعا په قصد سره د هغو قرآني آيتونو ويل جائز دي چه د دُعا مضمون پکښې وي

۵ــ د ماثوره دُعا ګانو ويل، لاس لګول، د خدای ذکر، تسبيحات او داسې نور ويل جائز دي

فقط و الله تعالی اعلم     ۱۳ شعبان ۹۵ هجری

## د حائضه ښځې د دمولو حکم

**سوال** کومه ښځه چه په حيض يا نفاس کښې وي آيا په هغې باندې د قرآنکريم ويل او بيا ئې پرې دمول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**جواب**: هو! جائز دي فقط و الله تعالی اعلم.     ۱۱ ربيع الاول ۹۵ هجری

## د عادت تر ورځو وروسته د وينې د راتللو حکم

**سوال**: د يوې ښځې هميشنی عادت دا دی چه په هره مياشت کښې پنځه ورځې حيض ورځي، کله کله شپږمه ورځ هم ورته راځي. کله څو داسې هم کيږي چه غسل وکړي دوه درې لمونځونه وکړي بيا ئې وينه شروع شي. د داسې ښځې لپاره شرعي حکم څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د پنځو ورځو له تيريدو وروسته چه کله وينه بنده شي نو د لمانځه په آخر کښې دې غسل وکړي او لمونځ دې وکړي، بيا که چيرته وينه ورته راغله نو لمونځ دې پريږدي.     فقط و الله تعالی اعلم.     ۳ ربيع الاول ۹۶ هجری

## د عادت تر ورځو مخکښې د وينې بنديدل

**سوال**: يوې ښځې ته د تل لپاره پنځه ورځې وينه راتله، اوس ئې څلورمه ورځ وينه بنده شوه نو د دې لپاره د لمانځه څه حکم دی او آيا کوروالی ورسره جائز دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې لمونځ او روژه پرې فرض دي ليکن د پنځو ورځو تر پوره کيدو مخکښې کوروالی ورسره جائز نه دی. او لمونځ د مستحب وخت تر آخره پورې ځنډول ورته واجب دي.

قال العلاء فان لدون عادتها لم يحل و تغتسل و تصلی و تصوم احتياطاً. و فی الشامية (قوله لم يحل) ای الوطیء و ان اغتسلت لان العود فی العادة غالب بحر (قوله تغتسل و تصلی) ای فی اٰخر الوقت المستحب و تأخيره اليه واجب هنا اما فی صورة الانقطاع لتمام العادة فانه مستحب کما فی النهاية و الفتح و غيرهما. (رد المحتار ج۱، ص۲۰۱). فقط والله تعالی اعلم     ۲۷ جمادی الآخر ۹۲ هجری

## د حيض تر بنديدو څومره موده وروسته کوروالی جائز دی؟

**سوال**: ښځه چه کله له حيض څخه پاکه شي نو تر غسل مخکښې کوروالی ورسره جائز دی او که نه؟ بينوا! توجروا

مخکښې هم غسل تر نو شي بنده وينه ئې وروسته او کيدو پوره تر ورخو لسو د چيرته که **جواب**: که چيرته د لسو ورخو تر پوره کيدو وروسته ئې وينه بنده شي نو تر غسل مخکښې هم کوروالی ورسره جائز دی ليکن مستحبه دا ده چه تر غسل وروسته ورسره وشي او که چيرته تر لسو ورخو مخکښې پاکه شي نو دکوروالي د جائز والي لپاره له دوو شرطونو څخه د يوه شرط موجودوالی ضروري دی يعنې ښځه به يا غسل کوي او يا به د وينې تر بنديدو وروسته دومره وخت پرې تير شي چه د لمانځه قضائي پرې فرض وګرځي. تر څو پورې چه په دغو ورخو کښې دا دوه شرطونه په ځای نه شي کوروالی به ورته جائز نه شي. د لمانځه قضائي هلته پرې فرض کيږي چه د وينې تر بنديدو وروسته د لمانځه د وخت له تيريدو مخکښې دومره وخت موجود وي چه په بيړه د غسل په کولو سره تکبير تحريمه وويلی شي. د مثال په ډول که چيرته د مازديګر تر لمانځه لږ مخکښې ئې وينه بنده شي ليکن د غسل کولو په صورت کښې د تکبير تحريمه د ويلو په برابر وخت نه وي نو د لمر تر ډوبيدو مخکښې کوروالی ورته حلال نه دی ځکه چه تر دې مخکښې د هغې په ذمه باندې کوم فرض لمونځ نشته.

قال شارح التنوير ويحل وطؤها اذا انقطع حيضها لا كثره بلا غسل وجوبا بل ندبا وقال ابن عابدين رحمه الله اعلم انه اذا انقطع دم الحائض لاقل من عشرة و كان لتمام عادتها فانه لا يحل وطؤها الا بعد الاغتسال او التيمم بشرطه كما مر لانها صارت طاهرة حقيقة او بعد ان تصير الصلاة دينا فى ذمتها وذلك بان ينقطع و يمضى عليها ادنى وقت صلوة من آخره وهو قدر ما يسع الغسل واللبس والتحريمة سواء كان الانقطاع قبل الوقت اوفى اوله او قبيل آخره بهذا القدر فاذا انقطع قبل الظهر مثلا او فى اول وقته لا يحل وطؤها حتى يدخل وقت العصر لانها لما مضى عليها من آخر الوقت ذلك القدر صارت الصلوة دينا فى ذمتها لان المعتبر فى الوجوب آخر الوقت و اذا صارت الصلوة دينا فى ذمتها صارت طاهرة حكما لانها لا تجب فى الذمة الا بعد الحكم عليها بالطهارة و كذا لو انقطع فى آخره و كان بين الانقطاع و بين وقت العصر ذلك القدر فله وطؤها بعد دخول وقت العصر لما قلنا اما اذا كان بينهما دون ذلك فلا يحل الا بعد الغروب لصيرورة صلوة العصر دينا فى ذمتها دون صلوة الظهر لانها لم تدرك من وقتها ما يمكنها الشروع فيه الخ. (رد المحتار ج ۱، ص ۲۸۳)

فقط والله تعالى اعلم

۲۵ ربیع الآخر ۹۷ هجری

## د وينې په بنديدو سره د لمانځه او روژې د فرض کيدو تفصيل

**سوال**: که چيرته د ښځې د حيض وينه د لمانځه په آخر وخت کښې بنده شي نو په هغې باندې د همدغه وخت د لمانځه د فرض کيدلو څه شرط دی. همدارنګه په رمضان شريف کښې ئې د

لګل د سپي په آخري برخه کښې وينه بنده شي نو اد همدغې ورځي روژه فــــرض دی او که نه؟
بينوا توجروا

**جواب.** که چیرته عادت ئې تر لسو ورځو کم وي نو د لمانځه د فرض کیدلو لپاره دا شرط دی چه د وینې تر بندیدو وروسته او د لمانځه د وخت تر ختمیدو مخکښې په بیړه د غسل د فرائضو په ادا کولو سره پرته د غسل د سُنتونو د ادا کولو څخه دومره وخت په لاس ورشي چه تکبیر تحریمه پکښې وویلی شي. او که چیرته پوره لس ورځې وینه ورشي نو د وخت تر ختمیدو مخکښې دومره وخت په لاس ورشي چه پرته د غسل له کولو څخه تکبیر تحریمه وویلی شي نو دا لمونځ پرې فرض دی او قضائي به ئې راوړي. د روژې هم همدغه حکم دی چه په لومړي صورت کښې که چیرته تر صبح صادق مخکښې او تر فرض غسل وروسته د تکبیر تحریمه د ویلو او په دویم صورت کښې یواځې د تکبیر تحریمه د ویلو وخت په لاس ورشي نو د همدغې ورځې روژه پرې فرض کیږي او که په لاس ور نه شي نو نه فرض کیږي.

قال فی شرح التنویر و یقضی علیها زمن یسع الغسل ولبس الثیاب و التحریمة یعنی من آخر وقت الصلوٰة لتعلیلهم بوجوبها فی ذمتها (الی قوله) و هل تعتبر التحریمة فی الصوم الاصح لا و هی من الطهر مطلقا و کذا الغسل لو لا کثره و الا فمن الحیض فتقضی ان بقی قدر الغسل و التحریمة ولو لعشرة فقدر التحریمة فقط لئلا تزید ایامه علی عشرة فلیحفظ. وفی الشامیة (قوله یسع الغسل) ای مع مقدماته کالاستقاء و خلع الثوب و التستر عن الاعین وفی شرح البزدوی ولم یذکروا ان المراد به الغسل المسنون او الفرض و الظاهر الفرض لانه یثبت به رجحان جانب الطهارة آه. کذا فی شرح التحریر لابن امیر حاج (قوله و التحریمة) و هی الله عند ابی حنیفة و الله اکبر عند ابی یوسف و الفتوی علی الاوّل کما فی المضمرات قهستانی و قال تحت (قوله الاصح لا) هذا ما صححه فی المجتبی و نقل بعده فی البحر عن التوشیح و السراج انه لا یجزیها صوم ذٰلك الیوم اذا لم یبق من الوقت قدر الاغتسال و التحریمة (الی قوله) و نحوه فی الزیعلی و قال فی البحر و هذا هو الحق فیما یظهر آه قال فی النهر و فیه نظر و لم یبین وجهه (الی قوله) فالذی یظهر ما قال فی البحر انه الحق. (ردالمحتار ج ۱، ص ۲۰۳) فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۶ ربیع الثانی ۹۷ ھجری

## د حيض په حالت کښې د ديني کتابونو د کتلو حکم

**سوال** په تبليغ کښې چه هره اونۍ کوم تبليغي نصاب ويل کيږي د دې په اړه دا ويل کيږي چه ښځې د حيض په حالت کښې هم دا کتاب را اخيستلی او ويلی شي ليکن لکه څرنګه چه د کــ بوّ نه قرآني آيتونو او حديثونو څخه ډک دی د دې لپاره په زړه کښې لږ تشويش پيدا کيږي چه ــ

را اخیستل او ویل ئې جائز دي او که نه؟ که چیرته ئې را اخیستل جائز وي نو بیا نور هم ډیر دیني کتابونه دي د هغو او د بهشتي زیور په باره کښې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**جواب:** د حیض په حالت کښې دیني کتابونو ته لاس لګول جائز دي لیکن په کوم ځای کښې چه د قرآنکریم آیت لیکلی وي په هغه باندې لاس مه لګوی. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۰ شعبان ۹۷ هجری

## د حیض په حالت کښې د آیت الکرسي د تلاوت حکم

**سوال:** که چیرته یوه ښځه د شپې د ویدیدو په وخت کښې د آیت الکرسي، چار قُل او الحمد لله شریف د ویلو عادت ولري نو د حیض په ورځو کښې خپل دا عادت پوره کولی شي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دُعا په نیت دې ووائي او د تلاوت په نیت دې نه وائي. فقط و الله تعالی اعلم.

۲۰ شعبان ۹۷ هجری

## تر اسقاط وروسته د راتلونکې وینې حکم

**سوال:** که چیرته د کومې ښځې داسې بچی ولویږي چه یوائځې د غوښې ټکړه وه او اندامونه ئې نه وو نو تر اسقاط وروسته به د راتلونکې وینې حکم د نفاس وي او که د حیض؟ که چیرته د حیض حکم وي نو کوم لمونځونه ئې چه د نفاس ګڼلو په صورت کښې د ناپوهۍ له مخې تر لسو ورځو وروسته پریښي وي د هغو قضائي پرې واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته ئې حمل د څلورو میاشتو یا تر دې د زیاتې مودې وي نو تر ولادت وروسته به راتلونکې وینه د نفاس وي. او که چیرته تر څلورو میاشتو د کمې مودې وي نو دا وینه به د حیض وي په دې شرط چه درې ورځې یا تر دې زیاته وینه راشي. که چیرته تر دریو ورځو کمه وینه راشي نو بیا به استحاضه وي. نو که چیرته ئې حمل د څلورو میاشتو نه وي او د دې ترځنګ ئې دا وینه نفاس ګڼلی وي او لمونځونه ئې پریښي وي نو بیا ئې قضایې پرې فرض ده

قال في شرح التنوير وسقط ظهر بعض خلقه كيد او رجل او اصبع او ظفر او شعر ولا يستبين خلقه الا بعد مائة وعشرين يوما ولد حكما فتصير المرأة به نفساء (الى قوله) فان لم يظهر له شيء فليس بشيء والمرئي حيض ان دام ثلاثا وتقدمه طهر تام والا استحاضة الخ. (رد المحتار ج۱ ص۲۰۲) فقط والله تعالى اعلم

۵ صفر ۹۸ هجری

## د مستحاضه ښځې حکم

**سوال** ما ته د حيض په باره کښې دا مسئله را وښايئ چه له پيل ځخه زما د پاک او سيدلو عادت پنځلس ورځې دی کله کله شل دوه ويشت ورځې هم پاکه يم ليکن داسې ډير کم پيښيږي او يوولسمه ورځ غسل کوم له دريو ځلورو کلونو ځخه کله کله داسې هم شوي دي چه په اتو يا نهو ورځو کښې غسل کوم ليکن دا ډير کم وي. دا ځل ما له پنځلسم دسمبر ځخه لمونځ شروع کړ او په درويشتم باندې بيا وينه راغله او تر ديرشم پورې مې لمونځونه کول چه بيا خړ او زيړ غونډې رنګ راتلل شروع شو. يوولس ورځې مې پوره کړې او له دويم جنوري ځخه مې بيا لمونځ شروع کړ په دې دوران کښې يوه يا نيمه ورځ پاکه وم او څه خړ غونډې رنګ وينه راتلله. درې ځلور ورځې ښه وم ليکن په يوولسم جنوري کښې د ماسخوتن په وخت بيا د وينې راتلل شروع شو او تر دوو ورځو پورې ئې د وينې رنګ وو او اوس ئې کله رنګ خړ او کله ګلابي غونډې وي نن تر پنځلسم تاريخ پورې ئې همدا رنګ دی او له يوولسم جنوري ځخه مې لمونځونه نه دي کړي. نو اوس به زه لمونځ له کوم وخت ځخه شروع کوم او دا کوم لمونځونه مې چه نه دي کړي د هغو قضايي راوړم او که نه؟ که چيرته په منځ کښې بيا وينه راشي نو په دې وخت کښې به لمونځ کوم او که نه او د ورځو حساب به څنګه نسم؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** له پنځلسم دسمبر ځخه مخکښې چه کله وينه شروع شوي وه هغه تاريخ به ياد کښې ونيسي او له هغه ځخه پوره تر لسو ورځو وروسته د پاکوالي ورځې ګڼل کيږي بيا له هغو ځخه پوره تر پنځلسو ورځو وروسته پورې به د دويم حيض موده وي. که په منځ کښې وينه راشي يا را نه شي په هر حال کښې همدا حساب ونيسي. د دې حساب په مطابق چه کومه زمانه د پاکۍ وي د هغې زمانې د لمونځونو قضائي را وګرځوي. فقط و الله تعالى اعلم

۱۳ صفر ۹۸ هجری

# احکام المعذور

## د متیازو په سوري کښې د کیښودل شوي پنبې د ننني برخې د لمدیدلو حکم

**سوال:** که چیرته یوه سړي د متیازو په سوري کښې پنبه کیښودله او د همدغې پنبې د ننه خوا لمده شوه او د باندې خوا ئې وچه وه نو اودس ئې ماتیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر څو پورې چه د پنبې ظاهري برخه لمده شوې نه وي اودس نه ماتیږي قال فی التنویر کما ینقض لو حشی احلیله بقطنة وابتل الطرف الظاهر وان ابتل الطرف الداخل لا ینقض. (ردالمحتار ج۱، ص۱۳۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم — ۲۳ ذی الحجة ۸۷ هجری

## د څاڅکو د مریض لپاره د لمانځه د ادا کولو اسانه طریقه

**سوال:** د ځلوبښتو ګامونو د اخیستلو او له لوړ ځاي څخه تر کښته کیدو وروسته که چیرته د چا د متیازو څاڅکي بندې نه شي نو بیا څه باید وکړي؟ په دې صورت کښې په لمانځه کښې کوم فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ځلوېښتو ګامونو اخیستل او داسې نور کوم قید نه دی. اکثره له دې څخه استبراء حاصلیږي. په اصل کښې مقصود دا دی چه د څاڅکي له لویدلو څخه تسلي او ډاډ حاصل شي. چه تر څو پورې ډاډ نه وي حاصل شوی د اوداسه شروع کول صحیح نه دي او چا ته چه تر ډیره څنډه پورې څاڅکي ورځي هغه باید د وخت له داخلیدو څخه مخکښې متیازې وکړي یا د متیازو په سوري کښې د ننه پنبه یا کوم بل شی داسې ننه باسي چه د هغې ننني برخه د متیازو څاڅکی جذب کړي او لمدوالی ئې د باندې وتلو ته پرې نه ږدي.

قال فی شرح التنویر یجب الاستبراء بمشي او تنحنح او نوم علی شقه الایسر ویختلف بطباع الناس وقال فی الشامیة اما نفس الاستبراء حتی یطمئن قلبه بزوال الرشح فهو فرض وهو المراد بالوجوب ولذا قال الشرنبلالی یلزم الرجل الاستبراء حتی یزول اثر البول ویطمئن قلبه وقال عبرت باللزوم لکونه اقوی من الواجب لان هذا یفوت الجواز بفوته فلا یصح له الشروع فی الوضوء حتی یطمئن بزوال الرشح اه قلت ومن کان بطئ الاستبراء فلیفتل نحو ورقة مثل الشعیرة ویحتشی بها فی الاحلیل فانها تتشرب ما بقی من اثر الرطوبة التی یخاف خروجها وینبغی ان یغیبها فی المحل لئلا تذهب الرطوبة الی طرفها الخارج اه. (ردالمحتار ج۱، ص۲۱۰)

فقط والله تعالیٰ اعلم — ۲۸ صفر ۹۱ هجری

## د معذور سړي د اوداسه او جامو د پاکوالي حکم

**سوال:** د عذر د خاوند لپاره د هر لمانځه لپاره اودس کول او د جامو مینځل ضروري دي او که نه؟ او همدارنګه د عذر د خاوند جوړیدو لپاره کوم شرائط دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فی العلائیة ان استوعب عذره تمام وقت صلوٰة مفروضة بأن لا یجد فی جمیع وقتها زمناً یتوضأ ویصلی فیه خالیاً عن الحدث ولو حکماً لان الانقطاع الیسیر ملحق بالعدم وهذا شرط العذر فی حق الابتداء وفی حق البقاء کفی وجوده فی جزء من الوقت ولو مرة وفی حق الزوال یشترط استیعاب الانقطاع تمام الوقت حقیقة لانه الانقطاع الکامل وحکمه الوضوء لا غسل ثوبه ونحوه لکل فرض اللام للوقت کما فی لدلوک الشمس ثم یصلی به فیه فرضاً ونفلاً فدخل الواجب بالاولی فاذا خرج الوقت بطل ای ظهر حدثه السابق حتی لو توضأ علی الانقطاع ودام الی خروجه لم یبطل بالخروج ما لم یطرأ حدث اخر او یسل کمسألة مسح خفه وافاد انه لو توضأ بعد الطلوع ولو لعید او ضحی لم یبطل الا بخروج وقت الظهر وان سال علی ثوبه فوق الدرهم جاز له ان لا یغسله ان کان لو غسله تنجس قبل الفراغ منها ای الصلوٰة والا یتنجس قبل فراغه فلا یجوز ترک غسله هو المختار للفتوی وکذا مریض لا یبسط ثوباً الا تنجس فوراً له ترکه.

وفی الشامیة (قوله هو المختار للفتوی) وقیل لا یجب غسله اصلاً وقیل ان کان مفیداً بأن لا یصیبه مرة اخری یجب وان کان تصیبه المرة بعد الاخری فلا، واختاره السرخسی بحر. قلت فی البدائع انه اختیار مشائخنا وهو الصحیح اه فان لم یمکن التوفیق بحمله علی ما فی المتن فهو اوسع علی المعذورین ویؤید التوفیق ما فی الحلیة عن الزاهدی عن البقالی لو علمت المستحاضة انها لو غسلته یبقی طاهراً الی ان تصلی یجب بالاجماع وان علمت انه یعود نجساً غسلته عند ابی یوسف دون محمد ولکن فیها عن الزاهدی ایضاً عن قاضی صدر انه لو یبقی طاهراً الی ان تفرغ من الصلوٰة ولا یبقی الی ان یخرج الوقت فعندنا تصلی بدون غسله. (ردالمحتار ج۱، ص۲۸۱)

له پورتنیو عبارتونو څخه لاندیني خبرې را ووتلې:

۱ - د عذر د خاوند لپاره ضروري ده چه د لمانځه په ټول وخت کښې دومره وخت ده ته په لاس ور نه شي چه اودس وکړي او په اوداسه سره لمونځ وکړی شي.

۲ - د شرعي معذور جوړیدو وروسته په راتلونکي ټول وخت کښې یو ځل د عذر موجودوالی کافي دی.

۳ - د عذر د زوال (لرې کیدو) لپاره ضروري ده چه د لمانځه پوره وخت په کُلي توګه له عذر څخه خالي پرې تیر شي.

۴ - د عذر د خاوند لپاره د هر وخت فرض لپاره اودس کول ضروري دي او په همدې اوداسه سره فرض، واجب، نفل او چه څه غواړي په وخت کښې د ننه ئې ادا کولی شي.

۵ - د جامو د پاکوالي ئې دا حکم دی چه که چیرته ئې دا یقین وي چه د چامو تر پریمینځلو وروسته له لمانځه څخه تر فارغیدو مخکښې دوباره نه مرداریږي نو په اجماع سره ئې پریمینځل ضروري دي. او که چیرته دویم ځل ئې د مرداروالي اندیښنه وه نو پریمینځل ئې ورته ضروري نه دي.
فقط و الله تعالی اعلم. اول درجب المرجب ۸۸ هجری

## د معذور د جامو حکم

**سوال:** د یوه سړي له زخم څخه وینه څڅیږي چه جامې بدلوي نو هغه هم مرداریږي. نو دا سړی به لمونځ څرنګه ادا کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته جامې تر مینځلو یا بدلولو وروسته او د لمانځه تر پوره کولو مخکښې بیا لمدیږي نو بدلول یا مینځل ئې واجب نه دي او که داسې نه وي نو بیا واجب دي.

قال في العلائية وان سال على ثوبه فوق الدرهم جاز له ان لا يغسله ان كان لو غسله تنجس قبل الفراغ منها اى الصلوة والا يتنجس قبل فراغه فلا يجوز ترك غسله وهو المختار للفتوى. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۲)

فقط والله تعالى اعلم ۲۶ ربيع الاول ۹۶ هجری

## د مریض لپاره که د مردارو جامو بدلول مشکل وي نو له هغو سره دې لمونځ وکړي

**سوال:** په هسپتال یا شفاخانې کښې کله کله په یقیني توګه بدن او جامې پاکې نه وي او کله کله څه پاک او څه ناپاک وي او کله کله پکښې اشتباه وي نو آیا په داسې صورتونو کښې په هر حال کښې باید لمونځ ورسره شي او که دې قضا کړی شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې مریض باید په همداسې حالت کښې لمونځ وکړي.

مريض تحته ثياب نجسة وكلما بسط شيئاً تنجس من ساعته صلى على حاله وكذا لو لم يتنجس الا انه يلحقه مشقة بتحريكه. (رد المحتار ج۱، ص۵۶۳) فقط والله تعالى اعلم ۲۴ محرم ۹۵ هجری

## د معذور په حکم کښې د داخلیدو د معلومولو اسانه طریقه

**سوال:** څه فرمایي د شرع متین مفتیان کرام په دې باره کښې چه یو سړی د پیچش په مرض کښې ګرفتار دی او په دې مرض کښې ئې هوا هم ډیره ووځي نو آیا دا سړی به د لمانځه لپاره یواځې یو ځل اودس کوي او که هر ځل ئې چه باد ووځي نو اودس به کوي. ما د لاندې له دار العلوم څخه د خواب غوښتنه کړې وه او هغو لیکلي وو چه د یوه پوره لمانځه وخت چه د عذر په حالت کښې تیر شي او هغه د باد په بندولو قدرت و نه لري او د عذر همدغه حالت ئې له دې وخت

شخه وروسته هم پاتي وي نو داسې سړی شرعا معذور دی. اوس به په نورو لمونځونو کښې د هر لمانځه لپاره تازه اودس کوي ليکن ما ته څه داسې وخت په لاس نه راځي چه زه د پورتني خواب مطابق شرعاً معذور وګرځم. نو آيا د پيچش بيماري شرعاً د معذوري لپاره کافي دی او که نه؟

زه اکثره د يوه لمانځه لپاره پنځه يا شپږ ځله اودس کوم بيا چيرته لاړ شم او د لمانځه د ادا کولو وخت پيدا کړم. د جماعت لمونځ هم د اوداسه په کولو کولو سره رانه تير شي. او له ما سره اکثر دومره وخت هم نه وي چه دومره ډير ځله اودسونه وکړم. که چيرته د ماسخوتن په لمانځه کښې دا حالت را ته پيښ شي نو زه په دې انتظار کښې تر کومه وخته پورې و اوسم چه په يوه اوداسه باندې ټول لمونځونه وکړم. که چيرته ټوله شپه په ويښه تيره کړم نو سهار بيا کار ته تګ غواړي، دومره ډير ځله د اوداسه په کولو سره شرميږم، خلک هم را پورې خاندي، ما ته تقريباً په هر لمانځه کښې دا حالت را پيښيږي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تاسو يو ځل د داسې لمانځه وخت ځان ته غوره کړی چه تر ټولو ئې وخت کم وي او په دې وخت کښې فرصت هم ولرئ. د ماښام وخت تر ټولو وختونو کم وي. زما له خوا په ترتيب شوې نقشې کښې د ماښام لمونځ د سره شفق تر ختميدو پورې ورکړ شوی دی. همدا وخت تاسو کولی شی چه د ماښام د لمانځه پای وګنئ. پس تاسو يوه ورځ د ماښام په وخت کښې په ډير اهتمام سره د دې کوشش وکړی چه په ټول وخت کښې داسې موقع په لاس درشي چه په هغه کښې تاسو د اوداسه او د فرض لمانځه له سُنتونو پرته يواځې فرض ادا کولی شی. که چيرته دومره وخت په لاس در نه شي نو تاسو د معذور په تعريف کښې داخل شوي يئ او د راتلونکي لپاره دا ضروري نه ده چه ټول وخت په انتظار کښې کښينئ بلکه په ټول وخت کښې يواځې يو ځل د باد وتل ضروري دی چه تر څو پورې ستاسو دا حالت وي نو تاسو معذور يئ او د هر وخت لپاره به نوی اودس کول درباندې ضرروري وي، په همدې وخت کښې د ننه په همدې اوداسه سره مو چه څه زړه غواړي هغه ادا کړئ. د وخت په منځ کښ د عذر په پيښيدو سره مو اودس نه ماتيږي. البته که چيرته د اوداسه کوم بل ماتوونکی درنه صادر شي نو په هغه سره اودس ماتيږي، د وخت په وتو سره اودس ماتيږي. البته که چيرته د عذر د ختميدو په حالت کښې مو اودس کړی وي بيا د وخت تر وتلو پورې عذر در پيښ نه شي نو د وخت په وتلو سره اودس نه ماتيږي بلکه چه کله بيا عذر در پيښ شي تر هغه وروسته اودس ماتيږي. لنډه دا چه يواځې په يوه وخت کښې يواځې يو ځل تاسو ته عذر در پيښ شي. که چيرته په دې کښې عذر ثابت شي نو د راتلونکي لپاره کوم تکليف نشته يواځې دا خيال وساتئ چه د هر لمانځه په ټول وخت کښې يواځې يو ځل عذر در پيښيږي او که نه؟ که چيرته په ټول وخت کښې يو ځل هم عذر در پيښ نه شي نو د معذوري حکم دې له منځه ځي د معذور د حکم د ختميدو په صورت کښې نور د دې خبرې خيال ساتل ضروري دي چه د کوم

لمانځه پوره وخت له عذر څخه خالي درباندې تیر شوی دی له هغه څخه په مخکښې وخت کښې که چیرته مو د عذر په حالت کښې اودس کړی وي لیکن د لمانځه تر پوره کولو مخکښې مو عذر له منځه تللی وي او بیا د بل لمانځه وخت هم له عذر پرته درباندې تیر شوی وي نو د هغه لومړني وخت د لمانځه قضائي درباندې فرض دی. د مثال په ډول د ماسپښین اودس دې د عذر په حالت کښې وکړ لیکن د ماسپښین د فرضو تر شروع کولو مخکښې یا د لمانځه په دوران کښې تر سلام اړولو مخکښې مو عذر ختم شي، بیا د مازدیګر پوره وخت له عذر پرته درباندې تیر شي نو د ماسپښین د لمانځه قضائي وګرځوی. هو! که چیرته د ماسپښین د فرضو تر سلام اړولو وروسته عذر قطع شي نو بیا ئې قضائي درباندې فرض نه دی. د ظهر د قضاء په صورت کښې د ترتیب د خاوند هم د مازدیګر لمونځ وشو ځکه چه د ماسپښین د لمانځه نه صحیح کیدل د مازدیګر تر لمانځه وروسته معلوم شو.

که چیرته تاسو ته د ماښام د لمانځه په اوداسه سره د ادا کولو موقع په لاس دراغله نو بیا د کوم بل وخت تجربه وکړی. د ماسخوتن د وخت تجربه کول اګر که د ډیر پراخوالي له وجې تکلیف پکښې زیات دی لیکن په دې لحاظ سره په دې کښې ګټه ده چه د ماسخوتن لمونځ تر ټولو لمونځونو اوږد دی ځکه چه په دې کښې وتر هم شامل دي. څلور فرض او درې وتر، د ۷ رکعاتونو تر ادا کولو پورې که چیرته اودس په ځای پاتې نه شو نو ته د معذورینو په فهرست کښې داخلیږې.

د سپین شفق له ډوبیدو څخ تر صبح صادق پورې د ماسخوتن وخت وي. د سپین شفق د ډوبیدو وختونه زما په ترتیب شوې نقشې کښې د دویم عشاء لاندې ورکړ شوي دي. د ماسخوتن په ټول وخت کښې دا کوشش وکړی چه په چټکۍ سره په دې ډول اودس وکړی چه یواځې څلور هغه اندامونه چه پریمینځل ئې فرض دي پریمینځی، د اوداسه سنتونه پریږدی، بیا څلور رکعاته فرض او درې رکعاته وتر داسې وکړی چه په هغو کښې یواځې فرائض او واجبات په ځای کړی او سنتونه پریږدی چه تفصیل ئې دا دی چه په پیل کښې ثناء، اعوذ با لله او بسم الله پریږدی او تر سورة فاتحه وروسته آمین مه وایی، بیا چه له هر ځایه وي دومره قرآنکریم پکښې ووایی چه ټول دیرش حروفه شي، په رکوع او سجدې کښې یواځې یو ځل تسبیح ووایی. په قومه کښې ربنا لک الحمد پریږدی، د فرض په آخري دوه رکعتونو کښې سورة فاتحه مه لولی بلکه د یو ځل سبحان ربی الاعلی ویلو په اندازه ودریږی او رکوع وکړی، په آخر کښې یواځې التحیات په ویلو سره سلام وګرځوی. درود شریف او دُعا مه وایی او په وترو کښې د مسنون دُعاء قنوت په ځای کومه بله لنډه غوندې دُعا لکه ربنا آتنا الخ یا رب اغفرلی اوداسې نور ووایی.

که چیرته په تاسو باندې د معذور حکم ثابت نه شي نو د اوداسه په کولو سره لمونځ شروع کړی، که چیرته په منځ کښې له اختیار پرته اودس مات شي نو د دوباره اودس په کولو سره په نیم

ادا شوي لمانځه باندې بناء وكړي ليكن د بناء د صحيح والي د شرطونو لحاظ ساتل ضروري دي (د دغو شرطونو تفصيل د احسن الفتاوىٰ په باب المفسدات كښې موجود دى)

فقط و الله تعالى اعلم. ۲۵ شعبان ۱۹ هجری

## معذور د اشراق په اوداسه سره د ماسپښين لمونځ كولې شي

**سوال:** يو معذورسړى دى او اودس ئې وكړ د سهار لمونځ ئې ادا كړ. بيا ئې د لمر تر ختلو وروسته بل اودس وكړ او د اشراق لمونځ ئې ادا كړ. څه وخت وروسته ئې په همدغه اوداسه باندې د څاښت لمونځ ادا كړ؟ آيا دا لمونځ ئې وشو او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د څاښت لمونځ ئې وشو بلكه په همدې اوداسه باندې د ماسپښين لمونځ هم كولى شي ځكه چه د معذور اودس د وخت په وتلو سره ماتيږي د دې لپاره د ماسپښين د وخت تر آخره پورې فرض، نفل او چه څه غواړي كولى ئې شي.

قال فى التنوير ثم يصلى فيه فرضاً و نفلاً فاذا خرج الوقت بطل و فى الشرح و افاد انه لو توضأ بعد الطلوع و لو لعيد او ضحى لم يبطل الا بخروج وقت الظهر. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۲) فقط والله تعالىٰ اعلم

۲۰ ربيع الآخر ۹۶ هجری

## د انفلات ريح (هغه څوک چه باد ئې جاري وي) د مريض په خوب سره اودس نه ماتيږي

**سوال:** كه چيرته رياحي مريض د ماسخوتن لمونځ وكړي او ويده شي نو آيا د همدې ماسخوتن په اوداسه د تهجد او د سهار لمونځ ادا كولى شي او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** فى رد المحتار و الاحسن ما فى فتاوىٰ ابن الشبلى حيث قال سئلت عن شخص به انفلات ريح هل ينقض وضوئه بالنوم فاجبت بعدم النقض بناء على ما هو الصحيح من ان النوم نفسه ليس بناقض و انما الناقض ما يخرج و من ذهب الى ان النوم نفسه ناقض لزمه النقض. (رد المحتار ج۱، ص۱۳۱)

له دې څخه څرګنده شوه چه چا ته د انفلات ريح مرض لګيدلى وي او هغه شرعي معذور وي نو د هغه خوب د اوداسه ماتوونكى نه دى ځكه چه د ماتولو سبب د باد وتل دي كوم چه د نومړي لپاره د وخت په منځ كښې د اودس ماتوونكى نه دى. له دې امله نومړى سړى د ماسخوتن په اوداسه د تهجد لمونځ ادا كولى شي. ليكن د سهار لمونځ نه شي پرې ادا كولى. فقط و الله تعالى اعلم

۲ ذى الحجة ۸۵ هجری

## د وخت تر داخليدو وروسته د عذر د پيښيدلو حكم

**سوال:** كه چيرته د لمانځه تر داخليدلو وروسته يو څوك زخمي شي چه وينه ئې بنده نه شي او د

لمانځه د قضا کیدو اندیښنه وي نو څه به کوي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** تر آخر وخت پورې دې انتظار وکړي، که چیرته وینه بنده نه شي نو د اوداسه په کولو سره دې لمونځ ادا کړي، بیا که چیرته په دویم لمانځه کښې هم ټول وخت وینه جاري وه نو لومړی لمونځ دې نه راګرځوي، او که چیرته د دویم لمانځه د وخت تر ختمیدلو مخکښې وینه بنده شوه نو د لومړني لمانځه بیرته را ګرځول هم پرې واجب دي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ولو عرض بعد دخول وقت فرض انتظر الی اخره فان لم ينقطع يتوضأ و يصلي ثم ان انقطع في اثناء الوقت الثاني يعيد تلك الصلوة وان استوعب الوقت الثاني لا يعيد لثبوت العذر حينئذ من وقت العروض آه بركوية ونحوه في الزيلعي والظهيرية. (ردالمحتار ج۱ ص۲۸۱)

البته که چیرته د دویم وخت تر ختمیدلو مخکښې د عذر د له منځه تللو غالب ظن وي نو د وخت په آخر کښې د لمانځه ادا کول فرض نه دي، سره له دې بهتره دا ده چه و ئې کړي او بیا ئې قضائي راوړي. كما قالوا في العاجز عن القيام ويغلب على ظنه القدرة بعده. فقط والله تعالى اعلم

۳ ربیع الاول ۹۷ هجری

## د سیلان په مرض کښې د اوداسه د ساتلو ګتور تدبیر

**سوال:** څه فرمائي د دین علماء او مفتیان کرام د لاندینیو پوښتنو په باره کښې چه:

له یوې ښځې خخه اوبه ووځي لیکن دا معلومات نه ورته کیږي چه اوبه په کوم وخت او کله را ووځي تر څو پورې چه و ئې نه ګوري. کله کله کمې اوبه ترې بهیږي او کله زیاتې. د لمانځه تر پیل کولو مخکښې ئې وکتل نو هیڅ ناپاکي ئې په نظر نه وراغله لیکن تر لمانځه لس دقیقې وروسته ئې چه وکتل نو اوبو را وتلې وې کومې چه د څرمنې د لاندې وې او پرتوګ ئې ترې ناو نه وو اخیستی، لمونځ ئې تقریبا یو پاو دوام درلود او تر پنځه ویشتو دقیقو وروسته ئې چه وکتل نو اوبو ترې وتلې وې. آیا په دې صورت کښې ئې لمونځ کیږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه دا با لکل په دې نه پوهیږي چه دا اوبو د لمانځه په دوران کښې وتلي دي او که له لمانځه څخه تر فارغیدو وروسته وتلي دي، که چیرته ئې په دې سره لمونځ مات وي نو آیا ټول هغه لمونځونه چه په همدې وخت کښې ئې کړي وي را ګرځوي او که یوازې فرض لمونځ به ګرځوي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه کله د لمانځه په منځ کښې د اوداسه د ماتیدلو یقین نه وي نو لمونځ ئې کیږي. داسې مریضه ښځه دې د شرمګاه په منځ کښې اسفنج کښیږدي چه اوبو هر وخت جذب کړي. چه تر څو پورې د اسفنج یا پنبې هغې برخې ته لمدوالی نه وي را رسیدلی کومه برخه ئې چه د شرمګاه د ګول سورې څخه د باندې ده تر هغه وخته پورې ئې اودس نه ماتیږي

فقط و الله تعالی اعلم ۱۰ شوال ۹۷ هجری

## چه په قعدې او سجدې سره اودس ماتيږي نو د دريدو په صورت کښې د اشارې د کولو حکم

**سوال:** يو سړی د بواسيرو تکليف لري چه کله لمونځ کوي نو د رکوع، سجدې او ناستې په حالت کښې ئې تل فضله مواد را ووځي البته تر څو پورې چه ولاړ وي تر هغو پورې ئې دا صورت نه وي. په داسې حالت کښې به نوموړی لمونځ څرنګه ادا کوي، آيا هر وخت د دريدو په صورت کښې په اشارې سره لمونځ کولی شي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چيرته په هر هئيت سره چه داسې ناسته کولی شي چه فضله مواد ئې نه را ووځي نو په ناستې سره د لمونځ وکړي او رکوع او سجده په اشارې سر وکړي که چيرته هيڅ ډول ناسته ورته ممکنه نه وي نو په ولاړې سره دې لمونځ وکړي او په رکوع او سجده کښې د اشاره وکړي، که چيرته د غټو متيازو په ځای کښې د کوم ټوکري يا جامې په لګولو سره ئې فضله مواد نه را وتل او د توکري تر باندنی برخې پورې نجاست نه رسيده نو بيا دې په دې ډول سره لمونځ وکړي. فقط و الله تعالى اعلم. ۲۹ جمادی الاولی ۹۸ هجری

## د پورتنۍ پوښتنې غوندې يوه بله پوښتنه

**سوال:** څه فرمايي د دين علماء کرام او د شرع متين مفتيان کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د يوه سړي په ناسته او سجدې سره اودس ماتيږي او له رکوع او سجدې څخه هم عاجزه وي نو حکم ئې څه دی؟ آيا د ولاړې په حالت کښې به په اشارې سره لمونځ کوي او که د استلقاء په حالت کښې او که به معذور ګڼل کيږي؟ بينوا با لدليل توجروا عند الجليل

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې مريض دې په ولاړې په اشارې سره لمونځ وکړي استلقاء ورته جائزه نه ده د ولاړې په حالت کښې د رکوع او سجدې لپاره اشاره صحيح ده

قال ابن عابدين رحمه الله انه لو لم يقدر على الايماء قاعداً كما لو كان بحال لو صلى قاعداً يسيل بوله او جرحه ولو مستلقيا لا صلى قائما بركوع وسجود لان الاستلقاء لا يجوز بلا عذر كالصلوة مع الحدث فيترجح ما فيه الاتيان بالاركان كما في المنية وشرحها. (رد المحتار ج ۱ ص ۴۰۰) وقال ابن نجيم رحمه الله (قوله وخير ان طهر اقل من ربعه) يعني بين ان يصلي فيه وهو الافضل لما فيه من الاتيان بالركوع والسجود وستر العورة الغليظة و بين ان يصلي عريانا قاعداً يومي بالركوع والسجود وهو يلي الاول في الفضل لما فيه من ستر العورة الغليظة وبين ان يصلي قائماً عريانا بركوع وسجود وهو دونهما في الفضل وفي ملتقى البحار ان شاء صلى عريانا بالركوع والسجود اومؤميا بهما اما قاعداً واما قائماً فهذا نص على جواز الايماء قائماً. (بحر ج ۱ ص ۲۸۳) فقط والله تعالى اعلم

۲۵ صفر ۹۹ هجری

# باب الانجاس

## د انګریزانو په زړو یا لیلامي جامو کښې د لمانځه د ادا کولو حکم

**سوال**: څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د انګريزانو زاړه کوټونه په بازار کښې خرڅيږي کوم چه اکثره غريب خلک ئې اخلي. آيا د هغو له مينځلو پرته اغوستل او لمونځ کول ورسره جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دي. لما فی شرح التنویر ثیاب الفسقة واهل الذمة طاهرة.

فقط والله تعالیٰ اعلم ۵ ربیع الآخر ۳۷ ھجری

## له مردارو اوبو څخه جوړه شوې مالګه پاکه ده

**سوال**: يو ځای مرداري اوبو ولاړې وې او اوس مالګه ترې جوړه شوې ده. آيا داسې مالګه به پاکه وي او که ناپاکه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له ګنده او مردارو اوبو څخه جوړه شوې مالګه حلاله ده.

قال ابن عابدين رحمه الله و قد ذکر العلامة ابن حجر فی باب الانجاس فی التحفة انه اختلف فی انقلاب الشئ عن حقیقته کالنحاس الی الذهب هل هو ثابت فقیل نعم لانقلاب العصا ثعبانا حقیقة والا بطل الاعجاز وقیل لا لان قلب الحقائق محال والحق الاول الخ وقال بعد اسطر وحاصله انه اذا قلنا باثبات قلب الحقائق وهو الحق جاز العمل به وتعلمه لانه لیس بغش لان النحاس ینقلب ذهبا او فضة حقیقة وان قلنا انه غیر ثابت لا یجوز لانه غش کما لا یجوز لمن لا یعلمه حقیقة لما فیه اتلاف المال او غش المسلمین والظاهر ان مذهبنا ثبوت انقلاب الحقائق بدلیل ما ذکروه فی انقلاب عین النجاسة کانقلاب الخمر خلا والدم مسکا ونحو ذٰلك والله اعلم. (رد المحتار ج۱، ص۲۲)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۴ صفر ۸۷ ھجری

## د تلاوت لپاره د جامو پاکوالی ضروري نه دی

**سوال**: په بدن یا جامو باندې د روپۍ له اندازې څخه زیاته ناپاکي لګیدلې ده نو آیا د اوداسه په کولو سره د قرآنکریم تلاوت ورسره جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دی البته د ادبو خلاف دی. له دې امله په پوره توګه د خان د پاکوالي په صورت کښې باید تلاوت وشي فقط و الله تعالی اعلم ۲۵ ذی الحجة ۸۶ ھجری

## د دوبي (جامو مینځونکي) د مینځل شویو جامو حکم

**سوال:** د قرآن او سنتو له مخې د داسې جامو په باره کښې څه حکم دی کوم چه ناپاک شي او داسې دوبي ته واستول شي چه د هغه د مینځلو د اوبو په باره کښې د ناپاکي او ناپاکي څه معلومات نه وي، هغه جامې له دوبي څخه تر مینځلو وروسته پاکې ګڼل کیږي او که ناپاکې او په اغوستلو سره ئې لمونځ ورسره ادا کیږي او که نه. که چیرته لمونځ نه کیږي نو چه کوم لمونځونه په دا ډول جامو کښې ادا شوي وي د هغه څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**ځواب:** کومې جامې چه دوبي ته پاکې ورکړ شوي وي هغه به له مینځلو وروسته هم پاکې وي او کومې جامې چه ناپاکې ورکړ شوې وي هغه به ناپاکې وي، د دې لپاره چه د شریعت اصول دی چه "الیقین لایزول الا بالیقین" له دې امله چه تر څو پورې د پاکو جامو د ناپاکوالي او د ناپاکو جامو د پاکوالي یقین نه وي نو هغه به پخپل اصل حالت باندې پاتې وي، په ناپاکو جامو کښې که چیرته لمونځ ادا شي نو نه کیږي او د شویو لمونځونو بیرته را ګرځول ضروري دي. د قلتینو د ابتلاء د ضرورت له مخې په (۲۱۷/۷۲۸ کلو) باندې د عمل کولو ګنجائش شته. فقط و الله تعالی اعلم

۲۴ جمادی الثاني ۹ۤ۴ هجری

## د ډرائي کلین حکم

**سوال:** د جامو د وچو مینځلو Dry Cleaning په باره کښې تاسو څه وایې، د دې له طریقهٔ کار څخه زه خبر نه یم. په عمومي توګه دا خیال راځي چه په پټرولو سره ئې مینځي لیکن پاکې او ناپاکې جامې په یوه ځای مینځل کیږي. نو داسې یو ترتیب په ګوته کړئ چه جامې پرې هم مینځلې شي او پاکې هم پاتې شي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې حکم بعینه هغه دی کوم چه په دوبي باندې د کالو مینځلو دی یعنې که چیرته پاک کالي ورکړل شي نو هغه له مینځلو وروسته هم پاک وي او که چیرته ناپاک کالي ورکړل شي هغه به له مینځلو وروسته هم ناپاک پاتې وي، ځکه چې د شریعت اصول دي چه (الیقین لایزول الا بالیقین) له دې امله چه تر څو پورې د پاکو جامو د ناپاکوالي او د ناپاکو جامو د پاکوالي یقین نه وي تر هغو پورې به پخپل اصل حالت باندې پاتې وي البته که چیرته دوبي ئې په جاري اوبو کښې یا په دومره لوی حوض کښې پریمینځي چه مساحت ئې سل لاسه یا تر دې زیات وي نو بیا ناپاک کالي هم پاکیږي. د قلتینو د ابتلاء د ضرورت له مخې په (۲۱۷/۷۲۸ کیلو) باندې د عمل کولو ګنجائش شته. فقط و الله تعالی اعلم.

۱۰ ربیع الاول ۱۴۰۵ هجری

## د مرغانو د ګندګي حکم

**سوال** څه فرمائي د دين بزرګان د دي مسئلې په باره کښې چه په هوا کښې د الوتونکو مرغانو ګندګي پاکه ده او که ناپاکه؟ او د ملغ له پاکولو پرته خوړل جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** په هوا کښې د الوتونکو حلالو مرغانو ګندګي پاکه ده او د حرامو مرغانو ګندګي ناپاکه خو نجاست خفيفه ده ليکن که چيرته کوهي ته ولويږي نو معاف ده او د اوبو ايستل ترې ضروري نه دي

**قال العلائي في بيان النجاسة الغليظة وخرء كل طير لا يذرق في الهواء كبط اهلي ودجاج اما ما يذرق فيه فان كان ماكولا فطاهر والا فمخفف وفي بيان النجاسة الخفيفة وخرء طير من السباع او غيرها غير ماكول وفي الشامية تحت (قوله ثم الخفة انما تظهر في غير الماء) واستثنى ح خرء طير لا يؤكل بالنسبة الى البئر فانه لا ينجسها للضرورة مع انه نجس كما تقدم في البئر. (رد المحتار ج.ص)**

د ملغ ګندګي پاکه ده خو حلاله نه ده. د دي لپاره که چيرته پرته له پاکولو په اوبو کښې وايشول شي نو په غوښه کښې ئې د ګندګي د جذبېدو له وجې غوښه هم حرامېږي فقط و الله تعالى اعلم ٣ محرم ٨٦ هجري

## هګۍ له د باندې (خارج) څخه ناپاکه ده

**سوال** څه فرمايي د دين علماء کرام د دي مسئلې په باره کښې چه د هګۍ د بهرنۍ برخې د پاکوالي او ناپاکوالي په اړه چه د امام صاحب او صاحبينو تر منځ چه کوم اختلاف دی په دغو دواړو کښې راجح قول کوم يو دی. مدلل ئې بيان کړی مهرباني به مو وي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د هګۍ د پاکوالي په اړه له ائمه حضراتو رحمهم الله څخه کوم صراحت په نظر نه دی راغلی البته د فرج د رطوبت المدوالي په اړه اختلاف د فقهې په کتابونو کښې راغلی دی د بهرنې فرج رطوبت په اتفاق سره پاک او د رحم رطوبت په اتفاق سره ناپاک دی او د فرج داخل رطوبت د امام صاحب په نزد پاک او د صاحبينو په نزد ناپاک دی د هيڅ يوه قول د ترجيح صراحت لاس ته را نه غی، په قهستاني، نظم او مجتبی نومي کتابونو کښې د ناپاکوالي قول غوره شوی دی، د در مختار په تعبير سره پاکوالي ته او د تاتارخانيه له ليکنې څخه ناپاکوالي ته ترجيح ورکول څرګنديږي

**قال في العلائية ولا (يجب الغسل) عند وطئ بهيمة او ميتة او صغيرة غير مشتهاة اي ان تصير مفضاة بالوطئ وان غابت الحشفة ولا ينتقض الوضوء فلا يلزم الا غسل الذكر قهستاني عن النظم (رد المحتار ج١.ص١٥٢) وفيها ايضاً وفي المجتبى اولج فنزع فانزل لم يطهر الا بغسله لتلوثه بالنجس آه. اي برطوبة الفرج فيكون مفرعاً**

على قولهما بنجاستها اما عنده فهي طاهرة كسائر رطوبات البدن جوهرة وفي الشامية (قوله برطوبة الفرج) اي الداخل بدليل قوله اولج واما رطوبة الفرج الخارج فهي طاهرة اتفاقا آه ح وفي منهاج الامام النووي رطوبة الفرج ليست بنجسة في الاصح قال ابن حجر في شرحه وهي ماء ابيض متردد بين المذي والعرق يخرج من باطن الفرج الذي لا يجب غسله بخلاف ما يخرج مما يجب غسله فانه طاهر قطعاً ومن وراء باطن الفرج فانه نجس قطعاً ككل خارج من الباطن كالماء الخارج مع الولد او قبيله آه (قوله اما عنده) اي عند الامام وظاهر كلامه في آخر الفصل الآتي انه المعتمد. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۸)

وفي الشامية (قوله رطوبة الفرج طاهرة) ولذا نقل في التاتارخانية ان رطوبة الولد عند الولادة طاهرة و كذا السخلة اذا خرجت من امها و كذا البيضة فلا يتنجس بها الثوب و الماء اذا وقعت فيه لكن يكره التوضي به للاختلاف و كذا الانفحة وهو المختار وعندهما تتنجس وهو الاحتياط آه قلت وهذا اذا لم يكن معه دم ولم يخالط رطوبة الفرج مذي او مني من الرجل او المرأة. (رد المحتار ج۱، ص۳۲۳)

رطوبة الولد و السخلة و البيضة لره مشائخو رحمهم الله په رطوبة الفرج الداخل باندې قياس کړی دی ـــــ ما په دې باندې ځو ځلې غور کړی دی ليکن د قياس وجه مې ذهن ته را نه غی د دې لپاره د بچي رطوبت د رحم رطوبت دی کوم چه په اتفاق سره نجس دی، په ځانګړې توګه چه کله تر ولادت او له ولد يا بچي سره د رطوبت وتل متيقن دی او د دې ناپاکوالی متفق عليه دی.

قال الرافعي رحمه الله (قوله ولذا نقل في التاتارخانية ان رطوبة الولد عند الولادة طاهرة) عبارة السندي و كذلك رطوبة الولد عند الولادة الخ ولعلها اولى فان التعليل الذي ذكره غير ظاهر تأمل. (التحرير المختار ج۱، ص۴۲)

حضرت تهانوي قدس سرّه په امداد الفتاوی کښې دا اشکال داسې رفع کړی دی: (وما قالوا من طهارة رطوبة الولد الخارج من الرحم فالمراد ما على بدنه وهو كالدم الذي على اللحم مع ان الدم السائل نجس فكذلك رطوبة الرحم نجسة ورطوبة الولد طاهرة فافهم).

ليکن په دې جواب سره تسلي نه حاصليږي ځکه چه له غوښې سره لګيدلې جاري وينه له خروج ځخه مخکښې پخپل معدن کښې ده، د دې لپاره د دې حکم نه ظاهريږي او چه کله دا غوښه ظاهريږي نو له هغې سره ملصق (لګيدلې) جاري وينه نه ده، په خلاف د رطوبة الولد ځکه چه هغه د وتلو په حالت کښې هم خاص د رحم رطوبت دی کوم چه په اتفاق سره نجس دی، که چيرته دا فرق د هم نه منل شي نو داسې ويل کيدلی شي چه د غوښې پاکوالی منصوص د قياس خلاف دی د دې

لهاره په دې باندې رطوبة الولد قياس کول صحيح نه دي، بيا که چيرته د رطوبة الولد پاکوالی له امام صاحب رحمه الله څخه منقول وای نو بيا هم د هغه په توجيه کښې څه تکلف کيده بلکه په تکلف هم که چيرته کومه توجيه په ذهن کښې نه راتللی نو بيا به د امام صاحب قول په مقلد باندې حجت وای ليکن پورته دا بيان شول چه د رطوبة الولد او داسې نورو حکم له امام صاحب رحمه الله څخه منقول نه دی.

ځينو حضراتو په رطوبة الولد او رطوبة البيضة کښې دا فرق کوي چه په چرګه کښې د رحم د موجودوالي يقين نشته او که چيرته وي هم نو د هغه د رطوبت نجس والی منقول نه دی. دا خبره څکه صحيح نه ده چه د عامو حيواناتو په خلاف په چرګې کښې د رحم نه موجودوالی يا د هغې د رحم د رطوبت پاکوالی د دليل محتاج دی.

لنډه دا چه د دلائلو له مخې د رطوبة الولد او رطوبة البيضة نجس والی راجح معلوميږي او دا قول د راجح والي تر څنګ احوط هم دی او د پاکوالي قول اوسع (ډير فراخ) دی. فقط و الله تعالی اعلم

غرة رجب المرجب ۹۶ هجری

## د سپي د بدن څاڅکي پاک دي

**سوال**: يوه سړي په سپي باندې پاکې اوبه واچولې، سپي مخامخ را ووت او ځان ئې وڅانډه چه د اوبو څاڅکي د بکر په کاليو باندې ولګيدل نو آيا د بکر کالي پاک دي او که ناپاک؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کالي ئې نه دې مردار شوي. قال العلاء ولو اخرج حياً ولم يصب فمه الماء لايفسد ماء البئر ولا الثوب بانتفاضه. (رد المحتار ج۱، ص۱۴۲) فقط والله تعالی اعلم

٤ ذی القعده ۸۶ هجری

## د حلال څناور د متيازو حکم

**سوال** که چيرته د حلال څناور متيازې د چا په کاليو ولګيږي نو په څومره اندازې سره کالي نجس کيږي؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حلال څناور متيازې د بدن يا جامو د يوه اندام لکه لستوڼي او داسې نورو له څلورمې برخې څخه په کم ځای پورې ولګيږي نو لمونځ ورسره کيږي او څلورمه ياتر دې زياته برخه چه پرې مرداره شي نو لمونځ نه ورسره کيږي

قال في الدر المختار (وعفي دون ربع) جميع بدن و (ثوب) ولو كبيراً هو المختار ذكره الحلبي ورجحه في النهر على التقدير بربع المصاب كيد و كم وان قال في الحقائق وعليه الفتوى (من) نجاسة (مخففة كبول مأكول) وفي رد المحتار (قوله ولو كبيراً الخ) اعلم انهم اختلفوا في كيفية اعتبار الربع على ثلاثة اقوال فقيل ربع طرف اصابته

النجاسة كالذيل والكم والدخريص ان كان المصاب ثوبا وربع العضو المصاب كاليد والرجل ان كان بدنا و صححه فى التحفة والمحيط والمجتبى والسراج وفى الحقائق وعليه الفتوىٰ (الى قوله) لكن ترجح الاوّل بان الفتوىٰ عليه. (ردالمحتار ج۱، ص۲۹۰) فقط والله تعالىٰ اعلم ۲۲ ذى القعدة ۸۶ هجرى

## د شيدو د پاکولو طريقه

**سوال**: که چيرته د ميښې د لوشلو په وخت کښې شيدو ته دوه يا درې څاڅکي وينه ولويږي نو شيدې پرې مرداريږي او که نه په داسې حال کښې چه په تي باندې ئې برسيره زخم وي. شرعاً د دې حکم څه دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د وينې د يوه څاڅکي په لويدو سره هم شيدې مرداريږي، البته د شيدو د پاکولو يو صورت کيدلى شي چه څومره شيدې وي هم هغومره اوبه ورسره واچوى او و ئې ايشوى تر دې پورې چه اوبه ټولې ختمې شي او يواځې شيدې پاتې شي. همدا عمل دې درې ځله تر سره کړى نو شيدې پاکيږي.

قال فى الدر المختار ويطهر لبن وعسل ودبس ودهن يغلى ثلاثاً وفى الشامية وقال فى الدرر ولو تنجس العسل فتطهيره ان يصب فيه ماء بقدره فيغلى حتى يعود الى مكانه والدهن يصب عليه الماء فيغلى فيعلو الدهن الماء فيرفع بشئ هكذا ثلاث مرات وهذا عند ابى يوسف خلافاً لمحمد وهو اوسع وعليه الفتوىٰ (الى ان قال) ثم قال ان لفظة فيغلى ذكرت فى بعض الكتب والظاهر انها من زيادة الناسخ فانا لم نر من شرط التطهير الدهن الغليان الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۳۰۹) فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۴ محرم ۸۸ هجرى

## د شخوند څګ نجس دى

**سوال**: د ميښې د شخوند په وهلو سره چه کوم څګ ئې خولې ته راځي آيا هغه پاک دى او که ناپاک؟ بينوا توجروا.

**جواب**: قال فى الشامية (قوله وجرته كزبله) لكن قال بعده فى الصبى ارتضع ثم قاء فاصاب ثياب الام ان زاد على الدرهم منع وروى الحسن عن ابى حنيفة انه لا يمنع ما لم يفحش لانه لم يتغير من كل وجه فكان نجاسته دون نجاسة البول لانها متغيرة من كل وجه وهو الصحيح آه كذا فى فتح القدير وظاهر الميل الى اعطاء الجرة حكم هذا القئ اخذاً من التعليل. (ردالمحتار ج۱، ص۳۲۲)

له نوموړي عبارت څخه په ظاهره د خفيفه نجاست د کيدو رجحان څرګنديږي ليکن شامي د اوداسه په ماتوونکو کښې د داسې شي په اړه کوم چه معدې ته په تلو سره د قى په ذريعه را

ورځي، په معده کښې پاتې نه شي درې قولونه را نقل کړي دي.

پاکوالی، خفيفه نجاست، غليظه نجاست. او د غليظه نجاست قول ته ئې ترجيح ورکړې دی.

چه کله له معدې څخه پرته له استقرار څخه را وتونکی شی د راجح قول په بناء سره غليظه نجاست دی نو شخوند کوم چه څه وخت په معده کښې تر استقرار نيولو وروسته بيرته خولې ته راځي په طريقهٔ اولی سره به نجاست غليظه وي. فقط و الله تعالی اعلم. ۱۰ شعبان ۸۷ هجری

## فرش يا زمکه په وچيدو سره پاکيږي

**سوال**: په پاخه سرای يا حويلی کښې کوچنيان اکثره متيازې کوي. تر وچيدلو وروسته که چيرته په همدې سرای کښې لمونځ ادا شي نو آيا کيږي او که نه؟ په داسې حال کښې چه د متيازو نښانه په نظر کښې را نه شي. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چه کله فرش وچ شي او د نجاست اثر يا نخښه او بد بويي پاتې نه شي نو په هغه باندې لمونځ صحيح دی ليکن تيمم پرې صحيح نه دی.

قال فی التنوير وتطهر ارض بيبسها وذهاب اثرها للصلوٰة لا للتيمم واجر مفروش وخص وشجر وكلأ قائمين فی ارض كذلك وفی الشرح و كذا كل ما كان ثابتاً فيها لاخذه حكمها باتصاله بها فالمنفصل يغسل لا غير الا حجراً خشناً كرحی فكارض. (ردالمحتار ج۱، ص۲۸۶) فقط والله تعالی اعلم ۱۸ شعبان ۸۷ هجری

## د غليظه نجاست د عفوې د اندازې تحقيق

**سوال**: د کميس په لستوني کښې د ګنده اوبو يا متيازو يا کوم بل نجاست څلور پنځه څاڅکي ولګيږي او په هيره سره په همدې کميس کښې لمونځ وکړي نو آيا لمونځ ئې وشو او که بيرته را ګرځول ئې پرې واجب دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته نجاست ذات لرونکی وي لکه خوشايي او داسې نور نو د څاڅکو تول وزن په اندازه د يوه مثقال = ۵ ماشه = ۴/۸۶ ګرامه يا تر دې کم وي نو لمونځ ئې کيږي په خپريدو کښې اګر که هر څومره زيات وي. او که چيرته نجاست خفيفه (سپک نجاست) لکه مردارې اوبه، متيازې او داسې نور وي نو په خپريدو کښې د ورغوي د منځ يا ژوروالي په اندازه معاف دی.

حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله د ورغوي د منځ د پراخوالي د معلومولو طريقه دا طريقه ليکلې ده چه خپله لپه دې له اوبو څخه ډکه کړي بيا دې ورغوی وغوړوي. په څومره ځای کښې چه اوبه پاتې شي همدومره پراخوالی ترې مراد دی. اکابرو دا اندازه د يوې روپۍ له اندازې سره برابره کړې ده ليکن نن صبا د سرو يا سپينو زرو روپۍ بالکل غائب شوې ده او د ورغوي اندازه

کول آسان نه دی. نو ځکه د ورغوي د اندازه کولو د ضرورت په محسوسولو سره ما په يادي شوي طريقې سره څو څو ځله په ډير احتياط سره اندازه وکړه نو نتيجه ئې دا را ووتله چه قطر - ۱/۱ انچ - ۲/۵۷ سانتي متره شو. تر دې وروسته په ناڅاپي توګه د سپينو زرو روپۍ لاس ته راغله نو د هغې قطر مې هم له دې اندازې سره مطابق پيدا کړ. له دې امله د دې تولو اندازه مربع نيم قطر × پائی - ۰/۹۵ انچ - ۵/۹۴ سانتي متره شوه. فقط و الله تعالی اعلم. ۲۳رجب ۱۹ هجری

## مردارې شيدې په څناورو باندې د چښلو حکم

**سوال**: که چيرته د شيدو د لوشلو په وخت کښې له تيونو څخه لږ غونډې وينه راشي نو آيا د ميښې ټولې شيدې پرې مرداريږي او که نه؟ که چيرته مردارې شي نو آيا څناورو ته ورکول ئې هم جائز دي او که نه؟ يو مولوي صاحب وايي چه حلال څناور ته ئې ور چښل روا نه دي. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شيدې ټولې پرې مرداريږي او حلال څناورو ته ئې ور چښل جائز دي. او که چيرته نجاست دومره زيات وي چه د شيدو رنګ يا بوی يا خوند ئې بدل کړی وي نو بيا حرامو څناورو ته ئې هم ورچښل روا نه دي.

قال في الشامية في بحث الماء المستعمل (فرع) الماء اذا وقعت فيه نجاسة فان تغير وصفه لم يجز الانتفاع به بحال والا جاز كبل الطين وسقي الدواب بحر عن الخلاصة. (رد المحتار ج۱، ص۱۸۶)

و قال العلاء في فصل البئر و ما عجن به فيطعم للكلاب و قال ابن عابدين رحمه الله لان ما تنجس باختلاط النجاسة به والنجاسة مغلوبة لا يباح اكله و يباح الانتفاع به فيما وراء الاكل ونقل عن الذخيرة تحت (قوله و قيل يباع من شافعي) وعن ابي يوسف لا يطعم بني آدم. (رد المحتار ج۱، ص۲۰۱)

له دغو عبارتونو څخه ځرګنده شوه چه په در مختار کښې د "کلاب" قيد احترازي نه دی. فقط و الله تعالی اعلم. ۳شوال ۸۷ هجری

## د پورتنۍ پوښتنې غونډې يوه بله پوښتنه

**سوال**: تاسو ليکلي دي چه که چيرته د نجاست په لويدلو سره د شيدو رنګ، بوی يا خوند بدل شي نو څناورو ته ئې ور چښل جائز نه دي او په بهشتي زيور کښې ليکلي دي چه د اوبو درې واړه صفات بدل شي نو څناورو ته ئې ورچښل جائز نه دي. په دې دواړو کښې کومه يوه خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بهشتي زيور په حاشيه کښې د عالمګيري دا عبارت ليکل شوی دی چه اذا تنجس الماء القليل بوقوع النجاسة فيه ان تغيرت اوصافه لا ينتفع به من كل وجه كالبول و الا

جاز سقی الدواب وبل الطین ولا یطین به المسجد کذا فی التاتارخانیة .(عالمگیریه فصل باب التیمم)

له دي څخه په ذهن کښې درې واړه صفتونه راځي لیکن د احد الاوصاف (یو د دریو صفتونو) احتمال هم شته او په احسن الفتاوی کښې له شامي څخه بحر د خلاصه چه کوم عبارت نقل شوی دی په هغه کښې "وصفه" شته. د بحر اصل عبارت ښه واضح دی.

ونصه واما الماء اذا وقعت فیه نجاسة فان تغیر وصف الماء لم یجز الانتفاع به بحال وان لم یتغیر الماء جاز الانتفاع به کبل الطین وسقی الدواب. (البحر الرائق ج۱،ص۹۹)

په دې کښې د وصف په یو والی برسیره وان لم یتغیر الماء الخ څخه ثابتیږي چه احد الاوصاف ترې مراد دی همدارنګه په احسن الفتاوی کښې د شامي له فصل البیر څخه چه کوم عبارت نقل شوی دی په هغه کښې (والنجاسة مغلوبة) څخه هم دا مفهوم را ووځي.

لان الغلبة تتحقق بتغیر احد الاوصاف. فی نواقض الوضوء من الشامیة وعلامة کون الدم غالباً او مساویاً ان یکون البزاق احمر وعلامة کونه مغلوباً ان یکون اصفر بحر ط (ردالمحتار ج۱،ص۱۲۹)

وفی مفسدات الصوم من العلائیة فان غلب الدم او تساویا فسد والا لا الا اذا وجد طعمه. (ردالمحتار ج۲، ص۱۰۰) وفی رضاع العنایة فسر محمد الغلبة قال ان لم یغیر الدواء اللبن بالاجزاء فی الجنس وفی غیره بتغیر طعم اولون اوریح (الی قوله) یوافقه ما فی الهندیة من اعتبار احد الاوصاف. (ردالمحتار ج۲،ص۴۲۳)

پس راجح قول دا معلومیږي چه یو له صفتونو څخه بدل شي نو څناورو ته ئې هم ورڅښل جائز نه دي او احتیاط هم په دې کښې دی. فقط و الله تعالی اعلم ۲۴ صفر ۹۷ هجری

## له مردارو وازګو (چربی) څخه د جوړ شوي صابون حکم

**سوال:** خلک وائي چه له مردارو وازګو څخه چه کوم صابون جوړیږي آیا داسې صابون پاک دی او استعمال ئې جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** له مردارو وازګو څخه جوړ شوی صابون پاک دی ځکه چه له هغې سره د نورو شیانو په ګډولو د هغې حقیقت بدلیږي او د حقیقت په بدلیدو سره په حکم کښې هم بدلون راځي

قال فی الدر ویطهر زیت تنجس بجعله صابوناً به یفتی للبلوی کتنور رش بماء نجس لا بأس بالخبز فیه الخ وفی الشامیة تحت قوله (ویطهر زیت) ثم هذه المسئلة قد فرعوها علی قول محمد بالطهارة بانقلاب العین الذی علیه الفتوی واختاره اکثر المشائخ خلافاً لابی یوسف کما فی شرح المنیة والفتح وغیرهما وعبارة المجتبی

جعل الدهن النجس في صابون يفتى بطهارته لانه تغير والتغير يطهر عند محمد ويفتى به للبلوى وظاهره ان دهن الميتة كذلك لتعبيره بالنجس دون المتنجس الا ان يقال هو خاص بالنجس لان العادة في الصابون وضع الزيت دون بقية الادهان ثم رأيت في شرح المنية ما يؤيد الاول حيث قال وعليه يتفرع ما لو وقع انسان او كلب في قدر الصابون فصار صابوناً يكون طاهراً لتبدل الحقيقة وانه يفتى به للبلوى كما علم مما مر ومقتضاه عدم اختصاص ذلك الحكم بالصابون فيدخل فيه كل ما كان فيه تغير وانقلاب حقيقة وكان فيه بلوى عامة الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۲۹۱)

فقط الله تعالیٰ اعلم

۸ ربیع الاول ۸۹ ھجری

## د غالۍ او قالينې د پاکولو طريقه

**سوال** که چيرته د جومات په غالۍ يا قالينې باندې کوم کوچنی متيازې وکړي يا په کوم بل شي سره د جومات غالۍ ناپاکه شي نو د پاکولو طريقه ئې څه ده. همدارنګه په جومات کښې له جومات څخه د باندې کومه لويه غالۍ يا قالينه مرداره شي نو د پاکولو طريقه ئې څه ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** غالۍ چه وچه شي نو پاکيږي ليکن د جومات غالۍ بايد زر تر زره پاکه شي. اوبو پرې واچوی او په توکري. کپړې او داسې نورو سره ئې وچه کړی. په دې ډول سره ئې درې ځله پريمينځی يا يو ځل پرې ښې ډيرې اوبو وبهوی. قالينه درې ځله په مينځلو سره پاکيږي په دې ډول چه په هر ځل سره اوبو ترې وڅڅيږي که چيرته ئې نښتيځل مشکل وي. او که چيرته ئې نښتيځل مشکل نه وي نو درې ځله ئې نښتيځل هم ضروري دي. دا تفصيل هلته دی چه کله يوه لوښي يا کوچني حوض ته په اچولو سره پريمينځل شي. که چيرته له پاسه اوبو پرې واچول يا جاري اوبو ته ور واچول شي نو بيا نه درې ځله مينځل شرط دی او نه نښتيځل بلکه داسې اندازه ولګوی چه که چيرته لوښي ته اوبو واچول شي او بيا کپړې ور واچول شي نو په څومره اوبو کښې چه کپړې ډوبيږي له هغو څخه د درې چنده اوبو په بهولو سره کپړې پاکيږي.

قال في التنوير وقدر بغسل وعصر ثلاثا فيما ينعصر وبتثليث جفاف اي انقطاع تقاطر في غيره وقال في الدر المختار وهذا كله اذا غسل في اجانة اما لو غسل في غدير او صب عليه ماء كثير او جرى عليه الماء طهر مطلقا بلا شرط عصر وتجفيف وتكرار غمس هو المختار وفي الشامية (قوله او صب عليه ماء كثير) اي بحيث يخرج الماء ويخلفه غيره ثلاثا لان الجريان بمنزلة التكرار والعصر هو الصحيح. سراج (ردالمحتار ج۱، ص۳۰۸)

فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۹ ذی القعدة ۸۸ ھجری

## که چیرته شیدو ته پچې ولویږي

**سوال** د شیدو د لوشلو په وخت کښې که چیرته د میښې خوشایي د اوښې د پچې په اندازه شیدو ته ور ولویږي نو آیا شیدې پرې مرداریږي او که نه؟ او که چیرته په لویدلو سره فوراً ترې را و ایستل شي نو بیا ئې حکم څه دی؟ یا د ووزې د لوشلو په وخت کښې که چیرته شیدو ته د هغې پچې ور ولویږي نو دشیدو حکم ئې څه دی او همدارنګه که چیرته دووزې دپچې په اندازه خوشایي شیدو ته ور ولویږي نو بیا ئې څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته د میښې خوشایي په شیدو کښې حل یعنې ورک شي نو شیدې مرداریږي. البته که چیرته دومره وچ وي چه په شیدو کښې حل نه شي نو بیا شیدې پاکې دي. همدارنګه د ووزې د پچو هم همدغه حکم دی لیکن دا حکم د ضرورت له وجې یو اځې د شیدو د لوشلو په وخت پورې خانګړی شوی دی.

قال فی العلائیة وبعرتی ابل وغنم کما یعفی لو وقعتا فی محلب وقت الحلب فرمیتا فوراً قبل تفتت وتلون و التعبیر بالبعرتین اتفاقی لان ما فوق ذلك كذلك ذكره فی الفیض وغیره ولذا قال قبل القلیل المعفو عنه ما یستقله الناظر والكثیر بعكسه وعلیه الاعتماد كما فی الهدایة وغیرها. (رد المحتار ج۱، ص۲۰۳)

فقط والله تعالیٰ اعلم ۲ ذی الحجة ۸۸ هجری

## د استنجاء لوټه په وچیدو سره نه پاکیږي

**سوال** د استنجاء استعمال شوي لوټه تر استعمال وروسته پاکه ده او که ناپاکه که چیرته پاکه وي نو د دویم ځل په استعمال کښې ئې کراهیت شته او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** زمکه په وچیدو پاکیږي لیکن لوټه نه پاکیږي نه دي وجې په استعمال شوي لوټې باندې دویم ځل استنجاء مکره ده.

قال فی العلائیة وحکم آجر ونحوه کلبن مفروش وخص وشجر وکلا قائمین فی ارض كذلك ای كارض فیطهر بجفاف وكذا كل ما كان ثابتا فیها لاخذه حکمها باتصاله بها فالمنفصل یغسل لا غیر الا حجر اخشنا كرحی فكارض. (رد المحتار ج۱، ص۲۸۸) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۰ محرم ۸۹ هجری

## د طاؤس مرغه ګندګي ناپاکه ده

**سوال** آیا د طاؤس مرغه ګندګي پاکه ده او که ناپاکه؟ بینوا توجروا

**جواب** کوم مرغان چه د کوترو یا کارغانو غوندې په هوا کښې [illegible] ګرګه. هغې او داسې نور د هغو ګندګي د نجاست غلیظه په حکم کښې ده. لکه [illegible] مرغه هم د عامو

مرغانو غونډي الوځي نه شي نو ځکه ئې ګندګي د نجاست غليظه په حکم کښې ده فقط والله تعالى اعلم
اول صفر ۸۹ هجری

## د جامو د پريمينځلو تر خنګ د نجاست د اثر (نخښې) د پاتې کيدلو حکم

**سوال** څه فرمايي د دين علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه که چيرته هغه جامه چه څوک پکښې احتلام شوی وي غوټه شي او بيا پريمينځل شي او په ښه توګه اوبو پرې وبهول شي يا درې ځله ئې د نښتيځلو سره سره پريمينځي نو په دې صورت کښې تر وچيدلو وروسته بيا هم د مني څه اثرات لکه سختوالي يا زيړوالي تر ګوتو شي نو آيا جامه پاکه ده او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چيرته ظن غالب دا وي چه د نجاست دا اثر په صابون او داسې نورو شيانو باندې نه لرې کيږي نو په سوال کښې په يادو شويو دواړو صورتونو کښې جامه پاکيږي

لما فى الشامية عن شرح المنية ان الجنب اذا اتزر فى الحمام وصب الماء على جسده ثم على الازار يحكم بطهارة الازار وان لم يعصر الخ. (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۸). وفى العلائية ولا يضرها اثر كلون وريح لازم فلا يكلف فى ازالته الى ماء حار او صابون ونحوه. (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۴) فقط والله تعالى اعلم ۲ ذى الحجة ۸۹ هجرى

## په ناپاکه غوړو سره د رنګ شوی لرګی حکم

**سوال** که چيرته ناپاکه روغني رنګ په دروازې باندې ولګول شي نو آيا برسيره په پريمينځلو سره پاکيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** هو! برسيره برخه ئې په مينځلو سره پاکيږي.

قال ابن عابدين رحمه الله ولو موّه الحديد النجس يموه بالطاهر ثلاثا فيطهر خلافا لمحمد فعنده لا يطهر ابدا وهذا فى الحمل فى الصلوة واما لو غسل ثلاثا ثم قطع به نحو بطيخ او وقع فى ماء قليل لا ينجسه فالغسل يطهر ظاهره اجماعا. (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۷) فقط والله تعالى اعلم ۲۳ صفر ۹۰ هجرى

## د خاورو تيل پاک دي

**سوال** آيا د خاورو تيل پاک دي او که ناپاک؟ که چيرته په جامو يا لاسونو باندې ولګيږي نو پرته له مينځلو لمونځ ورسره کيږي او که نه؟ بينوا توجروا

**جواب** د خاورو تيل پاک دي ليکن له بد بويي سره ئې جوماتت ته تلل يا لمونځ کول حرام دي په نورو خلکو باندې لازم دي چه داسې سړی چه په تيلو لړلی وي له جوماته منع کړي

قال فی شرح التنویر و یحرم فیه السؤال (الی قوله) واکل لحم ثوم و یمنع منه و کذا کل مؤذ. (رد المحتار ج۱، ص۶۱۱) فقط والله تعالیٰ اعلم ۱۶ رجب ۹۰ هجری

## د اسپرټ (الکحل یا الکول) حکم

**سوال** په فتاوی دار العلوم دیوبند کښې ئې لیکلي دي چه اسپرټ یا الکول ناپاک دي، اوس د دې خبرې تحقیق څه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** اسپرټ که چیرته له انګورو، ممیزو یا خرماوو څخه جوړ شوي دي نو په اتفاق سره نجس دي او که له دغو شیانو پرته له کوم بل شي څخه جوړ شوي وي نو د شیخینو رحمهما الله تعالی په نزد پاک دي او د امام محمد رحمه الله په نزد ناپاک دي. له څیړنې او تحقیق څخه دا څرګندیږي چه نن صبا په اسپرټ او الکحل کښې انګور او خرما نه استعمالیږي له دې امله د شیخینو د قول مطابق پاک دي. حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی اګر که د زمانې د فساد له مخې د حکمت په بناء سره د امام محمد رحمه الله قول مفتٰی به ګڼلی دی لیکن د نن صبا د علاج د ضرورت او عموم بلوی د رعایت له مخې د شیخینو رحمهما الله د پاکوالي په قول باندې فتوی ورکول کیږي. او همداسې هم د فتوی د اصولو په لحاظ کولو سره د شیخینو رحمهما الله تعالی قول ته ترجیح ورکول کیږي. الاانعارض. فقط و الله تعالی اعلم. ۲۵ محرم ۹۲ هجری

## غلیظه نجاست چه د درهم په اندازې سره وي پریمینځل ئې واجب نه دي

**سوال** آنجناب کوم چه د بنده د لمانځه په کتاب باندې اصلاحي نظر واچاوه له هغه څخه بنده ته ډیره ګټه ورسیده او ما ډیر ترمیمونه پکښې وکړل لیکن یوه مسئله چه غلیظه یا ټینګ نجاست د مثقال په اندازه په جامو یا بدن باندې ولګیږي نو آیا د طحطاوي او مراقي الفلاح د مسئلې له مخې پریمینځل ئې واجب نه دي او که څنګه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** مفتٰی به قول دا دی چه پریمینځل ئې واجب نه دي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله وان کره تحریماً) والاقرب ان غسل الدرهم وما دونه مستحب مع العلم به والقدرة علی غسله فترکه حینئذ خلاف الاولی. (رد المحتار ج۱، ص۲۹۲) فقط والله تعالی اعلم ۷ محرم ۹۲ هجری

## د بڼکو د صفائي لپاره د چرګې ګرمو اوبو ته د اچولو حکم

**سوال** څه فرمايي د دین علماء کرام د دې مسئلې په باره کښې چه د چرګو د غوښې اکثره خرڅوونکي تجاران او په خانګړي توګه د هوټلونو خاوندان چه چرګان ذبح کړي نو سره له بڼکو ئې

په روغ حالت کښې پرته د ګیډې له خیرلو څخه ئې ګرمو اوبو ته اچوي تر څو چه بڼکې په آسانۍ سره را ووځي او غوښه سره له څرمنې ترې جلا شي. په دې ډول د ګیډې ټول شیان ئې هم هلته د ننه په غوښې کښې د حل کیدو په صورت کښې له غوښې سره شاملیږي او داسې پخې غوښې خلک استعمالوي او په دې سلسله کښې د ډیرو خلکو په ذهنونو کښې د تخمین او ګومان پیدا کول یوه لازمې خبره ده. همدارنګه خلک هم د دې مسئلې په اره د شریعت په رڼا کښې وضاحت غواړي او په دې مسئلې باندې د عمل کولو ډیر غوښتونکي دي. لهذا له تاسو څخه هیله ده چه د شریعت له مخې د لاندینیو پوښتنو په اره په تفصیل سره فتویٰ صادره کړی.

۱ - آیا د پورته یادې شوې غوښې خوړل جائز دي؟

۲ - که چیرته د داسې غوښې خوړل جائز نه وي نو په داسې ډول تاجرانو باندې له مسئلې څخه د خبرتیا یا نه خبرتیا پر بناء کومه ګناه لازمیږي؟

۳ - له مسئلې څخه د خبرتیا تر څنګ که چیرته څوک د دې حرکت مرتکب شي نو په شریعت کښې د هغه لپاره کومه سزا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ - که چیرته په ایشول شوي یا جوشیدلو اوبو کښې چرګ یا چرګه واچول شي او تر دومره څنډه پورې پکښې پریښودل شي چه د ګیډې ګندګي ئې په غوښه کښې د ګډیدلو غالب ظن وي نو دا غوښه مرداره شوه او د پاکولو ئې هیڅ طریقه نشته. البته که چیرته اوبه ګرمې وي لیکن و نه ایشي یعنې و نه خوټیږي او چرګ تر دیره څنډه پورې پکښې پرې نه ښودل شي، یا په جوشو اوبو کښې واچول شي لیکن په چټکۍ سره بیرته ترې و ایستل شي نو غوښه ئې نه مرداریږي.

قال فی شرح التنویر ویطهر لحم طبخ بخمر بغلی وتبرید ثلاثاً وکذا دجاجة ملقاة حالة غلی الماء للنتف قبل شقها فتح وفی التجنیس حنطة سبخت فی خمر لا تطهر ابدا به یفتی. و قال العلامة ابن عابدین رحمه الله (قوله وکذا دجاجة الخ) قال فی الفتح انها لا تطهر ابدا لکن علی قول ابی یوسف تطهر و العلمة و الله اعلم تشربها النجاسة بواسطة الغلیان و علیه اشتهر ان اللحم السمیط بمصر نجس لکن العلة المذکورة لا تثبت ما لم یمکث اللحم بعد الغلیان زماناً یقع فی مثله التشرب و الدخول فی باطن اللحم و کل منهما غیر متحقق فی السمیط حیث لا یصل الی حد الغلیان ولا یترک فیه الا مقدار ما تصل الحرارة الی ظاهر الجلد لتنحل مسام الصوف بل لو ترک یمنع انقلاع الشعر فالاولی فی السمیط ان یطهر بالغسل ثلاثاً فانهم لا یتحرسون فیه عن المنجس وقد قال شرف الائمة بهذا فی الدجاجة و الکرش و السمیط اهـ واقره فی البحر. (ردالمحتار ج۱، ص۲۰۹)

۲ - له مسئلې څخه نه خبرتیا عذر نه دی. له دې امله که چیرته په هوټلونو کښې چرګه په جوشو

اوبو کښي پريږدي نو دا خلک د کبيره گناه مرتکب دي.

۳. په مسلمان بادشاه يا حاکم باندې فرض دی چه داسې خلکو ته داسې سزا ورکړي کوم چه د دوی لپاره او د دوی غوندې نورو مجرمانو لپاره د عبرت ذريعه وگرځي. فقط و الله تعالی اعلم.

۸ ذی القعدة ۹۳ هجری

## چه له نلکې څخه اوبه پرې وبهول شي نو د پاکوالي لپاره زبينل (نچوړول) او تثليث (درې ځله پريمينځل) شرط نه دی

**سوال**: تاسو ويلي وو چه کله په کوم شي باندې د لوښي له چوښکي څخه اوبو وبهول شي نو د پاکوالي لپاره نښتيځل او درې واره پريمينځل شرط نه دی. يو مولوي صاحب په دې کښې لږ اشکال يا اشتباه لري. له دې امله لږ ئې په تفصيل سره وليکی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې نښتيځل او درې ځله پريمينځل شرط نه دي بلکه دومره اوبو بهول کافي دي څومره چه درې ځله په لوښي کښې په مينځلو باندې مصرفيږي.

قال فی شرح التنویر اما لو غسل فی غدیر او صب علیه ماء کثیر او جری علیه الماء طهر مطلقاً بلا شرط عصر وتجفیف وتکرار غمس. وفی رد المحتار وان المعتبر فی تطهیر النجاسة المرئیة زوال عینها ولو بغسلة واحدة ولو فی اجانة کما مر فلا یشترط فیها تثلیث غسل ولا عصر وان المعتبر غلبة الظن فی تطهیر غیر المرئیة بلا عدد علی المفتی به او مع شرط التثلیث علی ما مر ولا شک ان الغسل بالماء الجاری وما فی حکمه من الغدیر او الصب الکثیر الذی یذهب بالنجاسة اصلا ویخلفه غیره مرارا بالجریان اقوی من الغسل فی الاجانة التی علی خلاف القیاس لان النجاسة فیها تلاقی الماء وتسری معه فی جمیع اجزاء الثوب فیبعد کل البعد التسویة بینهما فی اشتراط التثلیث ولیس اشتراطه حکماً تعبدیاً حتی یلتزم وان لم یعقل معناه ولهذا قال الامام الحلوانی علی قیاس قول ابی یوسف فی ازار الحمام انه لو کانت النجاسة دماً او بولاً وصب علیه الماء کفاه (قوله او صب علیه ماء کثیر) ای بحیث یخرج الماء ویخلفه غیره ثلاثاً لان الجریان بمنزلة التکرار والعصر هو الصحیح سراج. (رد المحتار ج۱ ص۳۰۸)

فقط والله تعالی اعلم

٤ ذی الحجة ۹۵ هجری

## د ناپاکو جامو د لمدوالی په پاکو جامو باندې د لگيدلو حکم

**سوال**: که چيرته يو جوړ ناپاک کالي لامده وي او پاکي جامې ورسره ولگيږي او له مخې ئې پاکو جامو ته هم څه ناو يا لمدوالی ورسيږي نو آيا پاک کالي سرې مرداريږي او که نه. همدارنگه که چيرته پاک کالي لامده وي او له وچو ناپاکو جامو سره ولگيږي نو آيا پرې مرداريږي او که نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته ناپاک کالي په عین نجاست لکه متیازې او داسې نورو باندې لامده وي نو پاکې جامې د نجاست د اثر په ښکاره کېدو سره ناپاکې ګرځي. او که چیرته په عین نجاست سره لامده نه وي بلکه په مردارو اوبو باندې لامده وي نو په دې کښې دوه قوله دي یو قول دا چه وچو جامو ته دومره لمدوالی راشي په نښتیځلو سره اوبو ترې وڅاڅي نو مرداریږي او که و نه څاڅي نو نه مرداریږي. دویم قول دا دی چه که چیرته ناپاک کالي دومره لامده وي چه په نښتیځلو سره څاڅکی ترې وڅڅیږي نو له پاکو جامو سره په لګیدلو پاکې جامې هم مرداریږي اګر که له دې وچو جامو څخه څاڅکی و نه څڅیږي. لومړی قول اګر که اوسع دی لیکن دویم قول ارجح او احوط دی.

او که چیرته پاک لامده کالي له ناپاکو وچو جامو سره ولګیږي نو نه مرداریږي. البته که چیرته دومره لامده وي چه له وچو پاکو جامو سره په لګیدو پاک کالي هم دومره لامده کړي چه د دواړو لمدوالي یو شان ښکاریده نو پاکې جامې هم مرداریږي

قال فی التنویر لف ثوب نجس رطب فی ثوب طاهر یابس فظهرت رطوبته علی ثوب طاهر لکن لا یسیل لو عصر لا یتنجس کما لو نشر الثوب المبلول علی حبل نجس یابس. وفی الشامیة (قوله لف ثوب نجس رطب) ای مبتل بماء ولم یظهر فی الثوب الطاهر اثر النجاسة بخلاف المبلول بنحو البول لان النداوة حینئذ عین النجاسة وبخلاف ما اذا ظهر فی الثوب الطاهر اثر النجاسة من لون او طعم او ریح انه یتنجس کما حققه شارح المنیة وجری علیه الشارح اول الکتاب (قوله لا یتنجس) لانه اذا لم یتقاطر منه بالعصر لا ینفصل منه شیء وانما یبتل ما یجاوره بالنداوة وبذلك لا یتنجس به وذکر المرغینانی ان کان الیابس هو الطاهر یتنجس لانه یأخذ بللا من النجس الرطب وان کان الیابس هو النجس والطاهر الرطب لا یتنجس لان الیابس النجس یأخذ بللا من الطاهر ولا یأخذ الرطب من الیابس شیئا. زیلعی، وظاهر التعلیل ان الضمیر فی یسیل وعصر للنجس وبه صرح صاحب مواهب الرحمن ومشی علیه الشرنبلالی والمتبادر من عبارة المصنف کالکنز وغیره انه للطاهر وهو صریح عبارة الخلاصة والخانیة ومنیة المصلی وکثیر من الکتب کالقهستانی وابن الکمال والبزازیة والبحر والاول احوط ووجهه اظهر والثانی اوسع واسهل فتبصر. (رد المحتار ج۱ ص۵۱۷)

فقط والله تعالی اعلم — ۲۹ ربیع الآخر ۹۷ هجری

## د مینځل شویو جامو په ناپاک تناو یا پړي باندې د اچولو حکم

**سوال**: که چیرته یو څوک جامې پریمینځي او د وچولو لپاره په ناپاک یا مردار پړي باندې

وخوړل شي نو آيا پرې مرداريږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**جواب** نه مرداريږي. البته که چيرته کالي دير لامده وي چه پری هم پرې دومره لوند شي چه بيا بيرته له جامو سره ولګيږي نو مرداريږي د پړي په ځای که چيرته د اوسپنې او داسې نورو مزی وي نو په هغه کښې تر دې زيات د مرداريدو خطر موجود دی ځکه چه هغه اوبو نه جذبوي. والدليل مرّ في مسئلة المقدمة فقط و الله تعالی اعلم ۲۴ ربيع الآخر ۹۷ هجری

## د ناپاکې بسترې په خولو باندې د لمديدلو حکم

**سوال** يوه بستره ناپاکه وه او يو څوک پرې ويده شو او دومره خولې شو چه بستره هم لنده شوه نو آيا د نوموړي سړي بدن او جامې مردارې شوې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرته بستره دومره لنده شي چه هغه لندوالی بيرته د سړي بدن او جامو ته ورسيږي نو بيا د سړي بدن او جامې پرې مرداريږي. او که نه وي نو نه مرداريږي.

قال فی شرح التنوير نام علی فراش نجس فعرق ولم يظهر اثره لا يتنجس خانية. (رد المحتار ج۱ ص۲۱۸)

فقط والله تعالی اعلم ۲۴ ربيع الآخر ۹۷ هجری

## د نجاست تر لګيدلو وروسته د خپريدلو حکم

**سوال** . که چيرته په کوم ځای باندې له درهم څخه کم نجاست ولګيږي او وروسته په هغه باندې د اوبو د لويدلو له وجې له يوه درهم څخه زيات شي نو آيا لمونځ ورسره کيږي او که نه؟ بينوا توجروا.

**جواب** وروسته د اوبو د لويدلو له وجې چه نجاست خپور شي نو لمونځ نه ورسره کيږي. او که چيرته پخپله خپور شي لکه مردار تيل نو په دې کښې اختلاف دی. راجح قول دا دی چه لمونځ ورسره کيږي ليکن د نه جواز قول احوط دی.

قال فی العلائية والعبرة لوقت الصلوة لا الاصابة علی الاكثر نهر. وقال ابن عابدين رحمه الله ولو اصابه ثوبه دهن نجس اقل من قدر الدرهم ثم انبسط وقت الصلوة فزاد علی الدرهم قيل يمنع وبه اخذ الاكثرون كما فی البحر عن السراج وفی المنية وبه يؤخذ وقال شارحها و تحقيقه ان المعتبر فی المقدار من النجاسة الرقيقة ليس جوهر النجاسة بل جوهر المتنجس عكس الكثيفة فليتأمل وقيل لا يمنع اعتبارا لوقت الاصابة. قال القهستانی وهو المختار وبه يفتی وظاهر الفتح اختياره ايضا وفی الحلية وهو الاشبه عندی واليه مال سيدی عبد الغنی وقال فلو كانت ازيد من الدرهم وقت الاصابة ثم جفت فخفت فصارت اقل منه فمنعت هذا. (رد المحتار ج۱ ص۲۶۲)

فقط والله تعالی اعلم ۲۸ رمضان ۹۷ هجری

## د نجاست تر وچیدلو وروسته حکم

**سوال:** که چیرته د چا په بدن غلیظه نجاست د درهم له وزن څخه زیات ولګیږي لیکن تر وچیدلو وروسته کم شي نو آیا د لمانځه لپاره مانع ګرځي او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب:** په دې صورت کښې داسې نجاست د لمانځه لپاره مانع ګرځي.

نقل ابن عابدین رحمه الله عن العلامة عبد الغني رحمه الله لو کانت ازید من الدرهم وقت الاصابة ثم جفت فخفت فصارت اقل منعت. (رد المحتار ج ۱ ص ۲۱۲) فقط والله تعالیٰ اعلم ۲۶ جمادی الآخر ۹۹ هجری

## د سپي په خوله د جوته شوي لوښي د پاکولو طریقه

**سوال:** که چیرته سپی کوم لوښي ته خوله وروړي نو آیا له خاورو پرته که چیرته یواځې په اوبو سره پریمینځل شي نو پاکیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** درې ځله په پریمینځلو سره لوښی پاکیږي لیکن اوه ځله مینځل او خاوره پرې تیرول مستحب دي او دا د سپي د زهرو لپاره علاج هم دی. فقط والله تعالیٰ اعلم

۲۸ رمضان المبارک ۹۷ هجری

## بنګ پاک دي

**سوال:** نشه ورکوونکی شی لکه بنګ او داسې نور چه میده شي او د بواسیرو په دانو ولګول شي نو آیا له مینځلو پرته لمونځ ورسره کیږي او که نه؟ او آیا بنګ پاک دي او که ناپاک؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** بنګ اګر که حرام دي لیکن پاک دي، پرته له مینځلو هم لمونځ ورسره کیږي. فقط و الله تعالی اعلم. ۲۳ شوال ۹۸ هجری

## په نجسې غالی، باندې د لمدې پښې د کیښودلو حکم

**سوال:** که چیرته غالی په متیازو یا داسې نورو شیانو باندې ککړه شوې او بیا وچه شوې وي او وروسته په همدې ځای باندې څوک پښه کښیږدي نو آیا د پښې له مینځلو پرته لمونځ کیږي او که نه؟ او چه په کومې مصلی وغیره باندې همداسې پښه کیښږدي نو آیا پرې مرداریږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرته پښه دومره لنده وي چه غالی بنه پرې لنده شي او دومره لندوالی پرې راشي چه بل شی پرې کیښودل شي نو هغه لندوالی هغه شي ته هم ورسیږي نو پښه مرداریږي بیا چه دا پښه په جای نماز یا مصلی باندې کیښودله شي او لندوالی پرې ښکاره شي

نو مصلی یا جای نماز هم مرداریږي. او که چیرته غالی دومره لنده نه شي نو پښه هم نه مرداریږي.
فقط و الله تعالی اعلم. ۲۸ ذی القعده ۹۸ هجری

## د دوبي (جامو مینځونکي) د بدن او جامو حکم

**سوال:** دوبي کالي مینځي او هغه ته پاک او ناپاک او هر ډول کالي راځي. د کالي مینځلو په وخت کښې چه کوم څاڅکي د هغه جامو او بدن ته ور شیندل کیږي نو آیا کالي او بدن ئې پرې مرداریږي اوکه نه او لمونځ ئې پرته له لامبلو او کالي بدلولو صحیح کیږي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** چه تر څو پورې د کوم کالي د ناپاکوالي یقین نه وي تر هغه وخته پورې په هغو باندې د ناپاکي حکم نه لګول کیږي. د دې لپاره دوبي پرته له لامبلو له همدغو جامو سره لمونځ کولی شي. فقط و الله تعالی اعلم. ۷ ربیع الآخر ۹۹ هجری

## د هغه نجاست تفصیل چه د لمانځه دجواز لپاره مانع (خنډ) ګرځي

**سوال:** که چیرته د چا په جیب کښې د شرابو بوتل وي نو لمونځ ئې ورسره کیږي او که نه؟ همدارنګه د هغه نجاست پوره تفصیل بیان کړی چه د لمانځه لپاره خنډ ګرځي الله تعالی دې اجر درکړي.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په نوموړي صورت کښې لمونځ نه کیږي. د دې تفصیل دا دی چه د نجاست په محل کښې درې احتماله دي. مبسوط، ملبوس او محمول. په مبسوط کښې یواځې د دواړو پښو، دواړو لاسونو او دواړو ځنګنونو او تندي د ځای پاکوالی ضروري دی له دې پرته که چیرته په بل ځای کښې که چیرته نجاست وي نو هغه مانع نه دی اګر که بساط (فرش) کوچنی وي. د ملبوس تفصیل دا دی چه که چیرته د لمانځه په حرکاتو سره د هغه نجسه خوا یا نجس طرف حرکت کاوه نو د لمانځه مانع دی او که ئې نه کاوه نو نه دی. محمول که چیرته متمسک بنفسه وي (لکه هګۍ چه د ننه پکښې وینه وي) نو نجاست ئې د لمانځه مانع نه دی او که چیرته متمسک بنفسه نه وي او نجاست ئې په اصلي معدن کښې وي نو هغه هم د لمانځه مانع نه دی او که چیرته په اصلي معدن کښې نه وي نو د لمانځه مانع دی. د شرابو بوتل له همدې ډول څخه دی.

قال فی باب شروط الصلوة من شرح التنویر و طهارة ثوبه و کذا ما یتحرک بحرکته او یعد حاملاً له کصبی علیه نجس ان لم یستمسک بنفسه منع و الا لا کجنب و کلب ان شد فمه فی الاصح و مکانه ای موضع قدمیه او احدهما ان رفع الاخری و موضع سجوده اتفاقاً فی الاصح لا موضع یدیه و رکبتیه علی الظاهر الا اذا سجد علی کفه کما سیجیء و فی الشامیة (قوله و کذا ما) ای شیء متصل به یتحرک بحرکته کمندیل طرفه علی عنقه و فی الآخر نجاسة

مانعة ان تحرك موضع النجاسة بحركات الصلوٰة منع و الا لا بخلاف ما لم يتصل كبساط طرفه نجس و موضع الوقوف و الجبهة طاهر فلا يمنع مطلقا (قوله كصبي) اى و كسقف و ظلة و خيمة نجسة تصيب رأسه اذا وقف (قوله و الا لا) اى و ان كان يستمسك بنفسه لا يمنع لان حمل النجاسة حينئذ ينسب اليه لا الى المصلى (قوله كجنب) تنظير لا تمثيل اى فان الجنابة ايضاً تنسب الى المحمول لا الى المصلى ولو كان تمثيلاً للزم اشتراط ان يكون الجنب متمسكا بنفسه بان لا يكون زمناً مع انه غير نجس حقيقة فلو حمل المصلى جنباً لا يمنع صلوته مطلقاً لان نجاسته حكمية فافهم. (قوله و كلب ان شد فمه) لو قال و كلب ان لم يسل منه ما يمنع الصلوٰة لكان اولى لانه لو علم عدم السيلان او سال منه دون القدر المانع لا يبطل الصلوٰة و ان لم يشد فمه (الى قول) لو جلس على المصلى صبى ثوبه نجس و هو يستمسك بنفسه او حمام نجس جازت صلوته (الى قوله) و نجاسة اطنه (اى الكلب) فى معدنها فلا يظهر حكمها كنجاسة باطن المصلى كما لو صلى حاملا بيضة مذرة صار مخها دما جاز لانه فى معدنه و الشيء ما دام فى معدنه لا يعطى له حكم النجاسة بخلاف ما لو حمل قارورة مضمومة فيها بول فلا تجوز صلوته لانه فى غير معدنه و ايضا فيها بحث (قوله اتفاقا فى الاصح) فلا يشترط طهارة موضع الانف لانه اقل من الدرهم كما فى شرح المنية. (قوله على الظاهر) اى ظاهر الرواية كما فى البحر لكن قال فى منية المصلى قال فى العيون هذه رواية شاذة و فى البحر و اختار ابو الليث ان صلوته تفسد و صححه فى العيون آه. و فى النهر و هو المناسب لاطلاق عامة المتون و ايده بكلام الخانية قلت و صححه فى متن المواهب و نور الايضاح و المنية و غيرها فكان عليه المعول و قال فى شرح المنية و هو الصحيح لان اتصال العضو بالنجاسة منزلة حملها و ان كان وضع ذلك العضو ليس بفرض. (ردالمحتار ج۱، ص۴۰۳)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۱۹ صفر ۷۶ھ ہجری

## د ویده سړي لاړې پاکې دي

**سوال**: د خوب په حالت کښې چه د خینو لاړې بهیږي زید وایي چه په دې سره جامې مردارېږي آیا د زید دا خبره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**جواب**: دا لاړې پاکې دي او جامې پرې نه مردارېږي.

لعاب النائم طاهرٌ سواء كان من الفم او منبعثا من الجوف عند ابى حنيفة و محمد رحمهما الله تعالىٰ و عليه الفتوى. (عالمگيرية ج۱، ص۴۶)

فقط والله تعالىٰ اعلم ۴ رجب المرجب ۹۹ھ ہجری

# فصل فی الاستنجاء

## د استبراء معهوده طريقه

**سوال:** په لوټې سره د متيازو د څاڅکو د وچولو معهوده طريقه کومه چه نن صبا رواج ده آيا په دې طريقې سره د څاڅکو وچول ضروري دي او که چيرته په دې طريقې سره څاڅکي وچ نه شي نو لمونځ صحيح کيږي او که نه؟ که چيرته دا طريقه ورته شرط وي نو نبي کريمﷺ او صحابهٔ کرامو ﷺ د دې ښوونه ولې نه ده کړې او صحابهٔ کرامو ﷺ ولې دا طريقه نه ده غوره کړې؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب:** حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالى د متيازو د څاڅکي د وچولو دا معهوده طريقه بيان کړې دی چه وجه ئې ځينې علماء کرام دا بيانوي چه په مخکښې زمانه کښې د خلکو مثانې قوي وې نو ځکه د څاڅکو د راتللو احتمال موجود نه وو. په دې زمانه کښې د خلکو په مثانه کښې هغه قوت پاتې نه دی. د دې لپاره په طريقې سره د څاڅکو د پاکوالي ضرورت مخې ته راغی. لهذا د فقهاء کرامو رحمهم الله بيان شوې دا طريقه د نبي کريمﷺ او صحابهٔ کرامو ﷺ په قول او عمل باندې زياتوالی نه دی چه بدعت ورته وويل شي بلکه د زمانې د تغير او بدلون پر بناء د موجوده زمانې د ضرورت په لحاظ سره د پاکوالي او صفائي د يوې طريقې له وجې دا هم لکه په حديثو باندې د عمل کولو غوندې ګڼل کيږي.

نومړې وجه تر دې پوښتنې لاندې راځي چه ترمتيازو وروسته د څاڅکو راتلل د مثانې د کمزورۍ له وجې نه وي بلکه د مثانې د کمزورۍ له وجې چه کوم عارض سړي ته پيښيږي د هغه اثر دا وي چه د توخې، پرنجې يا ټوپ وهل او داسې نورو سره څاڅکي را ووځي او چا ته چه دا مرض لګيدلی وي هغه ته د استبراء معهوده طريقهٔ هيڅ ګټه نه ورکوي. له متيازو وروسته د لندوالي په نظر راتلل د مثانې کمزوري نه وي بلکه د متيازو د نلۍ اوږدوالی او د هغه مړوڼه د دې باعث ګرځي. د طبي نقطهٔ نظر له مخې د دې خبرې تر منلو برسيره په دې باندې دا دليل هم دی چه حضراتو فقهاء کرامو رحمهم الله تعالى د ښځو لپاره د استبراء دا طريقه نه ده ليکلې بلکه دا طريقه ئې يواځې د سړو لپاره مخصوصه کړې ده

قال ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله يجب الاستبراء الخ) وفيها ان المرأة كالرجل الا فى الاستبراء فانه لا استبراء عليها بل كما فرغت تصبر ساعة لطيفة ثم تستنجى ومثله فى الامداد. (الشامية ج١ ص٣١٠)

له دې څخه ثابته شوه چه د استبراء د دې معهودې طريقې علت د مثانې کمزوري نه ده ځکه چه که چيرته دا علت وای نو دا حکم به د ښځو لپاره هم وای. په ښځو کښې لکه څرنګه چه د متيازې

نلي اوږده او موږ لږونکي نه ده نو د دې لپاره ئې هغوی ترې مستثنی کړي دي

چه کله د استبراء علت دا شو نو د معهودې طريقې په ځای يوه بله آسانه طريقه غوره کيدلی شي او هغه دا چه له متيازو څخه تر فارغيدو وروسته لومړی دې د غټو متيازو له ځای څخه د ختو خوا ته رګونه کش کړی شي او بيا دې د متيازو نلی کش کړی شي نو په منځ کښې چه کوم لندوالی وی هغه به ووځي او تر دې وروسته به د څاڅکو د راتللو هيڅ احتمال پاتې نه شي. ما ځو ځله دا تجربه کړې ده چه په طريقې سره تر استبراء وروسته مې په ډيره تيزي سره سل ګامه اخيستي، و مې توخل، ټوپ مې وواهه، منډې مې ووهلې او ځو ځو واره کښيناستم او جګ شوم نو سره له دې هم هيڅ لندوالی مې په نظر را نه غی.

له دې تحقيق څخه وروسته د اصل اشکال خوا ته بيا را ګرځو چه د نبي کريم ﷺ په زمانه کښې خو هم دا علت موجود وو نو ده ﷺ د داسې ډول استبراء حکم ولې نه دی ورکړی او صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم دا ولې نه دي په ځای کړي. د غور تر کولو وروسته د دې دا ځواب ذهن ته راځي چه شريعت د عامې ابتلاء په موقع کښې لږ غونډې نجاست معاف کړی دی لکه څرنګه چه ئې د متيازو د ستنې د سر غونډې څاڅکي، په بيت الخلاء کښې د مچانو په ګندګی باندې کښيناستل او بيا د سړي په بدن او جامو باندې کښيناستل او ختې او داسې نور ئې معاف کړي دي د دې قانون تقاضا دا ده چه د استبراء د يوې طريقې استعمالول هم ضروري نه دي بلکه په خپل وخت کښې لمدونکي نجاست لره په لوټې يا اوبو سره پاکول کافي دي او وروسته که چيرته په داسې ډول سره څه لندوالی ورسيږي چه احساس ئې نه کيږي نو هغه شرعاً معاف دی. سره له دې لکه څرنګه چه په احاديثو کښې د استبراء ډير تاکيد او له متيازو څخه په نه ځان ساتنې باندې سخت وعيد راغلی دی د دې لپاره د احتياط تقاضا دا ده چه په پورتنۍ طريقې سره د استبراء اهتمام بايد وکړی شي يعنې د متيازو نلی دې کش کړی شي او رطوبت يا لندوالی دې و ايستل شي له دې وروسته دې په لوټې يا اوبو سره استنجاء وشي. بهتره دا ده چه لومړی په لوټې سره نجاست لرې کړی شي او بيا اوبو استعمال شي. ليکن نن صبا په ښارونو کښې د بيسن يا ليټرين د سيسټم له وجې د لوټې استعمالول د ډير تکليف سبب جوړيږي يعنې د لوټې په اچولو سره د اوبو نل بنديږي کوم چه بيا د ډيرې بد بويي او ضرر رسولو سبب جوړيږي. بيا ئې په پاکوالي کښې ډير تکليف پيښيږي. له دې وجې په داسې ځايونو کښې هيڅکله لوټه مه استعمالوی. د لوټې استعمال مستحب دی ليکن ځان او نور خلک په تکليف کښې اچول حرام دي. د کوم مستحب کار لپاره په حرامو کښې ځان اچول جائز نه دي. البته د پاکوالي په غرض سره چه کوم جاذب کاغذ په بازار کښې پيدا کيږي د هغه استعمال جائز دی.

له متيازو څخه د ځان ساتنې اهتمام کول له شک او شبهې پرته مؤکد دی ليکن په دې کښې

ډیر شدت یا غلو کول د شریعت له مخې صحیح نه دي. په صحیح البخاري کښې دي چه حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه د متیازو په باره کښې به ډیر له شدت یا سختئ څخه کار اخیست. حافظ بدر الدین عیني رحمه الله د دې په شرح کښې لیکلي دي چه ابو موسٰی اشعري رضي الله عنه د متیازو د څاڅکو څخه د ځان ساتنې په غرض په بوتل کښې متیازې کولې. لیکن د ده دا شدت نورو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته خوند نه ورکاوه چنانچه په صحیح البخاري کښې په دې باندې له حضرت حذیفه رضي الله عنه څخه اعتراض منقول دی.

كان ابو موسى الاشعري رضي الله عنه يشدد في البول ويقول ان بني اسرائيل كان اذا اصاب ثوب احدهم قرضه فقال حذيفة رضي الله عنه ليته امسك اتى رسول الله ﷺ سباطة قوم فبال قائماً (بخاری شریف ج۱، ص۳۶)

وقال الحافظ العيني رحمه الله (قوله يشدد) جملة في محل النصب على انه خبر كان ومعناه كان يحتاط عظيماً في الاحتراز عن رشاشته حتى يبول في القارورة خوفاً أن يصيبه من رشاشه شيء. (عمدة القاري ج۳، ص۱۳۸)

## د حضرت شاه عبد العزیز رحمه الله فتوٰی

د مروجې طریقې استبراء پربښودونکي خلکو ته چه کوم خلک بدعتي وایي نو دا یواځې د دې ظاهر بینۍ دلیل له مبالغاتو څخه دی او دا د اعتبار وړ نه دي. په بخاري شریف او د هغه په شروحو کښې راغلي دي چه ابو موسٰی اشعري رضي الله عنه چه کله د قبر د عذاب حدیث واورید نو له دې وجې څخه ئې متیازې ډیرې په احتیاط کولې تر دې پورې چه کله به د متیازو ضرورت ورته پیدا شو نو د متیازو ځای به ئې بوتل ته ور ننه کړ او په بوتل کښې به ئې متیازې وکړې د دې ویرې له وجې چه داسې نه وي چه بدن یا جامو ته مې والوځي. نو حذیفه رضي الله عنه د انکار په توګه هغه ته وویل چه ما ولیدل چه د خدای پیغمبر ﷺ د یوه قوم ډیران ته ولاړ او په ولاړې ئې تقاضا وکړه او په دې کښې د اشبهه نشته چه په ولاړې متیازې کولو کښې د څاڅکو د لویدلو ګومان دی. او له تجربې څخه دا څرګندیږي چه کله په استبراء کولو کښې مبالغه وشي نو له مثانې څخه متیازې نورې هم راځي او مثال ئې دا دی چه کله شیدې لوشل کیږي نو د ځناور له تې څخه شیدې راځي او چه کله لوشل بند شي نو شیدې هم ودریږي. (فتاوٰی عزیزي ج۲، ص۱٤۰)

## د حضرت حکیم الامت تهانوي رحمه الله وینا

حضرت خواجه صاحب عرض وکړ چه ما ته په استنجاء کښې ډیر وسواس لویږي، په ډیر ځنډ سره په مشکله څاڅکي وچیږي او له لاس لګولو سره خامخا څه نا څه څاڅکي را ووځي ونې فرمایل چه داسې هیڅکله مه کوی. په معمولې توګه د استنجاء په وخلو سره ذکر پریمینځئ په

عوارف المعارف نومي کتاب کښې ليکلي دي چه دا د تي غوندې مثال لري چه څومره لاس پرې را کاږې څه نا څه شيدې ترې را ووځي او که ئې همداسې پريږدې نو هيڅ ترې نه راووځي حضرت خواجه صاحب عرض وکړ چه وروسته بيا څاڅکي را ووځي و ئې فرمايل چه هيڅ فکر مه کوی اگر که وروسته د لمونځونو بيرته را گرځول درباندې لازم شي ليکن تر څو پورې چه په تکلف او زور سره د وسوسې خلاف ورزي و نه کړې دا مرض درنه نه ورکيږي له دې وجې څخه تاسو په ډير تکليف کښې يئ خواجه صاحب عرض وکړ چه د لندوالي له وجې د يوه وخت په اوداسه کښې د بل وخت د اوداسه لپاره شک را لويږي او له دې وجې څخه رومال يا دسمال هم مينځم و ئې فرمايل چه مه اودس کوی او مه رومال مينځئ. څو ورځې لږ په تکلف سره له دې څخه د توجه اړولو په صورت کښې وسواس له منځه ځي. (ملفوظات کمالات اشرفيه ص۱۹۸ ملفوظ ۸۰۷)

له دې څخه ثابته شوه چه په استبراء کښې زيات شدت او سختي د شريعت له مخې له بدوالي برسيره د صحت لپاره هم نقصاني دی او د ذهني انتشار او دماغي پريشانيو سبب هم دی فقط و الله تعالی اعلم. ۲۹ جمادی الاولی ۹٦ هجری

## په استنجاء کښې يواځې په لوټې باندې د اکتفاء کولو حکم

**سوال**: له وړو يا غټو متيازو څخه وروسته که چيرته په لوټې سره استنجاء وشي او د استنجاء ځای په اوبو پرې نه مينځل شي او بيا اودس وکړي نو آيا لمونځ ئې کيږي او که نه همدارنګه ځينې خلک د متيازو تر کولو وروسته يواځې لاس مينځي او بيا په خوړلو مشغوليږي په داسې حال کښې چه اوبو هم موجودې وي. شرعاً د دې حکم څه دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چيرته متيازې له مخرج څخه تجاوز کړی وي او دا تجاوز له يوه درهم (قطر - ۱/۱ انچه - ۲/۷۵ سانتي متره او توله اندازه ئې -۰/۹۵ انچه - ۵/۹٤ سانتي متر) څخه زيات نه وي نو بيرته له مينځلو يواځې د لوټې په استنجاء سره لمونځ کيږي. او د غټو متيازو حکم دا دی چه په لوټې سره تر استنجاء وروسته که چيرته له مخرج څخه د تجاوز کوونکي نجاست وزن يو مثقال (۵ ماشه - ٤/۸٦ ګرام) يا تر دې کم وي نو لمونځ کيږي اگر که په خپريدو کښې له يوه درهم څخه هم زيات وي.

قال في العلائية (و يجب) اى يفرض غسله (ان جاوز المخرج (نجس) مانع و يعتبر القدر المانع لصلاة فيما وراء موضع الاستنجاء لان ما على المخرج ساقط شرعاً ولهذا لا تكره الصلوة معه وفي رد المحتار (قوله ولهذا الخ) استدلال على سقوط اعتبار ما على المخرج وفيه ان ترك غسل ما على المخرج انما لا يكره بعد الاستجمار كما عرفته لا مطلقاً. (رد المحتار ج۱، ص۳۱۳) وفي الانجاس التنوير وعفى عن قدر درهم وهو مثقال في كثيف وفي

الشامية ان قدر الدرهم من الكثيفة لو كان منبسطاً في الثوب اكثر من عرض الكف لا يمنع كما ذكره سيدي عبدالغني. (ردالمحتار ج۱، ص۲۹۳)

يواځې لاس مينځل او بيا خوراک کول جائز دي ليکن له مخرج څخه تجاوز کوونکې نجاست که چيرته د درهم له اندازې څخه زيات وي نو له عذر پرته ئې نه مينځل مکروه تحريمي دي او که چيرته په اندازه د درهم يا تر دې کم وي نو بيا ئې نه مينځل مکروه تنزيهي دي. فقط و الله تعالى اعلم. ۲۳ جمادی الاولی ۹۲ هجری

## تر اوداسه وروسته د استنجاء کولو حکم

**سوال** که چيرته له استنجاء څخه وروسته اودس وشي او وروسته په ياد کښې د راتلو په صورت کښې استنجاء وهل شي نو آيا اودس صحيح دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** لومړی اودس ئې صحيح دی او د دوباره کولو ضرورت ئې نشته. فقط و الله تعالى اعلم ۵ ربيع الآخر ۹۲ هجری

(تفصيل ئې د احسن الفتاوی په تتمه کښې راځي انشاء الله تعالى)

## په کاغذ سره د استنجاء کولو حکم

**سوال** په زاړه کاغذونو يا پښتو، اردو او انګريزي اخبارونو باندې د کوچنيانو د نجاست پاکول يا د دسترخوان په ځای استعمالول جائز دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** کاغذ لکه څرنګه چه د علم د حاصلولو يوه آله ده له دې امله ئې احترام او درناوی لازم دی اګر که سپين يا څه پکښې ليکلي وي په کاغذ سره نجاست پاکول يا د دسترخوان کار ترې اخيستل د بې حرمتۍ له وجې مکروه تحريمي دي. البته هغه جاذب کاغذ کوم چه يواځې د استنجاء په غرض سره جوړيږي او د ليکلو په کار نه راځي او قيمتي هم نه وي په هغه سره استنجاء وهل جائز دي.

قال في التنوير و كره بعظم (الى قوله) وشئ محترم. و قال ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله وشئ محترم) و كذا ورق الكتابة لصقالته و تقومه و له احترام ايضاً لكونه آلة العلم و لذا علله في الخانية بأن تعظيمه من ادب الدين (الى قوله) و مفاده الحرمة بالمكتوب مطلقاً و اذا كانت العلة في الابيض كونه آلة للكتابة كما ذكرناه يؤخذ منها عدم الكراهة فيما لا يصلح لها اذا كان قالعاً للنجاسة غير متقوم. (ردالمحتار ج۱، ص۳۱۰) فقط و الله تعالى اعلم

۱۴ جمادی الاولی ۹۲ هجری

## له استنجاء څخه د عاجز سړي حکم

**سوال** یوه مریضه ښځه ده چه یوه پښه ئې ماته شوي ده. د اوداسه کولو په وخت کښې په اندامونو اوبو په بل چا باندې اچوي. البته د اوداسه اندامونه پخپلو لاسونو مینځلی شي ليکن د استنجاء د کولو په وخت کښې ډير تکليف برداشتوي. په باقاعده توګه يو بل څوک هغه له خپل ځايه پورته کوي او بيا په ډير تکليف سره نوموړي مريضه پخپله استنجاء کوي يا ترګټ لاندې يو لوښی کښيږدي او استنجاء وهي اوس پوښتنه دا ده چه آيا د داسې مريض لپاره استنجاء معاف کيدلی شي او که نه اګر که نه لاندينی عبارتونو څخه نه جواز څرګنديږي ليکن بيا هم ستاسو د حضرت پوهه او فراست بل شی دی.

في الشامية (كمريض الخ) في التاتارخانية والرجل المريض اذا لم تكن له امرأة ولا امة وله ابن او اخ وهو لا يقدر على الوضوء قال يوضئه ابنه او اخوه غير الاستنجاء فانه لا يمس فرجه ويسقط عنه والمرأة المريضة اذا لم يكن لها زوج وهي لا تقدر على الوضوء ولها بنت او اخت توضئها ويسقط عنها الاستنجاء آه. ولا يخفى ان هذا التفصيل يجرى فيمن شلت يداه لانه في حكم المريض (شامية فصل في الاستنجاء ج ۱، ص ۲۵۰) و في العالمگيرية لو شلت يده اليسرى ولا يقدر ان يستنجى بها ان لم يجد من يصب الماء لا يستنجى وان قدر على الماء الجاري يستنجى بيمينه كذا في الخلاصة. (عالمگيرية ج ۱، ص ۴۹ باب الاستنجاء)

وړانديزدا دی چه له نوموړي عبارت څخه د استنجاء معاف کيدل په هغه وخت کښې څرګنديږي چه کله په استنجاء باندې څوک قدرت و نه لري او لاسونه ئې شل يا پرې وي، همدارنګه يو بل څوک هم نه وي چه په هغه باندې اوبو واچوي ليکن زمونږ څه پوهه ده د دې لپاره پخپلې ګرامي رأيې باندې په واضحه توګه د مطلع کيدو په صورت کښې د مسئلې صحيح حکم وليکی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** ستاسو خيال صحيح دی په دې صورت کښې استنجاء معاف نه ده. البته که چيرته ئې دواړه لاسونه شل وي يا ئې يو لاس شل وي او بل څوک د اوبو اچولو والا نه وي او جاري اوبو هم نه وي چه پکښې کښيني او په روغ لاس باندې استنجاء ووهي او د ښځې خاوند يا د نارينه خپله بي بي هم نه وي چه استنجاء ور ووهي نو بيا استنجاء معاف ده. فقط و الله تعالى اعلم.

۵ صفر سنه ۹۸ هجري

تمت بالخير

اول جلد ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً وظاهراً وباطناً

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى اله وصحبه وسلم اجمعين برحمتك يا ارحم الراحمين

# د موضوعاتو فهرست

عنوان — صفحه

**تمت بالخير**

**تم فهرس الكتاب بعون الملك الوهاب**

**د احسن الفتاوى د اول جلد فهرست ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً**

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى اله وصحبه وسلم اجمعين برحمتك يا ارحم الراحمين**